وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ

# الــــورد الشــــذي

پښتو شرح د

# جـــامع الـــترمذي

## جلد ثالث

حديث _٨٠٩_ تر _ ١٣٢١_

جمع وترتيب: خادم العلماء المفتقر الي الله ابوهلال: **عبدالخالق بن خان محمد**
خريج الجامعة امداد العلوم الاسلامية پشاور/ وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات)

**ازافادات**

شيخ الاسلام فقيه العصر محمد حسن جان (المدني) شهيد (رحمه الله)

**ناشــر:** مكتبه رحمانيه پشاور

اسم الكتاب: **الورد الشذي** بشرح الجامع للترمذي

**جلد** **ثالث**

حديث _٨٠٩_ تر _ ١٣٢١_

تاليف: ابوهلال "**عبدالخالق**" خَرِيْجُ الْجَامِعَة اِمْدَادُ الْعُلُوْمِ الْاِسْلَامِيَةِ بِشَاوَر_
وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات) رابطه نمبر ٠٣٣٣٩١٢١١٩٢

**اهتمام طباعت:** الحاج شاه زاده صاحب

سال اشاعت: ٢٠٢١

**تعداد:** ١٠٠٠

**مصحح:** مولانا عبد الوافي بن عبد الباقي رودات حصارك مزينه . فاضل جامعه امداد العلوم پشاور

**ناشر:** مكتبه رحمانيه محله جنكي نزد قصه خواني (پشاور)

بسم الله الرحمن الرحيم

# فهرس الابواب والمحتويات

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ، وَسَلاَمٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

******************

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## د حج احكام

حج دهجرت په شپږم کال په حديبيه مقام کي فرض شوي وو الله تعالي فرمانيلي دي
"واتموالحج والعمرة لله"

د حج لغوی معنی څه معظم او لوئي ځيز ته اراده کول دی،اودشريعت په اصطلاح کي د مخصوص ځائي مخصوص فعل سره په خاص وخت کښ اراده کول دی.

## ١_ باب مَا جَاءَ فِي حُرْمَةِ مَكَّةَ

### دمکي د حرمت او عزت بيان

بکه او مکه دواړه هم معني الفاظ دي اهل عرب کله کله باء په ميم سره بدلوي لکه نميط او نبيط لازم او لازب ، راتب او راتم ، بعضي علماؤ وئيلي دي مکه دټول ښار نوم دي او بکه صرف دکعبي نوم دي يا د طواف دمقام نوم دي بکه په معني دګنړي دي اودحج په ورځو کي په مکه کي هم ګنړه ګونړه وي نوځکه ورته بکه وئيلي شي

٨٠٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْعَدَوِيِّ، أَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ وَهُوَ يَبْعَثُ الْبُعُوثَ إِلَى مَكَّةَ: ائْذَنْ لِي أَيُّهَا الأَمِيرُ أُحَدِّثْكَ قَوْلًا قَامَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَدَ مِنْ يَوْمِ الْفَتْحِ سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ وَوَعَاهُ قَلْبِي وَأَبْصَرَتْهُ عَيْنَايَ حِينَ تَكَلَّمَ بِهِ أَنَّهُ حَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللَّهُ وَلَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ، وَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ أَنْ يَسْفِكَ فِيهَا دَمًا أَوْ يَعْضِدَ بِهَا شَجَرَةً. فَإِنْ أَحَدٌ تَرَخَّصَ بِقِتَالِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا. فَقُولُوا لَهُ: إِنَّ اللَّهَ أَذِنَ لِرَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَأْذَنْ لَكَ. وَإِنَّمَا أَذِنَ لِي فِيهِ سَاعَةً مِنَ النَّهَارِ، وَقَدْ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالأَمْسِ وَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ". فَقِيلَ لِأَبِي شُرَيْحٍ: مَا قَالَ لَكَ عَمْرٌو؟ قَالَ: أَنَا أَعْلَمُ مِنْكَ بِذَلِكَ يَا أَبَا شُرَيْحٍ إِنَّ الْحَرَمَ لَا يُعِيذُ عَاصِيًا وَلَا فَارًّا بِدَمٍ وَلَا فَارًّا بِخَرْبَةٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَيُرْوَى وَلَا فَارًّا بِخِزْيَةٍ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي شُرَيْحٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو شُرَيْحٍ الْخُزَاعِيُّ اسْمُهُ خُوَيْلِدُ بْنُ عَمْرٍو وَهُوَ الْعَدَوِيُّ وَهُوَ الْكَعْبِيُّ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ:

**وَلَا فَارًّا بِخَرْبَةٍ يَعْنِي الجِنَايَةَ. يَقُولُ: مَنْ جَنَى جِنَايَةً أَوْ أَصَابَ دَمًا ثُمَّ لَجَأَ إِلَى الحَرَمِ. فَإِنَّهُ يُقَامُ عَلَيْهِ الحَدُّ.** [1]

**ترجمه** دابوشريح عدوي رضي الله عنه نه روايت دي فرماني کله چي عمرو بن سعيد مکي ته دعبدالله بن زبير سره دجنګ کولو دپاره لښکر ليږلو نو ما ورته اوونيل اي امير ماته اجازت راکړه چي يوه داسي خبره درته بيان کړم کومه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دفتح مکه په دويمه ورځ بيان کړي زما غوږونو دا اوريدلي دي او زما زړه ياد ساتلي دي او زما سترګو ليدلي وو چي فرمائيل يي کله چي هغه دا حديث بيان کړو نو دالله تعالي حمد او ثناء يي بيان کړه او بيا يي اوفرمائيل په مکه کي جنګ او جدال کول الله تعالي حرام کړي دي ،خو افسوس دادي چه، خلقو حرام نکړل لهذا دهيچا دپاره څوك چي په الله او په ورځ داخرت ايمان لري دا جائز نه دي چي هغه په مکه کي خون خرابه اوکړي او يا ددي کومه ونه پري کړي او که څوك په دي کي درسول الله صلي الله عليه وسلم دقتال کولو نه استدلال کوي او دقتال دپاره جواز پيدا کوي نو هغوئ ته اوواني الله تعالي خو خپل رسول ته ددي کار اجازت ورکړي وو مګر تاسو ته يي نه دي درکړي چنانچه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي ماته هم دورځي څه وخت دپاره اجازت راکړي شوي وو خو نن ددي حرمت واپس خپل ځاي ته راغي لکه چي پرون څنګه قائم وو او چي کوم خلق موجود دي هغوئ دي دا خبره هغه چاته اورسوي څوك چي دلته موجود نه وي، دابوشريح نه تپوس اوکړي شونو دي باره کي عمرو بن سعيد هغه ته اوونيل تا دوئ ته څه اوونيل هغه اوونيل ده ماته دا اوونيل، اي ابو شريح ماته دا خبره ستا نه زياته بنه معلومه ده چي حرم دمکي کوم نافرماني کونکي ته پناه نه ورکوي او نه کوم قاتل ته پناه ورکوي او نه کوم غل تختيدونکي ته پناه ورکوي

امام ترمذي واني دابوشريح حديث حسن صحيح دي، او دابوشريح خزاعي نوم خويلد بن عمرو دي او عدوي او کعبي هم دي، او په دي باب کي دابوهريره، ابن عباس رضي الله عنهم نه هم روايت مروي دي، او د "ولافارا بخربة" په خاي باندي "ولافارا بخزية" سره هم مروي دي او په "ولافارا بخربة" کي خربة په معني دګناه او جرم دي يعني څوك کوم جرم اوکړي او يا قتل اوکړي او بيا په حرم کي پناه واخلي په هغه باندي به حد جاري کيږي

---

[1] _ صحيح البخاري في العلم ٣٤ (١٠٤)، وجزاء الصيد ٨ (١٨٣٢)، والمغازي ٥١ (٤٢٩٥). صحيح مسلم في الحج ٨٢ (١٣٥٤). سنن النسائي في الحج ١١١ (٢٨٧٩). (تحفة الأشراف: ١٢٠٥٧). مسند احمد (٤ في ٣١). ويأتي عند المؤلف في الديات (برقم: ١٤٠٦)، ومسند احمد (٦ في ٣٨٥)

**تشريح** . د مكي په فضائلو كي متعدد احاديث وارد دي چي علماؤ ورباندي مستقل كتابونه ليكلي دي تفسير **مظهري** په ايت كريمه ان اول بيت وضع للناس ، ال عمران كي شاندار تحقيق كړی دی چي په لاندينو كربنو كي يي ستاسو دپاره نقل كوو
عبدالله بن زبير رضي الله عنه فرمائيلي دي مكه دلويو لويو جابرانو ختونه ماتوي لكه چي يي داصحاب فيل والا ختونه مات كړي وو مكي ته مكه ځكه ونيلي شي چي مك په معني دقلت داوبو دي اوپه مكه كي به اوبه كمي وي
**داوليت دبيت الله نه څه مراد دي** په دي باره كي دعلماؤ اقوال مختلف دي
عبدالله بن عمر رضي الله عنهما مجاهد ، قتاده او سدي ونيلي دي چي دزمكي او اسمان دپيدائش په ورځ داوبو سطح دتولونه اول دكعبي په مقام باندي ښكاره شوه په ابتداء كي دا سپين زګ وو ،كوم چي منجمد شوي وو، دزمكي دپيدائش نه دوه زره كاله مخكي ددي تخليق شوي وو بيا هم ددي دلاندي زمكه اوغوړولي شوه
علي بن الحسين رضي الله عنهما فرمائيلي دي چي الله تعالي دعرش لاندي يو كور جوړ كړو چي نوم يي بيت المعمور دي اوداسمان فرشتو ته يي ددينه دطواف كولو حكم اوكړو اوبيا يي په زمكه باندي اوسيدونكو فرشتو ته حكم اوكړو چي دبيت المعمور پشان په زمكه كي هم يو كور جوړ كړئ فرشتو دحكم مطابق دكعبي تعمير اوكړو او صراح نوم يي ورباندي كيخودو بيا الله تعالي زمكي والاته حكم اوكړو لكه څنګه چي اسمان والا د بيت المعمور نه طواف كوي دا رنګي تاسو هم ددي كور طواف اوكړئ
په بعضي روايتونو كي راغلي دي چي دادم عليه السلام دپيدائش نه دوه زره كاله مخكي فرشتو دكعبي عمارت جوړ كړي وو اوددي حج به يي كولو كله چي ادم عليه السلام حج اوكړو نو فرشتو اوونيل ستا حج مبرور دي مونږ ستا نه دوه زره كاله مخكي ددي حج كړي دي
په يو روايت كي عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ته ددي قول نسبت شوي دي چي ادم عليه السلام دتولو نه مخكي په زمكه دكعبي عمارت جوړ كړي وو او دا روايت ازرقي په تاريخ مكه كي نقل كړي دي
په صحيحينو كي دابو ذر رضي الله عنه نه روايت مروي دي فرمائي چي ما عرض اوكړو اي دالله رسوله په زمكه كي دتولو نه مخكي كوم يو مسجد جوړ كړي شوي دي رسول كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل مسجد حرام ما بيا عرض اوكړو په دي پسي بيا كوم يو نو ويي فرمائيل مسجد اقصي ما بيا عرض اوكړو په دواړو كي څومره زمانه فصل وو ويي فرمائيل څلويښت كاله نو كله چي هر چرته په تا باندي دمونځ وخت راشي اداء يي كړه په دي كي فضيلت دي

په يو روايت كي راغلي دي چي د كعبي عمارت دټولو نه اول ادم عليه السلام جوړ كړي وو او دطوفان نوح په وخت كي دا عمارت پورته كړي شوي وو.
بعضو ونيلي دي چي په طوفان نوح كي وران شوي وو ابراهيم عليه السلام دوباره ددي تعمير اوكړو بيا وران شو نو قبيله جرهم دوباره جوړ كړو اودهغوئ نه پس بيا عمالقه اباد كړو اوپه دوئ پسي پس چي كله وران شو نو قريشو ددي تعمير اوكړو
دابن جرير او ابن ابي حاتم او بيهقي بيان دي چي دطوفان په زمنه كي دكعبي عمارت پورته كړي شوي وو بيا ابراهيم عليه السلام ددي دجوړولو اراده اوكړه نو الله تعالي ورته ددي خاي وراوښودلو ددي صورت داسي وو چي الله تعالي د حجوج په نوم هوا راوليږله دغي هوا دكعبي ګيرچاپيره خاوري او ګردونه والوزول نودكعبي بنيادونه ښكاره شول اوابراهيم عليه السلام په زوړ بنياد باندي ابادي جوړه كړه ، حجوج يو ځاروي وي چي دوه لاسونه يي وي دمرغو پشان اوشكل يي دمار پشان وي
بعضي خلقو ونيلي دي دكعبي اوليت دزماني په لحاظ سره مراد نه دي بلكي دفضيلت په اعتبارسره مراد دي يعني كعبه افضل ترين عمارت دي ددي قول نسبت علي كرم الله وجهه ته شوي دي ضحاك ونيلي دي كعبه دټولو نه مخكني كور دي كوم ته چي بركت وركړي شوي دي
امام ابو يوسف فرمائيلي دي چاچي په مسجد حرام كي ددوه ركعتانه مونځ كولو نذرمنلي وي اوپه بل خاي كي يي اداكړي نوكافي به نه وي ځكه چي دانس بن مالك په روايت كي راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي پخپل كوركي دتنه يو مونځ كول دبو مونځ سره برابر دي اودمحلي په مسجد كي يومونځ كول دپنځه ويشتومونځونوسره برابردي اوپه جامع مسجد كي مونځ كول دپنځه سوه مونځونوسره برابردي اوپه مسجد اقصي كي مونځ كول دزرو مونځونوسره برابردي او زما په مسجد كي مونځ كول دپنځوس زره مونځونوسره برابردي اوپه مسجد حرام كي يومونځ كول دسل زره مونځونوسره برابردي (ابن ماجه).
په طحاوي كي دعطاء بن زبير په روايت سره منقول دي چي رسول الله صلي اله عليه وسلم فرمائيلي دي زماپه دي مسجد كي يومونځ كول دمسجد حرام نه علاوه دنورو مسجدونونه زرچنده زيات دي اوپه مسجدحرام كي يومونځ كول زماپه مسجدكي دسلومونځونونه بهتردي
عبدالله بن زبير رضي الله عنه دعمر بن خطاب په روايت سره هم دا حديث نقل كړي دي مګر غير مرفوع دي اودجابر بن عبدالله په روايت سره داحديث مرفوع هم مروي دي.

ابن جوزي په روايت دجابر رضي الله عنه سره په دي الفاظو مرفوع روايت ذكركړي دي چي په مسجد حرام كي يو مونځ دسلو مونځونو نه افضل دي
ليكن دامام ابو حنيفه او امام محمد رحمهما الله قول دادي چي دمونځونو دا ترتيبي فضيلت صرف دفرض مونځونو متعلق دي په نوافلوكي دا فضيلت نشته څكه چي دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دفرضو نه علاوه دسړي دپاره ټول مونځونه پخپل كوركي كول افضل دي (بخاري اومسلم)
ابن جوزي رحمة الله عليه په فضائل مكه كي دعبدالله بن عدي بن الحمرا روايت ليكلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمكي په بازار كي په حروره مقام كي موجود وو اوفرمائيل يي چي په الله تعالي قسم ته په ټولو زمكو كي بهتره يي اودالله په نزد محبوبه يي كه چري زه ستانه نه وي وېستلي شوي نوزه به وتلي نه ووم . دا حديث ابن جوزي دابو هريره رضي الله عنه نه هم مرفوعا بيان كړي دي.
فِيهِ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ ... پدي كي (دصداقت اوحقانيت) واضح دلائل په كثرت سره موجود دي ، مثلا مرغۍ وربانديي دپاسه نشي الوتلي ، ښكاري ځناوردحرم نه بهر پخپل ښكار بانديي حمله كوي ليكن كه چري ښكارحرم ته وتښتي نو درنده دننه نشي ورتلي هم بهر حصار پاتي شي
په كعبه كي دننه په كثرت سره واضح دلائل دي يعني مقام ابراهيم وغيره وغيره، مقام ابراهيم هغه كاڼي دي په كوم چي ابراهيم عليه السلام دكعبي دديوال وهلو دپاره اودريدو اوپدي بانديي يي دخپو نشانات جوړشوي وو اوپه لاسونو كي دسوليدو په وجه بانديي په مزه مزه وران شول ، پس په كاڼي بانديي دقدمونو نشانات جوړيدل، اوپه كاڼي كي دګيتو پوري خپه ننوتل ، اوپه كاڼي كي دومره ژوره كنده جوړيدل اود انبياؤ په اثارو كي ددي اثردومره اوږدي زماني پوري باقي پاتي كيدل اوددشمنانو دكثرت باوجود تردومره زماني پوري محفوظ پاتي كيدل ، پدي امورو كي هر يودكعبي دقبلي كيدو واضح دليل دي ، هم پدي وجه بانديي بعضي اهل علمومقام ابراهيم په ايات بانديي عطف كړي دي ، اودبعض علماؤ په نزد مقام ابراهيم ټول حرم دي.
څوك چي حرم ته ورداخل شي هغه دقتل كيدو اولوټ كيدو نه بي خوفه كيږي، يعني دايات بينات نه يوه نښاني داهم ده چي حرم ته داخليدونكي مامون كيږي ، داسلام نه مخكي به اهل عرب په قتل اوغارت كي مشغول وو ليكن څوك چي به حرم ته داخل شوپه هغه بانديي به چا څه قسم تعارض نه كولو.
امام ابوحنيفه رحمة الله عليه فرمائيلي دي څوك چي حرم ته داخل شي هغه په امن كيږي، اوقتل كول يي جائز ندي، پس كه چري چا دحرم نه بهركوم موجب قصاص ياموجب حد جرم كړي وي اوحرم ته راشي اوپناه واخلي نوپه حرم كي به دننه ورنه قصاص نشي اخستلي اونه به

ورباندي حد جاري كولي شي، البته خوراك څښاك ورباندي بندولي شي اوخريدوفروخت دي ورسره هم پريخودلي شي تردي چي دحرم په پريخودلو باندي مجبوره شي اوبهر را اوځي، اوبهر ورته سزا ورکړي شي

ابن عباس رضي الله عنهما ته هم ددي قول نسبت شوي دي ، امام شافعي رحمة الله عليه فرمائيلي دي دحرم نه بهر جرم کونکي چي په حرم کي پناه واخلي قصاص به ورنه اخستلي شي ليکن که چري څوك په حرم کي دننه جرم وکړي نوپه اتفاق دعلماؤ سره به ورته په حرم کي دننه سزا ورکولي شي لکه چي الله تعالي فرمائيلي دي: وَلَا تُقَاتِلُوهُمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتَّىٰ يُقَاتِلُوكُمْ فِيهِ.

**دابوشريح خويلد بن عمرو رضي الله عنه مناقب**

دده په نوم کي اختلاف دی بعضو خويلد خودلی دی او بعضو عمرو کنيه يي ابوشريح ده او په همدي مشهور شوی دی دفتح مکي نه مخکي مسلمان شوی وو او په فتح مکه کي شريك وو طبقات ابن سعد،

په سخاوت کي ډير مشهور وو اعلان يي کړي وو چي که هرڅوك زما کور ته راځي نو غوړي بي تکلفه بي اجازته خوړلي شي ، تقريبا شل روايات ورڼه منقول دي چي دوه پکي متفق عليه دي

****************

## ٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي ثَوَابِ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ

**دحج اودعمري دثواب بيان**

٨١٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " تَابِعُوا بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ فَإِنَّهُمَا يَنْفِيَانِ الْفَقْرَ وَالذُّنُوبَ كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ وَالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، وَلَيْسَ لِلْحَجَّةِ الْمَبْرُورَةِ ثَوَابٌ إِلَّا الْجَنَّةُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عُمَرَ، وَعَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُبْشِيٍّ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ ابْنِ مَسْعُودٍ.[1]

---

[1] ـ سنن النسائي في الحج ٦ (٢٦٣٢) . (تحفة الأشراف ٩٢٧٣) . مسند احمد (١ في ٣٨٧)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي حج او عمره يو دبل نه پس اداء کوئ خکه چي دا دواړه نيستئ او گناهونو لره داسي ختمونکي دي لکه چي بټئ داوسپني نه خيري ختموي او دسرو او دسپينو زرو خيري خوري او دحج مبرور بدله صرف جنت دي

**تشريح** : دامت په دي خبره باندي اجماع ده چي حج داسلام په ارکانوکي يو رکن دي او فرض عين دي دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي داسلام دعمارت بنياد په پنځه امورو باندي ايخودلي شوي دي دلااله الاالله او محمدرسول الله اقرار كول ، مونځ اداكول، زكوة وركول. درمضان دمياشتي روژي نيول او حج كول (بخاري او مسلم) دحج دفرضيت متعلق احاديث په كثرت سره وارد دي

عمر رضي الله عنه فرمائيلي دي كه چري خلق حج پريږدي نوزه به ورسره جهاد كوم لكه څنګه چي مونږه دمونځ او زكوة دپريخودو په وجه ورسره جهاد كوو

ارشاد نبوي دي: فرمائي "حجوا فإن الحج يغسل الذنوب كما يغسل الماء الدرن" يعني حج كوئ. خكه چي حج داسي گناهونه وينځي څنګه چي اوبه خيري لرې كوی.اود رسول پاك صلي الله عليه وسلم ارشاد دي "من مات ولم يحج فليمت إن شاء يهوديا أو نصرانيا" كوم كس چي (د قدرت) باوجود بغير د حج كولو نه مړ شو نو يهودی دې مرشی.يا نصرانی دې مرشی.(۳) او اجماع خو بنكاره ده چی د رسول پاك صلي الله عليه وسلم د زمانې نه واخله تر نن ورځ پورې تول مسلمانان د حج په فرضيت باندې متفق دی

بذل المجحود كي د حج د فرضيت دتاريخ متعلق متعدد اقوال مذكور دی.(۱) نهمه هجری (۲) پنځمه هجری(۳) شپږمه هجری (۴) هجرت نه وړاندې ملا علی قاری په شرح د.نقايه.كښې ليكلی دی چی رسول الله صلي الله عليه وسلم د حج فريضه په لسمه هجریٔ كي ادا كړې وه.كوم چی د حجة الوداع په نوم باندې يادولې شی.او ابوبكر صديق (رضي الله عنه) په نهم هجری كي حج كړې وو.اوحج هم په دغه كال فرض شوې وو.او اتمه هجریٔ كي د مكې د فتح په موقع باندې عتاب بن اسيد د خلقو په حج كي امير وو.رسول پاك صلي الله عليه وسلم د مكې د فتحې نه پس هم دی امير مقرر كړی وو

***************

٨١١ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ مَنْصُورٍ. عَنْ أَبِي حَازِمٍ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَجَّ فَلَمْ يَرْفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ

ذَنْبِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو حَازِمٍ كُوفِيٌّ وَهُوَ الأَشْجَعِيُّ وَاسْمُهُ سَلْمَانُ مَوْلَى عَزَّةَ الأَشْجَعِيَّةِ. (١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي حج اوکړو او دبي حيايئ او جهالت کومه خبره يي اونکړه او نه يي دګناه کوم کار اوکړو نو دحج په برکت به دده مخکني ګناهونه اوبخښلي شي
امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي

**تشريح** : زجاج وئيلي دي چي رفث هرهغه څيز ته وئيلي شي کوم چي سړي ته دښځي نه مطلوب وي ، بعضو وئيلي دي چي رفث فحش اوبدوخبروته وئيلي شي زه وايم چي فحش او سپك الفاظ استعمالول خوهميشه حرام دي داحرام سره ني هيڅ خصوصيت نشته
ابن عمر رضي الله عنه فرمائي فسوق هر هغه څيز ته وئيلي شي دکومو نه چي محرم منع شوي دي مطلب دا شو چي دمحرماتو داحرام ارتکاب مه کوئ ، او داسي څيزونه بالاتفاق شپږ دي
(١) اول رفث يعني جماع او دواعي ددي
(٢) دوچي ښکار قتل کول او دهغي طرف ته اشاره کول او په څه شان سره بل چاته ښودل الله تعالي فرمائيلي دي لاتقتلوا الصيد وانتم حرم يعني داحرام په حالت کي ښکاره مه قتل کوئ اوهمدارنګي په بل مقام کي يي فرمائيلي دي وحرم عليکم صيد البر مادمتم حرم په تاسو دوچي ښکار حرام شوي دي ترڅو چي تاسو په احرام کي يي
(٣) دويښتو او دنوکانو کټ کول او الله تعالي فرمائيلي دي ولا تحلقوا رؤسکم حتي يبلغ الهدي محله ، يعني سرونه مه خروئ ترڅو چي قرباي خپل مقام ته نه وي رسيدلي او وژل دهغه سپږو کومي چي دخيري نه پيدا کيږي دويښتو خريلو په حکم کي دي
(۴) په بدن يا په کپړو باندي عطر لګول رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي داسي لباس مه استعمالوئ په کوم چي زعفران ياورس لګيدلي .
ددي حديث روايت ابن عمر رضي الله عنهما کړي دي اوپه بخاري او مسلم کي دي داځلور شيان خو په سړو او ښځو دواړو باندي حرام دي اوس نور دوه څيزونه دي چي هغه صرف په سړو باندي حرام دي اول ګنډلي شوي جامي او موزي اغوستل ليکن که چري دچاسره پيزار نه وي نوهغه ته دموزو اغوستلو اودچاسره چي لنګ نه وي هغه ته دپرتوګ اغوستو اجازت شته ،
دويم سر سرتور ساتل دي .

---

[1] ـ صحيح البخاري في الحج ۴ (١٥٢١) . والمحصر ٩ (١٨١٩) ، و١٠ (١٨٢٠) . صحيح مسلم في الحج ٧٩ (١٣٥٠) . سنن النسائي في الحج ۴ (٢٦٢٨) . سنن ابن ماجه في الحج ٣ (٢٨٨٩) . (تحفة الأشراف : ١٣٤٣١) . مسند احمد (٢ في ٢١٠ ، ٢٨٣ ، ٢٩٣)

او دمخ پټول دامام ابوحنيفيه اودامام مالك په نزد باندي دا حكم ښځو او سړو دواړو ته شامل دي

او امام شافعي او احمد فرمائي چي صرف ښځوته شامل دي ځكه چي ابن عمر رضي الله عنهما فرمائيلي دي چي دسړي احرام په سر كي دي اودښځي احرام په مخ كي ددي حديث روايت دار قطني او بيهقي كړي دي او بعضو دا حديث مرفوع كړي دي ليكن صحيح نه ده

عثمان بن عفان رضي الله عنه فرمائيلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په حالت داحرام كي سر پټولو ددي حديث روايت دار قطني كړي دي او ونيلي يي دي چي ددي موقوف كيدل صحيح دي چنانچه په مؤطا كي دي فراقصة بن عمير حلفي. عثمان رضي الله عنه لره په ختلو كي اوليدلو چي په حالت داحرام كي خپل سر پټ كړي وو

زمونږ دپاره دليل حديث دابن عباس رضي الله عنهما دي چي يو محرم لره خپلي سوزلئ اوغورځولو (نو كله چي خلقو دتكفين په وخت كي دده سر پټولو) نو رسول كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي دده سر او مخ مه پټوئ ځكه چي دي به دقيامت په ورځ ددي تلبيي ونيلوسره راپورته كيږي يو اوم څيز بل دي چي په حالت داحرام كي دهغه په حرمت كي اختلاف دي اوهغه عقد دنكاح دي.

امام مالك شافعي او احمد فرمائي چي دمحرم دپاره جائز نه دي چي هغه خپله يا دبل چا دنكاح عقد اوكړي يابل چالره دنكاح وكيل كړي شي او كه چا اوكړل نو منعقد به نه وي ددوئ دپاره دليل دا حديث دي چي عثمان بن عفان رضي الله عنه فرمائيلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي محرم دي نه خپله نكاح كوي اونه دبل چا اونه دي كوژدن كوي (مسلم او ابو داود).

او امام ابو حنيفه فرمائي چي دمحرم دپاره نكاح كول جائزدي اومنعقد به هم وي ځكه چي ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دميمونه رضي الله عنهاسره دنكاح عقد كړي وو او هغه محرم وو او خلوت يي ورسره دحلاليدو نه پس كړي وو او ميمونه رضي الله عنها په سرف مقام كي وفات شوي وه (بخاري او مسلم)

جمهورو اهل علمو ددينه دا جواب كړي دي چي په دي نكاح كي پخپله اختلاف دي چنانچه مسلم ديزيد بن اصم نه روايت نقل كړي دي فرمائي چي ماته پخپله ميمونه بنت الحارث رضي الله عنها بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زما سره نكاح كړي وه او هغه په دغه وخت كي حلال وو ، اويزيد فرمائي چي ميمونه زما اودابن عباس ترور ده ، جمهور وائي چي پخپله دميموني بيان زيات معتبر دي ځكه چي هغه دخپل حال نه په نسبت دابن عباس نه زياته خبرداره وه.

وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ (اونه جگړې کول په حج کې) دجاهليت ددور دخلقو دا عادت وو چې عرفات په مختلفو مقاماتو به اودريدل او هر يو مقام به يې هغه ګڼرلو کوم چې دابراهيم عليه السلام داودريدو خاي وو او په دې باندې به يې ديو بل سره جګړې کولې نوپه دې بنا باندې بعضو به په عرفات کې قيام کولو او بعضو په مزدلفه کې بعضو به په ذي قعد کې حج کولو او بعضو په ذي الحجه کې اوهر يو به دا وئيل دا زه چې کومه طريقه کوم هم دا ټيک ده نو په دې باره کې الله تعالى اوفرمائيل ولاجدال يعني لکه څنګه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم کړې وي په دې باندې مداومت وکړئ او په دې کې اختلاف مه کوئ مجاهد فرمائيلي دي چې د ولاجدال معني داده چې اوس په دې کې څه شك او نزاع نشته چې حج په ذي الحجه کې دې . نوپه دې سره الله تعالى نسيء لره باطل کړو رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي واورئ زمانه په ګرخيدو سره واپس خپل هيئت ته راغلي ده پشان داسمانونو اودزمکې (از مظهري)

***************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي التَّغْلِيظِ فِي تَرْكِ الْحَجِّ

### دحج دپريخودلو دمذمت بيان

٨١٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الْقُطَعِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ مَوْلَى رَبِيعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ مُسْلِمٍ الْبَاهِلِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ مَلَكَ زَادًا وَرَاحِلَةً تُبَلِّغُهُ إِلَى بَيْتِ اللَّهِ وَلَمْ يَحُجَّ فَلَا عَلَيْهِ أَنْ يَمُوتَ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا، وَذَلِكَ أَنَّ اللَّهَ يَقُولُ فِي كِتَابِهِ: وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا سورة آل عمران آية ٩٧". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَفِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ، وَهِلَالُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ مَجْهُولٌ، وَالْحَارِثُ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې دسفر دخرچې او دسورلۍ مالك وي چې ده لره بيت الله ته رسولې شي او دې حج اونکړي نو په دې کې هيڅ فرق نشته چې دې يهوديت ته داوړيدو نه پس مړ شي او يا عيسايت ته داوړيدو نه پس مړ شي او دا ځکه چې الله تعالى پخپل کتاب کې فرمائيلي دي دالله تعالى دپاره دبيت الله حج کول په خلقو باندې فرض کړې شوي دي څو دا په هغه چا دې څوك چې حج ته درسيدو طاقت لري.

1. تفرد بذكره المؤلف رحمه الله.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي او مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي او په دي سند محدثينو كلام كړي دي . او هلال بن عبدالله مجهول راوي دي او حارث به ده لره په باب حديث كي ضعيف گڼرلو.

**تشريح** : دائمه اربعه مسلك دادى كه دحج فرض كيدو نه پس ځوك حج ونكړي او مړ شي نو كافر به نه وي ترڅو چي يي دحج دفرضيت نه انكار نه وي كړى خو گنهگار به ضرور وي. يا دا جمله په طور دتهديد ده چي حج دفرض كيدو باوجود ددي نه كونكى دكافرانو پشان عمل كوي علماء وائي په دي جمله كي دهغه كسانو دپاره سخت وعيد دى ځوك چي دطاقت باوجود حج نه كوي ځكه چي هغوئ پخپل دي عمل سره دكافرانوسره خان مشابه كوي

****************

## ٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي إِيجَابِ الْحَجِّ بِالزَّادِ وَالرَّاحِلَةِ

### دخرچي او سورلئ دموجود كيدو وخت كي دحج دوجوب بيان

٨١٣ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا يُوجِبُ الْحَجَّ؟ قَالَ: " الزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا مَلَكَ زَادًا وَرَاحِلَةً وَجَبَ عَلَيْهِ الْحَجُّ. وَإِبْرَاهِيمُ هُوَ ابْنُ يَزِيدَ الْخُوزِيُّ الْمَكِّيُّ، وَقَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنه بيان دي چي يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله كوم كوم څيزونه حج لره واجبوي؟
رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دسفر خرچي او سورلي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي او ابراهيم . ابن يزيد خوزي مكي دي او په ده باندي دحافظي په اعتبار سره بعضي اهل علمو كلام كړي دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي چي يو بنده كله دسفر دخرچي او دسورلئ مالك شي نو حج په هغه باندي فرض كيږي

****************

## ٥ـ بَاب مَا جَاءَ كَمْ فُرِضَ الْحَجُّ

### څو ځلې حج كول فرض دي

[1] ـ ابن ماجه في الصيام ٦ (٢٨٩٦). وفي التفسير (برقم: ٢٩٩٨) (تحفة الأشراف: ٨٢٣)

٨١٤_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ وَرْدَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ الأَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي البَخْتَرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: " لَمَّا نَزَلَتْ وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ البَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا (آل عمران: ٩٧) قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفِي كُلِّ عَامٍ ؟ فَسَكَتَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفِي كُلِّ عَامٍ، قَالَ: "لَا، وَلَوْ قُلْتُ: نَعَمْ، لَوَجَبَتْ" فَأَنْزَلَ اللَّهُ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ (المائدة:١٠١) . قَالَ: وَفِي البَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَاسْمُ أَبِي البَخْتَرِيِّ سَعِيدُ بْنُ أَبِي عِمْرَانَ وَهُوَ سَعِيدُ بْنُ فَيْرُوزَ. ([1])

**ترجمه** دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان دي كله چي دا حكم نازل شو ''دالله دپاره په خلقو دكعبي حج كول فرض دي خو چي څوك ديته درسيدو طاقت لري'' نو خلقو تپوس اوكړو اي دالله رسوله ايا حج هر كال فرض دي رسول الله خاموش پاتي شو خلقو دوباره بيا تپوس اوكړو اي دالله رسوله ايا هر كال؟ رسول الله اوفرمائيل نه او كه ما هر كال ونيلي وي نو هر كال به حج فرض شوي وي او بيا الله تعالي دا حكم نازل كړو اي ايمان والا دداسي څيز باره كي تپوس مه كوئ چي هغه كه چرې ستاسو په وړاندي ظاهر كړي شي نو تاسو به پريشانه كړي

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث په دي سند حسن غريب دي ، او دابو البختري نوم سعيد بن ابي عمران دي او همدا سعيد بن فيروز دي ، او په دي باب كي دابن عباس او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي

## دحج په ټول عمر كښي يوځل فرضيت

په ژوند كي صرف يو ځل حج فرض دي هركال فرض نه دي او ددې دليل دا حديث دي په صحيح مسلم كي دى:

"عن أبي هريرة (رضي الله عنه) قال خطبنا رسول الله صلي الله عليه وسلم فقال يا أيها الناس قد فرض عليكم الحج فحجوا فقال رجل أكل عام يا رسول الله صلي الله عليه وسلم فسكت حتى قالها ثلاثاً فقال رسول الله صلي الله عليه وسلم لو قلت نعم لوجبت ولما استطعتم ثم قال ذروني ماتركتكم فإنما هلك من كان قبلكم بكثرة سوالهم وخلافهم على أنبيائهم فإذا أمرتكم بشئ فأتوا منه ما استطعتم وإذا نهيتكم عن شئ فدعوه"

[1] ــ سنن ابن ماجه في الصيام ٢ (٢٨٨٣) . ويأتي عند المؤلف في تفسير المائدة (٣٠٥٥)

ابوهريره(رضي الله عنه) فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته خطبه ونيله نو وبې فرمائيل،اې خلقو په تاسو حج فرض دي نو حج کوئ.يوکس اووئيل،اې د الله پيغمبره آيا هرکال؟ رسول پاك صلي الله عليه وسلم چپ شو.هغه دا تپوس درې ځله اوکړلو نو رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل.که ما ونيلی وو چی آو نو فرض شوې به وو.خوتاسوبه ئې طاقت نشو لرلې،بيا نبی صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل.تاسوما پريږدئ.ترڅو چی زه تاسو پريږدمه ځکه چی هلاك شوی دی هغه خلك چی وړاندې ستاسو نه وود زياتو سوالونو او خپلو پيغمبرانو سره د اختلاف په وجه نو کله چی زه تاسو ته د يو څيزحکم درکړم.نود خپل طاقت مطابق په هغې عمل کوئ.او کله چی تاسو د څه څيز نه منع کړم نو هغه پريږدئ.

ددې حديث په الفاظو "لوقلت نعم لوجبت ولما استطعتم" کې په دې دلالت کوی چی په حج کښې تکرار نشته.فرضی حج په ټول ژوند کې يو ځل دې بار بار فرض نه دې دويم دليل دادی چی د حج د فرضيت سبب بيت الله دې هم دا وجه ده چی د حج نسبت بيت الله ته کيږی.او حج بيت الله ونيلی شې.او اضافت د سببيت نښه ده نو معلومه شوه چی د حج سبب بيت الله دې او بيت الله يو دې تکريدې نشی.بلکې هم يو به پاتې وی.او دا معلومه ده چی سبب که مکرر نه وی نو مسبب هم نه مکرر کيږی.ددې وجې ونيلې شوی دی چی حج په ژوند کې صرف يوځل فرض دې.

****************

## ٦ـ باب مَا جَاءَ كَمْ حَجَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### نبي کريم صلي الله عليه وسلم څومره حجونه کړي دي

٨١٥ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّ ثَلَاثَ حِجَجٍ، حَجَّتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يُهَاجِرَ، وَحَجَّةً بَعْدَ مَا هَاجَرَ وَمَعَهَا عُمْرَةٌ، فَسَاقَ ثَلَاثَةً وَسِتِّينَ بَدَنَةً، وَجَاءَ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ بِبَقِيَّتِهَا فِيهَا جَمَلٌ لِأَبِي جَهْلٍ فِي أَنْفِهِ بُرَةٌ مِنْ فِضَّةٍ فَنَحَرَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، " وَأَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ كُلِّ بَدَنَةٍ بِبَضْعَةٍ فَطُبِخَتْ وَشَرِبَ مِنْ مَرَقِهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ سُفْيَانَ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ زَيْدِ بْنِ حُبَابٍ، وَرَأَيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ فِي كُتُبِهِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا فَلَمْ يَعْرِفْهُ مِنْ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ جَعْفَرٍ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

وَرَأَيْتُهُ لَمْ يَعُدَّ هَذَا الحَدِيثَ مَحْفُوظًا، وقَالَ: إِنَّمَا يُرْوَى عَنِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ مُجَاهِدٍ مُرْسَلًا. (١)

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دري حجونه كړي وو دوه دهجرت نه مخكي او يو حج دهجرت نه پس او ددي حج سره يي عمره هم كړي وه او دري شپيته اوښان يي دخان سره دقربانۍ دپاره بوتلي وو او ددينه علاوه نور اوښان ديمن نه علي رضي الله عنه راوستل او په دوى كي يو اوښ دابوجهل وو او دهغه اوښ په پوزه كي دسپينو زرو يوه كړۍ وه رسول الله صلي الله عليه وسلم دغه اوښ نحر كړو او بيايي دهر اوښ نه ديوي ټكړي دپخولو حكم اوكړو چنانچه غوښه پخه كړي شوه او رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي غوښي شوروا اوڅكله.

امام ترمذي وائي دا حديث دسفيان په روايت غريب دي دا مونږ ته صرف دزيد بن حباب په سند رارسيدلي دي ماته عبدالله بن عبدالرحمن دارمي په كتابونو كي كتلي دي چي هغه پخپلو كتابونو كي دا حديث دعبدالله بن ابي زياد په واسطه نقل كړي دي ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه ددي روايت په سلسله كي تپوس اوكړو نو هغه ته په روايت دثوري عن جعفر عن ابيه عن جابر عن النبي صلي الله عليه وسلم معلوم نه وو او ما اوكتل چي هغه دا حديث په محفوظ روايتونو كي اونه شميرل او وئيل يي دا دثوري نه نقل شوي دي او ثوري دابواسحاق نه او ابواسحاق دمجاهد نه مرسل نقل كړي دي.

**تشريح : په دي باره كي اختلاف دي چي رسول تمام څومره حجونه كړي وو**

(١) ابن الاثير (رحمه الله) فرمائي چي د هجرت نه وړاندي نبي صلي الله عليه وسلم به هر كال حج كولو.

(٢) جابربن عبدالله(رضي الله عنه) فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم صرف دري حجونه كړي دي،دوه د هجرت نه وړاندي او يو د هجرت نه پس په لسمه هجرئ كي حجة الوداع.

(٣) اوابن عباس رضى الله عنهما فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د هجرت نه وړاندي دري حجونه كړيوو.

(۴) ابن الجوزى (رحمه الله) فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ډير حجونه كړي وو.د هغي شمار مونږ ته معلوم نه دي .

---

[1] ـ ابن ماجه في الحج ٨٣ (٣٠٧٦) (تحفة الأشراف: ٢٦٠٦)

دي . آدم (١) د هندوستان نه پيدل څلوېښت حجونه کړی دی،جبرئيل (١) آدم (١) ته اووئيل،ستا نه اوه زره کاله وړاندې به فرښتې د بيت الله طواف ته راتلې.

****************

٨١٦_حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ. حَدَّثَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ. حَدَّثَنَا هَمَّامٌ. حَدَّثَنَا قَتَادَةُ. قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: كَمْ حَجَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ قَالَ: " حَجَّةً وَاحِدَةً وَاعْتَمَرَ أَرْبَعَ عُمَرٍ. عُمْرَةٌ فِي ذِي الْقَعْدَةِ وَعُمْرَةُ الْحُدَيْبِيَةِ وَعُمْرَةٌ مَعَ حَجَّتِهِ وَعُمْرَةُ الْجِعِرَّانَةِ إِذْ قَسَّمَ غَنِيمَةَ حُنَيْنٍ ".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَحَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ هُوَ أَبُو حَبِيبٍ الْبَصْرِيُّ هُوَ جَلِيلٌ ثِقَةٌ. وَثَّقَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ. (١)

**ترجمه** دقتاده بيان دي فرمائي چي دانس بن مالك رضي الله عنه نه مي تپوس اوکړو چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم څومره حجونه کړي وو؟ نو ويې فرمائيل صرف يو حج يې کړي وو او څلور عمري، يوه عمره يې په ذي قعده مياشت کې کړي وه او يوه عمره دحديبيه وه. او يوه عمره يې دحج سره کړي وه، او يوه عمره يې هغه وخت په جعرانه کې کړي وه کله چې هغوی دغزوه حنين دغنيمت دمالونو تقسيم کولو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دحبان بن هلال اسم کنيه ابو حبيب بصري دي هغه يو جليل القدر او ثقه محدث دي يحيیٰ بن سعيد القطان دده توثيق کړي دي.

**دقتاده بن ملحان رضي الله عنه حالات:**

نوم قتاده دپلار نوم ملحان په اخر کې په بصره کې اوسيدو علامه ابن اسير وائي چې ده درسول الله صلي الله عليه وسلم نه صرف دوه احاديث نقل کړي دي

****************

## ٧_ بَاب مَا جَاءَ كَمِ اعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**رسول الله صلي الله عليه وسلم څومره عمري کړي وي**

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَطَّارُ. عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ. عَنْ عِكْرِمَةَ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " اعْتَمَرَ أَرْبَعَ عُمَرٍ: عُمْرَةَ الْحُدَيْبِيَةِ. وَعُمْرَةَ الثَّانِيَةِ مِنْ قَابِلٍ. وَعُمْرَةَ الْقَضَاءِ فِي ذِي الْقَعْدَةِ. وَعُمْرَةَ الثَّالِثَةِ مِنَ الْجِعِرَّانَةِ. وَالرَّابِعَةِ الَّتِي مَعَ حَجَّتِهِ ".

---

[1] _ صحيح البخاری في العمرة ٣ (١٧٧٨). صحيح مسلم في الحج ٣٥ (١٢٥٣). سنن ابي داود في المناسک ٨٠ (١٩٩٣) (تحفة الأشراف: ١٣٩٢). مسند احمد (٣ في ٢٥٦). سنن الدارمي في المناسک ٣ (١٨٢٨)

قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم څلور عمري کړي وي يوه عمره دحديبيه وه او بله عمره په راتلونکي کال يعني په ذي قعده کي دقضاء عمره وه، دريمه عمره دجعرانه وه او څلورمه عمره هغه وه چي دحج سره يي کړي وه.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن غريب دي او په دي باب کي دانس، عبدالله بن عمر، او عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي

***************

وَرَوَى ابْنُ عُيَيْنَةَ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " اعْتَمَرَ أَرْبَعَ عُمَرٍ " وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ: حَدَّثَنَا بِذَلِكَ سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ نَحْوَهُ.([2])

**ترجمه** : دعکرمه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم څلور عمري کړي دي او عکرمه پخپل روايت کي دابن عباس ذکر نه دي کړي

***************

## ٨ـ بَاب مَا جَاءَ مِنْ أَيِّ مَوْضِعٍ أَحْرَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### نبي کريم صلي الله عليه وسلم دکوم ځاي نه احرام تړلي وو

٨١٧ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: " لَمَّا أَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَجَّ أَذَّنَ فِي النَّاسِ فَاجْتَمَعُوا، فَلَمَّا أَتَى

---

[1] ـ ابي داود في المناسک ٨٠ (١٩٩٣)، سنن ابن ماجه في المناسک ٥٠ (٣٠٠٣) (تحفة الأشراف : ٦١٦٨)، مسند احمد (١في ٢٤٦)

[2] ـ ابي داود في المناسک ٨٠ (١٩٩٣)، ابن ماجه في المناسک ٥٠ (٣٠٠٣) (تحفة الأشراف : ٦١٦٨)، مسند احمد (١في ٢٤٦)

الْبَيْدَاءَ أَحْرَمَ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَالْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي هر كله چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دحج اراده اوكړه نو په خلقو كي يي اعلان اوكړو چنانچه خلق راجمع شول او څه وخت چي دځپل ځاي نه روان شول او بيداء مقام ته ورسيدل نو احرام يي اونړلو

امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن عمر، انس، مسور بن مخرمه رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي

* * * * * * * * * * * * * * * *

٨١٨ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: الْبَيْدَاءُ الَّتِي يَكْذِبُونَ فِيهَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، " وَاللَّهِ مَا أَهَلَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا مِنْ عِنْدِ الْمَسْجِدِ مِنْ عِنْدِ الشَّجَرَةِ. قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي دكوم بيداء په باره كي چي خلق په رسول الله صلي الله عليه وسلم پوري دروغ تړي (چي دهغه ځاي نه يي احرام تړلي وو) په الله قسم رسول الله صلي الله عليه وسلم د ذي الحليفه دمسجد سره وني ته نزدي دتلبيه چغه اووهله.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ٩ـ باب مَا جَاءَ مَتَى أَحْرَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**رسول الله صلي الله عليه وسلم كله احرام تړلي وو**

٨١٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَهَلَّ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٢٦١٢)

[2] ـ البخاري في الحج ٢ (١٥١٥) ، و٢٠ (١٥٢١) ، والجهاد ٥٣ (٢٨٦٥) . صحيح مسلم في الحج (١١٨٦) . سنن ابي داود في المناسك ٢١ (١٧٧١) . سنن النسائي في الحج ٥٦ (٢٧٥٨) . (تحفة الأشراف : ٧٠٢٠) . موطا امام مالك في الحج ٩ (٣٠) . مسند احمد (٢ في ١٠، ٦٦، ١٥٤)

غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُ أَحَدًا رَوَاهُ غَيْرَ عَبْدِ السَّلَامِ بْنِ حَرْبٍ، وَهُوَ الَّذِي يَسْتَحِبُّهُ أَهْلُ الْعِلْمِ أَنْ يُحْرِمَ الرَّجُلُ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ.(١)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ نه پس احرام اوتړلو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، او مونږ ته دعبدالسلام بن حرب نه علاوه بل څوك نه دي معلوم چي دا حديث يي نقل كړي وي، او كوم څيز چي اهل علم مستحب كڼړي هغه همدا دي چي احرام به دمونځ نه پس تړلي شي

***************

## ١٠_ باب مَا جَاءَ فِي إِفْرَادِ الْحَجِّ

### دحج افراد بيان

٨٢٠_ حَدَّثَنَا أَبُو مُصْعَبٍ قِرَاءَةً، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَفْرَدَ الْحَجَّ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ. (حديث مرفوع) وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَفْرَدَ الْحَجَّ". وَأَفْرَدَ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ الصَّائِغُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ بِهَذَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وقَالَ الثَّوْرِيُّ: إِنْ أَفْرَدْتَ الْحَجَّ فَحَسَنٌ وَإِنْ قَرَنْتَ فَحَسَنٌ وَإِنْ تَمَتَّعْتَ فَحَسَنٌ. وقَالَ الشَّافِعِيُّ مِثْلَهُ، وَقَالَ: أَحَبُّ إِلَيْنَا الْإِفْرَادُ ثُمَّ التَّمَتُّعُ ثُمَّ الْقِرَانُ.(٢)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم حج افراد اوكړو.

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دجابر او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، او دبعضي اهل علمو هم په همدي باندي عمل دي دابن

1 _ النسائي في الحج ٥٢ (٢٧٥٥) (تحفة الأشراف : ٥٥٠٢)

2 _ مسلم في الحج ١٧ (١٢١١) . سنن ابي داود في المناسك ٢٣ (١٧٧٧) . سنن النسائي في الحج ٤٨ (٢٧١٦) . سنن ابن ماجه في المناسك ٣٧ (٢٩٦٤) . (تحفة الأشراف : ١٧٥١٧) . موطا امام مالك في الحج ١١ (٣٧) . سنن الدارمي في المناسك ١٦ (١٨٥٣)

عمر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم حج افراد كړي وو او ابوبكر او عمر او عثمان رضي الله عنه هم حج افراد اوكړو، ثوري وائي كه څوك حج افراد اوكړي نو هم بهتر دي او كه حج قران اوكړي نو دا هم بهتر دي او كه څوك حج تمتع اوكړي نو دا هم بهتر دي، امام شافعي هم دده هم خيال دي او دده سره په دي كي متفق دي، امام شافعي وائي زما خو په ټولو كي حج افراد زيات خوښ دي او بيا مي تمتع او قران خوښ دي.

****************

## ١١_ باب مَا جَاءَ فِي الْجَمْعِ بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ

### په يو ځاي دحج او دعمري كولو بيان

٨٢١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " لَبَّيْكَ بِعُمْرَةٍ وَحَجَّةٍ ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عُمَرَ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ إِلَى هَذَا، وَاخْتَارُوهُ مِنْ أَهْلِ الكُوفَةِ وَغَيْرِهِمْ. [1]

**ترجمه** دانس رضي لله عنه بيان دي فرمائي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه "لبيك بعمرة وحجة" دفرمائيلو په حال كي اوريدلي دي

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعمر او عمران بن حصين رضي الله عنهما نه هم روايات مروي دي او بعضي اهل علمو هم دي طرف ته ميلان كړي دي او اهل كوفه هم دا قول اختيار كړي دي

****************

## ١٢_ باب مَا جَاءَ فِي التَّمَتُّعِ

### دحج تمتع بيان

---

[1] _ (تحفة الأشراف: ٦٢١) وقد أخرجه صحيح البخاري في المغازي ٦١ (٤٣٥٣)، وصحيح مسلم في الحج ٢٧ (١٢٣٢)

٨٢٢_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُاللهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: تَمَتَّعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ وَأَوَّلُ مَنْ نَهَى عَنْهَا مُعَاوِيَةُ. قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم حج تمتع اوكړو او ابوبكر او عمر او عثمان رضي الله عنهم هم حج تمتع اوكړو او دتولو نه مخكي چاچي دا بند كړي دي معاويه رضي الله عنه نه.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: داهل علمو په دي كي اختلاف دی چي د تمتع قرباني د شكر ادا كولو دپاره ده اوكه دم د جبيري دی؟

داحنافو په نزد دتمتع دنعمت دشكر اداكولو دپاره چي څنګه هديه ميسر وي واجب ده او ادني درجه ددي چيلۍ ده دا تفسير دامام ابوحنيفه او دامام احمد دمذهب موافق دي. څكه چي ددوئ په نزد باندي دا دشكر دم دي نو څكه ددي پخپله خوړل هم جائز دي.

امام شافعي فرمائي چي دا دم جبري دي نو لهذا ددي پخپله خوړل جائز نه دی

ددي دخوړلو دجواز دليل په ډيرو احاديثو كي وارد دي من جمله دهغې نه دادي چي دجابر رضي الله عنه نه مروي دي چي بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دهر اوښ دغوښي نه يوه يوه تيكه اوخوړله او شورواه يي هم وڅكله ، وجه داستدلال دا ده چي رسول كريم صلي الله عليه وسلم قارن وو او كله چي يي دهر اوښ دغوښي نه ديوي يوي تكي دخوړلو حكم اوفرمائيلو نو بيايي ددينه خوراك اوكړو نودقارن دهديي نه خوړل درسول كريم صلي الله عليه وسلم دعمل نه ثابت شول بلكي ددي استحباب ثابت شو اوكه داسي نه وي نودهر اوښ دغوښي نه به يي ديوي يوي تكي دخوړلو حكم نه كولو.

علامه ابن جوزي وئيلي دي چي دجواز دويم دليل دعبدالرحمن بن ابي حاتم روايت دي علي رضي الله عنه فرمائي چي ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم دخوراك دمقدار نه دعلاوه غوښي دصدقه كولو حكم اوكړو دا نور هم زيات صريح دليل دي چي ددي خوړل جائز دي .

اودامام شافعي په نزد باندي چي كومه واجب هديه ده دهغې پخپله خوړل حرام دي اودهغوئ دليل دادي چي دناجيه خزاعي سره د رسول الله صلي الله عليه وسلم اوښان وو هغه رسول كريم صلي الله عليه وسلم ته عرض اوكړو چي اي دالله رسوله كه چري كوم اوښ هلاكيږي نو څه

[1] _ سنن ابي داود في المناسك ٢٤ (١٧٩٥) . وسنن ابن ماجه في الحج ١٢ (٢٩١٧) . و٣٨ (٢٩٦٨) . (تحفة الأشراف : ٥٤٣٥) و مسند احمد (٣ في ٩٩) . وسنن الدارمي في المناسك ٧٨ (١٩٦٣) .

اوکړم رسول کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نحر يي کړه او دده خپي دده په ويني رنګ کړه او دخلقو خوراك ته يي پريږده
ددي حديث روايت امام مالك احمد ترمذي او ابن ماجه کړي دي او ترمذي ونيلي دي چي دا حديث صحيح دي ، دواقدي په روايت کي دومره اضافه ده چي دا يي هم اوفرمائيل چي ته او ستا کوم ملګري دي ددينه نه خوري ، او همدارنګي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم شپاړس اوښان ديوکس سره اوليږل اوهغه يي امير مقرر کړو او ويي فرمائيل چي ددينه به پخپله او ستاکوم ملګري نه خوري ددي حديث روايت مسلم کړي دي او دذويب نه هم ددي مضمون مطابق حديث مروي دي.
بعضي علماء وايي ددي احاديثو دقران او تمتع سره څه تعلق دي څکه چي دا احاديث په قصه دحجة الوداع کي نه دي وارد بلکي په قصه دحديبيه کي وارد دي او رسول الله صلي الله عليه وسلم دهجرت نه پس دحج الوداع نه علاوه بل کوم حج نه دي کړي نو بيا دا هديي کومي چي په دي احاديثو کي مذکور دي دتمتع هديي څرنګه کيدي شي؟ بلکي يقينا دا هديي نفلي دي او مونږ پخپله قائل يو په نفل هديه چرته په لاره کي هلاکيږي او ذبح کړي شي نو ددينه پخپله خوړل جائز نه دي .
**مسئله:** دامام ابوحنيفه او شافعي او احمد رحمهم الله په نزد هديه دتمتع دلسم تاريخ نه مخکي ذبح کول جائز نه دي بلکي پس درمي نه ذبح کول پکار دي.
بعضي اهل علمو ونيلي دي چي مخکي هم جائز دي ليکن زمونږ دپاره دليل دادي چي حفصه رضي الله عنها درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو چي اي دالله رسوله ته زمونږ سره ولي حلال نه شوي رسول کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هديه مي ليږلي ده اوسرمي پټ کړي دي نو اوس به زه دهديي دذبح کولو پوري حلال نه يم
احناف او جمهور علماء وايي په يوم النحراو ايام تشريق کي روژه نيول حرام دي اوهمدا وجه ده چي پدي ورځو کي په روژو نيولو سره واجب نه ادا کيږي ، په صحيحينو کي دعمربن الخطاب رضي الله عنه نه مروي دي چي ددوه ورځو دروژو نه رسول الله صلي الله عليه وسلم منع فرمائيلي ده يوه خو هغه ورځ ده په کومه چي فرض روژي ختم شي يعني دواړه اختر ورځ او دويمه هغه ورځ ده په کومه کي چي دخپلي قرباني غوښي خوري. «بخاري ومسلم»
دابوسعيد خدري او ابو هريره رضي الله عنهما نه هم ددي حديث مطابق احاديث مروي دي چي پدي ورځو کي دروژو نيولو نه رسول الله صلي الله عليه وسلم منع فرمائيلي ده «ابوداود او ابن منذر ددي حديث روايت کړي دي اوحاکم او ابن خزيمه ئي تصحيح کړي ده»
اوهمدارنګي مسلم دکعب بن مالك رضي الله عنه نه مرفوعا روايت نقل کړي دي چي داد خوراك اوڅښاك ورځي دي ، اوپه مسلم کي دنبيشه هزلي نه هم ددي حديث مطابق روايت

مروي دي اوپه نسائي کي په صحيح سند سره دبشربن سحيم نه هم ددي حديث مطابق روايت مروي دي، اواصحاب سنن اوحاکم او ابن حبان په صحيح سند سره دعقبه بن عامر رضي الله عنه روايت بيان کړي دي ، اوابن عبد البر دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي ايام تشريق دخوراك څښاك اود مونځ ورځي دي ، پدي کي دي څوك روژي نه نيسي

امام مالك اوشافعي او احمد رحمهم الله فرمائي که چري متمتع په هديه قادر نه وي اود يوم نحر نه لړ مخکي ئي روژي هم ونه نيولي نودده دپاره په ايام تشريق کي روژي نيول جائز دي اوخاص په يوم نحر کي اجماعا جائز ندي، ابن عمر اوعائشه رضي الله عنهم فرمائي چي په ايام تشريق کي دي روژي ونه نيولي شي ليکن که چري چا هديه ونه موندله اوهغه ئي نيسي نو اجازت ورته شته (بخاري)

اوبخاري دابن عمر رضي الله عنهما نه بل روايت هم نقل کړي دي چي ديوم عرفي پوري روژي نيول دهغه کس دپاره دي څوك چي تمتع وکړي اوهديه ورته ملاو نشي او روژي ديوم عرفي پوري ونه نيسي نوبيائي په ايام منى کي نيول پکار دي

مونږ وايو زمونږ مقابلينو د ضعيف رواياتو نه استدلال کړي دى او استدلال يي هم اجتهادي کوم مرفوع روايت ورسره نشته

***************

٨٢٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ، أَنَّهُ سَمِعَ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ، وَالضَّحَّاكَ بْنَ قَيْسٍ وَهُمَا "يَذْكُرَانِ التَّمَتُّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ، فَقَالَ الضَّحَّاكُ بْنُ قَيْسٍ: لَا يَصْنَعُ ذَلِكَ إِلَّا مَنْ جَهِلَ أَمْرَ اللَّهِ، فَقَالَ سَعْدٌ: بِئْسَ مَا قُلْتَ يَا ابْنَ أَخِي، فَقَالَ الضَّحَّاكُ بْنُ قَيْسٍ: فَإِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَدْ نَهَى عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ سَعْدٌ: قَدْ صَنَعَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَنَعْنَاهَا مَعَهُ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. (۱)

**ترجمه** دمحمد بن عبدالله بن حارث بن نوفل نه مروي دي چي هغه دسعد بن ابي وقاص او ضحاك بن قيس رضي الله عنهما نه اوريدلي دي چي دواړو دحج سره دعمري يوځاي کولو ذکر کولو ضحاك بن قيس اوونيل عمر بن الخطاب رضي الله عنه ددينه منع فرمائيلي ده سعد اوونيل تمتع خو رسول الله صلي الله عليه وسلم کړي دي او ورسره مونږ هم کړي دي.

[1] ـ النسائي في الحج ٥٠ (٢٧٣٥) . (تحفة الأشراف : ٣٩٢٨) . موطا امام مالک في الحج ١٩ (٦٠) . سنن الدارمي في الحج ١٨

امام ترمذي وائي دا حديث صحيح دي

***************

٨٢٤_ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنِي يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الشَّامِ وَهُوَ يَسْأَلُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ، عَنِ التَّمَتُّعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ، فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ: هِيَ حَلَالٌ، فَقَالَ الشَّامِيُّ: إِنَّ أَبَاكَ قَدْ نَهَى عَنْهَا، فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ: أَرَأَيْتَ إِنْ كَانَ أَبِي نَهَى عَنْهَا وَصَنَعَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَأَمْرَ أَبِي نَتَّبِعُ أَمْ أَمْرَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ فَقَالَ: الرَّجُلُ بَلْ أَمْرَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: لَقَدْ صَنَعَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** : ابن شهاب زهري وائي سالم بن عبدالله اوونيل چي ما په شام کي ديو کس نه اوريدلي وو چي دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه يي دتمتع په باره کي تپوس اوکړو نو عبدالله بن عمر اوونيل دا جائز دي نو شام والا کس اوونيل ستا پلار خو دا بنده کړي ده عبدالله بن عمر اوونيل لږ خو راته اوويه که زما پلار يو څيز منع کړي او رسول الله صلي الله عليه وسلم کړي وي نو زما دپلار دحکم پيروي به ضروري وي او که درسول الله دحکم؟ نو هغه اوونيل درسول الله دحکم پيروي ضروري ده ابن عمر اوونيل رسول الله صلي الله عليه وسلم داسي کړي دي

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن دي او په دي باب کي علي، عثمان، جابر، سعد، اسماء بنت ابي بکر او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي، او په صحابه کرامو او ددوئ نه پس په اهل علمو کي يو جماعت دا قول اختيار کړي دي چي په حج کي عمري شاملولو سره تمتع کول درست دي، او تمتع ديته وائي چي يو کس دحج په مياشتو کي دعمري په ذريعه داخل شي او عمري کولو نه پس حصار شي تردي چي حج هم اوکړي نو داسي کس متمتع دي او چي کومه قرباني ورته ملاويږي دهغي کول وربانديکي لازم دي او که قرباني ورته نه ملاويږي نو په حج کي به دري روژي نيسي او چي کور ته واپس راشي نو اوه روژي به نوري نيسي ، دمتمتع دپاره مستحب دي چي کله دي په حج کي دري روژي نيسي نو دحج په ابتدائي لسو ورځو دذي الحجي کي دي روژي اونيسي او دده اخري ورځ به دعرفي ورځ وي په صحابه کرامو کي دبعضي اهل علمو چي ابن عمر پکي هم شامل دي دا قول دي که چري دي په لسو ورځو کي روژي اونه نيسي نو په ايام تشريق کي دي بيا اونيسي، همدا دامام مالك،

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٨٦٢)

شافعي، احمد، او اسحاق رحمهم الله قول دي، بعضي علماء وائي په ايام تشريق كي به روژي نه نيسي او دا قول داهل كوفه دي، امام ترمذي وائي محدثين عمري لره په حج كي شاملول او تمتع كول خوښوي او همدا د امام شافعي او احمد او اسحاق قول هم دي.

**دسالم بن عبدالله بن عمر حالات:**

دا دعبدالله بن عمر خوي دی په دي دټولو اتفاق دی چي دی دعمر رضي الله عنه په ټول اولاد كي دهغه سره زيات مشابه وو او دعبدالله په اولاد كي هم دهغه سره زيات مشابه دي (ابن سعد).

علامه ذهبي وائي سالم فقيه او حجت وو او دمخصوص علماؤ دجملي نه وو دهغه ذات علم او عمل دواړو لره جمع كونكى وو امام نووي ليكلي دي دسالم په امامت او زهد او تقوي باندي د تمام امت اتفاق دی.

په علم حديث كي ډير مشهور وو دعلم حديث علم يي دابوهريره، ابو ايوب انصاري او عائشه رضي الله عنها نه حاصل كړی وو او په همدي وجه ابن سعد ليكلي دي چي سالم دكثيرالحديث او عالي مرتبي خلقو دجملي نه وو سالم دمديني په فقهاء سبع كي وو اعلام الموقعين.

امام مالك دده په باره كي ليكلي دي چي په سلف صالحينو كي په زهد او تقوي كي دده سره مشابه هيڅوك نه وو (تذكرة الحفاظ).

يو څو صفات په ده كي زيات سرګند وو اول ډير احتياط كول. دويم دبادشاهانو چاپلوسي نه كول، او دمسلمان دوينو عزت كول.

وفات: دهجرت په ۱۰۷ كال په مدينه كي وفات شو هشام بن عبدالملك وربانديجنازه اوكړه (تهذيب التهذيب).

****************

## ۱۳_ باب مَا جَاءَ فِي التَّلْبِيَةِ

**دتلبيه بيان**

۸۲۵_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ تَلْبِيَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ: "لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لَا شَرِيكَ لَكَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَجَابِرٍ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ،

وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَإِنْ زَادَ فِي التَّلْبِيَةِ شَيْئًا مِنْ تَعْظِيمِ اللَّهِ فَلَا بَأْسَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ، وَأَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يَقْتَصِرَ عَلَى تَلْبِيَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَإِنَّمَا قُلْنَا: لَا بَأْسَ بِزِيَادَةِ تَعْظِيمِ اللَّهِ فِيهَا، لِمَا جَاءَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَهُوَ حَفِظَ التَّلْبِيَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ زَادَ ابْنُ عُمَرَ فِي تَلْبِيَتِهِ مِنْ قِبَلِهِ لَبَّيْكَ وَالرَّغْبَاءُ إِلَيْكَ وَالْعَمَلُ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم تلبيه دا وه "لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ. لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ. إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ. لَا شَرِيكَ لَكَ" يعني حاضر يم اي الله زه حاضريم اي الله زه حاضر يم. حاضر يم ستا هيڅ قسم شريك نشته زه حاضر يم او ټول تعريفونه او نعمتونه صرف ستا دي او لويي هم تا سره ښايي ستا هيڅوك شريك نشته.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي د ابن مسعود، جابر، عائشه، ابن عباس، او ابو هريره رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي، په صحابه كرامو كي دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري ، شافعي، احمد، او اسحاق رحمهم الله قول هم دي، امام شافعي وائي كه چري څوك دالله دتعظيم دڅه كلمتو اضافه اوكړي نو څه باك نشته انشاء الله ليكن زما په نزد بهتره خبره داده چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په تلبيه باندي اكتفاء اوكړي شي امام شافعي وائي مونږ چي دكلماتو داضافي كومه خبره كړي ده چي په دي كي څه حرج نشته ددي دليل دابن عمر رضي الله عنهما روايت دي چي هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تلبيه ياده كړه او بيا يي په دي كي دخپل طرف نه ددي كلماتو "لبيك والرغباء اليك والعمل" اضافه اوكړه يعني ستا طرف ته رغبت دي او عمل هم خاص ستادپاره دي.

## دتلبيه په الفاظو كي د كمي او زيادت بيان

(۱) د احنافو فقهاؤ په نزد د تلبيه په منقول الفاظو كي به كمي نشي كولی څكه چی دا الفاظ د ټولو راويانو په اتفاق سره نقل شوی دی نوځكه په دې كي كمي كول مناسب نه دی، خو كه څه كلمات ئې زياتی كړل نو روا دی.

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۷۵۹۲) وأخرجه صحيح البخارى في الحج ۲٦ (۱۵۴۹) . واللباس ٦٩ (۵۹۵۱) . صحيح مسلم في الحج ۳ (۱۱۸۴) . سنن ابي داود في الحج ۲۷ (۱۸۱۲) . سنن النسائي في الحج ۵۴ (۲۷۴۸) . سنن ابن ماجه في المناسك ۱ (۲۹۸) . موطا امام مالک في الحج ۹ (۲۸) . مسند احمد (۲ في ۳، ۲۸، ۳۴، ۴۱، ۴۳، ۴۷، ۴۸، ۵۳، ۷٦، ۷۷، ۷۹، ۱۳) . سنن الدارمي في المناسک ۱۳ (۱۸۴۹) .

(۲) ليکن په دې کي د امام شافعی (رحمه الله) اختلاف دي په هغه روايت کي کوم چی ربيع (رحمه الله) د هغوی نه نقل کړې دې چی د تلبيه په الفاظو کي زيادت کول روا نه دي دليل دادي چي امام شافعی (رحمه الله) تلبيه په اذان او تشهد باندې قياس کوی. يعنی لکه څنګه چی د اذان اوتشهد په کلماتو کي کمې زياتې اوبدلون روا نه دي نودغه شان د تلبيه په الفاظو کي هم کمې زياتې روا نه دي اوعلت مشترکه په دې دواړوکي دادی چی لکه څنګه اذان او تشهد په مخصوص کلماتو کي مرتب دي دغه شان د تلبيه کلمات په خاص ترتيب سره مرتب دي.

زمونږ دليل دادی چی جليل القدر صحابه کرامو (رضي الله عنهم) لکه عبدالله بن مسعود. عبدالله بن عمراوابوهريره(رضي الله عنهم) د تلبيه په الفاظو باندې زيادت کړې دي دابن عمر رضی الله عنهما په حديث کي ددې الفاظو زيادت منقول دي:

"لبيك وسعديك والخير بيديك والرغباء إليك"

دابن مسعود(رضي الله عنه) په حديث کي دا الفاظ زياتی دی"لبيك عدد التراب" او د ابوهريره (رضي الله عنه) په حديث کي د "إله الحق لبيك" الفاظ راغلی دی. بهرحال د تلبيه په ذکرشوو الفاظو باندې زيادت منقول دي دويم دليل دادې چی د تلبيه مقصود د الله تعالی ثناء اودخپلی بندګۍ اظهار دي نوپه کلماتو کي زيادت ددې مقصود نه مانع نه دي بلکي په دې مقصد کي يوقسم زيادت دې.

*****************

۸۲٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. أَنَّهُ أَهَلَّ فَانْطَلَقَ يُهِلُّ. فَيَقُولُ: " لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ. إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ " قَالَ: وَكَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ. يَقُولُ: هَذِهِ تَلْبِيَةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَكَانَ يَزِيدُ مِنْ عِنْدِهِ فِي أَثَرِ تَلْبِيَةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ. وَالْخَيْرُ فِي يَدَيْكَ. لَبَّيْكَ وَالرَّغْبَاءُ إِلَيْكَ. وَالْعَمَلُ " قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دنافع نه مروي دي عبدالله بن عمر رضي الله عنهما تلبيه په تيز اواز اوونيله او دتلبيي ونيلو سره روان شو او داسي يي ونيل لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ. إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ حاضر يم ستا په خدمت کي ، او حاضر يم ستا په خدمت کي او

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۸۲۱۴)

خوشحاله يم ستا په تابعدارئ او هر قسم کاميابي ستا په دواړو لاسونو کي ده او ستا طرف ته رغبت دي او عمل هم خاص ستا دپاره دي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

## ١٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ التَّلْبِيَةِ وَالنَّحْرِ

### دتلبيه اودقربانۍ دفضيلت بيان

٨٢٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ. ح وحَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَرْبُوعٍ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ الْحَجِّ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "الْعَجُّ وَالثَّجُّ".[1]

**ترجمه** دابوبکر صديق رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه سوال اوکړي شو چي په حج کي کوم يو عمل ډير افضل دي؟ ورته يي اوفرمائيل په کوم کي چي په کثرت سره تلبيه وئيلي شوي وي او ښي وينې بهيولي شوي وي

**تشريح:** **د مسنون تلبيه الفاظ دادي:**

"لبيك اللهم لبيك لبيك لا شريك لك لبيك إن الحمد والنعمة لك والملك لا شريك لك"

په "إن الحمد" کي په الف باندې کسره ده فتحه نه ده ځکه چې د کسره په صورت کي به دا جمله مستقله شی،د ما قبل سره به ئې څه تعلق نه وی،اود فتحه په صورت کي به دا د اولنۍ کلمې صفت شی.

صاحب دهدايه وائی چې تلبيه د ابراهيم د نداء د قبوليت جواب دي مشهوره واقعه ده چې کله ابراهيم عليه السلام د خانه کعبه د جوړولو نه فارغ شو نوالله تعالی ورته حکم اوکړو چې دحج اعلان اوکړه، ابراهيم عليه السلام عرض اوکړلو.اې زما معبوده زما آواز به څنګه (ټولوخلقوته) اورسی،الله تعالی ورته اوفرمائيل،ته آواز اوکړه،آواز رسول زما کار دي ابراهيم عليه السلام عرض اوکړلو،اې ربه زه څه آواز اوکړم،الله تعالی اوفرمائيل،دا اووايه "ياأيهاالناس کتب عليکم الحج فحجوا البيت العتيق"

اې خلقو په تاسو باندې حج د بيت الله فرض شو،حج اوکړئ د کور پخوانی. د ابراهيم عليه السلام د خولی نه دا الفاظ وتل وو چې دا آواز زمکې او آسمان په مينځ کي چې څومره

[1] ــ سنن ابن ماجه في الحج ١٦ (٢٩٢٤) . (تحفة الأشراف : ٦١٠٨) . سنن الدارمي في المناسک ٨ (١٨٣٨)

انسانان وو.تيولو ته اورسيدلو.تردې چې دپلارانو په شاګانو او د میاندو په رحمونو کې چې څوك وو. هغوی ته دا آواز اورسيدلو.چا يوځل جواب ورکړلو.چا دوه ځله اوچا ددې نه زيات نو چا چې څو ځله جواب ورکړې وی،هغه ته به انشاءالله دهغه هومره حج کولو سعادت ملاويږی.

د قرآن پاك په دې آيت کې هم دا واقعه ذکر ده:

وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ أَن لَا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا وَطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْقَائِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ (٢٦) وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ۔ (٢٧)

اوکله چې مونږ برابرکړلو.ابراهيم ته ځائې د ددې کور چې مه شريکوه ما سره هيڅ څيز اوپاك کړه کور زما دپاره د طواف کونکو،اوقيام کونکواورکوع او سجده کونکو.اواعلان اوکړه په خلقو کې د حج چې راځی ستا طرف ته پيدل اوپه هرکمزوری مانده اوښه د لرې لارو نه.

* * * * * * * * * * * * * * *

٨٢٨_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُلَبِّي إِلَّا لَبَّى مَنْ عَنْ يَمِينِهِ. أَوْ عَنْ شِمَالِهِ مِنْ حَجَرٍ أَوْ شَجَرٍ أَوْ مَدَرٍ، حَتَّى تَنْقَطِعَ الْأَرْضُ مِنْ هَاهُنَا وَهَاهُنَا". حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ أَبُو عَمْرٍو الْبَصْرِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. نَحْوَ حَدِيثِ إِسْمَاعِيل بْنِ عَيَّاشٍ. قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي بَكْرٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَرْبُوعٍ، وَقَدْ رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَرْبُوعٍ، عَنْ أَبِيهِ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَرَوَى أَبُو نُعَيْمٍ الطَّحَّانُ ضِرَارُ بْنُ صُرَدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ ابْنِ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَرْبُوعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَخْطَأَ فِيهِ ضِرَارٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْت أَحْمَدَ بْنَ الْحَسَنِ يَقُولُ: قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: مَنْ قَالَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَرْبُوعٍ، عَنْ أَبِيهِ، فَقَدْ أَخْطَأَ. قَالَ: وَسَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: وَذَكَرْتُ لَهُ حَدِيثَ ضِرَارِ بْنِ صُرَدٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي فُدَيْكٍ، فَقَالَ: هُوَ خَطَأٌ، فَقُلْتُ: قَدْ رَوَاهُ غَيْرُهُ

عَنِ ابْنِ أَبِي فُدَيْكٍ أَيْضًا مِثْلَ رِوَايَتِهِ. فَقَالَ: لَا شَيْءَ إِنَّمَا رَوَوْهُ عَنِ ابْنِ أَبِي فُدَيْكٍ. وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَرَأَيْتُهُ يُضَعِّفُ ضِرَارَ بْنَ صُرَدٍ. وَالْعَجُّ: هُوَ رَفْعُ الصَّوْتِ بِالتَّلْبِيَةِ. وَالثَّجُّ: هُوَ نَحْرُ الْبُدْنِ. (1)

**ترجمه** دسهل بن سعد رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر يو مسلمان چي تلبيه وائي نو دده ښي او ګس طرف ته موجود کاڼړي او ونې او لوټي هم تلبيه وائي تردي پوري چي دزمکي د دواړو سرونو داخره پوري چي څومره اشياء دي ټول تلبيه وائي.

امام ترمذي وائي دابوبکر حديث غريب دي او مونږ ته صرف د ابن ابي فديك په سند باندي معلوم دي، او هغه دضحاك بن عثمان نه نقل کړي دي. محمد بن منکدر دعبدالرحمن بن يربوع نه دا اوريدلي دي البته محمد بن منکدر په سند د سعيد بن عبدالرحمن بن يربوع عن ابيه عبدالرحمن بن يربوع نقل کړي دي او ددي حديث نه علاوه نور څيزونه نقل کړي دي. او ابو نعيم طحان ضرار بن صرد دا حديث په سند د ابن ابي فديك عن الضحاك بن عثمان عن محمد بن المنکدر عن سعيد بن عبدالرحمن بن يربوع عن ابيه عن ابي بکر عن النبي صلي الله عليه وسلم نقل کړي دي او په دي کي دضرار نه غلطي شوي ده. احمد بن حنبل وائي چاچي په دي حديث کي داسي اووئيل عن محمد بن المنکدر عن ابن عبدالرحمن بن يربوع عن ابيه نو دده غلطي اوکړله. ما محمد بن اسماعيل بخاري ته دضرار بن صرد حديث بيان کړو کوم چي هغه دابن ابي فديك نه نقل کړي وو نو هغه اووئيل دا غلط دي ما ورته اووئيل دا خو نورو خلقو هم دهغوئ پشان دابن فديك نه نقل کړي دي . بخاري اووئيل دا هيڅ نه دي خلقو د ابن ابي فديك نه نقل کړي دي او په دي کي يي دسعيد بن عبدالرحمن واسطه نه ده ذکر کړي نو ما امام بخاري اوليدو چي دضرار بن صرد تضعيف يي کولو. په دي باب کي دابن عمر. او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي "عج" په تلبيه کي اواز تيزولو ته وئيلي شي او "ثج" د اوښانو قربانئ ته وئيلي شي.

## دسهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه حالات

نوم سهل کنيه ابو العباس ، ابو مالك، ابو يحيي. دهجرت نبوي نه پنځه کاله مخکي پيدا شوي وه پلار ورنه حزن نوم ايخودلی وو ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم ورباندي نوم بدل کړو او سهل نوم يي ورباندي کيخودو، دده پلارغزوه بدر ته دتلو اراده کړي وه ليکن دتلو نه مخکي وفات شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دتمامو مجاهدينو پشان دده دپاره هم

1 ـ سنن ابن ماجه في الحج ١٦ (٢٩٢٤) . (تحفة الأشراف :٦١٠٨) . سنن الدارمي في المناسك ٨ (١٨٢٨)

حصه مقرره کړه سهل داکابر صحابه کرامو دوفات کيدو نه پس دخلقو مرجع اوګرځيدو دلري لري علاقو خلق به دده د درس حلقي ته راتلل سهل يو خل دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دپاره دمديني دمشهور کوهي بير بضاعه نه دڅکلو دپاره اوبه هم راويستلي وي (مسند احمد).

وفات دهجرت په ۹۱کي دشپږ نوي کالو په عمر کي وفات شو او دده دمروياتو شمير ۱۸۸دی چي ۲۸متفق عليه دي

*****************

## ۱۵ـ باب مَا جَاءَ فِي رَفْعِ الصَّوْتِ بِالتَّلْبِيَةِ

### په تلبيه داوازاوچتولو بيان

ښخي به تلبيه په ټيټ اواز وائي او دټيټ وئيلو نه مراد په زړه کي وئيل نه دي بلکي حروف به اداء کوي تردي چي ددي لوستل ددي غوږونه واوري او په تيز اواز دتلبيه وئيلو مطلب چغي وهل نه دي

۸۲۹ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ وَهُوَ ابْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ خَلَّادِ بْنِ السَّائِبِ بْنِ خَلَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَمَرَنِي أَنْ آمُرَ أَصْحَابِي أَنْ يَرْفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ بِالإِهْلاَلِ وَالتَّلْبِيَةِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ خَلَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ خَلَّادِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَلاَ يَصِحُّ. وَالصَّحِيحُ هُوَ عَنْ خَلَّادِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ: وَهُوَ خَلَّادُ بْنُ السَّائِبِ بْنِ خَلَّادِ بْنِ سُوَيْدٍ الأَنْصَارِيُّ.[1]

**ترجمه**. دسائب بن خلاد رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ماته جبرائيل راغي اوماته يي حکم اوکړو چي زه مسلمانانو ته حکم اوکړم چي تلبيه په تيز اواز اووائي او خپل اوازونه ورباندي اوچت کړي

[1] ـ ابي داود في الحج ۲۷ (۱۸۱۴) . سنن النسائي في الحج ۵۵ (۲۷۵۴) . سنن ابن ماجه في المناسک ۱۲ (۲۹۲۲) . (تحفة الأشراف : ۳۷۸۸) . موطا امام مالک في الحج ۱۰ (۳۴) . مسند احمد (۴ في ۵۵ . ۵۲) . سنن الدارمی في الحج ۱۴ (۱۸۵۰)

امام ترمذي وائي دخلاد بن سائب حديث کوم چي هغه دخپل پلار نه نقل کوي حسن صحيح دي. او بعضي راويانو دا حديث په سند دخلاد بن سائب عن زيد بن خالد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي ليکن دا سند صحيح نه دي صحيح هغه روايت دي کوم چي خلاد بن سائب دخپل پلار نه نقل کړي دي او دي خلاد بن سائب بن خلاد بن سويد انصاري دي. او په دي باب کي زيد بن خالد ، ابوهريره، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي.

**تشريح** د احنافو فقهاؤ په نزدپه تلبيه کي آواز اوچتول مسنون دی.اګرچی په دعا اوذکر کي افضله اخفاء ده.وجه دا ده چی د قرآن پاك د آيت: ادعوا ربکم تضرعاً وخفية. تقاضا هم دا ده چی د دعا اوذکرونو په موقع باندې اخفاء اوکړې شی،خوچی په کوم خائې کي اعلان مقصود وی نوهلته به اخفاء مستحب نه وی.بلکي آواز اوچتول به مستحب وی لکه اذان وخطبه شوه،پاتې شوه تلبيه نودا هم د دين داعلان کولو دپاره مشروع شوې ده نوځکه په تلبيه باندې آواز اوچتول هم مستحب اومسنون دی.

(۲) دويم دليل دادی چی رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی:

"أفضل الحج العج والثج" عج وائی په اوچت آواز سره تلبيه وئيل او ثج وائی وينې تويولو ته.يعنی بهترين حج هغه دې چی هغې کي تلبيه په اوچت آواز وی،اود هدی وغيره قربانی په کي اوکړې شی،اووينه توئې کړې شی.

****************

## ١٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي الِاغْتِسَالِ عِنْدَ الإِحْرَامِ

### داحرام تړلووخت کي دغسل کولوبيان

٨٣٠_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَعْقُوبَ الْمَدَنِيُّ، عَنِ ابْنِ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " تَجَرَّدَ لِإِهْلَالِهِ وَاغْتَسَلَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَقَدِ اسْتَحَبَّ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ الِاغْتِسَالَ عِنْدَ الإِحْرَامِ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ. [1]

**ترجمه** : دزيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حال کي اوليدو چي داحرام تړلو دپاره يي جامي اوويستلي او غسل يي اوکړو.

[1] ـ تفرد به المؤلف وانظر: سنن الدارمي في المناسك ٦ (١٨٣٥) (تحفة الأشراف: ٣٧١٠)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، او په اهل علمو کي يو جماعت داحرام تړلو په وخت کي دغسل کولو په مستحب کيدو قول کړي دي او همدا دامام شافعي قول هم دي

**تشريح** : مسئله داده چې په محرم باندې دجنابت غسل واجبيږي. اود ده مکې معظمې ته د داخليدو دپاره غسل کول مستحب دي ځکه چې رسول الله صلي الله عليه وسلم د احرام دپاره غسل کړې وو ،اود محرم دپاره حمام ته د ګرمو اوبود استعمال دپاره داخليدل روا دی ځکه چې عمر(رضي الله عنه) د دې باوجود چې محرم وو ،غسل کړې وو (اشرف الهدايه . عنايه شرح هدايه)

هر کله چې امام ترمذي د حج د اقسام ثلاثه د اجمالي بيان نه فارغ شو نو د تفصيل نه مخکي يي د حج د لوازمو بيان شروع کړو چې احرام تړل دي او د احرام نه مخکي غسل کول دي، لهذا مونږ هم په لاندينوکرښو کي پدي سلسله بعضي نور لوازم د حج ذکروو کوم چې د شرائطو د قبيلي نه دي.

د حج او عمري د لوازمو متعلق په اهل علمو کي په يو څو خبرو کي اختلاف دی

(۱) اول : د لاري امن

(۲) دويم: جسماني صحت

(۳) دريم: د سترګو نظر

(۴) په ښځي حج هله واجب کيږي چې مکي ته دري منزله فاصله او شرعي محرم ورسره وي

(۵)د استطاعت مسئله

**د لاري امن :**

(۱) د لاري امن متعلق د جمهورو اهل علمو قول دي چي دحج دپاره دلاري امن لازمي دي اوپه لاره کي خوراکي شيان ميسر او دستياب کيدل هم لازمي دي په لاره کي دخطري په صورت کي حج فرض نه دي که لاره چرته سمندري وي اوپه سلامتئ سره سمندري سفر طئ کيدي شي نوحج کول به واجب وي صرف دسمندرپه مينځ کي کيدل د وجوب حج دپاره مانع نه دي.

(۲) ليکن دامام شافعي يو قول ددي په خلاف دي .

**جسماني صحت:**

(۱): دامام ابو حنيفه اومالك رحمهم الله په نزد باندي جسماني صحت هم شرط دي په معذورو او ضعيفو خلقو باندي حج واجب نه دي برابره خبره ده چي هغوئ مال خرچ کړي او بل چاله خپل قائم مقام کړي نو ليږلي يي شي ځکه چي دوئ پخپله اهل استطاعت نه دي او حج يو بدني عبادت دي اومقصود په بدني عبادتونوسره خپل نفس ستړي کول دي اوپه خپل ځاي باندي دنائب په ليږلوسره ددي عبادت اصل مقصد نه حاصليږي.

په فتاوي قاضي خان كي دامام ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب دا منقول دي كه چري سمندر حائل وي نو لاره د غير مامون په حكم كي ده يعني حج به فرض نه وي . جيحون . سيحون . دجله، فرات سيندونه دي سمندرونه نه دي

(۲) دامام شافعي او احمد رحمهم الله په نزد باندي بدني صحت شرط نه دي نوخكه ددوي په نزد باندي معذور او گوډ او كمزوري اهل استطاعت دي يعني ده ته مالي استطاعت حاصل دي

**دستركو نظر:**

(۱) امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد باندي دوجوب حج دپاره دستر گو نظرشرط دي په نابينا باندي حج واجب نه دي برابره خبره ده چي رهبر ورسره موجود وي اوكه نه خكه چي دي پخپله اهل استطاعت نه دي اودبل چا په مدد سره استطاعت لره اعتبار نه وي

دامام ابو يوسف او امام محمد او جمهورو په نزد باندي په نابينا باندي حج فرض دي په دي شرط چي رهبرورسره موجود وي ليكن په وجوب دجمعي كي اختلاف دي

**په ښځي حج هله واجب كيږي چي مكي ته دري منزله فاصله اوشرعي محرم ورسره وي:**

(۱) دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد په ښخه باندي حج هله واجب كيږي كله چي ورسره خپل خاوند يا بل محرم وي او مكي ته په رسيدو كي دري منزله فاصله وي

(۲) دامام احمد په نزد باندي دمسافي كموالي اوزياتوالي لره اعتبارنشته په هر صورت كي بغير دمحرم نه په ښخه باندي حج نه فرض كيږي نو خكه كه چري محرم موجودنه وي يا ورسره محرم نه خي يا ورنه دومره اجرت غواړي چي ښخه دهغي په ادا كولو قادره نه وي نوحج وربانديٍ شرعا واجب نه دي خكه چي دښځي دپاره بغير دخاوند او دمحرم نه په شرعي اعتبارسره سفر كول ممنوع دي او كوم خيز چي شريعت منع كړي دي هغه دغير موجود په حكم كي دي گويا كي بغير دمحرم نه ښخه صاحب استطاعت نه ده

دامام صاحب دقول دليل حديث دابن عمر رضي الله عنهما دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي ښخه دي بغير دمحرم نه دري منزله سفر نه كوي (بخاري ومسلم) دمسلم په روايت كي راغلي دي چي كومه ښخه په الله تعالي اوپه ورخ داخرت ايمان لري هغه دي بغير دمحرم نه ددري شپو په مقدار سفر نه كوي په بل روايت كي ددري شپو نه زيات مقدار ذكر شوي دي . ددري شپو والاروايت دابوهريره رضي الله عنه نه هم مروي دي كوم چي مسلم اوطحاوي نقل كړي دي . ددري شپو نه زائد لفظ په طحاوي كي دابو هريره رضي الله عنه په روايت سره مروي دي.

دعمرو بن شعيب دنيکه په روايت سره طحاوي ددري ورځو لفظ نقل کړي دي . دابوسعيد خدري رضي الله عنه په روايت کي ددري ورځو يا ددينه زياته فاصله مسلم اوطحاوي نقل کړي ده . دمسلم په روايت کي ددري شپو نه زائد الفاظ مروي دي

امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه فرمائيلي دي ددري شپو يا ددري شپو نه اخف في شرط محض اتفاقي دي ،تعين دمودي مقصود ندي،

دامام احمد ددي قول دليل چي ښځه بغير دمحرم نه ددري ورځو نه کم سفر هم نشي کولي حديث دابوهريره رضي الله عنه دي کوم چي په صحيحينو کي مذکور دي اوپدي کي ديو شوا روز دمسافي صراحت دي ، دمسلم په يو روايت کي ديوي ورځي مسافه ذکر ده ، اوپه بل روايت کي ديوي شپي دمزل په مقدار مسافه ذکر شوي ده اود ابوسعيد خدري رضي الله عنه په روايت کي دمسلم دذکر پشان ددوه ورځو مسافه مذکور ده اودطحاوي دروايت پشان ددوه ورځو فاصله ذکر ده

ابوداود اوطحاوي دابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل کړي دي چي ښځه دي دخاوند اودمحرم دملګرتيا نه بغير يومنزل سفر نه کوي . دا حديث ابن حبان پخپل صحيح کي نقل کړي دي اوحاکم دشيخينو دشرط مطابق ګرځولي دي . اوطبراني په المعجم کي ددري ورځو صراحت نقل کړي دي . ددي مختلفو رواياتونه معلوميږي چي ديوي ورځي يا دوه ورځو يا دري ورځو شرط صرف تمثيلي دي (عدد معين مراد ندي) قليل ترين تعداد مراد دي . اويوه ورځ خو کم ترين ابتدائي عدد وي ، اوبريد اکثر يومنزل وي ، ددوو نه کثرت شروع کيږي . او دري دجمع اولنۍ مرتبه وي ، په بعضي احاديثو کي بغير دشرط نه ممانعت وارد دي . دابن عباس رضي الله عنهما په روايت کي مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي بغير دمحرم نه دي ښځه سفر نه کوي اودښځي خواته دي څوك اجنبي سړي نه ور داخليږي ترڅوچي ددي سره خپل محرم نه وي ، يوکس عرض وکړو چي اي دالله رسوله زه فلاني جهاد ته تلل غواړم اوزما ښځه حج کول غواړي . رسول کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ددي سره لاړشه (بخاري ومسلم) ددي سلسلي احاديث دابوسعيد خدري او ابو هريره رضي الله عنهما نه هم مروي دي

امام شافعي وائي چي دمعتمدو ښځو سره يوه ښځه حج ته تلي شي . اودامام شافعي په يوبل قول کي ذکرشوي دي چي يوه ښځه بغير دمعتمدو ښځو نه هم حج ته تلي شي .

امام مالك فرمائيلي دي که چري په لاره کي خطره نه وي نودښځو جماعت بغيردسړي نه حج ته تلي شي ددي دواړو امامانو دقول په خلاف زمونږ دپاره دليل هغه حديث دي کوم چي مونږ ذکرکړي دي.

**داستطاعت مسئله**

(۱) د جمور فقهاء او محدثينو په نزد په حج کي استطاعت شرط دي. د استطاعت نه مراد دسفر هغه استطاعت دي دکوم په موجودګئ کي چي حج ته په تلوکي څه خرابي پيدانه شي هم په دي وجه باندي جمهورو په نزد سفر دنورو لوازمو دفراهمئ نه علاوه دلاري خرچي او سورلئ میسر کيدل داستطاعت دپاره ضروري دي اوداهم ضروري ده چي مقروض به نه وي اونـخي اوبچوته يي دواپس راتلو پوري خرچي ورکړي وي خکه چي کوم مالدار داصلي ضروریاتو په فراهم کولو کي مشغول وي هغه دغريب پشان دي نوخکه دده په مال کي زکوة واجب نه دي دچاسره چي دلاري خرچي يا سورلئ نه وي هغه عموما دسفر دپاره استطاعت نه لري او په شریعت کي هرقسم تنګي دفع کړي شوي ده (يعني شريعت هيڅ قسم تنګي نه ده کړي)

(۲) د داود ظاهري په نزد باندي دوجوب حج دپاره نه دلاري خرچه ضروري ده اونه سورلئ

(۳) امام مالك فرمائيلي دي که چري څوك دخلقو نه دغوښتلوسره عادت وي يا په لاره کي کټه کولي شي نودهغه دپاره دلاري دخرچي ورلوشرط ضروري نه دي اوکه چري پيدل مزل کولي شي نو بيا دده دپاره دسورلئ شرط ضروري نه دي

دجمهورودپاره دليل حديث دانس رضي الله عنه دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم د "من استطاع اليه سبيلا" په تفسير کي فرمائيلي وو چي دسبيل نه مراد دلاري خرچه او سورلئ ده .
دا حديث دارقطني او بيهقي او حاکم دانس رضي الله عنه نه بيان کړي دي او حاکم دشيخينودشرط مطابق ګڼرلي دي اوهمدارنګي حاکم دحماد بن سلمه روايت هم نقل کړي دي اودمسلم دشرط مطابق يي ګرځولي دي اوسعيد بن منصور پخپل سنن کي مختلف مراسيل دحسن بصري په روايت سره بيان کړي دي.

فتاوي قاضي خان ونيلي دي چي د بعضي علماؤ قول دي که چري کوم تاجر چي ګذاره يي په تجارت روانه وي ددومره مال مالك جوړ شي چي دتګ راتګ او دلاري خرچي اودسورلئ دپاره پوره کيږي اودواپس راتلوپوري دده داهل عيال دپاره کافي وي اوبيا دواپس راتلو نه پس ورسره دومره مال باقي پاتي شي چي تجارت ورباندي کولي شي نوپه داسي کس به حج فرض وي اوکه داسي نه وي نوفرض به نه وي که چري څوك جيداد والاخپل جيداد خرچ کړي او دلاري خرچي اوسورلئ اودبچو خرچي فراهم کړي او بيا هم ورسره دومره جيداد باقي پاتي شي چي دهغي په امدن سره دده ګذاره کيږي نو په داسي کس به حج فرض وي اوکه داسي نه وي نوفرض به نه وي ، همدارنګي که کوم زميندار دلاري خرچي او سورلئ اودبچو خرچي فراهم کړي نودهغه به هم دغه صورت حال وي کوم چي دنورو دي (مظهري ، عنايه علي الهدايه . و عيني علي الهدايه)

**دزيد بن ثابت رضي الله عنه حالات**

نوم زيد كنيه ابوسعيد ، ابوخارجه ، ابوعبدالرحمان لقب مقري ، فرضي، كاتب الوحي ، حبرالامت.
په خزرج قبيله كي دبنو نجار سره تعلق لري او دشپږو كالو عمر كي يي پلار وفات شوى وو او ديولسو كالو په عمر كي دمصعب بن عمير په لاس مسلمان شوى وو كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته راغى نو دى داولسو سورتونو حافظ وو دده عمر په ديارلسو كالو كي روان وو چي دبدرغزوه راغله دده دا خواهش وو چي دى هم پكي شركت اوكړي مګر دعمر دكموالي په وجه واپس كړى شو او په غزوه خندق كي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يوځاي وو
په جنګ يمامه كي هم شريك شوى وو او په دي جنګ كي په يو غشي هم لګيدلى وو ليكن جسم ته يي څه نقصان نه وو رسيدلى ، رسول الله صلي الله عليه وسلم دوحي دليكلو كار دډيرو صحابه كرامو نه اخستلى وو په دوئ كي زيد بن ثابت رضي الله عنه هم شامل وو
زيد يو عقلمند او انتهائي زكي انسان وو دهجرت په پنځم كال رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ماته دخلقو خطونه راځي چي په عبراني ژبه كي دي په يهوديانو مي اعتبار نشته نو په دي وجه زيد صرف په پنځلسو ورځو كي عبراني او سرياني ژبي زده كړي (مسند احمد)
زيد دفقه امام وو ګويا كي زيد دخلفاء راشده او معاويه رضي الله عنه په زمانه كي مفتي اعظم وو (اعلام الموقعين).
دهجرت په ۴۵كال د ۵۵يا ۵۲كالو په عمر كي وفات شو دده دوفات كيدو په مناسبت ابوهريرد رضي الله عنه اوفرمائيل نن دعلم يوه خزانه ختمه شوه دده دمرورياتو شمير ۹۲دى پنځه په دي كي متفق عليه دي.

****************

## ١٧ـ باب مَا جَاءَ فِي مَوَاقِيتِ الإِحْرَامِ لأَهْلِ الآفَاقِ

### دافاقي خلقو دپاره داحرام ترلو دميقاتونو بيان

٨٣١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَجُلًا، قَالَ: مِنْ أَيْنَ نُهِلُّ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "يُهِلُّ أَهْلُ الْمَدِينَةِ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ، وَأَهْلُ الشَّامِ مِنَ الْجُحْفَةِ، وَأَهْلُ نَجْدٍ مِنْ قَرْنٍ". قَالَ: وَيَقُولُونَ: وَأَهْلُ الْيَمَنِ مِنْ يَلَمْلَمَ. قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ

**ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ.** [1]

**ترجمه** . دعبدالله بن عمر رضي الله عنهمانه روايت دي فرماني چي يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله مونږ به احرام دكوم خاي نه تړو؟ ورته يي اوفرمانيل اهل مدينه دي دذوالحليفه نه احرام تړي او اهل شام دي دجحفي نه او اهل نجد دي دقرن نه دبعضي راويانو قول دي چي اهل يمن دي ديلملم نه احرام تړي

امام ترمذي واني دابن عمر حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن عباس، دجابر بن عبدالله او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي

## د ميقات تعريف او خايونه

مواقيت جمع د ميقات ده،اوميقات د مقرر وخت دپاره راځي،خو دلته مجازاً د خائي دپاره استعمال شوي دي اوس دلته د مواقيت نه هغه خايونه مراد دی،د کومو نه چی بغير داحرام نه تيريدل روا نه دی،او مواقيت پنځه دی.

(١) د مديني د خلقو ميقات ذوالحليفه دي حليفه د حلفة تصغير دي دلته وړاندې يوه وونه وه،او اوس يكي مسجد جوړ شوي دي دا د مديني منورې نه شپږ ميله لرې دي

(٢) د عراقيانو دپاره ذات عرق ميقات دي دا د مكې مكرمې نه په دوه څلويښت ميله كي پروت دي عمر(رضي الله عنه) د كوفې او بصره د فتح كولو نه پس هم دا خائې ميقات مقرر كړې وو.

(٣) د شاميانو ميقات جحفه ده،هم دا د مصريانو ميقات دي ددې خائې نه مكه ٨٢ ميله لرې ده،او مدينه منوره درې منزله او ،بحر قلزم، شپږ ميله لرې دې.

(۴) د نجديانو ميقات،قرن، دي.

(۵) د يمنيانو ميقات يلملم دي دا د مكې نه د جنوب په طرف ديرش ميله لرې دي.

---

[1] ـ (تحفة الأشراف : ۷۵۹۳) وانظر : مسند احمد (۲ في ۴۸. ۶۵) وأخرجه صحيح البخارى في العلم ۵۲ (۱۳۳) . والحج ۴ (۱۵۲۲) . و۸ (۱۵۲۵) . و۱۰ (۱۵۲۷) . والاعتصام ۱۵ (۷۳۴۴) . صحيح مسلم في الحج ۲ (۱۱۸۲) . سنن ابى داود في المناسک ۹ (۱۷۳۷) . سنن النسائي في المناسک ۱۷ (۲۶۵۲) . سنن ابن ماجه في المناسک ۱۳ (۲۹۱۴) . موطا امام مالک في الحج ۸ (۲۲) . مسند احمد (۲ في ۵۵) . سنن الدارمى في المناسک ۵ (۱۸۳۱) .

(۶) د ذات عرق نه سوا د باقی څلورومیقاتونو ثبوت په صحیحینوکي دي اوذات عرق ثبوت په مسلم او ابوداودکي دي (۱) په صحیحینو کي د ابن عباس رضی الله عنهما حدیث دي چی "أن رسول الله صلي الله عليه وسلم وقت لأهل المدينة ذالحليفة ولأهل الشام الجحفة ولأهل نجد قرن المنازل ولأهل اليمن يلملم هن لهن ولمن أتى عليهن من غير أهلهن من أراد الحج والعمرة ومن كان دون ذالك فمن حيث شاء حتى أهل مكة من مكة"

یعنی رسول الله صلي الله علیه وسلم میقات مقرر کړی دی.د مدینې د خلقو دپاره ذوالحلیفه اود شامیانو دپاره جحفه اود نجدیانو دپاره قرن منازل اود یمنیانو دپاره یلملم دا د دوی دپاره دی اود هغه چا دپاره چی په دوی باندې راځی علاوه د دوی نه څوك چی اراده د حج او د عمري لری،اود دوی نه علاوه چی نو د کوم ځائې نه چی نې خوښه وی.ترڅې چی د مکي دخلقو دپاره مکه ده چی ددې نه دې احرام تړی.

صاحب د هدایه وائی چی ددې میقاتونود مقرر کولو فائده دا ده چی چی ددې میقاتونو نه د احرام تاخیر منع دي دا مطلب نه دې چی ددې میقاتونو نه وړاندې احرام نشی تړلې ځکه چی د میقات نه وړاندې احرام تړل په اتفاق سره روا دې.( عنایه. فتح القدیر).

****************

٨٣٢_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " وَقَّتَ لِأَهْلِ الْمَشْرِقِ الْعَقِيقَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَلِيٍّ هُوَ أَبُو جَعْفَرٍ مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم داهل مشرق دپاره میقات عقیق مقرر کړو

امام ترمذي وائي دا حدیث حسن دي، محمد بن علي ، ابو جعفر، محمد بن علي بن حسین بن علي بن ابي طالب دي

****************

## ١٨_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَا لاَ يَجُوزُ لِلْمُحْرِمِ لُبْسُهُ

### دمحرم دپاره دکومو څیزو نو اغوستل جائز نه دي

[1] ـ : سنن ابي داود في الحج۹(۱۷۴۰). (تحفة الأشراف: ٦٤٣٣)

٨٣٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ قَالَ: قَامَ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَاذَا تَأْمُرُنَا أَنْ نَلْبَسَ مِنَ الثِّيَابِ فِي الحَرَمِ ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَلْبَسُوا القُمُصَ وَلَا السَّرَاوِيلَاتِ وَلَا البَرَانِسَ وَلَا العَمَائِمَ وَلَا الخِفَافَ، إِلَّا أَنْ يَكُونَ أَحَدٌ لَيْسَتْ لَهُ نَعْلَانِ فَلْيَلْبَسِ الخُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا مَا أَسْفَلَ مِنَ الكَعْبَيْنِ، وَلَا تَلْبَسُوا شَيْئًا مِنَ الثِّيَابِ مَسَّهُ الزَّعْفَرَانُ وَلَا الوَرْسُ، وَلَا تَنْتَقِبُ المَرْأَةُ الحَرَامُ، وَلَا تَلْبَسُ القُفَّازَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چي يو كس اودريدو او عرض يي وكړو اي دالله رسوله ته مونږ ته په احرام كي دكومو كومو جامو په اغوستلو حكم كوي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل . قميص به نه اغوندئ او نه به پرتوګ اغوندئ او نه به پتكي پسروئ او نه به موزي پخپو كوئ مګر دا چي دچا سره عام ساده پيزار نه وي نو بيا دڅمړي پيزار اغوستل جائز دي او دا دي دګيټو نه لاندي كټ كړي او نه به داسي كوم څيز اغوندي په كوم چي زعفران يا ورس لګيدلي وي او محرمه ښځه به نقاب نه استعماليږي او نه به دستاني اغوندي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په همدي داهل علمو عمل دي.

## په حالت د احرام كې دګنډلو جامو استعمالولو ممانعت

مسئله دا ده چې د محرم دپاره ګنډلې شوې جامه اغوستل روا نه ده.مثلاً قميص. لنګ. پتكې. ټوپۍ اوموزه وغيره،البته دا چې محرم سره پڼې نه وې نوده دپاره دداسې موزو اچول روا دی چې د هغې د كعبينو نه لاندې حصه كټ شوې وی.

اوكعب نه مراد ګيټې نه ده، بلكې د قدم د مينځ هډوكی مراد دی دليل ددې دادې:

"عن ابن عمر رضی الله عنهما قال رجل يا رسول الله صلي الله عليه وسلم ماتأمرنا أن نلبس من الثياب في الإحرام قال (صلي الله عليه وسلم) لاتلبسوا القمص ولاالسراويلات ولاالعمائم ولا البرانس ولا

---

[1] _ صحيح البخاری في جزاء الصيد ١٣ (١٨٣٨) . سنن ابي داود في المناسک ٣٢ (١٨٢٥) . سنن النسائي في الحج ٢٨ (٢٦٦٧) . (تحفة الأشراف : ٨٢٧٥) . مسند احمد (٢ في ١١٩) وأخرجه صحيح البخاری في العلم ٥٣ (١٣٤) والصلاة ٩ (٣٦٦) والحج ٢١ (١٥٤٢) . وجزاء الصيد ١٥ (١٨٤٢) واللباس ٨ (٥٧٩٤) و١٣ (٥٨٠٣) و١٤ (٥٨٠٥) و١٥ (٥٨٠٦) و٣٤ (٥٨٤٢ـ ٥٨٥٢) . سنن ابن ماجه في المناسک ١٩ (٢٩٢٩) . موطا امام مالک في الحج ٣ (٨) . مسند احمد (٢ في ٤، ٨، ٢٩، ٣٢، ٣٤، ٤١، ٥٤، ٥٦، ٥٩، ٦٥، ٧٧) . سنن الدارمی في الحج ٩ (١٨٣٩)

الحفاف إلا أن يكون أحد ليس له نعلان فليلبس الخفين وليقطع الخفين أسفل من الكعبين ولا تلبسوا شيأ مسه زعفران ولا ورس"

يعنی ابن عمر رضی الله عنهما وائی چی یو سړی عرض اوکړو ،اې دالله پیغمبره! تاسومونږ ته څه حکم کوئ چی مونږ ئې اغوندو د جامو نه چی مونږ په احرام کي يو نورسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل تاسو مه اغوندئ قميصونه اونه پرتوګونه اونه پټکی اونه شړئ اونه موزې مګردا چی وی يوکس چی نه وی د ده سره دوه پڼړی نو وادې چوی موزې اوکټ دې کړی موزې لاندې د کعبينو نه .اوتاسو مه اچوئ هغه څيز چی رسيدلی وی ورته زعفران اونه ګل ورس،(دا يو قسم ګياه ده چی د رنګ کولو په کار راځی) د دې حديث نه معلومه شوه چی د محرم دپاره د هغه جامو اچول ممنوع دی.

د کعب دوه تفسيرونه دی:

(١) ګيټه يعنی د قدم دواړوطرفونو ته راوچت شوی هډوکی.

(٢) دقدم په مينځ کي دتسمې تړلو ځائې چرته چی د ګوتو هډوکی راجمع کيږی،هشام دامام محمد (رحمه الله) نه هم دا روايت کړی دی نودلته د کعب دويم تفسير مراد دي.

***************

## ١٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي لُبْسِ السَّرَاوِيلِ وَالْخُفَّيْنِ لِلْمُحْرِمِ إِذَا لَمْ يَجِدِ الإِزَارَ وَالنَّعْلَيْنِ

### كه دمحرم سره لنګ او پيزار نه وي نو پرتوګ او موزې اغوستلي شي

٨٣٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " الْمُحْرِمُ إِذَا لَمْ يَجِدِ الإِزَارَ فَلْيَلْبَسِ السَّرَاوِيلَ، وَإِذَا لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ ". حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرٍو نَحْوَهُ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: إِذَا لَمْ يَجِدِ الْمُحْرِمُ الإِزَارَ لَبِسَ السَّرَاوِيلَ، وَإِذَا لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ لَبِسَ الْخُفَّيْنِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وقَالَ بَعْضُهُمْ عَلَى حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا لَمْ يَجِدْ نَعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ

الْخُفَّيْنِ. وَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ " وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ. وَبِهِ يَقُولُ مَالِكٌ. ([1])

**ترجمه** . دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي فرمائيل يي كله چي دمحرم سره لنګ نه وي [illegible] دي واغوندي اوچي كله ورسره پيزارنه وي نو موزي دي واغوندي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي. او په دي باب كي دابن عمر. او جابررضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي و دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي دوئ وائي كله چي محرم لنګ بيانه مومي نو پرتوګ دي واغوندي او چي كله ورسره پيزارنه وي نو دڅرمني موزي دي واغوندي او دا دامام احمد قول هم دي، بعضي علماؤ دابن عمر ددي حديث په بنياد كوم چي هغه درسول الله نه نقل كړي دي چي كله چا سره پيزارنه وي نو دڅرمني موزي دي واغوندي او دا دي دګيټو نه لاندي كټ كړي په دي باندي قول كړي دي اوسفيان ثوري، شافعي رحمهم الله، او امام مالك هم ددي قائل دي

***************

## ٢٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي الَّذِي يُحْرِمُ وَعَلَيْهِ قَمِيصٌ أَوْ جُبَّةٌ

**بيان دهغه چا چي داحرام په حالت كي يي جبه او قميص اغوستلي وي**

٨٣٥_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، قَالَ: "رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرَابِيًّا قَدْ أَحْرَمَ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ، فَأَمَرَهُ أَنْ يَنْزِعَهَا".([2])

**ترجمه** : د صفوان بن يعلي بن اميه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم يواعرابي اوليدو چي داحرام په حالت كي يي قميص اغوستلي وو نو حكم يي ورته اوكړو چي دا اوباسي

***************

[1] _ البخاري في جزاء الصيد ١٥ (١٨٣١)، و١٦ (١٨٣٢)، واللباس ١٣ (٥٨٠٣)، و٣٧ (٥٨٥٣). صحيح مسلم في الحج ٨١ (١١٧) سنن النسائي في الحج ٣٢ (٢٦٧٢، ٢٦٧٣)، و٣٧ (٢٦٨٠)، والزينة ٩٨ (٥٣٢٧). سنن ابن ماجه في المناسك ٢٠ (٢٩٣١). مسند احمد (١ في ٢١٥، ٢٢١، ٢٢٨، ٢٧٩، ٣٣٧) (تحفة الأشراف: ٥٣٧٥)

[2] _ سنن ابي داود في الحج ٣١ (١٨٢٠). (٣ في ٢٢٣). وانظر الحديث الآتي (تحفة الأشراف: ١١٨٣٣)

٨٣٦_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. وَهَذَا أَصَحُّ وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَاهُ قَتَادَةُ، وَالْحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ. وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، وَابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** ديعلي رضي الله عنه نه هم دسابقه روايت هم معني حديث مروي دي ليكن دا روايت زيات صحيح دي او په دي حديث كي يوه قصه ده

امام ترمذي وائي دا رنګي دا روايت قتاده، حجاج بن ارطاة، او بعضي نورو راويانو دعطاء نه او عطاء ديعلي بن اميه نه نقل كړي دي ليكن صحيح روايت هغه دي كوم چي عمرو بن دينار او ابن جريج دعطاء نه او عطاء د صفوان بن يعلي نه او صفوان دخپل پلار نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي.

***************

## ٢١_ بَاب مَا يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ مِنَ الدَّوَابِّ

### محرم كوم كوم ځناورو وژلي شي

٨٣٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَمْسُ فَوَاسِقَ يُقْتَلْنَ فِي الْحَرَمِ، الْفَأْرَةُ وَالْعَقْرَبُ وَالْغُرَابُ وَالْحُدَيَّا وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

---

[1] _ البخارى في الحج ١٤ (١٥٣٦)، والعمرة ١٠ (١٧٨٩)، وجزاء الصيد ١٩ (١٨٤٧)، والمغازي ٥٦ (٤٣٢٩)، وفضائل القرآن ٢ (٤٩٨٥)، صحيح مسلم في الحج ١ (١١٨٠)، سنن ابى داود في الحج ٣١ (١٨١٩)، سنن النسائي في الحج ٢٩ (٢٦٦٩) و٤٤ (٢٧٠٩، ٢٧١١)، (تحفة الأشراف : ١١٨٣٦)، مسند احمد (٤ في ٢٢٤)

[2] _ البخارى في بدء الخلق ١٦ (٣٣١٤)، صحيح مسلم في الحج ٩ (١١٩٨) سنن النسائي في الحج ١١٨ (٢٨٩٣) (تحفة الأشراف : ١٦٦٢٩) وأخرجه صحيح البخارى في جزاء الصيد ٧ (١٨٢٩)، سنن النسائي في الحج ٨٣ (٢٨٣٢)، و١١٣ (٢٨٨٤)، و١١٣ (٢٨٨٥)، و١١٦ (٢٨٩٠)، و١١٧ (٢٨٩١)، سنن ابن ماجه في الحج ٩١ (٣٠٨٧) مسند احمد (٦ في ٨٧، ٩٧، ١٢٢، ٢٠٣، ٢٥٩، ٢٦١)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي پنځه ضرري ځناور داسي دي دكومو چي په حرم كي يا د احرام په حالت كي وژل جائز دي يو مږه . لړم، كارغه، تپوس، اوچيچونكي سپي امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي په دي باب كي دابن مسعود ، ابن عمر ، ابوهريره، ابوسعيد . او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم روايت مروي دي.

**تشريح**: كه محرم كارغه يا تپوس يا شرمخ يا مار يا لړم يا مګه يا چيچونكې سپې مړكړل نوپه ده به څه جزاء واجب نه وي. ددي خبري دليل د نبيﷺ قول دې چې هغوى د پنځوضروري ځناورو په زمين حل اوحرم دواړو كي د قتلولواجازت وركړې دي (تپوس. مار. لړم مګه چيچونكې سپې). دويم حديث دادى چې مګه. كارغه. تپوس.لړم.مار اوچيچونكې سپې محرم قتلولې شي.

دلته يواشكال دي چې نبيﷺ محرم د ځناورو د قتلولو نه منع كړې دې .خو د دي پنځو د قتلولو اجازت ئې وركړې دي اوپه بل حديث كي ئې شپږ شمارلى دى شپږم په دوي كي شرمخ دى

په حديث كي د قارغه نه هغه قارغه مراد دې چې كله پليتى خوري اوكله دانې خوري.چونكه هغه په خوراك كي د نجاست نه شروع كوى.نودې هم د نجاست خور ځناور پشان شو.اوپاتې شو هغه قارغه كوم چې تور اوسپين وى،اود هغې آواز د"عقعق "سره وى.په حديث كي د هغې استثناء نشته،ځكه چې هغې ته قارغه نه وائى.نودهغې په قتل كولوبه جزاء واجبيږى.اودا عقعق د نجاست نه شروع هم نه كوى.بلكي دانه خورى.اوهم دې ته په خپل خوراك كي ترجيح وركوى،

دامام ابوحنيفه(رحمه الله) نه يوروايت دادى چې د كوم سپى په قتل چې جزاء نه واجبيږى.په هغې كي چيچونكې اوناچيچونكې اوكورنې اوځنګلى ټول سپى برابر دى.ځكه چې معتبر جنس دي اوپه جنس كي كلب اوحقيقت كلب ټول برابردى.اودغه شان كورنى اوځنګلى ټولې مګې برابردى.اوسماره اولډبورې په دې پنځوكي نه دى.دكوموچې نبيﷺ استثناء كړې ده.ځكه چې دواړه ځناور په ضرر رسولوكي وړاندې والې نه كوى.

## د ماتونكى ځناورد قتل د جزاء حكم

(۱) دجمهورو احنافو په نزد كه چري ماتونكى ځناوربه محرم باندې حمله اوكړله .اوده قتل كړو،نوپه ده به جزاء نه وى.

(۲) اوامام زفر وائى چې په ده باندې جزاء واجب ده،دامام زفر دليل قياس دي كه اوښ په انسان باندې حمله اوكړله،اوده هغه اوښ قتل كړلو.نوپه ده باندې د هغې قيمت واجب دي

اګرچې ده د ضرر لرې کولود وجې هغه قتل کړې وی.نودغه شان دلته د ماتونکی ځناورد قتل په صورت کې هم جزاء واجب وی.
دجمهورو دلیل د عمر(رضي الله عنه) اثردي هغوی په یوماتونکی ځناور باندې حمله اوکړه،اوهغه ئې قتل کړو،نویوه چیلۍ ئې د هدي په طور اولیږله.اودا ئې اوفرمائیل چې مونږ په هغه باندې حمله کړې وه،ځکه مونږ چیلۍ اولیږله.
دویم دلیل دادی چې محرم ځناورته د تعرض کولونه منع شوې دي اوددې نه نۀ دې منع شوې،که په ده حمله اوکړی،نودې به خپله دفاع نه کوی.هم دا وجه ده چې په فواسق کې د ضرر وهم وو،نود هغوی د ضرر لرې کولوپه وجه دهغوی دقتل اجازت ورکړې شوې دي اوپه دې صورت کې چې ماتونکې ځناور حمله اوکړی،نوتکلیف رسیدل یقینی دی. نودلته خوپه په درجه اولی سره د هغې د لرې کولواجازت وی.اوچونکه د درنده د ضرر لرې کولواجازت د شارع د طرفه دي نوځکه به د ماتونکی ځناور د قتل په صورت کې جزاء واجب نه وی. په خلاف د حمله کونکی اوښ.یعنی که اوښ په چا باندې حمله اوکړله . او ده هغه اوښ قتل کړلو،نوپه ده به د هغې قیمت واجب وی.ځکه چې په دې صورت کې د مالك د طرفه ده ته د قتل کولواجازت نه دې ملاؤ شوې.اوهرکله چې د مالك د طرفه د قتل کولواجازت نشته،نودهغه حق به هم نشی ساقط کیدي.

## دحشرات الارض د قتل حکم

که چرې محرم ماشې،میګې ورګه یاکتمل مړ کړل،نوپه محرم باندې څه واجب نه دی.ځکه چې دا ښکاری ځناور نه دی،ځکه چې ښکاری ځناورهغه وی چې د بنیادم نه ویرېږی .او دا ځناور بنیادم ته رغبت کوی،او نه دا ځناور د بنیادم د بدن نه پیدا کیږی،زیات نه زیات دا وئیلی شی، چې داځناور ضرری دی،اوکه د ځناور ځنګلی وی،نوچونکه دا ښکاری شو،ځکه چې د انسان نه ویرېږی، اودښکاری په وژلو جزاء واجب کیږی.اوکه د بنیادم د بدن نه پیدا کیږی،نود انسان د بدن نه خیرې وغیره پاکوی،ددې وجې ددې په قتل جزاء واجبیږی،خوچې کله دواړه خبرې نه وی،نوجزاء نه واجبیږی.
صاحب د هدایه وائی چې د میګی نه تور یا زیړ میګې مراد دي کوم چې انسان ته ضرر رسوی،ددې قتل کول روا دی.اوپه قتل ئې جزاء هم واجب نه ده.اوهغه میګی چې چاته تکلیف نه رسوی،دهغې قتلول روا نه دی،خوکه قتل کړې شو،نوجزاء هم واجب نه ده.ځکه چې نه خودا د ښکار په حکم کې دي اونه د بنیادم د بدن نه پیدا کیږی.(عنایه شرح هدایه).

***************

٨٣٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ: السَّبُعَ الْعَادِيَ وَالْكَلْبَ الْعَقُورَ وَالْفَأْرَةَ وَالْعَقْرَبَ وَالْحِدَأَةَ وَالْغُرَابَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: الْمُحْرِمُ يَقْتُلُ السَّبُعَ الْعَادِيَ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: كُلُّ سَبُعٍ عَدَا عَلَى النَّاسِ أَوْ عَلَى دَوَابِّهِمْ فَلِلْمُحْرِمِ قَتْلُهُ. (١)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي محرم سركشه درنده او چيچونكي سپي او مږه او لړم او تپوس او كارغه وژلي شي د سفيان ثوري او امام شافعي هم دا قول دي بلكي امام شافعي دا هم وائي محرم هر هغه خناور وژلي شي كوم چي خلقو ته يا خاروو ته ضرر رسوي.

***************

## ٢٢٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْحِجَامَةِ لِلْمُحْرِمِ

### دمحرم دپاره دښكر لګولو بيان

٨٣٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، وَعَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ ابْنِ بُحَيْنَةَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي الْحِجَامَةِ لِلْمُحْرِمِ، قَالُوا: لَا يَحْلِقُ شَعَرًا، وقَالَ مَالِكٌ: لَا يَحْتَجِمُ الْمُحْرِمُ إِلَّا مِنْ ضَرُورَةٍ، وقَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ: لَا بَأْسَ أَنْ يَحْتَجِمَ الْمُحْرِمُ وَلَا يَنْزِعُ شَعَرًا. (٢)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حال كي ښكر اولګولو چي احرام يي تړلي وو

---

[1] ـ ابي داود في الحج ٤٠ (١٨٤٨)، سنن ابن ماجه في المناسك ٩١ (٣٠٨٩)، (تحفة الأشراف : ٤١٢٣)، مسند احمد

[2] ـ البخاري في جزاء الصيد ١١ (١٨٣٥)، والصوم ٣٢ (١٩٣٨)، والطب ١٢ (٥٦٩٥)، و١٥ (٥٧٠٠)، صحيح مسلم في الحج ١١ (١٢٠٢)، سنن ابي داود في المناسك ٣٦ (١٨٣٥)، سنن النسائي في الحج ٩٢ (٢٨٤٨)، مسند احمد (١ في ٢٢١، ٢٩٢، ٣٤٢)، (تحفة الأشراف : ٥٧٣٤، ٥٩٣٩)، وأخرجه سنن ابن ماجه في المناسك ٨٧ (٣٠٨١)، مسند احمد (١ في ٢١٥، ٢٢٢، ٢٣٦، ٢٤٨، ٢٤٩، ٢٨٣، ٢٨٦، ٣١٥، ٣٣٦، ٣٥١، ٣٧٢)، سنن الدارمي في الحج ٢٠ (١٨٦٠)

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کي د انس، عبدالله بن بحينه، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. داهل علمو يو جماعت محرم ته دښکر لګولو اجازت ورکړي دي دوئ وائي چي ويخته به نه کموئ امام مالك وائي محرم ښکر نشي لګولي مګر دضرورت په وخت کي، سفيان ثوري او امام شافعي وائي دمحرم په ښکر لګولو کي هيڅ حرج نشته ليکن ويخته خريلي نشي

***************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ تَزْوِيجِ الْمُحْرِمِ

### په حالت داحرام کي د نکاح کولو دحرمت بيان

٨٤٠_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ نُبَيْهِ بْنِ وَهْبٍ، قَالَ: أَرَادَ ابْنُ مَعْمَرٍ أَنْ يُنْكِحَ ابْنَهُ، فَبَعَثَنِي إِلَى أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ وَهُوَ أَمِيرُ الْمَوْسِمِ بِمَكَّةَ، فَأَتَيْتُهُ، فَقُلْتُ: إِنَّ أَخَاكَ يُرِيدُ أَنْ يُنْكِحَ ابْنَهُ فَأَحَبَّ أَنْ يُشْهِدَكَ ذَلِكَ، قَالَ: لَا أُرَاهُ إِلَّا أَعْرَابِيًّا جَافِيًا، إِنَّ الْمُحْرِمَ لَا يَنْكِحُ وَلَا يُنْكِحُ أَوْ كَمَا قَالَ: ثُمَّ حَدَّثَ عَنْ عُثْمَانَ مِثْلَهُ يَرْفَعُهُ، وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي رَافِعٍ، وَمَيْمُونَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُثْمَانَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَعَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَابْنُ عُمَرَ، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ فُقَهَاءِ التَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ لَا يَرَوْنَ أَنْ يَتَزَوَّجَ الْمُحْرِمُ، قَالُوا: فَإِنْ نَكَحَ فَنِكَاحُهُ بَاطِلٌ. [1]

**ترجمه** دنبيه بن وهب بيان دي فرمائي چي معمرو دخپل خوي واده کول غوښتل او زه يي ابان بن عثمان ته اوليږلم او هغه په مکه کي دحج امير وو زه ابان ته ورغلم او تپوس مي ورنه اوکړو چي ستا ورور دخپل خوي واده کول غواړي او دا اراده لري چي تا په دي باندي ګواه کړي ابان اوونيل ماته خو دي يو ناپوهه باندچي ښکاري محرم نه پخپله نکاح کولي شي او نه دبل چا نکاح ترلي شي "اوکما قال" او بيا يي دعثمان رضي الله عنه نه روايت دنقل کولو په حال کي بيان کړو او ددي حديث هم معني روايت يي بيان کړو او مرفوع يي بيان کړو

[1] ـ مسلم في النكاح ٥ (١٤٠٩) . سنن ابي داود في الحج ٣٩ (١٨٤١) . سنن النسائي في الحج ٩١ (٢٨٤٥) . والنكاح ٣٨ (٣٢٧٥) . سنن ابن ماجه في النكاح ٤٥ (١٩٦٦) . (تحفة الأشراف : ٩٧٧٦) . موطا امام مالک في الحج ٢٢ (٧٠) . مسند احمد (١ في ٥٧، ٦٣، ٦٩، ٧٣) . سنن الدارمي في المناسک ٢١ (١٨٦٣)

امام ترمذي وائي دعثمان رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابورافع او ميمونه رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي. دبعضي صحابه كرامو چي عمر او علي بن ابي طالب او عبدالله بن عمر پكي هم شامل دي په دي باندي عمل دي او همدا دبعضي تابعينو او فقهاؤ قول هم دي امام مالك او شافعي او احمد او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول كړي دي ددوئ په نزد دمحرم دپاره نكاح جائز نه ده دوئ وائي كه محرم نكاح اوكړه نو نكاح به يي باطل وي

**تشريح: داحرام په حالت كې د نكاح د حرمت مسئله**

**په دي كي د فقهاؤ دري مذاهب دي:**

(١) د امام ابو حنيفه په نزد احرام والا ښځه وى اوكه چري سړي خو د احرام په حالت كي نكاح كول جائز دى.

(٢) امام شافعى (رحمه الله) ورته ناجائز وائى.

(٣) امام مالك او امام احمد (رحمهما الله) هم ددې د حرمت قائل دى.

دغه شان دنكاح د ولايت مسئله هم ده مثلا كه محرم د يوكس ولى جوړشى. او نكاح اوكړى نو زمونږ په نزد جائز دى، اود امام شافعى (رحمه الله) په نزد ناجائز دى،

**دامام شافعى (رحمه الله) دليل** د نبى كريمﷺ فرمان"لاينكح المحرم ولا ينكح" دې. په دې حديث كي رومبې .ينكح.د حاء په فتح سره دې. (د ضرب نه) او دويم د حاء په ضمه سره دې، (د انكاح نه)د رومبى معنى ده پخپله نكاح كول، د دويم معنى ده د بل نكاح كول. لكه چي .طعم.خوراك خوړل،او .اطعام، په بل خوراك خوړل نو اوس به د حديث مطلب دا وى. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل. چي ،محرم به نه خپله نكاح كوى، او نه به ولى جوړيږى چي د بل نكاح اوكړى.د مسلم او ابوداؤد په روايت كي د .ولا يخطب. اضافه ده. يعنى د احرام په حالت كي به كوېژدن هم نه كوى.

امام احمد بن حنبل (رحمه الله) په خپل مسند كي روايت كړې دې، "ولا يخطب بمكة" يعنى په مكه كي به كوېژدن نه كوى، ددې حديث نه ثابتيږى چي د احرام په حالت كي خپله نكاح كول.يا د بل نكاح كول د واړه ممنوع دى،

**زمونږ دليل** دادې. ابن عباس رضي الله عنه روايت كړې دې چي نبى كريم ﷺ د ميمونه (رضي الله عنها) سره د محرم كيدلو په حالت كي نكاح اوكړه. او امام بخارى (رحمه الله) اضافه كړې ده. "وبنى بها وهو حلال وماتت بسرف" يعنى نبى كريم ﷺ د ميمونه سره نكاح اوكړه. حالانكه نبى كريم ﷺ محرم وو، او ددې سره ئې زفاف اوكړو، (د خپلې بى بى سره د واده شپه تيرول) حالانكه نبى كريم ﷺ حلال وو. اود ميمونه (رضي الله عنها) انتقال په مقام سرف كي اوشو،

بعض حضرات د لطيفه په طورباندې بيان كړى دى چې د ميمونه (رضي الله عنها) واده هم په مقام سرف كې اوشو. شب زفاف ئې هم په مقام سرف كې تيركړو. اود ميمونه (رضي الله عنها) انتقال هم په مقام سرف كې اوشو، ددې حديث نه معلوميږى چې نبى كريم ﷺ دميمونه (رضي الله عنها) سره د احرام په حالت كې نكاح اوكړه،

د امام شافعى (رحمه الله) د نقل كړې حديث جواب دادې چې په دې حديث كې د نكاح لغوى معنى (وطى) مراد ده. اوس به مطلب دا وى چې د احرام په حالت كې وطى كول ممنوع دى. عقد نكاح ممنوع نه دې، په دې صورت كې به د حديث ترجمه دا وى چې محرم به نه وطى كوى، او نه به محرمه ته په وطى باندې قدرت وركوى.

دويم جواب دادې چې په حديث كې نهى تنزيهى مراد ده. تحريمى مراد نه ده. اوس به مطلب دا وى چې د احرام په حالت كې خپله نكاح كول،يا د بل نكاح كول مناسب نه دى. كه اوكړې شى نو منعقد به وى، زمونږ د مذهب تائيد په قياس سره هم كيږى. ځكه چې نكاح د نورو عقدونو د بيع وشراء وغيره په شان ده، لكه څنګه چې په بيع وغيره كې ايجاب اوقبول كيږى، دغه شان په نكاح كې هم د ايجاب اوقبول تلفظ كيږى نود احرام په حالت كې چې لكه څنګه نور عقدونه جائز دى، دغه شان به نكاح هم جائز وى،

د انصاف خبره دا ده چې د امام شافعى (رحمه الله) مذهب قوى دې. ځكه چې د امام شافعى (رحمه الله) پيش كړې حديث قولى دې، اود احنافو پيش كړې حديث فعلى دې. اود حديثينو د تعارض په وخت حديث قولى مقدم وى، په حديث فعلى باندې ددې نه علاوه د نبى كريم ﷺ ميمونه (رضي الله عنها) سره د احرام په حالت كې نكاح كول مختلف فيه دى، لكه چې پخپله ميمونه بنت الحارث (رضي الله عنها) فرمائى چې ماسره رسول الله ﷺ نكاح اوكړه، او مونږ دواړه حلال وو، مسلم، ابوداؤد، ترمذى، او ابن ماجه دا حديث روايت كړې دې(فتح القدير لابن الهمام)

**************

٨٤١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ مَطَرٍ الوَرَّاقِ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، قَالَ: "تَزَوَّجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَيْمُونَةَ وَهُوَ حَلَالٌ، وَبَنَى بِهَا وَهُوَ حَلَالٌ، وَكُنْتُ أَنَا الرَّسُولَ فِيمَا بَيْنَهُمَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا أَسْنَدَهُ غَيْرَ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ مَطَرٍ الوَرَّاقِ، عَنْ رَبِيعَةَ، وَرَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ رَبِيعَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ، وَهُوَ حَلَالٌ" رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا، قَالَ: وَرَوَاهُ أَيْضًا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ رَبِيعَةَ مُرْسَلًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرُوِي عَنْ

يَزِيدَ بْنِ الأَصَمِّ، عَنْ مَيْمُونَةَ، قَالَتْ: " تَزَوَّجَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ حَلَالٌ ".
وَيَزِيدُ بْنُ الأَصَمِّ هُوَ ابْنُ أُخْتِ مَيْمُونَةَ. ([1])

**ترجمه** دابورافع رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دميمونه رضي الله عنها سره نكاح اوكړه او هغه حلال وو او اوبيا چي كله دخلوت وخت كي ورغلو نو هم حلال وو او ما به ددوئ په مينځ كي پيغام اوړلو او راوړلو

امام ترمذي وائي دا حديت حسن دي ، او مونږ ته دحماد بن زيد نه علاوه داسي څوك معلوم نه دي چاچي دا روايت دمطر وراق په واسطه دربيعه نه مسنداً نقل كړي وي، او مالك بن انس دربيعه نه او ربيعه دسليمان بن يسار نه روايت نقل كړي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دميموني سره نكاح اوكړه او هغه حلال وو دا روايت مالك مرسل نقل كړي دي اوسليمان بن هلال هم دا روايت دربيعه نه مرسل نقل كړي دي ، يزيد بن اصم دام المؤمنين ميمونه رضي الله عنها نه روايت نقل كوي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زما سره واده اوكړو او هغه حلال وو يعني احرام يي نه وو تړلي ، يزيد بن اصم دميموني دخور خوي دي

**دابورافع اسلم رضي الله عنه حالات**

نوم اسلم كنيه ابو رافع ، دده دپاره دا شرف كافي دى چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په غلامانو كي شميرلى شوى دى ابو رافع اول دعبدالله بن عباس غلام وو هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته په هديه كي وركړو او بيا رسول الله دعباس دمسلمانيدو په خوشحالئ كي ازاد كړو (ابن سعد).

دغزوه بدر نه پس يي هجرت اوكړو او مديني ته راغى او درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يي اوسيدل اختيار كړل.

دبدر نه علاوه په تمامو غزواتو كي شريك شوى دى دعلي رضي الله عنه سره يوي سريه ته هم تلى وو علي رضي الله عنه ورته پخپله غير موجودګئ كي دسريه نګراني هم سپارلي ده

رسول الله اګر چي ابو رافع ازاد كړى وو ليكن ددي باوجود يي درسول الله په غلامئ كي وخت تيرولو او درسول الله خدمت كول يي نه دي پريخودلي رسول الله به ورسره هم ډير محبت كولو دعلي رضي الله عنه دخلافت په ابتداء كي وفات شو ، ۶۸روايات ورنه مروي دي چي دري په دي كي متفق عليه دي

***************

[1] ـ تفرد به المؤلف. وانظر سنن الدارمي في المناسك ۲۱ (۱۸۶۶) (تحفة الأشراف : ۱۲۰۱۷) . ومسند احمد (۶ في ۳۹۲ ۳۹۳)

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

## په حالت داحرام کي د نکاح کولو دجواز بیان

٨٤٢_ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حَبِيبٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَأَهْلُ الْكُوفَةِ. (١)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما بیان دي رسول الله صلي الله علیه وسلم دمیموني سره نکاح اوکړه او هغه محرم وو

امام ترمذي وائي دابن عباس حدیث حسن صحیح دي او په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها نه هم حدیث مروي دي او دبعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي، سفیان ثوري او اهل کوفه هم په دي باندي قول کړي دي

***************

٨٤٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ". (٢)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما بیان دي رسول الله صلي الله علیه وسلم دمیموني سره نکاح اوکړه او هغه محرم وو

***************

٨٤٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَطَّارُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، قَال: سَمِعْتُ أَبَا الشَّعْثَاءِ يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو الشَّعْثَاءِ اسْمُهُ جَابِرُ بْنُ زَيْدٍ، وَاخْتَلَفُوا فِي تَزْوِيجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَيْمُونَةَ، لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا فِي طَرِيقِ مَكَّةَ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ:

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٢٢٠)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٢٢٠)

تَزَوَّجَهَا حَلَالًا وَظَهَرَ أَمْرُ تَزْوِيجِهَا، وَهُوَ مُحْرِمٌ، ثُمَّ بَنَى بِهَا وَهُوَ حَلَالٌ بِسَرِفَ فِي طَرِيقِ مَكَّةَ، وَمَاتَتْ مَيْمُونَةُ بِسَرِفَ حَيْثُ بَنَى بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَدُفِنَتْ بِسَرِفَ. (1)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دميموني سره نكاح اوكړه او هغه محرم وو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دميمونه سره دنكاح كولو په باره كي دعلماؤ اختلاف دي خكه چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دميموني سره مكي ته دتلو په لاره كي واده كړي وو او دبعضي اهل علمو قول دي چي كله يي هغي سره واده اوكړو نو رسول الله حلال وو البته دواده خبره هغه وخت ظاهره شوه چي رسول الله احرام تړلي وو او رسول الله دمكي په لاره كي په سرف مقام كي خلوت ته ورغلو نو دغه وخت هم حلال وو او ميمونه رضي الله عنها دوفات واقعه هم په سرف كي اوشوه چرته چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دهغي سره خلوت كړي وو په هم هغه سرف مقام كي دفن كړي شو

**دابوالشعثاء حالات:**

نوم سليم دپلار نوم اسود كنيه ابو الشعثاء ، جليل القدر تابعي دي، دثقاتو راويانو دجملي نه دي. اكثر علم يي دابو هريره رضي الله عنه نه نقل كړي دي

****************

٨٤٥ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا فَزَارَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الأَصَمِّ، عَنْ مَيْمُونَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَزَوَّجَهَا وَهُوَ حَلَالٌ، وَبَنَى بِهَا حَلَالًا، وَمَاتَتْ بِسَرِفَ، وَدَفَنَّاهَا فِي الظُّلَّةِ الَّتِي بَنَى بِهَا فِيهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَرَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الأَصَمِّ مُرْسَلًا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ وَهُوَ حَلَالٌ". (2)

**ترجمه** : دام المؤمنين ميمونه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه واده كړم او هغه حلال وو او چي خلوت يي كولو نه هم حلال وو، راوي وائي چي په هم هغه سرف مقام كي مو دفن كړو چرته چي دي سره خلوت شوي وو

---

1 ـ حديث رقم: ٨٤٢ (تحفة الأشراف: ٥٣٤٦)

2 ـ مسلم في النكاح ٥ (١٤١١)، سنن ابي داود في الحج ٣٩ (١٨٤٣)، سنن ابن ماجه في النكاح ٤٥ (١٩٦٤)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٨٢)، مسند احمد (٣٣٣، ٣٣٥) دي ٢١ (١٨٦٥)

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي، نورو راويانو دا حديث ديزيد بن عاصم نه مرسل نقل کړي دي چې رسول الله دميموني سره واده اوکړو او حلال وو

****************

## ٢٥_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الصَّيْدِ لِلْمُحْرِمِ

### دمحرم دپاره دښکار دغوښې خوړلو بيان

٨٤٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنِ الْمُطَّلِبِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " صَيْدُ الْبَرِّ لَكُمْ حَلَالٌ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ مَا لَمْ تَصِيدُوهُ أَوْ يُصَدْ لَكُمْ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، وَطَلْحَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ مُفَسَّرٌ. وَالْمُطَّلِبُ لَا نَعْرِفُ لَهُ سَمَاعًا مِنْ جَابِرٍ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا يَرَوْنَ بِأَكْلِ الصَّيْدِ لِلْمُحْرِمِ بَأْسًا إِذَا لَمْ يَصْطَدْهُ أَوْ لَمْ يُصْطَدْ مِنْ أَجْلِهِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: هَذَا أَحْسَنُ حَدِيثٍ رُوِيَ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَقْيَسُ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دوچې ښکار ستاسو دپاره په حالت داحرام کې حلال دي خو هله چې تاسو پخپله ښکار کړي نه وي او نه دا ستاسو دپاره ښکار کړې شوي وي.

امام ترمذي وائي په دي باب کې دابو قتاده او طلحه رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي، اودجابر روايت مفسر دي، او مونږ ته دجابر نه دمطلب سماع معلومه نه ده، او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي هغوئ دمحرم دپاره په ښکار خوړلو کې څه حرج نه ګڼړي چې څو پوري يې پخپله ښکار کړي نه وي او نه ددوئ دپاره ښکار کړي شوي دي، امام شافعي وائي دا روايت په دي باب کې په مروي روايتونو کې دټولو نه قوي دي او دقياس درجات موافق حديث دي او هغوئ همدا اختيار کړي دي او دامام احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم دا قول دي.

****************

٨٤٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ نَافِعٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّهُ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَتَّى إِذَا كَانَ بِبَعْضِ طَرِيقِ مَكَّةَ تَخَلَّفَ مَعَ أَصْحَابٍ لَهُ مُحْرِمِينَ وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ، فَرَأَى حِمَارًا وَحْشِيًّا فَاسْتَوَى عَلَى فَرَسِهِ، فَسَأَلَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُنَاوِلُوهُ

---

1 _ ابي داود في الحج ٤١ (١٨٥١)، سنن النسائي في الحج ٨١ (٢٨٣٠)، (تحفة الأشراف: ٣٠٩٨)، مسند احمد (٣/ ٣٦٢)

سَوْطَهُ فَأَبَوْا. فَسَأَلَهُمْ رُمْحَهُ فَأَبَوْا عَلَيْهِ فَأَخَذَهُ. ثُمَّ شَدَّ عَلَى الحِمَارِ فَقَتَلَهُ. فَأَكَلَ مِنْهُ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَى بَعْضُهُمْ. فَأَدْرَكُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَسَأَلُوهُ عَنْ ذَلِكَ. فَقَالَ: "إِنَّمَا هِيَ طُعْمَةٌ أَطْعَمَكُمُوهَا اللَّهُ".[1]

**ترجمه** : دابوقتاده بيان دي فرمائي چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره وم تردي پوري چي كله يي دمكي څه لاره اووهله نو هغوئ دځپلو بعضو محرم ملګرو سره روستو پاتي شول او ابو قتاده هم پخپله غير محرم وو او په دي دوران كي هغوئ يوه شنه غوا اوليده نو ابو قتاده پخپل اس سور شو او ملګرو ته يي اووئيل چي زما داس وهلو كوړه ماته راكړئ نو هغوئ ورته ددي دوركولو نه انكار اوكړو، بيا يي ورنه خپله نيزه اوغوښتله نو خلقو ورته ددي دپورته كولو او وركولو نه هم انكار اوكړو نو ابو قتاده دا پخپله پورته كړل او په ښكار پسي وريسي شو تردي چي ښكار يي اوكړو بعضي صحابه كرامو ددي ښكار نه خوراك اوكړو او بعضو اونه خوړله او بيا دوئ په نبي كريم صلي الله عليه وسلم پسي خان اورسولو او په دي باره كي يي ورنه تپوس اوكړو رسول الله اوفرمائيل دا خو يوه غذاء ده كومه چي الله تعالي ستاسو نصيب كړه.

**د ابو قتاده حارث بن ربعي رضي الله عنه حالات:**

نوم ابوقتاده لقب فارس رسول الله صلي الله عليه وسلم په خزرج قبيله كي يي دسلمه خاندان سره تعلق وو.

دهجرت نه لس كاله مخكي په مدينه كي پيدا شوى وو او دغزوه بدر نه علاوه يي په تمامو غزواتو كي شركت كړى وو علي رضي الله عنه ده لره دمكي امير مقرر كړى وو قتاده ډير زيات متواضع وو او د درس حلقه يي په همدي وجه وسيع وه په حديبيه كي چي كله درسول الله صلي الله عليه وسلم سره مكي ته تلو نو په لاره كي يي ددوستانو او ملګرو سره ټوقي او خندا كوله (مسند احمد).

په غزوه حنين كي چي دلويو لويو جانبازانو قدمونه اوخويدل نو پدغه وخت كي دابوقتاده خپي مضبوطي وي دحديث په بيانولو كي يي ډير احتياط كولو چي كله يي درسول الله صلي

[1] ـ البخاري في جزاء الصيد ٣ (١٨٢٣). والجهاد ٨٨ (٢٩١٣). والذبائح ١٠ (٥٤٩٠). و١١ (٥٤٩٢). صحيح مسلم في الحج ٨ (١١٩٦). سنن ابي داود في الحج ٤١ (١٨٥٢). سنن النسائي في الحج ٧٨ (٢٨١٨). (تحفة الأشراف: ١٢١٣١). موطا امام مالك في الحج ٢٤ (٧٦). مسند احمد (٥ في ٣٠١) وأخرجه صحيح البخاري في جزاء الصيد ٢ (١٨٢١). و٣ (١٨٢٢). و٥ (١٨٢٣). والهبة ٣ (٢٥٧٠). والجهاد ٤٦ (٢٨٥٤). والأطعمة ١٩ (٥٤٠٦، ٥٤٠٧). سنن ابن ماجه في المناسك ٩٣ (٣٠٩٣). مسند احمد (٥ في ٣٠٧). سنن الدارمي في المناسك ٢٢ (١٨٦٧)

الله عليه وسلم نه من كذب علي متعمدا والا روايت واوريدو نو نور زيات احتياط يي هم شروع كړو (مسند احمد)
وفات دده په وفات كي اختلاف دى بعضو ۴۹هجري كوفه ليكلي ده ليكن داكثرو په نزد دپنځوس او شپيتوو په مينځ كي دده وفات شوى دى
دده دمروياتو شمير ۱۷۰دى چي يولس په بخاري او مسلم كي متفق عليه دي دولس په بخاري كي دي او اته په مسلم كي دي

******************

۸۴۸ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ فِي حِمَارِ الْوَحْشِ مِثْلَ حَدِيثِ أَبِي النَّضْرِ غير ان في حديث زيد بن اسلم ان رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: "هَلْ مَعَكُمْ مِنْ لَحْمِهِ شَيْءٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : په دي سند باندي هم دابوقتاده نه دشني غوا په باره كي دابونضر دروايت پشان روايت مروي دي البته دزيد بن اسلم په دي حديث كي دومره اضافه ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ايا تاسو سره ددغه غوا په غوښه كي څه باقي پاتي شته؟
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

******************

## ۲۶ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ لَحْمِ الصَّيْدِ لِلْمُحْرِمِ

### دمحرم دپاره دښكار دغوښي دحرمت بيان

۸۴۹ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ الصَّعْبَ بْنَ جَثَّامَةَ أَخْبَرَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِ بِالْأَبْوَاءِ أَوْ بِوَدَّانَ، فَأَهْدَى لَهُ حِمَارًا وَحْشِيًّا، فَرَدَّهُ عَلَيْهِ، فَلَمَّا رَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا فِي وَجْهِهِ مِنَ الْكَرَاهِيَةِ، فَقَالَ: "إِنَّهُ لَيْسَ بِنَا رَدٌّ عَلَيْكَ وَلَكِنَّا حُرُمٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ

---

[1] ـ البخاري في جزاء الصيد ۴ (۱۸۲۳) . والجهاد ۸۸ (۲۹۱۴) . والذباغ ۱۰ (۵۴۹۰) . و۱۱ (۵۴۹۲) . مسلم في الحج ۸ (۱۱۹۶) . ابي داود في الحج ۴۱ (۱۸۵۲) . سنن النسائي في الحج ۷۸ (۲۸۱۸) . (تحفة الأشراف : ۱۲۱۳۱) . موطا امام مالک في الحج ۲۴ (۷۶) مسند احمد (۵ في ۳۰۱) وأخرجه صحيح البخاري في جزاء الصيد ۲ (۱۸۲۱) و۳ (۱۸۲۲) . و۵ (۱۸۲۴) . والهبة ۳ (۲۵۷۰) والجهاد ۴۶ (۲۸۵۴) . والأطعمة ۱۹ (۵۴۰۶ . ۵۴۰۷) . سنن ابن ماجه في المناسک ۹۳ (۳۰۹۳) مسند احمد (۵ / ۳۰۷) . سنن الدارمي في المناسک ۲۲ (۱۸۶۷)

صَحِيحٌ. وَقَدْ ذَهَبَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ إِلَى هَذَا الحَدِيثِ وَكَرِهُوا أَكْلَ الصَّيْدِ لِلْمُحْرِمِ. وقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنَّمَا وَجْهُ هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَنَا إِنَّمَا رَدَّهُ عَلَيْهِ. لَمَّا ظَنَّ أَنَّهُ صِيدَ مِنْ أَجْلِهِ وَتَرَكَهُ عَلَى التَّنَزُّهِ. وَقَدْ رَوَى بَعْضُ أَصْحَابِ الزُّهْرِيِّ. عَنِ الزُّهْرِيِّ هَذَا الحَدِيثَ. وَقَالَ: أَهْدَى لَهُ لَحْمَ حِمَارٍ وَحْشٍ. وَهُوَ غَيْرُ مَحْفُوظٍ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ. وَزَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ. ([1])

**ترجمه** . عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي صعب بن جثامه راته اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم په ابواء يا ودان مقام كي ددوئ په خوا كي تير شو نو هغوئ ورته يوه شنه غوا په هديه كي وركړه نو رسول الله دا واپس كړه نو دهغوئ په تندو كي دخفگان اثار ښكاره شو كله چي رسول الله دا منظر اوكتلو نو وېي فرمائيل مونږ يي تاسو ته واپس كوو نه ليكن مونږ په احرام كي يو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي يو جماعت په دي باندي قول كول اختيار كړي دي او هغوئ دمحرم دپاره دښكار دغوښي خوړل مكروه گنړلي دي ، امام شافعي وائي زمونږ په نزد دا حديث مؤل دي په دي كي توجيه داده چي رسول الله غوښه صرف په دي وجه واپس كړه چي دا گمان يي اوكړو چي گويا كي دا زمونږ دپاره ښكار كړي شوي ده نو دا يي تنزيها پريخوده، دزهري بعضي شاگردانو دا حديث دزهري نه نقل كړي دي او په دي كي د "اهدي له حمارا وحشي" په ځاي باندي "اهدي له لحم حمار وحش" الفاظ منقول دي ليكن دا روايت غير محفوظ دي، په دي باب كي دعلي او زيد بن ارقم رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي

## دحلال د ذبح شوي ښكارد محرم دپاره خوراك

(١) احناف فقهاء وايي كه غيرمحرم كس ښكار اوكړو،اوهغه ئې ذبح كړلو،اوبيا ئې په محرم باندې اوخوړلو،نوپه محرم باندې څه ضمان نه واجبيږي،خوپه دې شرط چې نه ورته محرم دلالت كړي وي،اونه ئې ورته حكم كړې وي.

ددي قول دليل دادى چي يوځل صحابه كرامو دهغه ښكارپه باره كي بحث شروع شو،كوم چې د محرم دپاره شوې وي،په دې كي د صحابه كرامو (رضي الله عنهم) آوازونه اوچت

[1] ــ البخاري في جزاء الصيد ٦ (١٨٢٥) . والهبة ٦ (٢٥٧٣) . و١٧ (٢٥٩٦) . صحيح مسلم في الحج ٨ (١١٩٣) . سنن النسائي في الحج ٧٩ (٢٨٢١ . ٢٨٢٢ . ٢٨٢٥ . ٢٨٢٦) . سنن ابن ماجه في المناسك ٩٢ (٣٠٩٠) . (تحفة الأشراف : ٤٩٤٠) . موطا امام مالك في الحج ٢٣ (٨٣) . مسند احمد (٣ في ٣٧ . ٣٨ . ٤١ . ٧٣) . سنن الدارمي في المناسك

شول،نبی په خپله حجره مبارکه کي په خوب اوده وو،نو بيدار شو،اوبهرته راووتلو.تپوس نې اوکړو چی تاسوپه څه کي بحث کوئ، صحابه کرامو (رضي الله عنهم) ورته ټوله واقعه بيان کړه.نونبی ﷺ اوفرمائيل "لابأس به" يعنی دې په خوراك کي څه باك نشته.

(۲) اوامام مالك (رحمه الله)فرمائی،که غيرمحرم په دې اراده ښکار اوکړو چی دا به په محرم باندې خورم،اومحرم د هغې نه خوراك اوکړلو،نوپه دې صورت کي په محرم باندې دخوړلې شوې غوښې ضمان واجب دي برابره ده که محرم ورته د ښکارحکم کړې وی اوکه نه،

دامام مالك (رحمه الله)دليل هغه حديث دې چی په هغې کي فرمائی،په محرم باندې د هغه ښکار په غوښه کي څه باك نشته چی نه يي ښکارکړې وی،اونه دده دپاره ښکارشوې وی،ګورئ ددې حديث نه معلومه شوه چی کوم ښکارد محرم دپاره شوې وی.دده دپاره د هغې خوراك هم روا نه دي

امام مالك (رحمه الله)چی کوم حديث په استدلال کي پيش کړي دي په هغې کي "لام" د تمليك دپاره دي نوپه دې صورت کي د هغې مطلب دا شو چی د محرم دپاره دداسې ښکارپه غوښه خوړلو کي څه باك نشته چی نه ده په خپله ښکارکړې وی.اونه دده دپاره ښکارشوې وی،اولامړ شوې نه وی چی محرم دهغې مالك جوړ کړې شی،يعنی که غيرمحرم ښکار اوکړو ،اوژوندې هغه ښکارد محرم ملکيت اوګرځوی،نوپه دې صورت کي چونکه د ښکارساه دده په ملکيت کي وتلې ده،نوده دپاره د هغې خوراك روا نه دي البته که ده ته غوښه ورکړی،نوپه دۀ دهغې د غوښې د قيمت څه ضمان نشته، يا ددې حديث مطلب دادی چی ښکارد محرم په حکم سره نه وی شوې،که د محرم په حکم سره شوې وی.نوبيا هم د محرم دپاره دهغې خوراك روا نه دي ددې دواړو تاويلونو نه پس دغه حديث د امام مالك (رحمه الله)مستدل نشی پاتې کيدې

**دصعب بن جثامه رضي الله عنه حالات**

نوم صعب دپلار نوم جثامه بن يزيد بن قيس بن عبدالله چي دليثي قبيلي سره تعلق لري او په ابواء مقام کي چي په حجاز کي واقع دی قيام کولو همداوجه ده چي اکثر داهل حجاز نه روايت کوي او دصديق اکبر رضي الله عنه په دور خلافت کي وفات شوی دی

مرويات: ۱۲احاديث ورنه منقول دي چي دوه په دي کي متفق عليه دي.

***************

## ۲۷_ بَابُ مَا جَاءَ فِي صَيْدِ الْبَحْرِ لِلْمُحْرِمِ

**دمحرم دپاره دسمندر دښکار بيان**

٨٥٠_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَزِّمِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ، فَاسْتَقْبَلَنَا رِجْلٌ مِنْ جَرَادٍ، فَجَعَلْنَا نَضْرِبُهُ بِسِيَاطِنَا وَعِصِيِّنَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُوهُ فَإِنَّهُ مِنْ صَيْدِ الْبَحْرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي الْمُهَزِّمِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبُو الْمُهَزِّمِ اسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ سُفْيَانَ، وَقَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ شُعْبَةُ، وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ لِلْمُحْرِمِ أَنْ يَصِيدَ الْجَرَادَ وَيَأْكُلَهُ، وَرَأَى بَعْضُهُمْ عَلَيْهِ صَدَقَةً إِذَا اصْطَادَهُ وَأَكَلَهُ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ به درسول الله صلي الله عليه وسلم سره حج يا عمري ته تلو او کله کله به زمونږ مخي ته دملخ يوه خپه راغله نو مونږ به دا په کوړو او په همسا ګانو اووهله رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا اوخورئ ځکه چي دا دسمندر ښکار دي.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي ځکه چي دا صرف دابو المهزم په سند مسند دي کوم چي هغه دابوهريره نه نقل کړي دي، او دابو المهزم نوم يزيد بن سفيان دي او شعبه په يزيد بن سفيان باندي کلام کړي دي، داهل علمو يو جماعت محرم ته دملخ دښکار کولو او ددي دخوړلو اجازت ورکړي دي او دبعضي علماؤ قول دي که محرم دي لره ښکار کړي او دا اوخوري نو فديه ورکول ورباندي لازم کيږي

***************

## ٢٨_ باب مَا جَاءَ فِي الضَّبُعِ يُصِيبُهَا الْمُحْرِمُ

### محرم که خادمی ښکار کړي نو څه حکم دي

٨٥١_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي عَمَّارٍ، قَالَ: قُلْتُ لِجَابِرٍ: الضَّبُعُ أَصَيْدٌ هِيَ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: قُلْتُ آكُلُهَا، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: قُلْتُ: أَقَالَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: وَرَوَى جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ هَذَا

---

[1] _ سنن ابي داود في الحج ٤٢ (١٨٥٣). سنن ابن ماجه في الصيد ٩ (٣٢٢٢). (تحفة الأشراف: ١٤٨٣٢). مسند احمد (٢/ ٣٠٦، ٣٦٣)

الْحَدِيثَ، فَقَالَ: عَنْ جَابِرٍ، عَنْ عُمَرَ، وَحَدِيثُ ابْنِ جُرَيْجٍ أَصَحُّ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي الْمُحْرِمِ إِذَا أَصَابَ ضَبُعًا، أَنَّ عَلَيْهِ الْجَزَاءَ. (1)

**ترجمه** دابن ابي عماربيان دي فرمائي چي ما دجابر رضي الله عنه نه تپوس اوکړو ايا زغلول په ښکار کي داخل دي ؟ هغوئ اوونيل هو، ما ورنه تپوس اوکړو ايا زه يي خوړلي شم هغوئ اوفرمائيل هو، ما اوونيل ايا دا رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي؟ هغوئ اوونيل هو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي ، علي بن مديني وائي چي ديحي بن سعيد بيان دي چي دا حديث جرير بن حزم هم نقل کړي دي ليکن هغوئ دجابر نه او جابر دعمر رضي الله عنه نه نقل کړي دي مګر دابن جريج حديث زيات صحيح دي همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول دي او دبعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي چي محرم که ښکار اوزغلوي او يا ښکار اوکړي او يا يي اوخوري نو په ده باندي فديه لازمه ده.

****************

## ٢٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي الِاغْتِسَالِ لِدُخُولِ مَكَّةَ

### مکي ته د داخليدو دپاره دغسل کولو بيان

٨٥٢_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ صَالِحٍ الْبَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "اغْتَسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِدُخُولِهِ مَكَّةَ بِفَخٍّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ كَانَ يَغْتَسِلُ لِدُخُولِ مَكَّةَ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ يُسْتَحَبُّ الِاغْتِسَالُ لِدُخُولِ مَكَّةَ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ، ضَعَّفَهُ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَعَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ وَغَيْرُهُمَا، وَلَا نَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِهِ. (2)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم مکي ته د داخليدو دپاره په فتح مقام کي غسل اوکړو.

---

1 _ ابي داود في الأطعمة ٣٢ (٣٨٠١). سنن النسائي في الحج ٨٩ (٢٨٣٩). والصيد ٢٨ (٤٣٢٨). سنن ابن ماجه في المناسك ٩٠ (٣٠٨٥). والصيد ١٥ (٣٢٣٦). (تحفة الأشراف: ٢٣٨١). مسند احمد (٣ في ٢٩٧، ٣١٨، ٣٢٢). سنن الدارمي في المناسك ٩٠ (١٩٨٣)

2 _ تفرد المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٤٣٢)

امام ترمذي وائي دا حديث غير محفوظ دي صحيح روايت هغه دي کوم چي نافع دابن عمر نه نقل کړي دي چي رسول الله مکي ته د داخليدو دپاره غسل کولو او همدا دامام شافعي قول دي چي مکي ته د داخليدو دپاره غسل کول مستحب دي، عبدالرحمن بن زيد بن اسلم په حديث کي ضعيف ګڼرلي شي ، احمد بن حنبل ، علي بن مديني وغيره دده تضعيف کړي دي او دا حديث مونږ ته صرف دده په سند مرفوع رارسيدلي دي

***************

## ٣٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي دُخُولِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ مِنْ أَعْلاَهَا وَخُرُوجِهِ مِنْ أَسْفَلِهَا

**دنبي کريم صلي الله عليه وسلم مکي ته دپاسه طرف نه دداخليداو دلاندې طرف نه د وتلو بيان**

٨٥٣_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "لَمَّا جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى مَكَّةَ، دَخَلَ مِنْ أَعْلاَهَا وَخَرَجَ مِنْ أَسْفَلِهَا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي کله به رسول الله صلي الله عليه وسلم مکي ته تلو نو دپورتني طرف نه به داخليدو او د ښکته طرف نه به وتلو
امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي.

***************

## ٣١_ بَاب مَا جَاءَ فِي دُخُولِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ نَهَارًا

**دورځي په وخت کي درسول الله مکي ته د داخليدو بيان**

[1] _ البخاري في الحج ٤١ (١٥٧٦) . صحيح مسلم في الحج ٣٧ (١٢٥٧) . سنن ابي داود في الحج (١٨٦٩) (تحفة الأشراف : ١٦٩٢٣) وأخرجه صحيح البخاري في المغازي ٤٩ (٤٢٩٠) . سنن ابي داود في الحج ٤٥ (١٨٦٨)

٨٥٤ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا الْعُمَرِيُّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "دَخَلَ مَكَّةَ نَهَارًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (1)

**ترجمه** عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي رسول الله صلي الله عليه وسلم به مكي ته دورځي په وخت كې داخليدو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

## ٣٢ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ رُؤْيَةِ الْبَيْتِ

### دكعبې دليدو وخت كې دلاسونو پورته كولو دكراهت بيان

٨٥٥ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي قَزَعَةَ الْبَاهِلِيِّ، عَنِ الْمُهَاجِرِ الْمَكِّيِّ، قَالَ: سُئِلَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: أَيَرْفَعُ الرَّجُلُ يَدَيْهِ إِذَا رَأَى الْبَيْتَ؟ فَقَالَ: "حَجَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُنَّا نَفْعَلُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: رَفْعُ الْيَدَيْنِ عِنْدَ رُؤْيَةِ الْبَيْتِ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي قَزَعَةَ، وَأَبُو قَزَعَةَ اسْمُهُ سُوَيْدُ بْنُ حُجَيْرٍ. (2)

**ترجمه** دمهاجر مكي بيان دي دجابر بن عبدالله نه تپوس اوكړي شو چې كله يو كس كعبه اووينې نو ايا خپل دواړه لاسونه به پورته كوي؟ جابر په جواب كې اووئيل مونږ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره حج كړي دي نو ايا مونږ داسې كړي دي؟

امام ترمذي وائي بيت الله ته كتلو وخت كې دلاسونو پورته كولو حديث مونږ ته دشعبه په سند رارسيدلي دي او شعبه دابوقزعه نه روايت كوي او دقزعه نوم سويد بن حجير دي

***************

## ٣٣ـ باب مَا جَاءَ كَيْفَ الطَّوَافُ

### دطواف كيفيت بيان

٨٥٦ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ، دَخَلَ الْمَسْجِدَ،

---

1 ـ ابن ماجه في المناسك ٢٦ (٢٩٤١) (تحفة الأشراف: ٧٧٣٢)

2 ـ ابي داود في الحج ٤٦ (١٨٧٠)، سنن النسائي في الحج ١٢٢ (٢٨٩٨)، سنن الدارمي في المناسك ٧٥ (١٩٦١) (تحفة الأشراف: ٣١١٦)

فَاسْتَلَمَ الْحَجَرَ، ثُمَّ مَضَى عَلَى يَمِينِهِ، فَرَمَلَ ثَلَاثًا وَمَشَى أَرْبَعًا، ثُمَّ أَتَى الْمَقَامَ، فَقَالَ: " وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى سورة البقرة آية ١٢٥ ". فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَالْمَقَامُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْبَيْتِ، ثُمَّ أَتَى الْحَجَرَ بَعْدَ الرَّكْعَتَيْنِ فَاسْتَلَمَهُ، ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّفَا أَظُنُّهُ، قَالَ: " إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ سورة البقرة آية ١٥٨ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مكي ته راغي نو مسجدالحرام ته داخل شو او حجر اسود يي ښكل كړو بيا ښي طرف ته روان شو اودري چكرونو كي يي رمل اوكړو او په څلورو چكرونو كي په عام رفتار لاړو او بيا مقام ابراهيم ته ورغلو او ويي فرمائيل "مقام ابراهيم لره دمونځ كولو ځاي اوګرځوه" چنانچه دوه ركعاته مونځ يي اوكړو او مقام ابراهيم دده او دبيت الله په مينځ كي وو بيا د دوه ركعاتو كولو نه پس حجر اسود ته راغي او استلام يي اوكړو او بيا صفا ته روان شو زما خيال دي چي هلته يي دا ايت كريمه اولوستلو "ان الصفا والمرئة من شعائرالله" يعني صفا او مروه دالله تعالي ددين دنشاناتو نه دي.

امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي، او داهل علمو په همدي باندي عمل دي.

**تشريح:** **مكې ته د داخليدو نه پس اول كوم كار كوي**

فرمانى چي محرم چي څنګه مكي ته داخل شي نو د ټولو نه اول به مسجد ته داخليږى څكه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم كله مكي ته داخل شو نود ټولو نه اول مسجد ته داخل شو، په صحيحينو كي د عائشه رضى الله عنها دا حديث داسې دې:

"إن أول شئ بدأ به رسول الله صلي الله عليه وسلم حين قدم مكة أن توضأ ثم طاف بالبيت" **يعنى** مكې مكرمې ته چى رسول پاك صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو نود ټولونه په اولنو كارونو كي دا وو چى اودس ئې اوكړلو، اود بيت الله نه ئې طواف اوكړلو.

[1] ـ مسلم في الحج ١٩ (١٢١٨). سنن ابي داود في الحج ٥٧ (١٩٠٥). والحروف ١ (٣٩٦٩). سنن النسائي في الحج ١٣٩ (٢٩٤٢). ١٤٣ (٢٩٦٣ ٢٩٦٥)، ١٦٣ (٢٩٦٦)، و١٤٢ (٢٩٧٧) سنن ابن ماجه في الإقامة ٥٦ (١٠٠٨) والمناسك ٢٩ (٢٩٥١)، و٨٤ (٣٠٧٤). (تحفة الأشراف: ٢٥٩٤ و٢٥٩٥ و٢٥٩٦). مسند احمد (٣ في ٣٢٠). سنن الدارمي في المناسك ١١ (١٨٣٦). وانظر ما يأتي برقم: ٨٥٧ و٨٦٢ و٢٩٦٧)

دويم دليل دادی چی د سفرمقصود د بيت الله زيارت كول دی.اوبيت الله په مسجد كي دي نود تولو نه اول دي مسجد ته داخل شی.اوبيا د مسجد حرام په دروازو كي د باب السلام نه داخليدل مستحب دی ځكه چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم هم په دې دروازه مسجد حرام ته داخل شوي وو.اودا دعا ئې غوښتله:

"اللهم أنت ربي وأنا عبدك جئت لأودي فرضك وأطلب رحمتك وألتمس رضاك متبعاً لأمرك راضياً بقضائك أسلك مسئلة المضطرين المشفقين من عذابك أن تستقبلني اليوم بعفوك وتحفظني برحمتك وتجاوز عني بمغفرتك وتعينني على أداء فرائضك اللهم افتح لي أبواب رحمتك.وأدخلني فيها وأعذني من الشيطان الرجيم"

يعني اې الله ته زما رب اوزه ستا بنده يم.زه ستا د فرض ادا كولودپاره حاضرشوې يم.ستا د رحمت غوښتونكې يم.ستا دحكم تابعداری كوم.او ستا د رضا طلبګار يم.زه ستا په فيصله په سرسترګوراضی يم.زه ستا نه دهغه كسانو پشان.سوال كوم چی محتاج وی اوستاد عذاب نه ويريږی چی ته نن ما سره د معافئ سلوك اوكړې.اوبه خپل رحمت زما حفاظت اوكړې،اوته به خپل مغفرت ما ته معافی اوكړې.اودخپلو فرائضو په ادا كولو كي زما مدد اوكړې.اې الله زما دپاره دخپل رحمت دروازې پرانزې،اوما ورته داخل كړه.اود شيطان رټلی شوی نه زما حفاظت اوكړې.

## د بيت الله د ليدو په وخت كي مسنون عمل

مسئله دا ده چی كله ئې په بيت الله نظراولګی نو الله اكبر دې اووائی.اوبه زړه كي دې ددې مقدس مقام عظمت حاضر كړی،اود توحيد د تجديد دپاره دې "لاإله إلا الله" اووائی.او چی هغه وخت څه مناسب وی نوهغه دعا دې اوكړی ځكه چی د بيت الله د ليدو په وخت كي دعا مستجابه اومقبوله وی.

امام شافعی (رحمه الله) د سعيد بن جبير نه اوهغوی د ابن جريج نه دا دعا نقل كړې ده:

"أن النبي صلي الله عليه وسلم كان إذا رأى البيت رفع يديه وقال اللهم زد هذا البيت تشريفاً وتكريماً ومهابة وزد من شرفه وكرمه ممن حجه أوإعتمر تشريفاً وتكريماً وبراً"

(٢) اودعطاء (رحمه الله) نه نقل دی چی رسول الله صلي الله عليه وسلم به بيت الله ته اوكتل نودا به ئې فرمائيل:

"أعوذ برب البيت من الكفر والفقر وضيق الصدر وعذاب القبر"

بهرحال په تكبير اوتهليل باندې د عبدالله رضی الله عنه عمل مستدل دې چی هغوی به كله هم د بيت الله زيارت كولو نو"بسم الله والله أكبر"به ئې وئيل،

امام محمد (رحمه الله) په اصل (مبسوط) کي دمشاهدحج دپاره څه دعا نه ده مقرر کړې ځکه چې تعين ددعا دزړه نرم والي زائله کوي. (اشرف الهدايه)

****************

## ٣٤ـ باب مَا جَاءَ فِي الرَّمَلِ مِنَ الْحَجَرِ إِلَى الْحَجَرِ

### دحجر اسود نه دحجر اسود پورې درمل کولو بيان

٨٥٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " رَمَلَ مِنَ الْحَجَرِ إِلَى الْحَجَرِ ثَلَاثًا وَمَشَى أَرْبَعًا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: إِذَا تَرَكَ الرَّمَلَ عَمْدًا فَقَدْ أَسَاءَ وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ، وَإِذَا لَمْ يَرْمُلْ فِي الْأَشْوَاطِ الثَّلَاثَةِ لَمْ يَرْمُلْ فِيمَا بَقِيَ. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَيْسَ عَلَى أَهْلِ مَكَّةَ رَمَلٌ وَلَا عَلَى مَنْ أَحْرَمَ مِنْهَا. ([1])

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه روايت دی نبي كريم صلي الله عليه وسلم دحجر اسود نه دحجر اسود پورې په درې چکرونو کې رمل اوکړو او په څلورو چکرونو کې په عام رفتار لاړو.
امام ترمذي وائي دجابر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دی، اوپه دې باب کې دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دی او داهل علمو په همدې باندې عمل دی. امام شافعي وائي کله چې څوک قصدا عمدا رمل پرېږدي نو غلطي يې اوکړه ليکن کومه جرمانه وربانديې نه واجب کيږي او چاچې په ابتدائي دريو چکرونو کې رمل اونکړو نو په باقي چکرونو کې به هم رمل نه کوي، دبعضې اهل علمو قول دی داهل مکه دپاره رمل نشته او نه په هغه چا رمل شته چاچې دمکې نه احرام تړلی وي.

****************

## ٣٥ـ باب مَا جَاءَ فِي اسْتِلاَمِ الْحَجَرِ وَالرُّكْنِ الْيَمَانِي دُونَ مَا سِوَاهُمَا

---

[1] ـ مسلم في الحج ١٩ (١٢١٨)، سنن ابي داود في الحج ٥٧ (١٩٠٥)، والحروف ١ (٣٩٦٩)، النسائي في الحج ١٣٩ (٢٩٤٢)، ١٦٣ (٢٩٦٣، ٢٩٦٥)، و١٦٤ (٢٩٦٦)، و١٤٧ (٢٩٤٧) ابن ماجه في الإقامة ٥٦ (١٠٠٨)، والمناسک ٢٩ (٢٩٥١)، و٨٤ (٣٠٧٤)، (تحفة الأشراف: ٢٥٩٣، و٢٥٩٥ و٢٥٩٦)، مسند احمد (٣ في ٣٢٠)، سنن الدارمي في المناسک ١١ (١٨٣٦)، وانظر مايأتي برقم: ٨٥٤ و٨٦٣ و٢٩٦٧)

## دبيت الله د نورو كوټو نو دپريخودو په حال كي صرف دحجر اسود او ركن يماني داستلام بيان

٨٥٨ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، وَمَعْمَرٌ، عَنِ ابْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَمُعَاوِيَةُ لَا يَمُرُّ بِرُكْنٍ إِلَّا اسْتَلَمَهُ، فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ: "إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَسْتَلِمُ إِلَّا الحَجَرَ الأَسْوَدَ، وَالرُّكْنَ اليَمَانِيَ" فَقَالَ مُعَاوِيَةُ: لَيْسَ شَيْءٌ مِنَ البَيْتِ مَهْجُورًا. قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ، أَنْ لَا يَسْتَلِمَ إِلَّا الحَجَرَ الأَسْوَدَ، وَالرُّكْنَ اليَمَانِيَ.[1]

**ترجمه** دابو الطفيل بيان دي فرمائي چي زه دعبدالله بن عباس سره وم معاويه رضي الله عنه چي به دكوم ركن سره تيريدلو استلام به يي كولو نو ابن عباس ورته اوويل نبي كريم صلي الله عليه وسلم دحجر اسود او ركن يماني نه علاوه استلام نه دي كړي معاويه رضي الله عنه اوويل دبيت الله هيڅ يو ځيز دپريخودو لائق نه دي

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعمر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او په همدي باندي داكثرو اهل علمو عمل هم دي چي دحجر اسود او ركن يماني نه علاوه دبل مقام استلام كول پكار نه دي

### دابو الطفيل رضى الله عنه حالات

دټولو نه اخري صحابي ابو الطفيل بن عامر بن وائله رضي الله عنه وو او دده وفات درسول الله دفرمان نه پوره سل كاله پس شوى وو.

**************

## ٣٦ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ مُضْطَبِعًا

### داحرام څادر دچپ طرف ترخ نه لاندي اوبيا ددي څادر دواړه كوټونه په اوږو باندي داچولو په حال كي درسول الله دطواف كولو بيان

٨٥٩ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ الحَمِيدِ، عَنِ ابْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "طَافَ بِالبَيْتِ مُضْطَبِعًا وَعَلَيْهِ بُرْدٌ". قَالَ أَبُو

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٨٠)

عِيسَى: هَذَا حَدِيثُ الثَّوْرِيِّ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِهِ، وَهُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَبْدُ الْحَمِيدِ هُوَ ابْنُ جُبَيْرَةَ بْنِ شَيْبَةَ، عَنِ ابْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ وَهُوَ يَعْلَى بْنُ أُمَيَّةَ. (1)

**ترجمه** ديعلي بن اميه رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم د اضطباع په حالت كي دبيت الله طواف اوكړو او په جسم مبارك يې يو څادر پروت وو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او همدا دثوري حديث دي كوم چي هغه دابن جريرج نه نقل كړي دي او دا مونږ ته صرف دابن جريرج په سند معلوم دي. عبدالحميد دجبيره بن شيبه څوي دي چاچي دابن يعلي نه او ابن يعلي دخپل پلار نه روايت نقل كړي دي او ديعلي نه مراد يعلي بن اميه رضي الله عنه دي

***************

## ٣٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي تَقْبِيلِ الْحَجَرِ

### دحجر داسود دښكلولو بيان

٨٦٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَابِسِ بْنِ رَبِيعَةَ، قَالَ: رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يُقَبِّلُ الْحَجَرَ، وَيَقُولُ: "إِنِّي أُقَبِّلُكَ وَأَعْلَمُ أَنَّكَ حَجَرٌ، وَلَوْلَا أَنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُكَ لَمْ أُقَبِّلْكَ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** عابس بن ربيعه وائي چي ما عمر فاروق رضي الله عنه حجراسود لره ښكلونكى اوليدو او دا مي تري واوريدل چي ونيل يي: ماته پته ده چي ته صرف يوكاڼړى يى نه څه فائده وركولى شي نه نقصان كه چري ما رسول الله صلي الله عليه وسلم تالره ښكلونكى نه وى ليدلى نو مابه ته نه ويى ښكل كړى.

امام ترمذي وائي دعمر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابو بكر او دابن عمر رضي

---

[1] _ ابى داود في الحج ٥٠ (١٨٨٣) . سنن ابن ماجه في المناسک ٣٠ (٢٩٥٤) . (تحفة الأشراف : ١١٨٣٩) . مسند احمد (٤ في ٢٢٢) . سنن الدارمى في المناسک ٢٨ (١٨٨٥)

[2] _ البخارى في الحج ٥٠ (١٥٩٧) . و٥٧ (١٦٠٥) . (١٦١٠) . صحيح مسلم في الحج ٤١ (١٢٧٠) . سنن ابى داود في المناسک ٤٧ (١٨٧٣) . سنن النسائى في الحج ١٤٧ (٢٩٤٠) . سنن ابن ماجه في المناسک ٢٧ (٢٩٤٣) . (تحفة الأشراف : ١٠٤٧٣) . مسند احمد (١ في ٢٦. ٤٦) وأخرجه موطا امام مالک في الحج ٣٦ (١١٥) . مسند احمد (١ في ٢١. ٣٤. ٣٥. ٣٩. ٥١. ٥٣. ٥٤) . سنن الدارمى في المناسک ٤٢ (١٩٠٦)

الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

**لغات** يقبل: قبل يقبل تقبيلا د باب تفعيل نه په معني دمسه كولو، اوچا لره دښكلولو په معني دي.

تنفع: نفع ينفع نفعا دفتح نه په معني دفائدي وركولو دي.

تضر: ضر ضرا دنصر نه په معني دنقصان رسول او تكليف وركولو دي

**تشريح** : "اعلم انك حجر ماتنفع ولاتضر" يعني عمر فاروق رضي الله عنه حجر اسود مخاطب كړو او وېې وئيل ته خو يو كاڼړى يې چې نه فائده وركولى شي او نه نقصان دفع كولى شي په يوبل روايت كي راغلي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اني لاعلم انك حجر لاتنفع ولاتضر ولولا امرني ربي ان اقبلك ماقبلتك. يعني ته خو يو كاڼړى يې چې دنفعي او نقصان اختيار نه لري خو كه ماته زما رب ستا دښكلولو حكم نه وى كړى نو مابه ته نه وي ښكل كړى، غرض دا چې همدا خبره عمر فاروق رضي الله عنه اوكړه او دا يې په هغه وخت كي اوكړه كله چې يو څو نوي باندچيان مسلمانان موجود وو دا ددي دپاره چې هغوئ دا ګمان اونكړي چې په دي كاڼړي كي كوم اثر شته بلكي ددي ښكلول صرف داتباع رسول په بنياد دي يعني چې رسول الله ښكل كړى وو او زه يې هم دهغه په اتباع كي ښكلوم.

ددينه دا معلومه شوه چې په اتباع رسول كي حكمت تلاش كول نه دي پكاري كله كله ددي حكمت ته ذهن رسيدى شي او په بعضي وخت كي ورته ذهن رسائي نشي كولى بهر حال اصل مقصود اتباع رسول دى ليكن علماؤ ليكلي دي چې دحجر اسود نه علاوه دبل كاڼړي ښكلول جائز نه دي

### د عابس بن ربيعه رضي الله عنه حالات:

عابس تابعي دى او حافظ ابن حجرپه كبار تابعينو كي شميرلى دى (كذا في التقريب) چې دنخع قبيلي سره يې تعلق وو څكه ورته نخعي وئيلى شي او كوفي دى علماؤ په ثقاتو كي شميرلى دى (التقريب).

****************

٨٦١ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَرَبِيٍّ، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ " عَنِ اسْتِلَامِ الحَجَرِ، فَقَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَلِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ " . فَقَالَ الرَّجُلُ: أَرَأَيْتَ إِنْ غُلِبْتُ عَلَيْهِ، أَرَأَيْتَ إِنْ زُوحِمْتُ. فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: اجْعَلْ أَرَأَيْتَ بِاليَمَنِ، رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَلِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ. قَالَ: وَهَذَا هُوَ الزُّبَيْرُ بْنُ عَرَبِيٍّ، رَوَى عَنْهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، وَالزُّبَيْرُ بْنُ عَدِيٍّ

كُوفِيٌّ يُكْنَى أَبَا سَلَمَةَ، سَمِعَ مِنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَغَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، رَوَى عَنْهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ تَقْبِيلَ الحَجَرِ، فَإِنْ لَمْ يُمْكِنْهُ وَلَمْ يَصِلْ إِلَيْهِ اسْتَلَمَهُ بِيَدِهِ وَقَبَّلَ يَدَهُ، وَإِنْ لَمْ يَصِلْ إِلَيْهِ اسْتَقْبَلَهُ إِذَا حَاذَى بِهِ وَكَبَّرَ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. (1)

**ترجمه** دزبير بن عربي نه روايت دي يو كس دابن عمر رضي الله عنهما نه دحجر اسود دښكلولو باره كي تپوس اوكړو نو هغوئ په جواب كي اووئيل ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم لره ددي په مسه كولو او ښكلولو باندي ليدلي وو هغه اووئيل دا راته اووايه كه چري زه حجر اسود ته په رسيدو كي مغلوب شم او په رش كي گير شم نو ماله څه كول پكار دي؟ ابن عمر په جواب كي اووئيل دا اګر مګر دي په يمن كي پريږده مانبي كريم صلي الله عليه وسلم لره ددي په ښكلولو او مسح كولو ليدلي دي.

دا هغه زبير بن عربي دي دچانه چي حماد بن زيد نقل دروايت كړي دي دي دكوفي اوسيدونكي دي او كنيه يي ابوسلمه ده دانس بن مالك او نورو صحابه كرامو نه يي نقل دروايت كړي دي او ددوئ نه سفيان ثوري او بعضو نورو اهل علمو نقل دروايت كړي دي. امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي او دهغوئ نه دا په بل سند باندي هم مروي دي او داهل علمو عمل هم په دي باندي دي چي هغوئ دحجر اسود ښكلول مستحب ګڼړي او كه ښكلول يي ممكن نه وي او يو كس هلته رسيدلي نشي نو دا دي په خپل لاس باندي مسح كړي او دا دي خپل لاس ښكل كړي او كه چري دي لاس مسح كولو ته هم نشي رسيدي نو كله چي ديته مخامخ كيږي دي طرف ته دي خپل خان متوجه كړي او الله اكبر دي اووائي دا دامام شافعي قول دي

*****************

## ٣٨_ باب مَا جَاءَ أَنَّهُ يَبْدَأُ بِالصَّفَا قَبْلَ الْمَرْوَةِ

### سعي به اول دصفا نه شروع كوي مخكي دمروه نه

٨٦٢_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "حِينَ قَدِمَ مَكَّةَ طَافَ بِالبَيْتِ سَبْعًا وَأَتَى المَقَامَ فَقَرَأَ: "وَاتَّخِذُوا

(1) _ البخاري في الحج ٦٠ (١٦١١). سنن النسائي في الحج ١٥٥ (٢٩٤٩). (تحفة الأشراف: ٦٤١٩). مسند احمد (٢ في ١٥٢)

مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى (البقرة:١٢٥) " فَصَلَّى خَلْفَ الْمَقَامِ، ثُمَّ أَتَى الْحَجَرَ فَاسْتَلَمَهُ، ثُمَّ قَالَ: " نَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللَّهُ بِهِ ". فَبَدَأَ بِالصَّفَا وَقَرَأَ: " إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ سورة البقرة آية ١٥٨ ".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّهُ يَبْدَأُ بِالصَّفَا قَبْلَ الْمَرْوَةِ، فَإِنْ بَدَأَ بِالْمَرْوَةِ قَبْلَ الصَّفَا لَمْ يُجْزِهِ وَبَدَأَ بِالصَّفَا، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِيمَنْ طَافَ بِالْبَيْتِ، وَلَمْ يَطُفْ بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ حَتَّى رَجَعَ، فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِنْ لَمْ يَطُفْ بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ حَتَّى خَرَجَ مِنْ مَكَّةَ، فَإِنْ ذَكَرَ وَهُوَ قَرِيبٌ مِنْهَا رَجَعَ فَطَافَ بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ، وَإِنْ لَمْ يَذْكُرْ حَتَّى أَتَى بِلَادَهُ أَجْزَأَهُ وَعَلَيْهِ دَمٌ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنْ تَرَكَ الطَّوَافَ بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ حَتَّى رَجَعَ إِلَى بِلَادِهِ فَإِنَّهُ لَا يُجْزِيهِ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، قَالَ: الطَّوَافُ بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ وَاجِبٌ لَا يَجُوزُ الْحَجُّ إِلَّا بِهِ. [1]

**ترجمه**: دجابر رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم چي كله مكي ته راغلو نو دبيت الله نه يي اوه چكرونه اولگول او دا ايت يي اولوستلو ''واتخذوا من مقام ابراهيم مصلي'' يعني مقام ابراهيم لره يي دمونځ ځاي اوګرځولو يعني دي كي مونځونه كول پكار دي (البقره ١٢٥) بيا يي دمقام ابراهيم نه شاته مونځ اوكړو او بيا حجر اسود ته راغي او ددي استلام يي اوكړو او بيا يي اوفرمائيل مونږ به سعي دهغه ځه نه شروع كوو دكوم نه چي الله تعالي شروع كوي او كه چا دصفا په ځاي دمروه نه سعي شروع كړه نو دا سعي به مقبول نه وي او دوباره به بيا دصفا نه سعي شروع كوي په اهل علمو كي په دي باره كي اختلاف دي چي چا دبيت الله طواف اوكړو او دصفا او مروه مينځ كي يي سعي پريخوده تردي چي واپس كور ته لاړو بعضي اهل علم وائي چاچي صفا مروه مينځ كي سعي اونكړه تردي چي دمكي نه بهر اووتلو او بيا ورته راياد شو او مكي ته نژدي وي نو واپس دي راشي او په صفا مروه كي دي سعي اوكړي او كه ده ته تردي پوري راياد نشول چي خپل ملك ته واپس اورسيدو نو دا به دده دطرفه كافي وي ليكن دم به ورباندي لازم وي او همدا د سفيان ثوري قول دي بعضي علماء وائي كه چا دصفا مروه مينځ كي سعي پريخوده تردي چي خپل ملك ته ورسيدو نو دا به دده

[1] ــ مسلم في الحج ١٩ (١٢١٨) . سنن ابي داود في الحج ٥٧ (١٩٠٥) . والحروف ١ (٣٩٦٩) . سنن النسائي في الحج ١٣٩ (٢٩٢٢) ١٦٣ (٢٩٦٣، ٢٩٦٥) . و١٦٣ (٢٩٦٦) . و١٧٢ (٢٩٧٧) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٥٦ (١٠٠٨) . والمناسك ٢٩ (٢٩٥١) . و ٨٣ (٣٠٧٤) . (تحفة الأشراف : ٢٥٩٣ و٢٥٩٥ و٢٥٩٦) . مسند احمد (٣ في ٣٢٠) . سنن الدارمي في المناسك ١١ (١٨٢٦) . وانظر ما يأتي برقم: ٨٥٧ و٨٦٢ و٢٩٦٧)

دپاره كافي نه وي دا دامام شافعي قول دي شافعي وائي دصفا مروه مينځ كي سعي واجب ده ددينه بغير حج درست نه دي

**تشريح:**　　**دسعي دابتداء طريقه**

كله چې د طواف قدوم نه فارغ شي نواول به د صفا مروه په مينځ كي سعي اوكړي او صفا ته به اوخيژي،اوبيت الله ته به مخ كړي،اوتكبير او،لااله الاالله، به اووائي،اوبه رسول پاك صلي الله عليه وسلم به درود اووائي،او لاس دې اوچت كړي،دخپل حاجت دپاره دې د الله تعالى نه دعا اوغواړي.

فقهاء وائي چې په صفاغونډۍ به دومره خيجي چې بيت الله دده نظر ته مخامخ راشي. حكه چې په صفا باندې د ختلونه مقصود د بيت الله استقبال دي اودا مقصود به هم په دې صورت كي حاصليږي.

صفاطرف ته د تللو دپاره حاجي ته اختيار دې چې دكومې دروازې نه غواړي،اودې خى،او نبى كريم صلي الله عليه وسلم د باب بنى مخزوم نه وتلې وو.

باب بنى مخزوم ته باب صفا هم وائى،ددې دروازې نه د نبى كريم صلي الله عليه وسلم وتل په دې وجه وو چې دا دروازه د صفا غونډۍ ته ډيره نزدې ده نو ددې دروازې نه به وتل مستحب وى. سنت به نه وى لكه چې امام شافعى (رحمه الله) د باب صفا نه وتلو ته سنت وائى.(عنايه. فتح القدير).

******************

## ٣٩ـ باب مَا جَاءَ فِي السَّعْيِ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ

### صفا مروه مينځ كي دسعي كولو بيان

٨٦٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " إِنَّمَا سَعَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ لِيُرِيَ الْمُشْرِكِينَ قُوَّتَهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ الَّذِي يَسْتَحِبُّهُ أَهْلُ الْعِلْمِ أَنْ يَسْعَى بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ. فَإِنْ لَمْ يَسْعَ وَمَشَى بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ رَأَوْهُ جَائِزًا. (1)

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٤٢١). مسند احمد (١/ ٢٥٥)

**ترجمه** : عبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دبيت الله طواف اوکړو او صفا او مروه مينځ کي يي سعي اوکړه تردي چي مشرکانو ته خپل قوت ښکاره کړي شي
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي!و په دي باب کي دعائشه، ابن عمر، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او اهل علم هم ديته مستحب وائي چي صفا مروه مينځ کي سعي کول ضروري دي او که څوك سعي اونکړي بلکي صفا مروه مينځ کي په عام رفتار لاړ شي نو علماء دا جائز ګڼړي.
**تشريح**: د صفا نه دې مروه طرف ته راکوز شي،اودير په آرام دې روان وی.بيا چی کله بطن وادی ته اورسی نود ميلين اخضرين سره دې منډه اووهی،بيا دې په آرام سره روان وی.تردې چی مروه ته اورسی،اوپه هغې دې اوخيژی،اوهغه شان اعمال دې اوکړی.څنګه چی ئې په صفا کړی وو. څکه چی منقول دی چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم د صفا نه راکوز شو،او په آرام سره مروه طرف ته روان وو،اوپه بطن وادی کي ئې منډه اووهله چی بيا کله د بطن وادی نه تير شو نومروه ته اوختلو،اود دې دواړو په مينځ کي ئې اوه چکرې اولګولې.
دصفا نه مروه ته تلل يو شوط دي اوامام طحاوی (رحمه الله) وائی چی د صفا نه مروه ته تلل اوبيا واپس مروه ته راتلل دواړه يو شوط دي خو اصح قول هغه دي کوم چی صاحب د هدايه ذکرکړې دي څکه چی د رسول پاك صلي الله عليه وسلم دحج د ناقلينو ټولو راويانو په دې باندې اتفاق دې چی رسول الله صلي الله عليه وسلم د صفا اومروه په مينځ کي اوه چکرې لګولي وې،اود امام طحاوی (رحمه الله) د بيان مطابق د اوه په ځائې څوارلس اشواط جوړيږی.(طحاوي،ابن همام)

****************

٨٦٤_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ جُمْهَانَ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يَمْشِي فِي السَّعْيِ، فَقُلْتُ لَهُ: " أَتَمْشِي فِي السَّعْيِ بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ. قَالَ: لَئِنْ سَعَيْتُ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْعَى، وَلَئِنْ مَشَيْتُ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي وَأَنَا شَيْخٌ كَبِيرٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرُوِي عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ نَحْوَهُ. (1)

---

[1] _ ابي داود في الحج ٥٦ (١٩٠٣) . سنن النسائي في الحج ١٤٣ (٢٩٤٩) . سنن ابن ماجه في المناسک ٣٣ (٢٩٨٨) . (تحفة الأشراف: ٧٣٤٩) . مسند احمد (٢ن/ ٥٣)

**ترجمه** دكثير بن جهمان بيان دي فرمائي چې ماعمر رضي الله عنه لره په سعي كې په عام رفتار كولو ليدلي وو ما ورته اوونيل ايا تاسو صفا مروه په سعي كي په عام رفتار سره ځئ (يعني منډه نه وهئ) نو هغوئ په جواب كي اوونيل كه چرې زه منډه اووهم نو رسول الله صلي الله عليه وسلم مې په منډو كولو هم ليدلي دي او كه دمنډې كولو نه بغير په عام رفتار خم نو په دې حالت كي مې هم رسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي دي او زه خو اوس ډير بوډا يم امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي ، دسعيد بن جبير په واسطه دابن عمر رضي الله عنهما نه هم ددې يو هم معني روايت مروي دي

***************

## ٤٠ـ باب مَا جَاءَ فِي الطَّوَافِ رَاكِبًا

### په سورلئ دسوريدو په حالت كي طواف كولو بيان

٨٦٥ـ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ هِلَالٍ الصَّوَّافُ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَاحِلَتِهِ فَإِذَا انْتَهَى إِلَى الرُّكْنِ أَشَارَ إِلَيْهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ، وَأَبِي الطُّفَيْلِ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يَطُوفَ الرَّجُلُ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ رَاكِبًا إِلَّا مِنْ عُذْرٍ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله سورلئ دسوريدو په حالت كي طواف اوكړو او كله چې به حجراسود ته رارسيدو اشاره به يې ورته كوله

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دې باب كي دجابر، ابوالطفيل او ام سلمه رضي الله عنها نه هم احاديث وارد دي، داهل علمو يو جماعت دبيت الله طواف او په صفا او مروه كي سعي كول د سوريدو په حالت كي مكروه ګڼړلي دي مګر دا چې څوك معذور وي نوبيا ك نشته امام شافعي هم په دې باندې قول كړي دي

**تشريح** : مذاهب دفقهاؤ:

---

[1] ـ البخاري في الحج ٦١ (١٦١٢) ، و ٦٢ (١٦١٣) ، و ٧٤ (١٦٣٢) ، والطلاق ٢٤ (٥٢٩٣) سنن النسائي في الحج ١٦٠ (٢٩٥٨) . (تحفة الأشراف : ٦٠٥٠)

دامام ابو حنيفه او امام مالك رحمهما الله په نزد طواف زيارت پيدل كول ضروري دي او كه دعذر نه بغير څوك دسوريدو په حالت كي طواف زيارت اوكړي نو دم به ورباندي واجب وي.
مګر نن سبا دسوريدو په حالت كي دطواف كولو دري شكلونه دي اول دادي چي دحرم نه بهر بعضي خلق اوسيږي چي په څاروي باندي خلق سوروي او طواف ورباندي كوي او هغوئ دا كار په مزدورئ كوي، دويم شكل دادي چي بعضي خلق په ويل چير طواف اوكړي، دريم څوك په ښا باندي دطواف دپاره ګرخول كيږي، دا دري واړه شكلونه دسورلئ دي دعذر نه بغير داسي كول د امام ابوحنيفه او مالك رحمهما الله په نزد دم واجبوي
او دامام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نزد طواف زيارت پيدل كول سنت دي كه څوك دعذر نه بغير هم دسوريدو په حالت كي طواف كوي نو جائز دي.
امام شافعي او احمد رحمهما الله وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته هم څه عذر نه وو او بيا يې په سورلئ باندي طواف كړي دي دوئ ددينه دا استدلال كوي چي بغير دعذر نه هم جائز دي.

***************

## ٤١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الطَّوَافِ

### دطواف دفضائلو بيان

٨٦٦ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَمَانٍ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ طَافَ بِالْبَيْتِ خَمْسِينَ مَرَّةً، خَرَجَ مِنْ ذُنُوبِهِ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. سَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: إِنَّمَا يُرْوَى هَذَا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَوْلُهُ. (١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي پنځوس خله دكعبي طواف اوكړو نو دي به دخپلو ګناهونو نه داسي پاك شي لكه د اول خل دمور نه دپيدائش په وخت كي دي څنګه پاك وو.
امام ترمذي وائي په دي باب كي د انس ، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، دابن عباس حديث غريب دي ما دامام بخاري نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو نو ويي وئيل دا خو دابن عباس نه دهغه دقول روايت نقل كړي شوي دي (يعني موقوف).

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٥٢١)

**تشريح** : د طواف اقسام

**طواف په دري قسمه وي:**

اول فرض طواف اودادحج او عمري رکن او ضرري جزء دي
دويم واجب طواف دي دا طواف قدوم او د رجوع دي (داولني زيارت په وخت کي او دواپسي په وخت کي طواف کول).
دريم ددي دوارو نه علاوه هر طواف نفل دي دکوم دپاره چي هيڅ وخت مقرر نه دي.
رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اي دعبد مناف اولاده په تاسو کي چي څوك دچا دامورو اختيار مند وي (يعني دحکومت کوم رکن وي يا په حکومت کي داخل وي) نو دشپي دي په هر وخت کي خلق دبيت الله دطواف نه نه منع کوي.
(رواه الشافعي واصحاب السنن وابن حبان والدارقطني والحاكم عن جبير بن مطعم وصححه)
دا حديث ترمذي په بل سند سره دجابر رضي الله عنه نه بيان کړي دي مګر دا روايت معلول دي دارقطني دابن عباس په روايت سره هم بيان کړي دي او ابو نعيم په تاريخ اصبهان کي او خطيب په تلخيص کي په يو سندسره چي ابن عباس ته يي رسولي دي مګر دا سلسله دسند هم مجروح ده ، ابن عدي په حواله دسعيد بن راشد دعطاء نه دابو هريره بيان نقل کړي دي
**مسئله** دعروه بن زبير بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم حج کړي دي او دحج تفصيل يي ماته ام المومنين عائشه رضي الله عنها بيان کړي دي چي مکي ته درسيدو نه پس يي دهر څه نه مخکي اودس اوکړو او بيايي طواف اوکړو اوپدغه وخت کي يي کومه عمره نه وه کړي. بياچي ابوبکر حج اوکړو نو دهر څه نه مخکي يي دکعبي طواف اوکړو او پدغه وخت کي هم عمره کول نه وو عمره يي ددينه پس کړي وه او بيا عثمان رضي الله عنه همداسي اوکړل (متفق عليه)
دابن عمر رضي الله عنه بيان دي رسول الله چي مکي ته راغي دټولو نه مخکي يي چي د حج يا عمري کوم طواف کړي وو په هغه طواف کي يي اولني دري چکرونه په تيزئ سره کړي وو او باقي څلور چکرونه يي په درميانه رفتار سره کړي وو او بيايي دوه سجدي اوکړي او بيا يي دصفا مروه په مينځ کي سعي اوکړه (متفق عليه)
امام مالك دعروه بن زبير دروايت نه پدي خبرد استدلال کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يواځي حج کړي وو خکه چي پدي حديث کي راغلي دي چي بيا يي عمره نه وه کړي او دطواف قدوم وجود دمذکوره دوارو حديثونو نه ثابت دي خکه چي په دوارو حديثونو کي داسي دي چي دهر څه نه مخکي رسول الله طواف اوکړو او دا روايت هم صحيح دي چي رسول

الله فرمائيلي دي دخپلو مناسكو دادا كولو طريقې زما نه زدكړئ او هم ددې حكم په وجه طواف قدوم واجب شوي دي ددينه علاوه دا خبره هم ده چې په اتفاق دعلماؤ سره دقدوم نه پس دصفا مروه په مينځ كې سعي كول جائز دي او په صفا مروه كې سعي كول په اجماع سره واجب دي او په سعي كولو سره طواف كول هم لازميږي دطواف نه پس سعي كول پكار وي نو پدې وجه طواف هم واجب كيدل پكار دي ځكه چې هيڅ يو واجب دنفلو تابع نه وي همدا وجه ده چې دمكي داوسيدونكو دپاره دطواف زيارت نه مخكې دصفا مروه په مينځ كې سعي جائز نه ده ځكه چې داهل مكه دپاره قدوم نشته او دطواف نه پس په طور دنفل سعي جائز نه ده

دمحدثينو پدې كې اختلاف دې چې مكې ته يې د داخليدو نه پس صرف يو طواف كړي وو (يعني طواف قدوم) او كه دوه طوافونه يې كړي وو يو طواف قدوم او دويم دعمرې طواف.

(۱) دجمهورو فقهاؤ او محدثينو قول دادې چې يو طواف يې كړي وو.

(۲) دامام ابو حنيفه قول دې چې دوه طوافونه يې كړي وو.

دجمهورو دقول تائيد دبخاري په بيان كړي حديث سره كيږي كوم چې دابن عباس نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم مكې ته راغي او طواف يې اوكړو اوپه صفا مروه كې يې سعي اوكړه او بيا دطواف كولو دپاره كعبې ته ورنژدې شوي هم نه دې تردې چې دعرفې نه واپس شوي دې.

په بخاري او مسلم كې دابن عمر رضي الله عنه نه دحج واقعه نقل شوي ده ، په كوم كال چې حجاج په عبدالله بن زبير دحملې دپاره لښكر راوستلي وواوګيره يې ورباندې اچولې وه پدغه كال ابن عمر رضي الله عنهما دحج اراده كړې وه ، عرض اوكړې شو چې خلق دجنګ او جدال په حالت كې دي او مونږ ته خطره ده چې هغوئ به تا دحج نه منع كړي ابن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل ""لقد كان لكم في رسول الله اسوة حسنة" كه چرې زه منع كړې شوم نو زه به هغه عمل كوم كوم چې رسول الله صلي الله عليه وسلم كړي وو او زه تاسو له ګواه كوم چې ما پخپل ځان عمره واجب كړې ده او بيا روان شو كله چې بيداء مقام ته ورسيدو نو ويې فرمائيل دحج او عمرې يو حالت دي او زه تاسو ګواه كوم چې ما دعمرې سره په ځان حج هم واجب كړې دې او بيايې په قديد كې يوه قرباني هم واخستله او دځان سره يې بوتله او ديوم النحر نه مخكې يې نه قرباني اوكړه او نه يې احرام پرانيستلو او نه يې سر اوخريلو او نه يې ويښته كم كړل او نه يې دكوم داسې كار ارتكاب اوكړو چې په حالت د احرام كې ممنوع وي كله چې داختر ورځ شوه نو قرباني يې اوكړه او سر يې اوخريلو او ګمان يې اوكړو چې په اولني طواف سره زما حج هم ادا شو او عمره هم ابن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم هم داسې

په بل روايت کي راغلي دي ابن عمر رضي الله عنهما به فرمائيل چاچي حج او عمره شريك کړل او په يو خاي يي ادا کړل دهغه دپاره صرف يو طواف کافي دي ،اوترڅو چي يي دواړه ادا کړي نه وي احرام دي نه پرانيځي ، او چي دواړه ادا کړي نو ورسره دي احرام هم پرانيځي
دمسلم په روايت کي دي چي کله کعبي ته ورسيدو نواوه چکرونه يي اووهل او په صفا مروه کي يي اوه چکرونه اووهل او ددينه زيات څه يي اونکړل او دا ګمان يي اوکړو چي بس همدا کافي دي
احنافو د علي رضي الله عنه دعمل نه استدلال کړي دي چي هغه حج او عمره په يو خاي ادا کړل او ددواړو دپاره يي جدا جدا دوه طوافونه اوکړل او جدا جدا ي ددواړو دپاره دوه خله سعي اوکړله او ويي فرمائيل مارسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي کولو ليدلي دي ،رواه الدارقطني والنسائي بطرق،
امام محمد په کتاب الاثار کي دابو حنيفه رحمة الله عليه نه موقوف روايت نقل کړي دي چي علي رضي الله عنه فرمائيلي دي کله چي دحج او عمري دپاره په يو خاي احرام اوتړئ نو ددواړو دپاره دوه طوافونه اوکړئ او په صفا مروه کي ددواړو دپاره دوه خله سعي اوکړئ.
طحاوي پخپل سند سره روايت بيان کړي دي چي علي او ابن مسعود رضي الله عنهما به فرمائيل قران کونکي دي دکعبي دوه طوافونه اوکړئ او په صفا مروه کي دي دوه خله سعي اوکړي.
دحافظ ابن کثير قول دي دعلي او ابن مسعود رضي الله عنهما نه مرفوعا ددي حديث دروايت تمام سندونه ضعيف دي مګر موقوفاً کوم چي طحاوي په مختلفو سندونو سره دعلي او ابن مسعود رضي الله عنهما قول ګرځولي دي هغه په مجموعي لحاظ سره دقبول قابل دي او په هغي کي څه ضعف نشته.
زه وايم دا حديث اګر که صحيح هم ثابت شي بيا هم ددينه دا خبره نه ثابتيږي چي کله رسول الله مکي ته ورسيدو نو مني ته دتلو نه مخکي هغه دکعبي دوه طوافونه اوکړل يو طواف قدوم دحج دپاره او دويم دعمري دپاره بلکي دحديث مطلب صرف دادي چي درسول الله دعمري دپاره دکعبي طواف اوکړو او ددي دپاره يي سعي اوکړله او دا عمره يي مني ته دتلو نه مخکي کړي وه او بيايي دقربانئ په ورځ دحج دپاره طواف او سعي اوکړه . همدا مطلب د عمران بن حصين دحديث دي چي رسول الله دوه طوافونه او دوه خله سعي کړي وه ،رواه الدارقطني ،
په کوم قوي ياضعيف روايت کي دا نشته چي دعمري دطواف نه پس رسول الله طواف قدوم کړي وي صرف په مسند ابي حنيفه کي د ضبي بن معبد په روايت سره داسي راغلي دي دضبي بيان دي چي زه دجزيري نه دحج قِران دپاره روان شوم او د سليمان بن ربيعه اوزيد بن صوحان په خوا کي تير شوم زه چي ورسره يو خاي شوم نو هغوئ داسي وئيل لبيك بحجة وعمرة دوئ

دوارو چي زما لبيك واوريدو نو په دوئ کي يو کس اوونيل دا کس داوښ نه هم زيات بي لاري دي او دويم کس هم ددي پښان خبره اوکره ليکن زه مسلسل مصروف وم او حج مي ادا کولو خو بيا زه اميرالمؤمنين عمر بن الخطاب ته لاړم، راوي ددينه مخکي ورته تفصيل بيان کړي دي دکوم په اخر کي چي داسي دي چي اميرالمؤمنين دده نه تپوس اوکړو چي بيا تا څه اوکړل ما عرض اوکړو ما برابر خپل لبيك جاري اوساتلو او بيامي دعمري دپاره طواف اوکړو او سعي مي اوکړه او بيا مي دوباره داسي اوکړل دخپل حج دپاره او بيا زه داحرام په حالت کي پاتي شوم او هلته مي هغه اعمال اوکړل کوم چي نور حاجيان کوي تردي چي اخري نسك يعني رکن هم پوره شو، امير المؤمنين ووئيل تادرسول الله په سنت عمل کړي دي . مسند ابو حنيفه قابل داعتماد نه دي ددي دمؤلف او دامام ابو حنيفه په مينځ کي ډير مجهول او غير معروف راويان دي دده احاديث دبخاري دمروياتو په مقابل کي چي دابن عباس نه نقل شوي دي پيش کيدي نشي په کومو کي چي دا صراحت دي چي دعرفي نه دواپسئ پوري رسول الله بيا کعبي ته نه دي ورنزدي شوي .

اوکله چي دا خبره منلي شوي ده چي رسول الله قران کړي وو او علاوه دعمري دطواف نه يي دحج طواف قدوم نه وو کړي نو معلومه شوه چي طواف قدوم نه رکن دي نه رکن دحج دي او نه په مستقل طور واجب دي بلکي دتحية المسجد دمونځ پشان سنت دي کوم چي دنورو واجباتو يا سنتو په ضمن کي دا سنت پوره کيږي کله چي رسول الله مکي ته ورسيدو او دعمري دپاره يي طواف اوکړو نو دطواف قدوم په ځاي دا طواف کافي شو

مسئله : نفلي طواف دنفلي مونځ پشان په نذر سره واجب کيږي او په پورتني ايت کي دطواف نه دحج طواف زيات دعلماؤ په اتفاق سره مراد دي طواف زيارت دارکانو دحج نه دي او يو ضروري رکن دي او پدي باندي د علماؤ اجماع ده باقي هيڅ يو طواف دحج رکن نه دي.

**مسئله** : طواف صدر هم په اتفاق دامت سره دحج رکن نه دي امام ابو حنيفه ، امام احمد ، او صاحبينو په نزد واجب دي او ديو روايت مطابق دامام شافعي هم دا قول دي ، امام ابو حنيفه دي لره دحج دواجباتو نه شماري او امام محمد يي مستقل واجب ګڼړي ، که څوك طواف وداع اوکړي او بيا په څه وجه په مکه کي پاتي شي او بيا دڅه وخت نه پس واپس شي نو دمکي دپريخودو په وخت کي به دده دپاره دامام ابو حنيفه په نزد طواف وداع کول ضروري نه دي ليکن دامام محمد قول دي چي دوباره به طواف رخصت کوي، مسافر چي کله دمکي نه واپس کيږي نو په هغه باندي طواف وداع کول لازم دي.

دامام مالك په نزد طواف صدر سنت دي او ديو روايت مطابق دامام شافعي هم دا قول دي، طواف صدر دزنانه دبيمارئ ياپه طاقت کي دکوم بل رکاوټ پيدا کيدو په وجه ساقط کيږي .

دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي خلق به دحج نه پس په هره طريقه واپس كيدل رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل ترڅو چي مو دبيت الله ملاقات نه وي كړي ترهغي به دمكي نه نه وځئ (رواه احمد)

د دارقطني درروايت الفاظ دادي چي خلق به دمني نه اووتل او پخپله مخه به لاړل رسول الله ورته حكم اوكړو چي دهر يو كس اخري ملاقات دبيت الله سره كيدل پكار دي او بيمارو ښځو نه يي هم اجازت وركړي وو ، دمسلم روايت پدي الفاظو دي په تاسو كي دي هيڅوك نه وځي ترڅو چي دده اخري ملاقات دبيت الله سره نه وي شوي ، دمتفق عليه روايت الفاظ دادي رسول الله خلقو ته حكم اوكړو چي دوئ دي په اخر كي دبيت الله زيارت كوي مګر دبيمارو ښځو دپاره يي په حكم كي تخفيف اوكړو

دابن عمر رضي الله عنهما بيان دي څوك چي دكعبي حج كوي دهغه اخري عمل دبيت الله طواف كول پكار دي او بيماري ښځي ددينه استثني دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته اجازت وركړي دي (رواه الترمذي وقال حديث حسن صحيح).

دعبدالله بن اوس بيان دي چي پخپله مي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چي فرمائيل يي هر څوك چي ددي كور حج يا عمره كوي نو دده اخري ملاقات ددي كور سره كيدل پكار دي (رواه الترمذي).

امام ابو حنيفه ددي اخري حديث نه دطواف صدر دوجوب دپاره استدلال كړي دي او واجب يي ګرځولي دي ځكه چي پدي حديث كي من حج البيت او اعتمر، راغلي دي

زدوايم پدي حديث كي او اعتمر لفظ هم راغلي دي نو بيا خو طواف صدر په عمره كي هم واجب كيدل پكار دي ليكن ددي هيڅوك قائل نه دي

دامام احمد قول دي لا ينفروا احد لفظ عام دي نو پدي وجه دطواف صدر واجب كيدل ضروري دي. دامام ابو حنيفه دمسلك په بنا مطلق په مقيد محمول كيدل ددينه نه لازميږي ځكه چي تقيد په سبب باندي وارد دي لكه چي په حديث مبارك كي دي دي لره ادا كړئ دهر ازاد او غلام دطرف نه په بل حديث كي دي چي دي لره ادا كړئ دهر مسلمان او ازاد او غلام دطرف نه په دويم حديث كي دمسلمان لفظ مذكور دي او په اولني كي نشته نولا محال مطلق به په مقيد حمل كيږي ليكن دطواف صدر په حديث كي داسي نه ده بلكي قيد په سبب باندي وارد دي دمكي نه مطلق وتل موجب دطواف دي او دحج نه پس دمكي نه وتل هم موجب دطواف دي او په دوارو كي هيڅ تعارض نشته

****************

٨٦٧_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ، قَالَ: كَانُوا يَعُدُّونَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ أَفْضَلَ مِنْ أَبِيهِ، وَلِعَبْدِ اللَّهِ أَخٌ يُقَالُ لَهُ: عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ أَيْضًا. (1)

**ترجمه** ايوب سختياني واي خلقو به عبدالله بن سعيد بن جبير دهغه دپلارنه افضل ګڼړلو او دعبدالله يو ورور دي چي نوم يي عبدالملك بن سعيد بن جبير دي هغوئ هم دده نه نقل دروايت کړي دي.

**تشريح** دکعبي دطواف څه شرطونه او څه ارکان دي څه واجبات او څه سنت دي او څه اداب او مستحبات دي چي تفصيل يي مندرجه ذيل دي.

(١) **دطواف شرائط**: دطواف دپاره نيت شرط دي بلکي دهر مستقل عبادت دپاره نيت شرط دي او په شرعي نصوصو سره هم دا مسئله ثابته ده او په همدي دامت اجماع ده

**دطواف دپاره د نيت شرطيت**

دطواف زيارت دپاره دمطلق طواف نيت کافي دي ، دفرض طواف نيت ضروري نه دي

سوال دوقوف عرفي پشان طواف زيارت هم دحج يو ضروري رکن دي او په عرفات کي د ودريدو نيت ضروري نه دي البته په اودو يادبيهوشئ په حالت کي که په عرفات کي قيام اوشي يا په مختلفو غرونو اودريدل اوشي په کوم کي چي دعرفي غرونه هم وي او وقوف کونکي ته معلومه نه وي چي دا دعرفات غر دي نو دحج رکن ادا کيږي ، عروه بن مضرس عرض اوکړو اي دالله رسوله زه دبني طئ دغرونو نه راغلي يم ما خپله اوبنه ستړي کړي ده او پخپله مي هم ډير تکليف برداشت کړي دي اوستړي شوي يم ، په الله تعالي قسم ماهيڅ يو غر داسي نه دي پريخودلي چي په هغي مي دوقوف دپاره قيام نه وي کړي ايا زما حج به ادا شي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چاچي زمونږ سره دا مونځ يعني دسحر دجمعي په عرفات کي بيامونډو او ددينه مخکي دشپي يادورځي عرفات ته رسيدلي وي دهغه حج پوره شو (رواه ابو داود)

نو که دطواف زيارت دپاره نيت شرط وي نو بغير دتعين دفرضو دمطلق طواف نيت کافي کيدو څه معني دد دفرضو دتعين نيت خو دهر هغه فريضي دادا کولو دپاره شرط دي دکومي دپاره چي وخت ظرف وي او معيار نه وي لکه مونځ

جواب ددي مقام تحقيق دادي چي کله يي داحرام په شکل کي دحج نيت کړي وي نو پدي طريقي سره دحج دارکانو نيت کيږي نو اوس که چري ده دويم نيت دمناسکو په خلاف نه وي

---

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٨٣٥٢)

کړي نو سابقه نيت به يې معتبر ګڼړلي کيږي او دا نيت به يې دهر رکن د ادا کولو په وخت کي معتبر ګڼړلي کيږي دهر رکن دپاره دنيت تجديد شرط نه دي لکه چي دمونځ دپاره ابتدائي نيت کافي وي اودهر رکن د ادا کولو دپاره جديد نيت ته ضرورت نه وي مګر که کوم رکن دمستقل عبادت حيثيت لري لکه طواف او دطواف دوه رکعاتونه شول نو دداسي رکن د ادا کولو دپاره جديد نيت ته ضرورت دي او ددي رکن دشروع کولو په وخت کي مطلق نيت کافي دي مونځ وي اوکه طواف هر يو ددوی نه دوه دوه حيثيتونه لري يو دمستقل عبادت کيدو او دويم دعبادت دجزء کيدو داولني حيثيت په اعتبار سره درکن دشروع کولوپه وخت کي ددي رکن د ادا کولو نيت لازمي دي او ددويم صورت په اعتبار سابقه ابتدائي نيت کافي دي کوم چي ده داحرام په وخت کي کړي دي مونږ دواړه صورتونه ملحوظ کړي دي دمستقل عبادت په حيثيت کي مستقل نيت او دعبادت دجزء کيدو په صورت کي ابتدائي سابقه نيت پس دشروع کولو په وخت کي مطلق نيت کافي دي ځکه چي دا عبادت دي او دعبادت دپاره مطلق نيت کافي وي او دطواف زيارت دتعين نيت ضروري نه دي ځکه چي طواف زيارت دعبادت جزء دي او هر يو عمل چي بذات خود عبادت نه وي بلکي دعبادت دجزء کيدو په وجه دي لره عبادت ګرځولي شوي وي لکه په عرفي کي قيام کولو او دصفا مروه په مينځ کي سعي کولو دپاره نيت ته ضرورت نشته بلکي داحرام ابتدائي نيت کافي دي.

قاضي ثناء الله پاني پتي دلته د مسئلي په عنوان بعضي ضروري مسائل بيان کړي دي چي د مقام دتقاضا او خاص مناسبت په وجه يې مونږ نقل کوو:

**مسئله**: که يو کس بل کس لره پخپله شا بار کړي وو اوپه همدي حالت کي يې طواف اوکړو نو دا به ديو څو صورتونو نه خالي نه وي او احکام به يې هم مختلف وي

(۱) داچي حامل محرم نه وي او محمول محرم وي او حامل دمحمول دطواف نيت کړي وي او محمول هم دخپل طواف نيت کړي وي نو پدي شان سره دمحمول طواف ادا کيږي.

(۲) حامل محرم وي اومحمول محرم نه وي اوحامل دخپل طواف نيت کړي وي نو دده طواف په اتفاق داهل علمو صحيح دي.

(۳) داچي حامل او محمول دواړه محرمان وي حامل دمحمول دطواف نيت کړي وي نو صرف دمحمول طواف به کيږي او که دخپل طواف نيت يې کړي وي نو دده طواف به کيږي او که ددواړو دطواف نيت يې کړي وي نود امام شافعي په نزد صرف دحامل طواف کيږي اود امام ابوحنيفه په نزد که محرم حامل که خپل نيت کړي وي يا يې ورسره دمحمول نيت هم کړي وي او محمول هم ورسره دخپل طواف نيت ورکړي نو ددواړو طواف کيږي ځکه چي ددواړو نيتونه پخپل خپل ځاي درست دي او څه تعارض پکي نشته.

**مسئله:** دطواف په شرائطو کې دحدث اکبر او اصغر نه هم پاك کيدل ضروري دي او دبدن اولباس او خاي پاك والي هم لازم دي او دجمهورو په نزد ستردعورت هم لازم دي، دعائشه رضي الله عنها روايت مخکې تير شو چې مکې ته په داخليدو سره به رسول الله صلي الله عليه وسلم اول اودس اوکړو او بيا به يې طواف ادا کړو او دا به يې هم فرمائيل چې زمانه دحج طريقې زدکړئ.

دعائشه رضي الله عنها بيان دي زه دبيمارئ په حالت کې مکې ته راغلم رسول الله راته اوفرمائيل حاجيان چې څه کوي هغه ته هم کوه البته ترڅوچې پاکه شوې نه يې دکعبې طواف به نه کوې (متفق عليه).

دمسلم په روايت کې دپاکوالي په ځاي غسل لفظ راغلي دي ، دام المؤمنين بيان دي چې دمکې نه دروانيدو په ورځ صفيه رضي الله عنها بيماره شوه . پدې حديث کې دي چې رسول الله اوفرمائيل چې ايا دې دقربانئ په ورځ طواف کړې دې ؟ عرض اوکړې شو هو نو وې فرمائيل چې اوس روان شئ (څه باك نشته) متفق عليه.

دابو هريره رضي الله عنه بيان دي دحجة الوداع نه مخکې چې په کوم حج کې رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوبکر رضي الله عنه لره دحج د امارت دپاره راليږلي وو ددغه حج په موقعه دقربانئ په ورځ ابوبکر زه په خلقو کې ددې اعلان دپاره اوليږلم چې ددې کال نه پس به هيڅ يو مشرك حج ته نه راځي او نه به څوك په بربنډه طواف کوي (ددې حديث نه ستردعورت ضروري کيدل ثابتيږي) الله تعالي فرمائيلي دي "طهـرا بيتي للطـائفين" ددې عبارت نه دمکان دپاکوالي ضروري کيدل معلوميږي او دلباس اودجسم دتطهير حکم ددينه دلالتا په طريقه اولې معلوميږي خصوصا دحدث اکبر او اصغر نه دطهارت حکم خو په درجه اولې ددينه مستفاد دې ځکه چې دنجاست حقيقي نه دحدث مرتبه زياته اهمه ده په بعضې صورتونو کې دنجاست سره مونځ هم کيږي او بې اودسه مونځ ناجائز دي .

دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي الله تعالي خپل رسول ته حکم کړې دې چې "طهر بيتي للطائفين والعاكفين والركع السجود" ددې ايت ذکر يې دصلات نه مخکې کړې دې ، ارشاد نبوي دي چې طواف دمونځ پشان دې خو صرف دومره خبره ده چې په طواف کې خبرې کول جائز گرځولي شوي دي او په مونځ کې دخبرو نه ممانعت راغلي دي او هر څوك که په طواف کې خبرې کوي نو نيکې خبرې دې کوي (رواه الحاكم في المستدرك وصححه والطبراني والبيهقي).

ترمذي، حاكم، دارقطني، ابن خزيمه ، ابن حبان او بيهقي دا حديث پدي الفاظو بيان كړي دي چي دبيت الله طواف مونځ دي صرف دومره خبره ده چي پدي كي الله تعالي خبري كول مباح كړي دي دا روايت ابن سكن صحيح گڼلي دي

دامام ابو حنيفه په نزد دنجاست حقيقيه نه طهارت سنت دي او دنجاست حكميه نه واجب دي او ستر دعورت هم واجب دي ددي په ترك كولو سره گناه لازميږي ، كه چري په بربنډ حالت يادجنابت په حالت كي څوك فرض طواف اوكړي نو ديوي بدني قرباني كول به وربانديي لازم وي او كه بغير اودسه يي فرض طواف كړي وي نو يوه قرباني به كوي اگر كه دهر شي وي، همدارنگي غير فرضي طواف هم كه دجنابت.يادبربنډوالي په حالت كي څوك اوكړي نو څه قرباني دي اوكړي (وره وي او كه لويه وي) او كه غير فرض طواف يي بي اودسه اوكړو نو نيم صاع غنم دي كوم مسكين ته په طور دكفاري وركړي

دامام ابو حنيفه په نزد په مذكوره اشياؤ كي هيڅ يو څيز دطواف دپاره شرط نه دي ځكه چي په قران كي دمطلق طواف حكم راغلي دي او په كتاب الله دزيادت كولو معني حكم دكتاب لره منسوخ كول دي او په اخبار احادو دكتاب حكم منسوخ كول دامام صاحب په نزد جائز نه دي پدي وجه مونږ هيڅ يو شرط لره لازمي فرض نشو گرځولي مگر په احاديثو عمل كول لازم دي نو پدي وجه مذكوره امور په بعضي صورتونو كي واجب دي .

**مسئله** دطواف زيارت يو ضروري شرط وخت هم دي چي دمقرر شوي وخت نه مخكي نه ادا كيږي او دوخت نه پس يي قضا راوړل په اجماع سره ضروري دي ، كه چري پخپله دخپلي كوتاهي په وجه طواف زيارت دمقرر وخت نه پس ادا كړي نو دامام ابو حنيفه په نزد پده قرباني كول واجب دي او دجمهورو مسلك ددي په خلاف دي او كه چري دكوم عذر په وجه مؤخر كولو ته ضرورت پيښ شو لكه دزنانوو بيماري يا دجابر طاقت دطرفه بندش وغيره نو بيا قرباني واجب نه ده .

دامام صاحب په نزد دطواف زيارت وخت دقرباني په ورځ دفجر صادق نه شروع كيږي اودجمهورو په نزد داختر دشپي دنيمي تيريدو نه پس شروع كيږي ، ځكه چي دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله زه دشپي نحر كولو ته ليږلي وم او مادسحر نه مخكي دجمري رمي اوكړه او بيا مي طواف زيارت اوكړو (رواه الدارقطني)

ددي حديث سند ضعيف دي دسند په سلسله كي يي ضحاك بن عثمان راوي دي او قطان ده لره نرم گرځولي دي او ددينه علاوه دا حديث دابن عباس دروايت خلاف هم دي په كوم كي چي راغلي وو چي رسول الله پخپلو متعلقينو كي كمزورو لره مخكي اوليږل او دا يي فرمائيلي وو چي دنمر ختو نه مخكي به رمي دجمراتو نه كوئ (رواه الترمذي وصححه)

ابو داود ، نسائي. طحاوي، او ابن حبان دحسن غريبي په سند سره دا روايت بيان کړي دي او دا سلسله درروايت دحسن درجي ده ، ترمذي او طحاوي هم ددي تخريج کړي دي، ابوداود . نسائي، طحاوي، او ابن حبان په مختلفو سندونو نقل کړي دي او دبعضو سندونو تائيد يي په بعضو سره کيږي چي پدي طريقه د قوت درجي ته رسيږي پدي حديث کي د "فرمت الجمرة" نه پس ثم مضت فافاضت" راغلي دي يعني دنمر ختو نه مخکي يي جمره اوويشتله او ددينه پس يي طواف اوکړو ، پدي کي ددي خبري هيڅ ثبوت نشته چي طواف يي هم دنمر ختو نه مخکي کړي وو

دطواف زيارت اخري وخت دايام تشريق د دويمي ورځي دغروب شمس پوري دي ، دا دامام ابو حنيفه قول دي ، په بعضي روايتونو کي راغلي دي چي انتهائي وخت يي ديوم النحر دغروب پوري دي ، دسورة براءت ايت "واذان من الله ورسوله يوم حج الاكبر" په تفسير کي مونږ ددي بيان کړي دي چي دجمهورو په نزد دطواف زيارت وخت صرف يوم النحر دي ددي مضمون مطابق دابن عمر رضي الله عنه مرفوع حديث ابو داود او حاکم بيان کړي دي اودعلي رضي الله عنه نه هم دا قول په يو روايت کي راغلي دي ، ابن جريج دمجاهد قول نقل کړي دي چي يوم الحج الاكبر نه دمنى تمام ايام مراد دي دادسفيان ثوري قول هم دي دسفيان ثوري دا هم فرمائيلي دي چي يوم په معني دوخت او مودي راځي لکه يوم صفين ، يوم الجمل، يوم بعاث پدي تمامو الفاظو کي ديوم نه مراد پوره موده ده .

**مسئله**: دطواف يو شرط دامام شافعي او امام احمدرحمهما الله په نزد ترتيب هم دي او دا قول دامام محمد هم دي ليکن دامام ابو ح: فه په نزد ترتيب شرط نه دي داکثرو احنافو په نزد سنت دي چي ترك کول يي مکروه دي ، صحيح خبره داده چي دامام صاحب په نزد ترتيب واجب دي دکوم په ترك کولو سره چي قرباني واجب کيږي ، رسول الله صلي الله عليه وسلم هميشه پدي ترتيب عمل کړي دي او دا يي هم فرمائيلي دي چي زما نه د خپلو حجونو طريقي زدکړئ ، پس که چري ترتيب شرط يا فرض کړي شي نو په کتاب الله به زيادت لازم شي ، دترتيب صورت دادي چي دحجر اسود خواته په رسيدو سره خپل مخ ورمخامخ کړي او طواف دي شروع کړي پدي شان سره چي تمام حجر اسود دده نه ښي طرف ته وي او بيت الله ورنه چپ طرف ته وي او ددي برعکس کول جائز نه وي .

**مسئله**: علماؤ پدي خبره اتفاق دي چي په مسجد کي دننه دمسجد ګيرچاپيره دي طواف نه کوي، همدا طريقه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په تواتر سره رارسيدلي ده او که چري څوك دمسجد نه ګير چاپير طواف اوکړي نو دا به دبيت الله طواف نشي ګڼړلي کيدي دمسجد

طواف به ګڼلې کيږي دعرف او محاوري همدا شهادت دي پس په مسجد کي دننه طواف کول پکار دي (مظهري)

## د طواف چکرونه

په طواف کي اوه چکرونه ضروري رکن دي دا عمل په هره زمانه کي شهرت لري او په مشهورو روايتونو کي پدې باندې صراحت هم شوي دي چي دچکرونو تعداد دمونځ درکعاتونو دتعداد پشان دي او دا شبهه دي څوك اونکړي چي واليطوافوا دامر صيغه ده او امر دمعمول به تکرار نه غواړي (يعني طواف يو ځل پوره دي) خبره داده چي مفهوم دامر نه دتکرار دفعل مقتضي وي او نه دنفي دتکرار او په متواتر نقل سره ثابته ده نو ځکه چکرونه اوه دايت دمفهوم نه نشي مخالف کيدي.

**مسئله** دنورو اهل علمو په نزد د اوو نه په کمو چکرونو سره طواف نه پوره کيږي ، په طواف کي دچکرونو تعداد داسي دي لکه په مونځ کي چي درکعتونو تعداد دي ، پس که چرې دماسپخين يا مازيګر وغيره په مونځ کي يو رکعات هم کم اوشي نو مونځ نه پوره کيږي

**مسئله.** حطيم دکعبي حصه ده پکار ده چي په طواف کي داخل کړې شي ، دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي درسول پاك صلي الله عليه وسلم نه مي تپوس اوکړو چي ايا دا ديوال دبيت الله حصه ده؟ نو ويي فرمائيل هو نو مابيا عرض اوکړو چي خلقو په بيت الله کي ولې شامل کړې نه دي نو ويي فرمائيل ستا دقوم سره دخرچي کمي وو (نوځکه دا حصه بهر پاتي شوي وه) ما عرض اوکړو چي دبيت الله دروازه يي ولې ايخودلي ده ويي فرمائيل داسي يي ځکه کړې دي چي چالره غواړي نو داخليدو ته به يي پريږدي او دچا په حق کي چي نه غواړي هغه لره به نه پريږدي (يعني په زبردستئ سره به څوك دننه نشي ورتلي) متفق عليه

ترمذي او نسائي دعائشه رضي الله عنها بيان نقل کړي دي ما به په کعبه کي مونځ کول خوښول خو رسول الله زما لاس اونيولو او په حطيم کي يي داخله کړم او راته يي اوفرمائيل دلته مونځ کوه دا هم دکعبي يوه حصه ده ، دابو داود روايت هم ددي هم معني دي

محقيقنو ليکلي دي چي حطيم خاص دکعبي حصه ده او اوږدوالي يي دشپږو ګزو نه زيات دي. مسلم دعائشه رضي الله عنها په روايت سره ليکلي دي ارشاد نبوي دي که چرې ستادقوم دشرك زمانه ډيره نزدي تيره شوي نه وي نو ما به کعبه نړولي وه اودزمکي سره به مي برابر کړې وه او ددي دروازي به مي مشرق او مغرب طرف ته ايخودلي وي او دحجر اسود شپږ ګزه زمکه به مي واپس پدې کي داخل کړې وه، دمسلم په روايت کي تقريبا اوه ګزه راغلي دي، بخاري پخپل سند سره دجديد بن حازم نه هم دا روايت نقل کړي دي

ديزيد بن رومان بيان دي فرمائي زه موجود وم کله چي عبدالله بن زبير بيت الله وران کړو او دوباره يي تعمير کړو او حجر اسود يي دننه داخل کړو ما په اساس ابراهيم کي داوښ د ګوپ په مقدار کانړي ليدلي دي ، دجرير بيان دي ما اندازه اولګوله تقريبا شپږ ګزه دحجر اسود زمکه وه .

دمجاهد قول دي چي ابن زبير دحجر دطرفه شپږ ګزه زمکه په بيت الله کي شامل کړي وه.

**مسئله:** که چا په طواف کي حطيم بهر پريخودو نو دامام ابو حنيفه په نزد دده طواف ادا شو البته يوه قرباني به پيش کوي ځکه چي حطيم دبيت الله جزء کيدل په اخبار احاد سره ثابت دي ،نوپدي وجه حطيم لره په طواف کي دننه کول واجب دي او دواجب دپريخودو تلافي قرباني کول دي ، حطيم لره دبيت الله جزء ګرځول په قطعي طور سره نشي کيدي ورنه په کتاب الله به دخبر واحد سره زيادت لازم شي او دا ناجائز دي

دجمهورو په نزد به په حطيم کي طواف کول کافي نه وي ځکه چي په خبر واحد سره دهغوئ په نزد په کتاب الله زيادت جائز دي .

**مسئله:** داهل علمو په اتفاق سره دعذر په وجه طواف زيارت کول په سورلئ جائز دي اوکه عذر نه وي نو پيدل کول دامام ابو حنيفه په نزد واجب دي چاچي بغير دعذر نه په سورلئ طواف اوکړو نو ترڅو چي په مکه کي وي دوباره طواف کول وربانديٍ ضروري دي او که دوباره طواف يي اونکړو نو قرباني کول وربانديٍ واجب دي

دنورو اهل علمو په نزد پياده طواف کول سنت دي واجب نه دي ، دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوښ په شا دسوريدو په حالت کي طواف اوکړو کله چي به رکن ته ورنزدي شو نو کوم څيز چي به يي په لاس کي وو په هغي به يي رکن ته اشاره کوله او الله اکبر به يي وئيل (متفق عليه).

دجابر رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوښ په شا په صفا مروه کي چکر اولګولو او غرض يي دا وو چي خلق مي اووينيٍ اوزه په خلقو کي واضحه ښکاره شم او دمسائلو تپوسونه رانه اوکړي (رواه مسلم).

دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په حجة الوداع کي په اوښ سور شو اود کعبي طواف يي اوکړو او په هر چکر کي به يي رکن ښکلولو او دا خبره يي خوښه نه وه چي خلق د رکن نه په دده تير شي .

احناف وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داسي دبيمارئ په وجه کړي وو دابن عباس بيان دي رسول الله چي کله مکي ته راغلو نو دځه بيمارئ شکايت يي لرلو نوپدي وجه يي

داوبن په شا طواف اوکړو او کله چي به رکن ته ورنژدي کيدو نو پخپله چوکه به يي رکن مسح کولو دطواف نه چي فارغ شو نو اوبن يي کينولو او دوه رکعاته مونځ يي اوکړو (رواه ابو داود).
دجمهورو دطرفه احنافو ته دا جواب ورکړي شوي دي چي صرف دا احتمال چي رسول الله پدغه وخت کي څه بيمار وو د دعوي دثبوت دپاره کافي نه دي ، پاتي شو دابو داود روايت نو هغه خو ضعيف دي او په سند کي يي يزيد بن هارون راوي دي کوم چي قوي نه دي دده نه نقل کړي حديث قابل داستدلال نه وي ، امام شافعي دخپلي لاعلمي اظهار کړي دي او وئيلي يي دي زه نه پوهيږم چي پدي حج کي رسول الله ته څه تکليف وو او که نه وو
نفلي طواف دسورلئ په حالت کي دجمهورو په نزد بغير دکراهت نه جائز دي ليکن دامام ابو حنيفه دضابطي مطابق مکروه دي دجمهورو دليل دبخاري هغه روايت دي کوم چي په سورة الفتح کي مونږ بيان کړي دي چي رسول الله کله مکه فتح کړه نو طواف قدوم يي پداسي حالت کي اوکړو چي په اوښه سور وو.
**مسئله** بغير دوقفي نه مسلسل طواف کول دعلماؤ په اجماع سره شرط (فرض) نه دي سنت دي سعيد بن منصور روايت بيان کړي دي چي ابن عمر رضي الله عنهما دکعبي طواف کولو چي پدغه وخت کي دمونځ اقامت اوشو نو هغه دجماعت سره په مونځ کي شريك شو او دمونځ کولو نه پس يي دطواف باقي حصه پوره کړه ، عبدالرزاق او عبدالرحمان بن ابوبکر په روايت کي هم دا واقعه مذکور ده، دسعيد بن منصور بيان دي عطاء به وئيل که چري يو سړي دطواف څه حصه کړي وي او بيا کومه جنازه راوړي شي نو بيا به طواف نيمګړي پريږدي او په جنازه کي به شرکت کوي او دمونځ دپوره کولو نه پس به بيا خپل باقي طواف پوره کوي
دنافع قول دي دطواف په وخت کي اوږد قيام کول بدعت دي دحسن قول دي که چري څوك په طواف کي مشغول شي او دمونځ دپاره اقامت اوشي او دي په مينځ کي طواف پريږدي او په مونځ کي شريك شي نو دمونځ نه پس به دي نوي طواف دسره شروع کوي.
**مسئله** فرض طواف په مينځ کي منقطع کول اګر که دفرضو اقامت شوي وي مکروه دي ، دام سلمه رضي الله عنها نه مروي دي چي هغي طواف صدر اوکړو او پدغه وخت کي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسحر مونځ کولو
**مسئله**: که چري دفرض مونځ اقامت اوشي او يا دکومي جنازي دفوت کيدو خطره وي نو نفلي طواف دي قطع کړي دنفلي عبادت دپاره طواف منقطع کول جائز نه دي
په وترو کي دشرکت دپاره طواف منقطع کول بهتر دي ، دعبدالرحمن بن ابي بکر اثر ددي تائيد کوي.

**مسئله** دهر اوه چكرونو نه پس دوه ركعاته مونځ كول دامام ابو حنيفه په نزد واجب دي او دامام مالك هم دا قول په يو روايت كې راغلي دي او دامام شافعي هم دا قول دي ، كه چري دطواف نه پس څوك دوه ركعتونه ترك كړي نو قرباني كول به واجب وي ، ددي مسئلي دتمامو شاخونو وضاحت د سورة البقرة د ايت كريمه"وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى" د تفسير په ضمن كې مونږ كړي دي.راز قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله،

***************

## ٤٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَبَعْدَ الصُّبْحِ لِمَنْ يَطُوفُ

### دطواف نه پس دمازيګر او دسحر دمونځ نه پس د دوه ركعاتونو كولو بيان

٨٦٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ، وَعَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، قَالاَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَابَاهَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ لاَ تَمْنَعُوا أَحَدًا طَافَ بِهَذَا الْبَيْتِ، وَصَلَّى أَيَّةَ سَاعَةٍ شَاءَ مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ". وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي ذَرٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جُبَيْرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَابَاهَ أَيْضًا، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الصَّلاَةِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَبَعْدَ الصُّبْحِ بِمَكَّةَ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: لاَ بَأْسَ بِالصَّلاَةِ وَالطَّوَافِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَبَعْدَ الصُّبْحِ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَاحْتَجُّوا بِحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا. وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا طَافَ بَعْدَ الْعَصْرِ لَمْ يُصَلِّ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، وَكَذَلِكَ إِنْ طَافَ بَعْدَ صَلاَةِ الصُّبْحِ أَيْضًا لَمْ يُصَلِّ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَاحْتَجُّوا بِحَدِيثِ عُمَرَ أَنَّهُ طَافَ بَعْدَ صَلاَةِ الصُّبْحِ فَلَمْ يُصَلِّ، وَخَرَجَ مِنْ مَكَّةَ حَتَّى نَزَلَ بِذِي طُوًى فَصَلَّى بَعْدَ مَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. (١)

**ترجمه** دجبير بن مطعم رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي اي بني عبد مناف! دشپي او ورځي په هره حصه كې په دي كور كې طواف كول او مونځ كول مه بندوئ.

امام ترمذي واني د جبير بن مطعم رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او عبدالله بن ابي نجيح هم دا حديث د عبدالله بن" باباه" نه نقل كړي دي، په دي باب كې دابن عباس او ابو ذر

---

[1] ـ ابي داود في الحج ٥٣ (١٨٩٣) . سنن النسائي في المواقيت ٤١ (٥٨٦) . والحج ١٣٧ (٢٩٢٧) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٣٩ (١٢٥٦) . (تحفة الأشراف : ٣١٨٧) . مسند احمد (٤ في ٨٠، ٨١، ٨٣) . سنن الدارمي في المناسك ٧٩ (١٩٦٧)

رضي الله عنه نه هم احاديث معلوميږي، په مکه کي دمازيگر نه پس او دسحر نه پس دمونځ کولو په سلسله کي په اهل علمو کي اختلاف دي دبعضو قول دي دسحر او مازيگر دمونځ نه پس په دوه رکعاته نفلو کولو او طواف کولو کي څه حرج نشته دا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول دي او هغوئ درسول الله دحديث نه استدلال کړي دي، او دبعضو قول دي که څوك دمازيگر دمونځ نه پس طواف اوکړي نو دنمر پريوتو پوري به مونځ نه کوي دا رنګي که څوك دسحر دمونځ نه پس طواف اوکړي نو دنمر ختلو پوري به مونځ نه کوي ددوئ ددي دليل دعمر رضي الله عنه حديث دي چي هغوئ دسحر دمونځ نه پس طواف وکړو او مونځ يي نه کولو بيا دمکي نه اووتلو ترذي پوري چي ذي طواي مقام ته اورسيدل نو د نمر ختلو نه پس يي هلته مونځ اوکړو دا دسفيان ثوري او مالك بن انس قول دي

**تشريح** : مسئله حاجي چی د طواف نه فارغ شی نود مقام ابراهيم يا چی په مسجدحرام کي ورته په کوم ځائې کي آسانه وی،دوه رکعته دې کوی،دا مونځ زمونږ په نزدواجب دي

اود امام شافعی (رحمه الله) په نزد سنت دي دامام شافعی (رحمه الله) دليل دادې چی ددې مونځ په وجوب باندې چونکه څه دليل نشته ځکه دا واجب نه دي

اوزمونږ دليل دا دې چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی

"وليصل الطائف لكل أسبوع ركعتين"

مونځ دې کوی طواف کونکې د هراوه چکرونو دپاره دوه رکعته،په حديث کي د "ليصل" د امر صيغه ده،او امردپاره د وجوب وی، اوپه يو بل حديث کي دی چی کله رسول پاك صلي الله عليه وسلم مقام ابراهيم ته اورسيدلو نودا آيت ئې تلاوت کړلو:

وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى ،اوبيا ئې دوه رکعته اوکړل،په دې آيت کي هم "اتخذ" د امرصيغه ده.دکوم نه چی وجوب ثابتيږی، خوکه څوك دا سوال اوکړی چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم په کوم وخت کي باندې چی ته مونځ تعليم ورکولو نو هغه وئيلی وو."هل علی غيرهن" رسول پاك صلي الله عليه وسلم په جواب کي فرمائيلی وو."لاإلا أن تطوع" ددې حديث نه معلومه شوه چی د پنځو مونځونو نه سوا بل مونځ واجب او فرض نه دي.

**جواب دادی** چی حديث د باندې چی متروك الظاهر دي ځکه چی په دې باندې د ټولو اتفاق دې چی مونځ د جنازې او مونځ د اخترونو واجب دی.(د اخترونو د مونځ په باره کي د اتفاق دعوی محل نظر دي ځکه ددې په وجوب کي د امامانو اختلاف دي) حالانکه په دې حديث کي ددې مونځونو بيان نشته.

**دويم جواب دادی** چی ممکن ده،حديث د باندېچی ددې نه وړاندې وی.

**دجبير بن مطعم رضي الله عنه مختصر حالات:**

نوم جبير كنيه ابو محمد اودپلار نوم يي معلم قريشي وو ، دصحيح قول مطابق جبير دصلح حديبيه او فتح مكي په درمياني زمانه كي مسلمان شوي وو (الاصابه)
په غزوه حنين كي شريك شو اوپه واپسۍ كي درسول الله سره يو خاي وو(مسند احمد ۴ج/۸۴)
جبير دعلم الانساب لوي عالم او تجربه كار وو چي د ابوبكر صديق رضي الله عنه نه يي دا علم حاصل كړي وو ، عمر فاروق رضي الله عنه چي به كله تحقيقاتو كولو ته مجبور شو نودده دعلم نه به يي استفاده كوله ، جبير اګرچي دقوم سردار هم وو ليكن دتكبر دشائبي نه بلكل پاك وو ، دقريشو په حكيم ترينو خلقو كي شميرلي شو ،اوپه ۵۷ هجري كي په مدينه طيبه كي وفات شو(اسد الغابه)
دجبير دمروياتو شمير شپيتو ته رسيګي چي بعضي پكي متفق عليه او بعضي صرف دبخاري نقل كړده دي.

***************

## ۴۳_ باب مَا جَاءَ مَا يُقْرَأُ فِي رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ

**دطواف په دوه ركعاتونو كي كوم كوم سورتونه لوستل پكاردي**

۸۶۹_ أَخْبَرَنَا أَبُو مُصْعَبٍ الْمَدَنِيُّ قِرَاءَةً، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عِمْرَانَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " قَرَأَ فِي رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ: بِسُورَتَيِ الْإِخْلَاصِ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ".(1)

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دطواف په دوه ركعاتونو كي داخلاص دوه سورتونه يعني قل يا ايها الكافرون او قل هو الله احد اولوستلو.

***************

۸۷۰_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ كَانَ " يَسْتَحِبُّ أَنْ يَقْرَأَ فِي رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ بِ: قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عِمْرَانَ، وَحَدِيثُ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ فِي هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۲۶۱۳)

جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عِمْرَانَ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ. (1)

**ترجمه** : دمحمد (بن علي الباقر) نه روايت دي چي هغه به دطواف په دوه ركعاتونو كي قل يا ايهاالكافرون او قل هو الله احد لوستل مستحب گنړل.

امام ترمذي وائي سفيان والا جعفر بن محمد عن ابيه روايت دعبدالعزيز بن عمران دحديث نه زيات صحيح دي، او دجعفر بن محمد روايت كوم چي هغه دخپل پلار نه نقل كړي دي دا دمحمد درروايت نه زيات صحيح دي كوم چي هغه دخپل پلار نه او هغه دجابر نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كوي، او عبدالعزيز بن عمران دمحدثينو په نزد ضعيف دي

**مستحباب او اداب دطواف**

كله چي يي په كعبه نظر پريوځي نو الله اكبر او لااله الاالله دي ولولي او دعا دي وكړي. دطبراني په روايت كي دي چي دكعبي دليدو په وخت كي دعا غوښتل مستحب دي كه چري ځوك حجر اسود ته ورسيږي نو په دواړو شونډو دي دي لره ښكل كړي خو پدي شرط چي ده ته يكي څه تكليف نه وي ، دبخاري بيان دي چي ابن عمررضي الله عنهما به حجر اسود ښكلولو دامام شافعي نه په يو مرفوع روايت كي مروي دي چي رسول پاك صلي الله عليه وسلم به د ډير وخته پوري په حجر اسود خپلي شونډي ايخودلي وي دابن ماجه په روايت كي دي چي ډيره شيبه يي په حجر اسود كي شونډي ايخودلي وي ، دحاكم روايت دي چي رسول الله حجر اسود ښكل كړو او سجده يي ورباندي هم اوكړه كه چري ځوك په ښكلولو او دلاس په لګولو قادر نه وي نو په بل كوم څيز دي دي لره مسح كړي ، مخكي حديث تير شوي دي چي رسول الله په اوښ سور شو او طواف يي اوكړو او پخپله چوكه يي حجر اسود مسح كړو كه چري دومره هم ممكن نه وي نو حجر اسود ته دي څان مخامخ كړي او اودريدل دي اوكړي .

دسعيد ب مسيب نه روايت دي چي عمر فاروق رضي الله عنه ماته درسول الله صلي الله عليه وسلم حديث بيان كړو چي ته قوي يي دحجر اسود سره ډير مه اودريږه او كمزورو ته تكليف مه وركوه كه چري ځاي خالي وي نو ښكل يي كړه او كه نه وي نو څان ورته مخامخ كړه او لااله الاالله اووايه (رواه احمد ).

**مسئله**: ركن يماني ته چي ورسيږي نو دي لره به مسح كړي دجمهورو اهل علمو همدا قول دي، دامام ابو حنيفه په نزد ركن يماني مسح كول مستحب دي سنت نه دي ، په صحيحينو

1 ـ مسلم في انظر ما قبله (تحفة الأشراف : ١٩٣٢٢)

كي دابن عمررضي الله عنهما قول مروي دي فرمانيل يي ما اوليدل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دي دواړو لره يعني حجر اسود او ركن يماني لره ښكلولو

دارقطني مرفوع روايت ذكر كړي دي چي رسول الله ركن يماني ښكلولو او پدي يي خپل مخ مبارك ايخودلي وو ، ابن ماجه دابو هريره رضي الله عنه نه مرفوع روايت نقل كړي دي دركن يماني سره اويا فرشتي ولاړي دي او هلته داسي وائي "اللهمّ انى أسئلك العفو والعافية في الدنيا والاخرة ربّنا اتنا في الدّنيا حسنة وفي الاخرة حسنة وقنا عذاب النّار قالوا أمين"

**مسئله:** دطواف قدوم نه مخكي دري چكرونه په تيز رفتارئ سره وهل پكار دي دڅادر يو پلو دترخ لاندي په سينه باندي اچول او دلاندي طرف نه دبل طرف دلاندي څادر په بله اوږه دپاسه اچول پكار دي چكر به دحجر اسود نه شروع كوي او په حجر اسود به يي ختموي او دا سنت طريقه ده په صحيح روايت كي راغلي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دحجر اسود نه دحجر اسود پوري په تيز رفتارئ سره دري چكرونه اووهل او باقي څلور چكرونه يي په عام رفتار سره اووهل او كله چي به حجر اسود اوركن يماني ته اورسيدل نو هغه عمل به يي اوكړو كوم چي به يي په رومبي چكر كي كړي وو او اخري طواف به يي دحجر اسود په ښكلولو يا مسه كولو ختم كړو او تكبير او تهليل به يي وئيل ، دجابر رضي الله عنه په روايت كي راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مونځ كي مقام ابراهيم لره دخپل خان او كعبي په مينځ كي كړي دي او دوه ركعاته مونځ يي كړي دي په كومو كي چي يي " قُلْ يا أَيُّهَا الكافِرُونَ، او ،إخلاص " لوستلي وو او بيا حجر اسود ښكلولو ته واپس ورغلي وو.

***************

## ٤٤_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الطَّوَافِ عُرْيَانًا

### په بربنډه دطواف كولو دحرمت بيان

٨٧١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ. أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. عَنْ زَيْدِ بْنِ أُثَيْعٍ. قَالَ: سَأَلْتُ عَلِيًّا بِأَيِّ شَيْءٍ بُعِثْتَ. قَالَ: " بِأَرْبَعٍ: لَا يَدْخُلُ الجَنَّةَ إِلَّا نَفْسٌ مُسْلِمَةٌ. وَلَا يَطُوفُ بِالبَيْتِ عُرْيَانٌ. وَلَا يَجْتَمِعُ المُسْلِمُونَ وَالمُشْرِكُونَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا. وَمَنْ كَانَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ. فَعَهْدُهُ إِلَى مُدَّتِهِ. وَمَنْ لَا مُدَّةَ لَهُ فَأَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ " . قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

---

[1] _ تفرد به المؤلف. وأعاده في تفسير التوبة (٣٠٩٢) (تحفة الأشراف : ١٠١٠١)

**ترجمه** دزيد بن اثيع بيان دي چي دعلي رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو ته په كومو كومو خبرو دحكم كولو دپاره دلته راليږلي شوي يي؟ هغه اووئيل په څلورو خبرو دحكم كولو دپاره راليږلي شوي يم او جنت ته به صرف هغه انسان داخليږي چي مسلمان وي او دبيت الله طواف دي څوك په بربنډ حالت كي نه كوي او نه دي مسلمانان او مشركان د دي كال نه پس جمع كيږي او دچاچي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره كومه معاهده وي نو دهغه دپاره به دهغه عهد دخپلي نيتي پوري وي او دچا سره چي درسول الله كومه وعده نه وي دهغه دپاره نيته څلور مياشتي ده

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن دي او په دي باب كي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي.

**تشريح**: دامام ابو حنيفه په نزد دنجاست حقيقيه نه طهارت سنت دي او دنجاست حكميه نه واجب دي او ستر دعورت هم واجب دي د دي په ترك كولو سره گناه لازميږي . كه چري په بربنډ حالت يادجنابت په حالت كي څوك فرض طواف اوكړي نو ديوي بدني قرباني كول به ورباندي لازم وي او كه بغير اودسه يي فرض طواف كړي وي نو يوه قرباني به كوي اگر كه دهر شي وي. همدارنگي غير فرضي طواف هم كه دجنابت يادبربنډوالي په حالت كي څوك اوكړي نو څه قرباني دي اوكړي (وړه وي اوكه لويه وي) او كه غير فرض طواف يي بي اودسه اوكړو نو نيم صاع غنم دي كوم مسكين ته په طور دكفاري وركړي. الكفايه والعنايه بشرح الهدايه.

قاضي ثناء الله پاني پتي پخپل تفسير كي د ايت كريمه يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ. په تفسير كي ليكلي دي د كلبي قول دی چي دطواف يادمونځ دپاره په مسجد كي دلباس اهتمام اوكړئ اوپه همدي بنياد ابن همام وئيلي دي چي د دي ايت نزول دبربنډ طواف كولو دحرمت په باره كي شوي دي اعتبار اگر چي عموم دالفاظولره وي اوخصوص دسبب لره نه وي ليكن په سبب كي دټولو نه مخكي براه راست حكم متحقق كيدل ضروري دي (اگر چي دحكم حصر پدي سبب كي نه وي) ځكه چي دټولو نه مخكي په همدي سبب كي دحكم تحقق مقصود وي اوبيا بالواسطه (دالفاظو دعموم په اعتبار) دنورو صورتونو دپاره هم دغه حكم وي اوزمونږ په نزد په طواف كولو كي ستر دعورت واجب دي مگر دطواف شرط ندي كه چري څوك بربنډ طواف اوكړي نو طواف يي ادا كيږي مگر گنهگاربه وي

عربو به دجاهليت په وخت كي په بربنډه طوافونه كول او وئيل به يي په كومو جامو كي چي مونږ دالله تعالي نافرمانياني كړي دي په هغي كي طواف نه كوو ، اوښځوبه هم بربنډ طوافونه كول اوداټول واقعات دايت كريمه:

" يَا بَنِي آدَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ كَمَا أَخْرَجَ أَبَوَيْكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْآتِهِمَا إِنَّهُ يَرَاكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ إِنَّا جَعَلْنَا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ. وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً قَالُوا وَجَدْنَا عَلَيْهَا آبَاءَنَا وَاللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ. قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ. فَرِيقًا هَدَى وَفَرِيقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ إِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ مُهْتَدُونَ. يَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ. قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ الَّتِي أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ وَالطَّيِّبَاتِ مِنَ الرِّزْقِ قُلْ هِيَ لِلَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَذَلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ. قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ " دنزول اسباب دي.

بلكي دادم عليه السلام قصه هم ددي دتمهيد په طور ذكر كړي شوي ده ددي دپاره چي معلومه شي چي دټولو نه اولني درد كوم چي دشيطان دطرف نه انسان ته اورسيدو هغه دپټو اعضاؤ دبربنډولو په شكل كي وو، ددي تمامو ايتونو نه معلوميږي چي چي دشرمګاهونو دپټولو دپاره دلباس تخليق دالله تعالي يو عظيم الشان نعمت دي او همدا تقوي ده ، بي پردګي اود اعضاء مخصوصه بربنډول عظيم الشان شر او فتنه اوشيطاني اغوا ده په كومه كي چي ابليس ستاسو پلار ادم عليه السلام مبتلا كړي وو او اوس تاسو لره په دي كي مبتلا كوي.
دا قوي بي حيايي ده دكومي ارتكاب چي به عربو دپلار نيكه په پيروئ كي كولو او په الله تعالي به يي بهتان تړلو چي دوئ ته يي ددي حكم كړي دي، الله تعالي دبي حيايئ دكارونو حكم نه دي كړي هغه خو يوي ډلي دته هدايت كړي دي اوبله ډله يي ګمراه كړي ده ، ددي تمامو ايتونو نه معلوميږي چي داعضاء مخصوصه بي پردي كول بي حيايي ده او مطلقا حرام دي ، اوشريف طبيعتونه دي لره بد اودعيب قابل ګڼړي او علم دي لره قبيح ګڼړي ، اوددي بي حيايئ ارتكاب په طواف اونورو عبادتونو كي خو نور هم زيات بد دي او ددي حرمت خو په درجه اولي وارد دي.
اوعربو چي به كومه دعوه كوله چي دطواف په وخت كي جامي اغوستل درست نه دي اوپه حج كي به يي غوښه خوړل او ترسكون څيزونه خوړل حرام ګڼړل دا دعوه بالكل غلطه ده الله تعالي ددي په ترديد كي فرمائيلي دي.

" قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْإِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَأَنْ تُشْرِكُوا بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ "

يعي عورت بربنډول بي حيايي ده او الله تعالي حرام کړي دي ليکن دعورت بربنډولو باوجود دعورت د ښکاره کولو حرمت اودستر دعورت وجوب دا خبره په کوم ايت کي نده راغلي چي اعضاء مخصوصه پټ ساتل دطواف شرط دي (چي ددينه بغير طواف نه کيږي) همدا وجه ده چي امام ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمائيلي دي که چري څوك په بربنډه طواف اوکړي نو ګنهګار به ضرور وي مګر طواف يي ادا کيږي

مګر اکثر ائمه دفرض طواف دادا کيدو هم قائل ندي خکه چي دابو هريره ضي الله عنه بيان دي چي دحجة الوداع نه يو کال مخکي چي کله رسول الله صديق اکبر رضي الله عنه حج ته دامير په صفت ليږلي وو نو زه يي هم ديو جماعت سره مقرر کړم او حکم يي راته وکړو چي دقربانۍ په ورځ په ټولو خلقو کي اعلان اوکړه چي ددي کال نه پس به هيڅ يو مشرك حج ته نه راځي اونه به څوك په بربنډ حالت کي طواف کوي (متفق عليه)

*****************

٨٧٢ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، وَنَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ نَحْوَهُ، وَقَالَا: زَيْدُ بْنُ يُثَيْعٍ وَهَذَا أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَشُعْبَةُ وَهِمَ فِيهِ، فَقَالَ: زَيْدُ بْنُ أُثَيْلٍ. (١)

**ترجمه** مونږ ته سفيان بن عيينه بيان کړي دي او سفيان دابواسحاق سبيعي نه دماقبل حديث هم معني روايت يي بيان کړو البته ابن ابي عمر او نصر بن علي داثيع په خاي باندي يثيع اوونيل او دا زيات صحيح دي، امام ترمذي وائي شعبه ته په دي کي وهم پيدا شوي دي او هغه زيد بن اثيل ذکر کړي دي.

****************

## ٤٥ـ باب مَا جَاءَ فِي دُخُولِ الْكَعْبَةِ

### کعبې ته د داخليدو بيان

٨٧٣ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِي وَهُوَ قَرِيرُ الْعَيْنِ طَيِّبُ النَّفْسِ، فَرَجَعَ إِلَيَّ وَهُوَ حَزِينٌ، فَقُلْتُ لَهُ: فَقَالَ: "إِنِّي دَخَلْتُ الْكَعْبَةَ وَوَدِدْتُ أَنِّي لَمْ أَكُنْ فَعَلْتُ إِنِّي أَخَافُ أَنْ أَكُونَ أَتْعَبْتُ أُمَّتِي مِنْ بَعْدِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

---

1 ـ تفرد به المؤلف، وأعاده في تفسير التوبة (٣٠٩٢) (تحفة الأشراف: ١٠١٠١)

2 ـ ابي داود في الحج ٩٥ (٢٠٢٩)، سنن ابن ماجه في المناسک (٧٩) (٣٠٦٣) (تحفة الأشراف: ١٦٢٣٠)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم چي زما دخوا نه وتلو نو سترگي يي يخي وي او طبيعت يي خوشحاله وو بيا چي واپس راغي نو غمژن او طبيعت يي خراب وو ما ورنه دوجي تپوس اوکړو نو ويي فرمائيل زه کعبي ته ورننوتلي وم خو دا خواهش مي اوکړو چي کاش ما داسي کړي نه وي چي ما خو دخپل ځان نه پس خپل امت په تکليف کي واچو امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي

**************

## ٤٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ فِي الْكَعْبَةِ

## په کعبي کي ددننه دمونځ کولو بيان

٨٧٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ بِلَالٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى فِي جَوْفِ الْكَعْبَةِ". قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لَمْ يُصَلِّ وَلَكِنَّهُ كَبَّرَ، قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، وَالْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَعُثْمَانَ بْنِ طَلْحَةَ، وَشَيْبَةَ بْنِ عُثْمَانَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بِلَالٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا يَرَوْنَ بِالصَّلَاةِ فِي الْكَعْبَةِ بَأْسًا، وَقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ: لَا بَأْسَ بِالصَّلَاةِ النَّافِلَةِ فِي الْكَعْبَةِ، وَكَرِهَ أَنْ تُصَلَّى الْمَكْتُوبَةُ فِي الْكَعْبَةِ. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا بَأْسَ أَنْ تُصَلَّى الْمَكْتُوبَةُ وَالتَّطَوُّعُ فِي الْكَعْبَةِ، لِأَنَّ حُكْمَ النَّافِلَةِ وَالْمَكْتُوبَةِ فِي الطَّهَارَةِ وَالْقِبْلَةِ سَوَاءٌ. [1]

**ترجمه** دبلال رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په کعبه کي دننه مونځ اوکړو مګر ابن عباس رضي الله عنهما وائي مونځ يي نه دي کړي بلکي صرف تکبير يي وئيلي وو

امام ترمذي وائي دبلال حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي داسامه بن زيد، فضل بن عباس، عثمان بن طلحه او شيبه بن عثمان رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داکثرو اهل علمو عمل هم په دي باندي دي چي هغوئ په کعبه کي دننه په مونځ کولو کي څه حرج نه وي نو. دانس بن مالك قول دي په کعبه کي دننه په نفلي مونځ کولو کي هيڅ حرج نشته او

[1] ـ أخرجه البخاری في الصلاة ٣٠ (٣٩٧)، و٨١ (٣٨٦)، و٩٦ (٥٠٣)، والتهجد ٢٥ (١١٦٧)، والحج ٥١ (١٥٩٨)، والجهاد ١٢٧ (٢٩٨٨)، والمغازي ٤٩ (٤٢٨٩)، و٧٧ (٤٤٠٠)، و مسلم في الحج ٦٨ (١٣٢٩)، و ابي داود في الحج ٩٣ (٢٠٢٣)، و النسائي في المساجد ٥ (٦٩١)، والقبلة ٦ (٧٤٨)، والحج ١٢٦ (٢٩٠٨)، و١٢٧ (٢٩٠٩)، و ابن ماجه في المناسک ٧٩ (٣٠٦٣)، موطا مالک في الحج ٦٣ (١٩٣)، مسند احمد (٢ في ٢٣، ٥٥، ١١٣، ١٢٠٠، ١٣٨)، و الدارمي في المناسک ٤٣ (١٩٠٨)

فرضي مونځ کول مکروه دي ، امام شافعي وائي په کعبه کي فرضي او نفلي دواړه مونځونه درست دي ځکه چي دنفل او دفرض حکم داودس او قبلي په باره کي يو شان دي.

## دبلال رضي الله عنه حالات

نوم بلال کنيه ابو عبدالله دپلارنوم رباح دمور نوم بي حمامه وو دی يو حبشي غلام وو لمکي په مکه کي پيدا شوی وو بني يمح دده مالکان وو بلال دظاهري صورت په لحاظ سره توررنګی حبشي وو چي داسلام په ابتداء کي مسلمان شوی وو ډير سخت ازمائش ورباندي راغلی وو چي په ګرمو کاڼو او بلو سکروټو څملولی شوی وو او ددي باوجود په اسلام باندي کلك وو ابوبکر رضي الله عنه واخستو او ازاد يي کړو کله چي دمکي نه دهجرت کولو حکم راغی نو هجرت يي اوکړو او مديني ته اورسيدو او داسلام ړومبنی مؤذن مقرر شو ځکه چي دده اواز انتهائي تيز او دلکش وو دده په غير موجودګئ کي به ابومحذوره يا ابن ام مکتوم اذان کولو.

په تمامو غزواتو کي شريك شوی وو او په فتح مکه کي هم د رسول الله صلي الله عليه وسلم ملګری وو دوفات نبوي نه پس شام ته منتقل شو او دبهتريني درجي اخلاقو مالك وو عمر رضي الله عنه به فرمائيل ابوبکر سيدنا واعتق سيدنا يعني ابوبکر چي زمونږ سردار دی هغه زمونږ سردار بلال لره ازاد کړی دی دهجرت په شلم کال چي عمر يي تقريبا شپيته کاله وو په دمشق کي وفات شو او دباب صغير خواته دفن کړی شو ۴۴احاديث ورنه منقول دي چي يو په دي کي متفق عليه دی دوه په مسلم کي دي او يو په بخاري کي راسد الغابه او طبقات ابن سعد کي مزيد تفصيل ذکر شوی دی).

*****************

## ٤٧ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَسْرِ الْكَعْبَةِ

### (دمرمت دپاره) دکعبي دماتولو او ورا لولو بيان

٨٧٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ. عَنْ شُعْبَةَ. عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ. أَنَّ ابْنَ الزُّبَيْرِ. قَالَ لَهُ: حَدِّثْنِي بِمَا كَانَتْ تُفْضِي إِلَيْكَ أُمُّ الْمُؤْمِنِينَ يَعْنِي عَائِشَةَ. فَقَالَ: حَدَّثَتْنِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ لَهَا: " لَوْلَا أَنَّ قَوْمَكِ حَدِيثُو عَهْدٍ بِالْجَاهِلِيَّةِ

لَهَدَمْتُ الْكَعْبَةَ وَجَعَلْتُ لَهَا بَابَيْنِ ". قَالَ: فَلَمَّا مَلَكَ ابْنُ الزُّبَيْرِ هَدَمَهَا وَجَعَلَ لَهَا بَابَيْنِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** داسود بن يزيد نه روايت دي فرمائي چي عبدالله بن زبير راته اوونيل هغه خبري راته بيان کړه کومي چي به تاته عائشه رضي الله عنها درازداري په طور بيانولي يزيد اوونيل هغي راته يو روايت بيان کړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته فرمائيلي وو که چرې ستا دقوم خلق تازه دجاهليت نه راوتلي نه وي او تازه مسلمانان شوي نه وي نو ما به کعبه غورځولي وه او په دي کي به مي دوه دروازي جوړي کړي وي چنانچه هر کله دابن زبير اقتدار راغلو نو کعبه يي اوغورځوله او په دي کي يي دوه دروازي جوړي کړي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : دکعبي تعمير لس پيري شوي دي.

(۱) اول تعمير دکعبي دادم عليه السلام دتخليق نه دوه زره کاله مخکي فرشتو کړي وو.

(۲) په دويم خل ادم عليه السلام دکعبي تعمير اوکړو

(۳) په دريم خل شيث عليه السلام کعبه جوړه کړه او دا تعمير دطوفان نوح پوري قائم وو

(۴) ابراهيم عليه السلام کعبه جوړه کړي وه ، ددينه معلومه شوه چي ابراهيم عليه السلام اولني جوړونکي نه دي او په قران کريم هم ددي تائيد کيږي په "واذ يرفع ابراهيم القواعد" کي درفع القواعد ذکر دي او دتاسيس ذکر دلته نشته.

(۵) په پنځم خل کعبه عمالقه قوم جوړه کړي وه.

(۶) په شپږم خل بنو جرهم قبيلي جوړه کړي وه

(۷) په اوم خل قصي بني کلاب دکعبي تعمير قائم کړي وو.

(۸) په اتم خل قريشو کعبه اباده کړه او په دي تعمير کي حجر اسود نبي کريم صلي الله عليه وسلم پخپل لاس مبارک نصب کړو ددي تعمير جوړولو پوري دبيت الله دروازي دوه وي يوه مشرقي جانب ته او بله مغربي جانب ته، دتعمير دپاره خرچه کمه شوه نو په دي وجه يوه دروازه جوړه کړي شوه نو دکعبي حطيم دتعمير نه اوويستلي شو، دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دا تمنا او خواهش وو دبيت الله دابراهيم تعمير مطابق اباد کړي شي ليکن دا ارمان يي په زندګئ کي پوره نشو .

---

[1] _ النسائي في الحج ١٢٥ (٢٩٠٥) (تحفة الأشراف : ١٦٠٢٠) و البخاري في الحج ٤٢ (١٥٨٣) . والأنبياء ١٠ (٣٣٦٨) . وتفسير البقرة ١٠ (٤٤٨٤) . ومسلم في الحج ٦٩ (١٣٣٣) . سنن النسائي في الحج ١٢٥ (٢٩٠٢) . موطأ مالك في الحج ٣٣ (١٠٤) . مسند احمد (٦ في ١١٣، ١٧٧، ٢٤٧، ٢٥٣، ٢٥٢)

(۹) په نهم ځل عبدالله بن زبير رضي الله عنه دخپل خلافت په زمانه کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ارمان مطابق کعبه تعمير کړه.
(۱۰) او په لسم ځل حجاج بن يوسف دمکي دقريشو دمکي مطابق کعبه جوړه کړه، بيا ددينه پس هارون الرشيد بادشاه په يولسم ځل جوړه کړه او دابراهيمي تعمير مطابق دجوړولو اراده بي اوکړه ليکن امام مالك منع کړو چي په دي طريقه به دبيت الله تعمير او ورانول دبادشاهانو يوه لوبه جوړه شي هارون الرشيد دا مسئله قبوله کړه او دتعمير جوړولو اراده يي پريخوده زمونږ ترزماني پوري دحجاج بن يوسف جوړ کړي تعمير راروان دي البته ددي دمرمت کار وخت په وخت ډيري پيري شوي دي

**د عبدالله بن زبير رضي الله عنهما حالات:**

نوم عبدالله کنيه ابو حبيب ، ابوبکر، او ابو خبيب دپلار نوم يي زبير وو او دمور نوم يي اسماء او لقب يي ذات النطاقين وو چي دهجرت په رومبي کال پيدا شوی دی په مهاجرينو کي دا اولنی ماشوم پيدا شوی وو رسول الله صلي الله عليه وسلم په طور دتبرك کجوره په خوله کي اوچوپله او بيا يي دده په خوله کي واچوله
داوه کالو په عمر کي يي رسول الله صلي الله عليه وسلم سره بيعت کړی دی (مستدرك حاکم).
دټولو نه رومبی هغه جنګ چي عبدالله بن زبير پکي شريك شوی وو غزوه يرموك ده (الاصابه)
او چي په دي جنګ کي کومه توره دده لاس ته ورغلي وه نو دمرګه پوري يي دلاس نه کوزه نکړه عبدالله بن زبير ډيرو ژبو ماهر وو او ډيرو غلامانو مالك وو چي مختلفي ژبي به يي وئيلي عبدالله بن زبير به ددوئ ټولو سره ددوئ په مورنئ ژبو کي خبري کولي (تاريخ الخلفاء سيوطي)
وفات، په ۷۲هجري کي په ذي قعده کي عبدالملك بن مروان حجاج بن يوسف دعبدالله بن زبير مقابلي ته اوليږلو او پدغه وخت کي يي په خرم کي پناه اخستلي وه ډيرو ورخو پوري په حرم کي دمحاصري په حال کښ پروت وو او ډيرو مياشتو پوري ورباندي داوړ او کانړوخطرناك بارانونه کيدل خو اخر دا چي ۷۳جمادي الثاني کي وفات شو دمروياتو شمير يي ۳۳دی چي دوه په دي کي متفق عليه دي او شپږ په بخاري کي او دوه په مسلم کي.

***************

## ٤٨_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ فِي الْحِجْرِ

**په حطيم کي دمونځ کولو بيان**

٨٧٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ أَبِي عَلْقَمَةَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ أُحِبُّ أَنْ أَدْخُلَ الْبَيْتَ فَأُصَلِّيَ فِيهِ، فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِي فَأَدْخَلَنِي الْحِجْرَ، فَقَالَ: " صَلِّي فِي الْحِجْرِ إِنْ أَرَدْتِ دُخُولَ الْبَيْتِ، فَإِنَّمَا هُوَ قِطْعَةٌ مِنَ الْبَيْتِ، وَلَكِنَّ قَوْمَكِ اسْتَقْصَرُوهُ حِينَ بَنَوُا الْكَعْبَةَ، فَأَخْرَجُوهُ مِنَ الْبَيْتِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَعَلْقَمَةُ بْنُ أَبِي عَلْقَمَةَ هُوَ عَلْقَمَةُ بْنُ بِلَالٍ. [1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرماني چي ما غوښتل چي بيت الله ته داخله شم او مونځ پکي اوكړم او رسول الله صلي الله عليه وسلم زما لاس اونيولو او زه يي حطيم ته داخل كړم او راته يي اوفرمائيل كه چري ته بيت الله ته داخليدل غواړي نو په حطيم كي مونځ اوكړه دا هم دبيت الله يود حصه ده ليكن ستا دقوم خلقو دكعبي دجوړولو په وخت كي بيت الله وړوكي كړي دي او دا حصه يي ورنه خارج كړي ده

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.او علقمه بن ابي علقمه خو علقمه بن بلال دي

***************

## ٤٩_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْحَجَرِ الأَسْوَدِ وَالرُّكْنِ وَالْمَقَامِ

**دحجر اسود ، ركن يماني ، او مقام ابراهيم دفضيلت بيان**

٨٧٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَزَلَ الْحَجَرُ الأَسْوَدُ مِنَ الْجَنَّةِ وَهُوَ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ، فَسَوَّدَتْهُ خَطَايَا بَنِي آدَمَ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي حجر اسود دجنت نه راليږلي شوي دي او دا د شودو نه زيات سپين وو ليكن دبنيادمانو گناهونو تور كړو.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعبدالله بن عمر او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

---

[1] _ ابي داود في الحج ٩٣ (٢٠٢٨). سنن النسائي في الحج ١٢٨ (٢٩١٥) (تحفة الأشراف : ١٧٩٦١). مسند احمد (٦ في ٩٢)

[2] _ النسائي في الحج ١٣٥ (٢٩٣٨) (تحفة الأشراف : ٥٥٧١). مسند احمد (١ في ٣٠٧، ٣٢٩، ٣٧٣)

**تشريح** : حجر اسود او رکن یو شي دي، په حجر اسود رکن نوم خکه ایخودلي شوي دي چي دا دکعبي په یو گوټ کي پروت دي او وجه دتسمیه په حدیث کي بیان شوي ده او دمقام ابراهیم نه مراد هغه کاڼي دي په کوم چي به ابراهیم علیه السلام دکعبي جوړولو دکار دپاره اودریدو او بیا به یي کعبه جوړوله

****************

٨٧٨ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ رَجَاءٍ أَبِي يَحْيَى، قَالَ: سَمِعْتُ مُسَافِعًا الحَاجِبَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ الرُّكْنَ، وَالمَقَامَ يَاقُوتَتَانِ مِنْ يَاقُوتِ الجَنَّةِ، طَمَسَ اللَّهُ نُورَهُمَا، وَلَوْ لَمْ يَطْمِسْ نُورَهُمَا لَأَضَاءَتَا مَا بَيْنَ المَشْرِقِ وَالمَغْرِبِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا يُرْوَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو موقوفاً قَوْلُهُ، وَفِيهِ عَنْ أَنَسٍ أَيْضًا، وَهُوَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه مروي دي چي ما درسول الله صلي الله علیه وسلم نه اوریدلي دي فرمائیل یي چي حجر اسود او مقام ابراهیم دواړه دجنت په یاقوتونو کي یاقوت دي الله تعالي ددوئ نور ختم کړو او که الله تعالي ددوئ نور ختم کړي نه وي نو دمشرق نه ترمغربه پوري ټوله دنیا به یي رڼا کړي وه

امام ترمذي وائي داحدیث غریب دي دا دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه موقوفاً دهغه قول نقل کړي شوي دي، او په دي باب کي دانس رضي الله عنه نه هم یو روایت وارد دي

****************

## ٥٠ـ باب مَا جَاءَ فِي الخُرُوجِ إِلَى مِنًى وَالمُقَامِ بِهَا

### مني ته دتلو او هلته دقیام کولو دفضیلت بیان

٨٧٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الأَجْلَحِ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى الظُّهْرَ وَالعَصْرَ

---

1 ـ تفرد به المؤلف وانظر: مسند احمد (٢ في ٢١٣، ٢١٤) (التحفة: ٨٩٣٠)

وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ وَالْفَجْرَ ثُمَّ غَدَا إِلَى عَرَفَاتٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِسْمَاعِيل بْنُ مُسْلِمٍ قَدْ تَكَلَّمُوا فِيهِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. ([1])

***************

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم په منې کي دماسپخين ، مازيگر، ماښام، ماخوستن، او سحر مونځونه راکړل او بيا دسبا کيدو سره عرفات ته روان شو

امام ترمذي وائي په اسماعيل بن مسلم باندي دهغه دحافظي په اعتبار كلام شوي دي

***************

٨٨٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْأَشَجُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْأَجْلَحِ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " صَلَّى بِمِنًى الظُّهْرَ وَالْفَجْرَ، ثُمَّ غَدَا إِلَى عَرَفَاتٍ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مِقْسَمٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ: قَالَ يَحْيَى: قَالَ شُعْبَةُ: لَمْ يَسْمَعْ الْحَكَمُ مِنْ مِقْسَمٍ إِلَّا خَمْسَةَ أَشْيَاءَ وَعَدَّهَا، وَلَيْسَ هَذَا الْحَدِيثُ فِيمَا عَدَّ شُعْبَةُ. ([2])

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم په منې کي دماسپخين ، مازيگر، ماښام، ماخوستن، او سحر مونځونه راکړل او بيا دسبا کيدو سره عرفات ته روان شو

امام ترمذي وائي د مقسم حديث دابن عباس نه مروي دى، د شعبه قول دي مقسم صرف پنځه څيزونه اوريدلي دي، او بيا يي هغه وشميرل نو دا حديث په هغي کي نه وو، په دي باب کي د عبد الله بن زبير او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

## ٥١ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ مِنًى مُنَاخُ مَنْ سَبَقَ

**منې دهغه چا داوديدو ځاي دي څوک چي ديته مخکي رسيدلي وي**

---

[1] ـ ابن ماجه في الحج ٥١ (٣٠٠٤) (تحفة الأشراف : ٥٨٨١)

[2] ـ ابي داود في الحج ٥٩ (٩١١) (تحفة الأشراف : ٦٤٦٥)

٨٨١ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ أُمِّهِ مُسَيْكَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ أَلَا نَبْنِي لَكَ بَيْتًا يُظِلُّكَ بِمِنًى، قَالَ: "لَا مِنًى مُنَاخُ مَنْ سَبَقَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرماني چي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله ايا مونږ ستا دپاره په مني کي يو کور جوړ نکړو چي ستا دپاره يو سوري تيار شي رسول الله اوفرمائيل نه په مني کي دهغه چا دپاره حق دي ځوك چي ديته مخکي ورسيږي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

## ٥٢ـ باب مَا جَاءَ فِي تَقْصِيرِ الصَّلَاةِ بِمِنًى
## په مني کي په مونځ کي دقصر کولو بيان

٨٨٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى آمَنَ مَا كَانَ النَّاسُ وَأَكْثَرَهُ رَكْعَتَيْنِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى رَكْعَتَيْنِ، وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ وَمَعَ عُمَرَ وَمَعَ عُثْمَانَ رَكْعَتَيْنِ صَدْرًا مِنْ إِمَارَتِهِ. وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي تَقْصِيرِ الصَّلَاةِ بِمِنًى لِأَهْلِ مَكَّةَ، فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَيْسَ لِأَهْلِ مَكَّةَ أَنْ يَقْصُرُوا الصَّلَاةَ بِمِنًى، إِلَّا مَنْ كَانَ بِمِنًى مُسَافِرًا، وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ جُرَيْجٍ، وَسُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَيَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْقَطَّانِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا بَأْسَ لِأَهْلِ مَكَّةَ أَنْ يَقْصُرُوا الصَّلَاةَ بِمِنًى، وَهُوَ قَوْلُ الْأَوْزَاعِيِّ، وَمَالِكٍ، وَسُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَهْدِيٍّ. [2]

---

[1] ـ ابي داود في الحج ٩٠ (٢٠١٩). سنن ابن ماجه في المناسک ٥٢ (٣٠٠٢). سنن الدارمی في المناسک ٨٧ (١٩٨٠) (تحفة الأشراف: ١٧٩٦٣)

[2] ـ البخاری في تقصير الصلاة ٢ (١٠٨٣). والحج ٨٣ (١٦٥٦). صحيح مسلم في المسافرين ٢ (٦٩٦). سنن ابي داود في الحج ٧٧ (١٩٦٥). سنن النسائی في تقصير الصلاة ٣ (١٤٤٦). (تحفة الأشراف: ٣٢٨٣). مسند احمد (٣ في ٣٠٦)

**ترجمه** دحارثه بن وهب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره په مني كي دوه ركعاته مونځ اوكړو او خلق دغه وخت كي دمخكي نه زيات محفوظ او په امن كي وو

امام ترمذي وائي دحارثه بن وهب حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن مسعود. ابن عمر. او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. او دابن مسعود رضي الله عنه نه هم مروي دي دهغوئ بيان دي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره په مني كي دوه ركعاتونه اوكړل بيا دابوبكر سره او بيا دعمر سره او بيا د عثمان رضي الله عنهم دخلافت په ابتدائي زمانه كي مي هم ددوئ سره دوه دوه ركعاتونه اوكړل په مني كي په مونځ كي دقصر كولو په سلسله كي داهل علمو په مينځ كي اختلاف دي بعضي اهل علم وائي دا كار داهل مكه دپاره جائز نه دي چي دوئ په مني كي په مونخونو كي قصر اوكړي علاوه ددامي كس نه څوك چي په مني كي دمسافر په حيثيت اوسيږي. او دا دابن جريج . سفيان ثوري. يحى بن سعيد القطان او امام احمد بن حنبل او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي، دبعضي اهل علمو خيال دي په مني كي داهل مكه دپاره په مونځ كي په قصر كولو كي څه حرج نشته دا دامام اوزاعي او امام مالك او سفيان بن عيينه او عبدالرحمن بن مهدي رحمهم الله محدثينو قول دي

**تشريح**: د رمى په شپو كي په منى كي شپې تيرول زمونږ په نزدسنت دى.دويم اود امام شافعى (رحمه الله) په نزدواجب دى. دده ددي قول دليل دادى چى رسول الله صلي الله عليه وسلم د رمى شپې په منى كي تيرې كړې وې.اوكه يوحاجى به په منى كي قيام پريخودلو نو عمر(رضي الله عنه) به هغه ته زورنه وركوله.كه يوحاجى د منى نه علاوه په بل ځائي كى شپه تيره كړه نو زمونږ په نزدپه ده باندې دم وغيره څه نه واجبږى.البته دامام شافعى (رحمه الله) په نزددم واجبيږى.

زمونږ دليل دادى چى دحاجى دپاره په منى كي شپه تيرول ددې دپاره دى چى ده ته رمى آسانه شى نومعلومه شوه چى په منى كي قيام كول د حج په مناسكو كي نه دى .اوهركله چى واجب نه دى نوددې په پريخودو سره به جابر يعنى نقصان پوره كونكې وينه نه لازميږى

**حارثه بن وهب رضي الله عنه حالات**

نوم حارثه دپلار نوم وهب او دمور نوم ام كلثوم بنت جرول ابن مالك بن المسيب الخزاعيه وو ددينه عموما ابواسحاق السبيعي او معبد بن خالد الجهيني رضي الله عنه نقل دروايت كوي، دمروياتو شمير يې شپږ دى چي څلور په دي كي متفق عليه دي

****************

## ٥٣ ـ باب مَا جَاءَ فِي الْوُقُوفِ بِعَرَفَاتٍ وَالدُّعَاءِ بِهَا

### په عرفات کي وقوف کول او دعا غوښتلو بيان

٨٨٣ ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَفْوَانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ شَيْبَانَ، قَالَ: أَتَانَا ابْنُ مِرْبَعٍ الأَنْصَارِيُّ وَنَحْنُ وُقُوفٌ بِالْمَوْقِفِ مَكَانًا يُبَاعِدُهُ عَمْرٌو، فَقَالَ: إِنِّي رَسُولُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْكُمْ، يَقُولُ: "كُونُوا عَلَى مَشَاعِرِكُمْ، فَإِنَّكُمْ عَلَى إِرْثٍ مِنْ إِرْثِ إِبْرَاهِيمَ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، وَالشَّرِيدِ بْنِ سُوَيْدٍ الثَّقَفِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مِرْبَعٍ الأَنْصَارِيِّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، وَابْنُ مِرْبَعٍ اسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ مِرْبَعٍ الأَنْصَارِيُّ، وَإِنَّمَا يُعْرَفُ لَهُ هَذَا الْحَدِيثُ الْوَاحِدُ.[1]

**ترجمه** ديزيد بن شعبان بيان دي فرمائي چي مونږ ته يزيد بن مربع انصاري راغي او مونږ په عرفات کي په داسي ځاي کي ولاړ وو کوم چي عمرو بن عبدالله دامام نه لري ګڼړلو نو يزيد بن مرباع اوونيل زه تاسو ته درسول الله صلي الله عليه وسلم دطرفه راليږلي شوي قاصد يم او تاسو ته دا وايم چي تاسو په مشاعرو اودريږئ ځکه چي تاسو دابراهيم عليه السلام وارثان يئ امام ترمذي وائي ديزيد بن مربع انصاري حديث حسن صحيح دي مونږ ته دا صرف دابن عيينه په سند معلوم دي او ابن عيينه دعمرو بن دينار شاګرد دي دابن مربع نوم يزيد بن مربع انصاري دي او دهغه نه صرف همدا يو حديث مروي دي. په دي باب کي دعلي ، عائشه، جبير بن مطعم، ثريد بن ثويد ثقفي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

****************

٨٨٤ ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الطُّفَاوِيُّ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَتْ قُرَيْشٌ وَمَنْ كَانَ عَلَى دِينِهَا وَهُمُ الْحُمْسُ يَقِفُونَ بِالْمُزْدَلِفَةِ، يَقُولُونَ: نَحْنُ قَطِينُ اللَّهِ، وَكَانَ مَنْ سِوَاهُمْ يَقِفُونَ بِعَرَفَةَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ ( البقرة: ١٩٩ )". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَالَ: وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ: أَنَّ أَهْلَ مَكَّةَ كَانُوا لَا يَخْرُجُونَ مِنَ الْحَرَمِ، وَعَرَفَةُ خَارِجٌ مِنْ

---

[1] ـ ابي داود في الحج ٦٣ (١٩١٩) . سنن النسائي في الحج ٢٠٢ (٣٠١٤) . سنن ابن ماجه في المناسك ٥٥ (٣٠١١) . (تحفة الأشراف: ١٥٥٢٦) . مسند احمد (٤ في ١٣٧)

الْحَرَمِ. وَأَهْلُ مَكَّةَ كَانُوا يَقِفُونَ بِالْمُزْدَلِفَةِ. وَيَقُولُونَ: نَحْنُ قَطِينُ اللَّهِ يَعْنِي سُكَّانَ اللَّهِ. وَمَنْ سِوَى أَهْلِ مَكَّةَ كَانُوا يَقِفُونَ بِعَرَفَاتٍ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ (البقرة آية ١٩٩). وَالْحُمْسُ هُمْ: أَهْلُ الْحَرَمِ. ([1])

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي قريشو او ددوئ هم مذهبه خلقو او دوئ ته "حمس" ونيلي شي په مزدلفه كي وقوف كولو او وئيل به يي مونږ دالله خادمان يو (عرفات نه پيژنو) او څوك چي ددوئ نه علاوه وو نو هغوئ به په عرفات كي وقوف كولو نو الله تعالي دا ايت كريمه نازل كړو " افيضوا من حيث افاض الناس" يعني هغه خاي ته لاړ شئ چرته چي خلق خي (سورة البقره : ١٩٩).

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او ددي حديث معني داده اهل حرم به دحرم نه بهر نه تلل او عرفات دحرم نه بهر دي اهل مكه به صرف په مزدلفه كي وقوف كولو او وئيل به يي مونږ دالله اباد كړي خلق يو، او داهل مكي نه علاوه خلقو به په عرفات كي وقوف كولو نو الله تعالي دا حكم نازل كړو " افيضوا من حيث افاض الناس" يعني هغه خاي ته لاړ شئ چرته چي خلق خي (سورة البقره : ١٩٩) او دحمس نه مراد اهل حرم دي.

***************

## ٥٤_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ عَرَفَةَ كُلَّهَا مَوْقِفٌ

### بيان ددي خبري چي عرفات ټول د اودريدو ځاي دي

٨٨٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَيَّاشِ بْنِ أَبِي رَبِيعَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: وَقَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَفَةَ. فَقَالَ: " هَذِهِ عَرَفَةُ وَهَذَا هُوَ الْمَوْقِفُ، وَعَرَفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ ". ثُمَّ أَفَاضَ حِينَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ، وَأَرْدَفَ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَجَعَلَ يُشِيرُ بِيَدِهِ عَلَى هِينَتِهِ وَالنَّاسُ يَضْرِبُونَ يَمِينًا وَشِمَالًا يَلْتَفِتُ إِلَيْهِمْ، وَيَقُولُ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ عَلَيْكُمُ السَّكِينَةَ. ثُمَّ أَتَى جَمْعًا فَصَلَّى بِهِمُ الصَّلَاتَيْنِ جَمِيعًا. فَلَمَّا أَصْبَحَ أَتَى قُزَحَ فَوَقَفَ عَلَيْهِ، وَقَالَ: " هَذَا قُزَحُ، وَهُوَ الْمَوْقِفُ وَجَمْعٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ ". ثُمَّ أَفَاضَ حَتَّى انْتَهَى إِلَى وَادِي مُحَسِّرٍ. فَقَرَعَ نَاقَتَهُ فَخَبَّتْ حَتَّى جَاوَزَ الْوَادِيَ. فَوَقَفَ وَأَرْدَفَ الْفَضْلَ. ثُمَّ أَتَى الْجَمْرَةَ فَرَمَاهَا ثُمَّ أَتَى الْمَنْحَرَ.

---
[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٧٣٢٦)

فَقَالَ: " هَذَا الْمَنْحَرُ وَمِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ ". وَاسْتَفْتَتْهُ جَارِيَةٌ شَابَّةٌ مِنْ خَثْعَمٍ. فَقَالَتْ: إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ قَدْ أَدْرَكَتْهُ فَرِيضَةُ اللَّهِ فِي الْحَجِّ. أَفَيُجْزِئُ أَنْ أَحُجَّ عَنْهُ ؟ قَالَ: حُجِّي عَنْ أَبِيكِ. قَالَ: وَلَوَى عُنُقَ الْفَضْلِ. فَقَالَ الْعَبَّاسُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لِمَ لَوَيْتَ عُنُقَ ابْنِ عَمِّكَ ؟ قَالَ: " رَأَيْتُ شَابًّا وَشَابَّةً فَلَمْ آمَنِ الشَّيْطَانَ عَلَيْهِمَا ". ثُمَّ أَتَاهُ رَجُلٌ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَفَضْتُ قَبْلَ أَنْ أَحْلِقَ. قَالَ: " احْلِقْ أَوْ قَصِّرْ وَلَا حَرَجَ ". قَالَ: وَجَاءَ آخَرُ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي ذَبَحْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ. قَالَ: " ارْمِ وَلَا حَرَجَ ". قَالَ: ثُمَّ أَتَى الْبَيْتَ فَطَافَ بِهِ، ثُمَّ أَتَى زَمْزَمَ. فَقَالَ: " يَا بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ لَوْلَا أَنْ يَغْلِبَكُمُ النَّاسُ عَنْهُ لَنَزَعْتُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عَلِيٍّ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَيَّاشٍ وَقَدْ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الثَّوْرِيِّ مِثْلَ هَذَا. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ رَأَوْا أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِعَرَفَةَ فِي وَقْتِ الظُّهْرِ. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا صَلَّى الرَّجُلُ فِي رَحْلِهِ وَلَمْ يَشْهَدِ الصَّلَاةَ مَعَ الْإِمَامِ إِنْ شَاءَ جَمَعَ هُوَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ مِثْلَ مَا صَنَعَ الْإِمَامُ. قَالَ: وَزَيْدُ بْنُ عَلِيٍّ هُوَ ابْنُ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رضي الله عنه. (١)

**ترجمه** دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په عرفات کي قيام اوکړو او وېي فرمائيل دا عرفات دي او همدا د اودرېدو ځاي دي او ټول عرفات د اودرېدو ځاي دي بيا چي کله نمر ډوب شو نو ددي ځاي نه روان شو اسامه بن زيد يي په خان پسي شاته سور کړو او پخپل عام رفتار روان شو او په لاس يي اشاره کوله او خلقو ښي طرف او چپ طرف ته خپل اوښان وهل رسول الله به دوئ ته دمتوجه کېدو په حال کي وئيل اي خلقو واورئ سکون او وقار اختيار کړئ تردي چي مزدلفي ته راورسېدو او خلقو ته يي د ماښام او ماخوستن دواړه مونځونه په يوځاي ورکړل کله چي سحر شو نو ''قزح'' مقام ته يي تشريف راوړو او فرمائيل يي دا قزح دي او دا هم د اودرېدو ځاي دي او مزدلفه ټوله موقف ده بيا روان شو تردي پوري چي محسر مقام ته ورسېدو او خپله اوښه يي اوزغلوله تردي چي ددي ځاي نه تيره شوه بيا يي وقوف اوکړو او فضل بن عباس رضي الله عنه يي په خان پسي سور کړو بيا جمراتو ته راغي او رمي يي اوکړه او بيا دقربانئ ځاي ته راغي او وېي فرمائيل دا دقربانئ ځاي دي او دمني هر يو ځاي منحر دي دي وخت کي دخثعم قبيلي يوي ځواني ښځي دمسئلي تپوس اوکړو او عرض يي اوکړو زما پلار بوډا شوي دي او دالله تعالي فريضه يعني

حج ورباندي واجب شوي دي نو كه زه دهغه دطرفه حج اوكړم دا به كافي وي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هو، ته دي دپلار دطرفه حج اوكړه علي رضي الله عنه فرماني رسول الله صلي الله عليه وسلم دفضل څټ اوګرخولو دي وخت كي عباس رضي الله عنه سوال اوكړو اي دالله رسوله دخپل دتره دخوي څټ دي ولي اوګرخولو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ما دا سوچ اوكړو چي هلك او جيني دواړه خوانان وي نو ما ددوئ دواړو په سلسله كي دوئ دشيطان نه محفوظ اونه ګڼړل دي وخت كي يو كس راغي او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله ما دسر خريلو نه مخكي طواف افاضه اوكړو رسول الله اوفرمائيل سر اوخروه او يا يي كم كړه هيڅ حرج نشته بيا يو بل كس راغي او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله ما خو دِ رمي كولو نه مخكي قرباني كړي ده رسول الله اوفرمائيل رمي اوكړه هيڅ حرج نشته او بيا بيت الله ته راغي او طواف يي اوكړو، بيا دزمزم كوهي ته راغي او ويې فرمائيل اي بني عبدالمطلب كه چري دا خطره نه وي چي خلق به په تاسو باندي غالب شي نو ما به هم تاسو سره اوبه راويستلي وي او په خلقو به مي څكولي وي.

امام ترمذي وايي دعلي رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او مونږ ته دا روايت صرف دعلي رضي الله عنه په سند معلوم دي يعني دعبدالرحمن بن حارث په سند سره او نورو ډيرو خلقو هم دثوري نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي ، او په دي باب كي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او داهل مكه هم په دي باندي عمل دي ددوئ دا خيال دي په عرفه كي دماسپخين په وخت كي دمازيګر مونځ هم دي سره يوځاي كول پكار دي. او دبعضي اهل علمو خيال دي چي پخپلو خپلو ديرو كي مونځ كول پكار دي او دامام سره شريكيدل نه دي پكار دواړه مونځونه به يو ځاي كوي او قصر به كوي لكه امام چي څنګه قصر كوي

**تشريح:** **دوقوف عرفه دوخت مقدار**

په دي باره كي اختلاف دې چې د وقوف عرفات وخت د كله نه شروع كيږي؟

(١) د احنافو په نزدد عرفې په ورځ د نمر د زوال نه پس شروع كيږي. كه يو حاجى د نمرد زوال نه پس تر د يوم النحر د صبا راختلو پورې په كوم وخت كي هم وقوف اوكړلو .نوده حج ادا شو.

ددي قول دليل دادي چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم د زوال نه پس وقوف كړې وو ،ددې حديث نه د وقوف اول وخت معلوم شو.

دويم حديث كي دى چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دى، چا چې په شپه كي وقوف د عرفات رالاندې كړو ،نوده حج رالاندې كړلو .اوچا چې په شپه كي هم وقوف عرفات لاندې نكړلو .نوده نه حج فوت شو.

په دي حديث کي د وقوف عرفات د آخرى وخت بيان دى ددې دواړو حديثونو نه معلومه شوه چې د وقوف عرفات وخت د عرفې په ورځ د زوال نه پس شروع کيږي.اود يوم النحر د صبا راختلو نه وړاندې پورې وى.

(۲)دامام مالك (رحمه الله) قول دادى چې د وقوف عرفات وخت د عرفې په ورځ د صبا راختو نه د نمر راختو نه پس شروع کيږي.

دامام مالك (رحمه الله) دليل دا حديث دي:

"الحج عرفة فمن وقف بعرفة ساعة من ليل أو نهار فقد تم حجه"

يعنى د رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمان دي د حج نوم عرفه ده.نوچا چې د ورځې يا د شپې په څه حصه کي د لږ وخت دپاره قيام اوکړو.نودده حج پوره شو.په حديث کي د "نهار" لفظ راغلى دي او "نهار" د نمر راختلو نه شروع کيږي. دامام مالك (رحمه الله) خلاف د رسول پاك صلي الله عليه وسلم عمل حجت دي خکه چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم د زوال نه پس وقوف کړې وو.که د زوال نه وړاندې هم د وقوف وخت وو.نو رسول پاك صلي الله عليه وسلم به خامخا د هغې بيان کړې وو.

مسئله : د احنافو په نزدکه د عرفې په ورځ د نمر د زوال نه پس لږ ساعت دپاره وقوف اوکړى، اوبيا روان شى،نو روا دي.

امام مالك (رحمه الله) فرمائى چې د ورځي اود شپې په څه حصه کي وقوف ضرورى دي گويا د امام مالك (رحمه الله) په نزدد عرفه په ورځ دغروب نه پس زوانيدل ضرورى دى.

دامام مالك (رحمه الله) دليل دا حديث دي :

"من أدرك عرفة بليل فقد أدرك الحج ومن فاته عرفة بليل فقد فاته الحج"

په دي حديث کي د وقوف عرفات دارومدار په شپه دي ددې وجې امام مالك (رحمه الله) فرمائى چې د شپې په يوه حصه کي وقوف ضرورى دي.

د احنافو دليل دادى چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دى:

"الحج عرفة فمن وقف بعرفة ساعة من ليل أو نهار فقد تم حجه"

په دي حديث کي کله د ،او، د اختيار دپاره ده.يعنى که وقوف په ورځ کي اوکړى اوکه په شپه کي په دواړو صورتونو کي حج پوره کيږى.نومعلومه شوه چې د وقوف دپاره نه ورځ شرط ده. اونه شپه هم دا حديث د امام مالك(رحمه الله) خلاف حجت دي . امام مالك (رحمه الله) چې کوم حديث په استدلال کي پيش کړې دي په هغې کي د "بليل" لفظ زيادت غيرمشهور دي مشهور صرف دومره ده چې "من أدرك عرفة فقد أدرك الحج ومن فاته عرفة فقد فاته الحج" نودا حديث د امام مالك(رحمه الله) مستدل نشى جوړيدي.

***************

## ٥٥_ باب مَا جَاءَ فِي الإِفَاضَةِ مِنْ عَرَفَاتٍ

### دعرفات نه دواپس كيدو بيان

٨٨٦_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، وَبِشْرُ بْنُ السَّرِيِّ، وَأَبُو نُعَيْمٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَوْضَعَ فِي وَادِي مُحَسِّرٍ وَزَادَ فِيهِ بِشْرٌ، وَأَفَاضَ مِنْ جَمْعٍ وَعَلَيْهِ السَّكِينَةُ وَأَمَرَهُمْ بِالسَّكِينَةِ. وَزَادَ فِيهِ أَبُو نُعَيْمٍ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَرْمُوا بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ، وَقَالَ: "لَعَلِّي لَا أَرَاكُمْ بَعْدَ عَامِي هَذَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په محصر مقام كي په تيزئ سره لاړو (دبشر په روايت كي دا اضافه ده چي كله دمزدلفي نه واپس شو په سكون او عام رفتار سره روان وو او خلقو ته يي هم په سكون او اطمينان سره دتلو حكم اوكړو (دابو نعيم په روايت كي دومره اضافه ده چه) دوئ ته يي په داسي ګيټو درمي كولو حكم اوكړو كومي چي به په دوه ګوتو كي نيولي كيدي شوي او خلقو ته يي اوفرمائيل شايد چي ددي كال نه پس به زه تاسو او نه ليدلي شم امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي داسامه بن زيد رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي.

***************

## ٥٦_ باب مَا جَاءَ فِي الْجَمْعِ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِالْمُزْدَلِفَةِ

### په مزدلفه كي په يو ځاي دماښام او دماخوستن دمونځونو كولو بيان

٨٨٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ "صَلَّى بِجَمْعٍ، فَجَمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ بِإِقَامَةٍ". وَقَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ مِثْلَ هَذَا فِي هَذَا الْمَكَانِ. (٢)

---

[1] _ ابي داود في الحج ٦٦ (١٩٢٣) . سنن النسائي في الحج ٢٠٢ (٣٠٢٢) . و٢١٥ (٣٠٥٥) . سنن ابن ماجه في المناسك ٦١ (٣٠٢٢) . (تحفة الأشراف : ٢٧٤٧و٢٧٥) . مسند احمد (٣ في ٣٠١، ٣٣٢، ٣٦٧، ٣٩١) . ويأتي عند المؤلف رقم : ٨٩٧)

[2] _ ابي داود في الحج ٦٥ (١٩٢٩) (تحفة الأشراف : ٧٣٨٥)

**ترجمه** دعبدالله بن مالك بيان دي فرمائي چي ابن عمر رضي الله عنهما په مزدلفه کي مونځ اوکړو او په يو اقامت سره يي دمابنام او ماخوستن دواړه مونځونه په يوځاي اداء کړل او بيا يي اوفرمائيل مارسول الله صلي الله عليه وسلم په همدي ځاي کي په همداسي کولو ليدلي وو

**تشريح : په مزدلفه کي جمع بين الصلاتين کول**

**تشريح** جمهور احناف وايي چي امام دې په مزدلفه کي د مابنام او ماسخوتن مونځونه په يو اذان او يو اقامت باندې جمع کړي.

دامام زفر (رحمه الله) مذهب دادی چی په يو اذان او دوو اقامتونو به ئې جمع کوی

امام زفر (رحمه الله) په مزدلفه کي د مابنام او ماسخوتن مونځونه جمع کول په عرفات کي دماسپخين اومازيګرمونځونو په جمع کولو باندې قياس کوی نولکه څنګه چی هلته د دواړو مونځونو دپاره يو اذان اودوه اقامتونه کولی شی.دغه شان به دلته په مزدلفه کي هم دمابنام اوماسخوتن د دواړو مونځونودپاره يواذان او دوه اقامتونه کولی شی

زمونږ دليل د جابر(رضي الله عنه) حديث دې چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم په مزدلفه کي دمابنام او ماسخوتن دواړه مونځونه په يواذان او يواقامت سره جمع کړی وو. دويم دليل دادی چی ماسخوتن په خپل وخت کي ادا کيږی نوخلقو ته د وخت د داخليدو د اعلان هڅو څه ضرورت نشته،په خلاف د مازيګرد مونځ په عرفه کي ځکه چی هلته خو د مازيګر وخت لا داخل شوې نه وی نوددې وجې خلقو ته د زياتی خبر ورکولو دپاره اقامت کولې شی.

****************

٨٨٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهِ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ: قَالَ يَحْيَى: وَالصَّوَابُ حَدِيثُ سُفْيَانَ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَجَابِرٍ، وَأُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنُ عُمَرَ فِي رِوَايَةِ سُفْيَانَ أَصَحُّ مِنْ رِوَايَةِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، وَحَدِيثُ سُفْيَانَ حَدِيثٌ صَحِيحٌ حَسَنٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. لِأَنَّهُ لَا تُصَلَّى صَلَاةُ المَغْرِبِ دُونَ جَمْعٍ. فَإِذَا أَتَى جَمْعًا وَهُوَ المُزْدَلِفَةُ جَمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ بِإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ وَلَمْ يَتَطَوَّعْ فِيمَا بَيْنَهُمَا، وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ وَذَهَبَ إِلَيْهِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. قَالَ سُفْيَانُ: وَإِنْ شَاءَ صَلَّى المَغْرِبَ ثُمَّ تَعَشَّى وَوَضَعَ ثِيَابَهُ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى العِشَاءَ. فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: يَجْمَعُ بَيْنَ المَغْرِبِ وَالعِشَاءِ بِالْمُزْدَلِفَةِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ، يُؤَذِّنُ لِصَلَاةِ المَغْرِبِ

وَيُقِيمُ وَيُصَلِّي الْمَغْرِبَ، ثُمَّ يُقِيمُ وَيُصَلِّي الْعِشَاءَ. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى إِسْرَائِيلُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَخَالِدٍ ابْنَيْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَحَدِيثُ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ هُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ أَيْضًا. رَوَاهُ سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ. وَأَمَّا أَبُو إِسْحَاقَ فَرَوَاهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَخَالِدٍ ابني مالك، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. [1]

**ترجمه** . په همدي سند ابن عمر رضي الله عنهما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي يو هم معني روايت نقل كړي دي، محمد بن بشار د "حدثنا" په ځاي "قال يحي" وئيلي دي او صحيح دسفيان والا روايت دي امام ترمذي وائي دابن عمر هغه حديث كوم چي سفيان نقل كړي دي داسماعيل بن ابي خالد دروايت نه زيات صحيح دي او دسفيان حديث حسن صحيح دي، اسرائيل دا حديث دابواسحاق سبيعي نه نقل كړي دي او ابو اسحاق سبيعي او ابو اسحاق سبيعي دمالك ددواړو ځامنو عبدالله او خالد نه نقل كړي دي او عبدالله او خالد دابن عمر نه نقل كړي دي، او دسعيد بن جبير هغه حديث كوم چي يي دابن عمر نه نقل كړي دي حسن صحيح دي، او سلمه بن كوهيل دا حديث دسعيد بن جبير نه نقل كړي دي، او ابو اسحاق سبيعي خو دا حديث دمالك ددواړو ځامنو عبدالله او خالد نه نقل كړي دي او دوئ دواړو دابن عمر نه نقل كړي دي او په دي باب كي دعلي، ابو ايوب، عبدالله بن سعيد . او اسامه بن زيد رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي همدا وجه ده چي دمابنام مونځ مزدلفي ته دراتلو نه مخكي كول پكار نه دي، كله چي حاجيان جمع شي يعني مزدلفي ته ورسيږي نو دا دواړه مونځونه به په يو اقامت په يوځاي كړي او ددي دواړو په مينځ كي به هيڅ قسم نفل نه كوي دا هغه مسلك دي كوم چي بعضي اهل علمو اختيار كړي دي او دي طرف ته تلي دي او همدا دسفيان ثوري قول هم دي دوئ وائي كه څوك غواړي نو دمابنام مونځ دي اوكړي او بيا دي دمابنامي خوراك اوكړي او خپلي جامي دي اوباسي او تكبير دي اووائي او دماخوستن مونځ دي اوكړي او بعضي اهل علم وائي مابنام او ماخوستن مونځونه دي په مزدلفه كي په يو اذان او اقامت اوكړي دمابنام دپاره دي اذان او تكبير اوكړي او بيا دي دمابنام مونځ اوكړي او بيا دي تكبير اووائي او دماخوستن مونځ دي اوكړي او همدا دامام شافعي قول دي

****************

[1] ـ مسلم في الحج ٤٧ (١٢٨٦) . سنن ابي داود في الحج ٦٥ (١٩٣٠، ١٩٣٢) . سنن النسائي في الصلاة ١٨ (٤٨٣) . و٢٠ (٤٨٤، ٤٨٥) . والمواقيت ٤٩ (٦٠٧) . والأذان ١٩ (٦٥٨) و٢٠ (٦٥٩) . والحج ٢٠٧ (٣٠٣٣) (تحفة الأشراف : ٧٠٥٤) مسند احمد (٢ في ٣، ٦٢، ٧٩، ٨١) . سنن الدارمي في الصلاة ١٨٣ (١٥٥٩)

## ٥٧ـ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ أَدْرَكَ الإِمَامَ بِجَمْعٍ فَقَدْ أَدْرَكَ الحَجَّ

**چاچي په مزدلفه كي امام اورسولو دهغه حج اوشو**

٨٨٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْمَرَ، أَنَّ نَاسًا مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ أَتَوْا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِعَرَفَةَ، فَسَأَلُوهُ فَأَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادَى: "الحَجُّ عَرَفَةُ، مَنْ جَاءَ لَيْلَةَ جَمْعٍ قَبْلَ طُلُوعِ الفَجْرِ فَقَدْ أَدْرَكَ الحَجَّ أَيَّامُ مِنًى ثَلَاثَةٌ، فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ، وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ". قَالَ مُحَمَّدٌ: وَزَادَ يَحْيَى: وَأَرْدَفَ رَجُلًا فَنَادَى بِهِ. [1]

**ترجمه** دعبدالرحمن بن يعمر رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي دنجد علاقي څه كسان دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شول او رسول الله دغه وخت په عرفه كي وو هغوئ ورنه دحج باره كي سوال اوكړو نو رسول الله اعلان كونكي ته حكم اوكړو هغه دا اعلان اوكړو چي حج په عرفات كي اودريدلو ته ونيلي شي، څوك چي دمزدلفي په شپه دسبا كيدو نه مخكي عرفي ته لاړ شي نو دهغه حج اوشو او دمني دري ورځي دي چي څوك جلتي اوكړي او په دوو ورځو كي لاړ شي نو په هغه باندي څه گناه نشته او كه څوك دريمي ورځي ته حصار شي نو په ده باندي هم څه گناه نشته (ديحي په روايت كي دومره اضافه ده) چي رسول الله يو كس په خان پسي شاته كينولو او هغه دا اعلان اوكړو

***************

٨٩٠ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. وقَالَ ابْنُ أَبِي عُمَرَ: قَالَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ: وَهَذَا أَجْوَدُ حَدِيثٍ رَوَاهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالعَمَلُ عَلَى حَدِيثِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْمَرَ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّهُ مَنْ لَمْ يَقِفْ بِعَرَفَاتٍ قَبْلَ طُلُوعِ الفَجْرِ، فَقَدْ فَاتَهُ الحَجُّ وَلَا يُجْزِئُ عَنْهُ إِنْ جَاءَ بَعْدَ طُلُوعِ الفَجْرِ وَيَجْعَلُهَا عُمْرَةً وَعَلَيْهِ الحَجُّ مِنْ قَابِلٍ، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. قَالَ أَبُو

[1] ابي داود في الحج ٦٩ (١٩٤٩) . سنن النسائي في الحج ٢٠٣ (٣٠١٩) سنن ابن ماجه في المناسك ٥٧ (٣٠١٥) (تحفة الأشراف: ٩٧٣٥). مسند احمد (٣ في ٣٠٩، ٣١٠، ٣٣٥) . سنن الدارمي في المناسك ٥٤ (١٩٢٩) . ويأتي في التفسير برقم: ٢٩٧٥

عِيسَى: وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَطَاءٍ نَحْوَ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ. قَالَ: وَسَمِعْتُ الْجَارُودَ. يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا أَنَّهُ ذَكَرَ هَذَا الْحَدِيثَ. فَقَالَ: هَذَا الْحَدِيثُ أُمُّ الْمَنَاسِكِ. ([1])

**ترجمه** دابن ابي عمر نه هم په سند د سفيان ثوري عن بكير بن عطاء عن عبدالرحمن بن يعمر عن النبي صلي الله عليه وسلم نه هم ددي هم معني روايت مروي دي. ابن ابي عمر وائي قال سفيان بن عيينه. او دا دتولو نه ښه حديث دي په هغه احاديثو كي كوم چي سفيان ثوري نقل كړي دي

امام ترمذي وائي شعبه هم دبكير بن عطاء نه د ثوري پشان روايت نقل كړي دي. وكيع چي ددي حديث ذكر اوكړو شعبه اووئيل چي دا حديث دحج په سلسله كي د ام المناسك حيثيت لري. په صحابه كرامو كي داهل علمو عمل دعبدالرحمن بن يعمر په حديث دي چي دطلوع فجر نه مخكي په عرفات كي حصاريدل اونه شول نو حج ورنه فوت شو او كه دطلوع فجر نه پس څوك راشي نو دا به هم كافي نه وي ددي حج نه دي عمره جوړه كړي او په راتلونكي كال دي بيا حج اوكړي دا دسفيان ثوري، شافعي. احمد. او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول دي

***************

٨٩١_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ وَإِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ وَزَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ. عَنِ الشَّعْبِيِّ. عَنْ عُرْوَةَ بْنِ مُضَرِّسِ بْنِ أَوْسِ بْنِ حَارِثَةَ بْنِ لأَمٍ الطَّائِيِّ. قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمُزْدَلِفَةِ. حِينَ خَرَجَ إِلَى الصَّلاَةِ. فَقُلْتُ: يَارَسُولَ اللهِ! إِنِّي جِئْتُ مِنْ جَبَلَيْ طَيِّئٍ أَكْلَلْتُ رَاحِلَتِي وَأَتْعَبْتُ نَفْسِي وَاللهِ! مَا تَرَكْتُ مِنْ حَبْلٍ إِلاَّ وَقَفْتُ عَلَيْهِ. فَهَلْ لِي مِنْ حَجٍّ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ شَهِدَ صَلاَتَنَا هَذِهِ وَوَقَفَ مَعَنَا حَتَّى نَدْفَعَ. وَقَدْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ قَبْلَ ذَلِكَ لَيْلاً أَوْ نَهَارًا. فَقَدْ أَتَمَّ حَجَّهُ وَقَضَى تَفَثَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: قَوْلُهُ تَفَثَهُ يَعْنِي نُسُكَهُ. قَوْلُهُ مَا تَرَكْتُ مِنْ حَبْلٍ إِلاَّ وَقَفْتُ عَلَيْهِ. إِذَا كَانَ مِنْ رَمْلٍ يُقَالُ لَهُ حَبْلٌ. وَإِذَا كَانَ مِنْ حِجَارَةٍ يُقَالُ لَهُ جَبَلٌ. ([2])

---

[1] ـ ابي داود في الحج ٦٩ (١٩٤٩). سنن النسائي في الحج ٢٠٣ (٣٠١٩). سنن ابن ماجه في المناسك ٥٧ (٣٠١٥). (تحفة الأشراف: ٩٧٣٥). مسند احمد (٤ في ٣٠٩. ٣١٠. ٣٣٥). سنن الدارمي في المناسك ٥٤ (١٩٢٩) ويأتي في التفسير برقم ٢٩٧٥

[2] ـ ابي داود في الحج ٦٩ (١٩٥٠). سنن النسائي في الحج ٢١١ (٣٠٤٢). سنن ابن ماجه في المناسك ٥٧ (٣٠١٦). (تحفة الأشراف: ٩٩٠٠). مسند احمد (٤ في ٢٦١. ٢٦٢). سنن الدارمي في المناسك ٥٤ (١٩٣٠)

**ترجمه** دعروه بن مضرس بن اوس بن حارثه بن لام الطائي رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي زه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته مزدلفي ته ورغلم كله چي هغه مونځ ته روان شو ما ورته عرض اوكړو اي دالله رسوله زه د طئ قبيلي ددواړو غرونو نه راغلي يم خپله سورلئ او خپل ځان مي ښه ستړي كړي دي په الله قسم ما هيڅ يو داسي غر نه دي پريخودلي چرته چي ما دعرفات په فكر وقوف نه وي كړي نو ايا زما حج اوشو؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هر څوك چي زمونږ په مونځ كي حاضر شو او زمونږ سره يي قيام اوكړو تردي چي مونږ ددي ځاي نه روان شو او هغه ددينه مخكي د ورځي يا دشپي په عرفه كي وقوف كړي وي نو دده حج پوره شو او خيري يي ختم شول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي "تفثه" معني نسكه دي يعني دمناسك په معني دي او دده قول "ماتركت من حبل الا وقفت عليه" يعني يوه غونډئ مي داسي نه ده پريخودلي چي ما پكي وقوف نه وي كړي دا قول په دي سلسله كي داسي دی. كله چي يوه غونډئ دشګو وي نو هغي ته حبل ونيلي شي او چي دكاڼړو وي نو جبل ورته ونيلي شي

**تشريح** : دا مسئله اتفاقي ده چي وقوف عرفه چي فوت شي نو حج هم فوت كيږي

**دوقوف عرفه نه دوه مسنون اعمال**

فقهاء وائی چی د وقوف عرفات نه وړاندې غسل كول اوپه دعا كي كوشش كول سنت دی،واجب نه دی،د مستحب وضاحت كوی،صاحب د هدايه وائی چی د وقوف عرفه نه وړاندې غسل كول سنت دي واجب نه دي نوكه په اودس ئې اكتفاء اوكړله.هم روا ده لكه څنګه چی جمعه اخترونو اوداحرم تړلو نه وړاندې غسل كول سنت دی،خوكه په اودس ئې اكتفا اوكړله نو روا ده، اوپه دعا كي كوشش كول مستحب دي څكه چی رسول الله صلي الله عليه وسلم هم په دي مقام كي د خپل امت دپاره په دعا كي ډير كوشش كړې وو.اود قتل ناحق اوظلمونو نه سوا چی كوم حقوق العباد دی نودهغې په باره كي هم ټولې دعاګانې قبولې شوې.

****************

## ٥٨_ باب مَا جَاءَ فِي تَقْدِيمِ الضَّعَفَةِ مِنْ جَمْعٍ بِلَيْلٍ

**دمزدلفي نه دشپې په وخت كي دكمزورو خلقواو ښځو او ماشومانو درخصتولو بيان**

**٨٩٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَقَلٍ مِنْ جَمْعٍ بِلَيْلٍ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَأُمِّ حَبِيبَةَ.**

وَأَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ. وَالْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ. بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَقَلٍ. حَدِيثٌ صَحِيحٌ. رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ. عَنْ مُشَاشٍ. عَنْ عَطَاءٍ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " قَدَّمَ ضَعَفَةَ أَهْلِهِ مِنْ جَمْعٍ بِلَيْلٍ " وَهَذَا حَدِيثٌ خَطَأٌ أَخْطَأَ فِيهِ مُشَاشٌ وَزَادَ فِيهِ عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ. وَرَوَى ابْنُ جُرَيْجٍ وَغَيْرُهُ هَذَا الْحَدِيثَ. عَنْ عَطَاءٍ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ. عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ. وَمُشَاشٌ بَصْرِيٌّ. رَوَى عَنْهُ شُعْبَةُ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه دمزدلفي نه دشپي په وخت كي دسامانونو او كمزورو خلقو سره اوليږلم

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعائشه، ام حبيبه ، اسماء بنت ابي بكر او فضل بن عباس رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي.

***************

۸۹۳_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْمَسْعُودِيِّ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدَّمَ ضَعَفَةَ أَهْلِهِ، وَقَالَ: " لَا تَرْمُوا الْجَمْرَةَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ لَمْ يَرَوْا بَأْسًا أَنْ يَتَقَدَّمَ الضَّعَفَةُ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ بِلَيْلٍ يَصِيرُونَ إِلَى مِنًى، وَقَالَ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ بِحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّهُمْ لَا يَرْمُونَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَرَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي أَنْ يَرْمُوا بِلَيْلٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُمْ لَا يَرْمُونَ، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپل كور په خلقو كي كمزورو يعني ښخو او ماشومانو لره مخكي اوليږل او دوئ ته يي اوفرمائيل څو پوري چي نمر ختلي نه وي نو رمي دجمار به نه كوئ.

---

1 _ البخاري في الحج ۹۸ (۱٦٧٧) . (تحفة الأشراف : ۵۹۹٧) . مسند احمد (ا في ۲۲۵، ۳۳۴)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦٣٤۳) وأخرجه سنن ابي داود في الحج ٦٦ (۱۹۳۰) . سنن النسائي في الحج ۲۲۲ (۳۰٦٦) سنن ابن ماجه في المناسك ٦٢ (۳۰۲۵) . مسند احمد (ا في ۲۳۴ ۳۱۱)

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي ، او دابن عباس دا حديث "بعثني رسول الله صلي الله عليه وسلم في ثقل" صحيح دي او دا دهغه نه په يو څو سندونو مروي دي. شعبه دا حديث دمشاش نه او مشاش دعطاء نه او عطاء دابن عباس نه او ابن عباس دفضل بن عباس نه نقل کړي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم بخپل كور والا كي كمزوري لرد مخکي دشپي دمزدلفي نه مني ته اوليږل . مشاش په دي کي غلطي کړي ده په دي سند کي يي دفضل بن عباس اضافه کړي ده ، ابن جريرج او بعضي نورو راويانو دا حديث دعطاء نه او عطاء دابن عباس نه نقل کړي دي او دفضل بن عباس واسطه يي نه ده ذكر كړي مشاش بصري راوي دي او شعبه ورنه روايت کړي دي داهل علمو په همدي حديث عمل دي هغوئ وائي په دي کي هيڅ حرج نشته چي كمزوري خلق دمزدلفي نه دشپي وخت کي مني ته اوليږلي شي اكثرو اهل علمو دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دحديث مطابق عمل کړي دي چي څو پوري نمر ختلي نه وي خلق دي رمي نه کوي او بعضي اهل علمو دشپي وخت کي درمي کولو اجازت ورکړي دي او عمل د رسول الله په حديث دي چي څو پوري نمر ختلي نه وي هغي پوري رمي كول پكار نه دي او همدا دسفيان ثوري او شافعي قول دي

***************

## ٥٩ـ باب مَا جَاءَ فِي رَمْيِ يَوْمِ النَّحْرِ ضُحًى

## دقربانئ په ورځ دڅاښت په وخت کي درمي کولو بيان

٨٩٤ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي يَوْمَ النَّحْرِ ضُحًى، وَأَمَّا بَعْدَ ذَلِكَ فَبَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ. أَنَّهُ لَا يَرْمِي بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ إِلَّا بَعْدَ الزَّوَالِ. (١)

**ترجمه** . دجابر رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په لسم ذي الحجه د غرمي په وخت کي رمي كول او ددينه پس به يي دزوال نه روستو كوله

امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي، داكثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي او هغوئ په لسم ذي الحجه دزوال نه پس رمي كولو ته ترجيح وركوي

---

[1] ـ صحيح مسلم في الحج ٥٣ (١٢٩٩) . سنن ابي داود في الحج ٧٨ (١٩٧١) سنن النسائي في الحج ٢٢١ (٣٠٦٥) . سنن ابن ماجه في المناسك ٧٥ (٣٠٥٣) . سنن ابي داود في المناسك ٥٨ (١٩٣٤) (تحفة الأشراف : ٢٧٩٥)

**تشريح:** **درمي كولو طريقه او ددي د ابتداء بيان**

د رمی په باره کي په دولس خايونو کي کلام دي
(۱) وخت ئې يوم النحر دي اودرې ورځې ددې نه پس دی
(۲) د ويشتلو ځائې ئې بطن وادی دي.
(۳) د رمی محل ئې درې خايونه دی، جمره عقبه،مسجد خيف اوجمره وسطی
(۴) دګيټکو شمار دهرې جمرې سره اوه دی اود کانړي مقدار د ګوتې د بند هومره دې
(۶) د رمی مقدارنودا هم په کتاب کي ذکر ده.
(۸) د ويشتونکی صفت دادی چی دي به يا سور وی يا پيدل.
(۹) د ګيټکو غورځيدو ځائې(۱۰) دکوم ځائې نه چی ګيټکی راخلی.
(۱۱) ګيټکی به څنګه وی،هغه دا چی د زمکې د جنس نه به وی.
(۱۲) په اوله ورځ به صرف د جمره عقبه رمی کولې شی.اوبه باقی ورځو کي به د درې واړو جمراتو رمی کولې شی.

فقهاء وايي د رمی شروع به د جمره عقبه نه کيږی نود وادی د ښکته حصی نه به اود ګيټکی اولی.اودا ګيټکی به د ګوتود بندونو په برابر وی،اود مسواکې ګوتې په ډډه باندې ويشتلې شی.ددي قول دليل دادی چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم کله منی ته تشريف يوړلو نوبغير د څه توقف نه ئې جمره عقبه ويشتې وه.او رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی.په تاسوباندې ګيټکی ويشتل لازم دی.په تاسوکي دي بعضې خلق بعضو سررو نه تکليف نه رسوی.

**د ګيټکو ويشتلو طريقه**

د رمی کيفيت دادی چی ګيټکی به د خپل ښی لاس د منځې ګوتې په شا باندې کيږدی.اود مسواکې ګوتې په مدد سره به رمی اوکړی.اوپکار ده چی د رمی کونکی اود ګيټکی د پريوتو په ځائې کي کم اوکم پنځه ګزه فاصله وی.

حسن بن زياد (رحمه الله) د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دا روايت کړې دي ددي قول دليل دادی چی ددې نه کمه فاصله رمی باندې د رمی اطلاق نه کيږی.بلکي د غورځولو اطلاق پرې کيږی. اوکه ده ګيټکی د ويشتلو په ځائې په قصد سره اوغورځولو نوهم روا ده څکه چی ده ګيټکی خپلو قدمونو طرف ته اوغورځول.خود سنت دمخالفت د وجې به ګناهګار وی.اوکه ده ګيټکی کيخودل. نو روا به نه وی څکه چی دا رمی نه ده (بلکي کيخودل دی) (کفايه. عنايه)

***************

## ٦٠ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الإِفَاضَةَ مِنْ جَمْعٍ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ

### د نمر ختلو نه مخکې دمزدلفې نه دواپسۍ بيان

٨٩٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنِ الحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَفَاضَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ عُمَرَ قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَإِنَّمَا كَانَ أَهْلُ الجَاهِلِيَّةِ يَنْتَظِرُونَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ ثُمَّ يُفِيضُونَ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دمزدلفې نه دنمر ختلو نه مخکې واپس شو

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعمر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي دجاهليت په زمانه کي به خلقو انتظار کولو تردي چي نمر به راوختلو نو بيا به واپس کيدل

**تشريح:** صاحب د هدايه وائي چې د يوم النحر نمر راوخيژی نو روان به شی امام اوخلق د مزدلفې نه منی ته به لاړ شی.

****************

٨٩٦ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَال: سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ مَيْمُونٍ يُحَدِّثُ، يَقُولُ: كُنَّا وُقُوفًا بِجَمْعٍ. فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الخَطَّابِ: "إِنَّ المُشْرِكِينَ كَانُوا لَا يُفِيضُونَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَكَانُوا يَقُولُونَ أَشْرِقْ ثَبِيرُ، وَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالَفَهُمْ. فَأَفَاضَ عُمَرُ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** دعمرو بن ميمون بيان دي فرمائي چي مونږ په مزدلفه کي موجود وو چي عمر بن الخطاب رضي الله عنه اوفرمائيل څو پوري چي به نمر نه وو ختلي مشركين به هغه وخته پوري دمزدلفې نه نه واپس کيدل او وئيل به يي اي ثبير' ته روښانه شه رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوئ مخالفت اوكړو چنانچه عمر رضي الله عنه دنمر ختلو نه مخکي واپس شو

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف . ٦٤٣٢) (صحيح بما بعده)

[2] ـ صحيح البخاری في الحج ١٠٠ (١٦٨٤) ، ومناقب الأنصار ٢٦ (٣٨٣٨) . سنن ابی داود في الحج ٦٥ (١٩٣٨) . سنن النسائی في الحج ٢١٣ (٣٠٥٠) . سنن ابن ماجه في المناسک ٦١ (٣٠٢٢) . (تحفة الأشراف ١٠٦١٦) . مسند احمد (١ في ١٤، ٢٩، ٣٩، ٤٢، ٥٠) . سنن الدارمی في المناسک ٥٥ (١٩٣٢)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

*****************

## ٦١ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ الْجِمَارَ الَّتِي يُرْمَى بِهَا مِثْلُ حَصَى الْخَذْفِ

**دجمراتو درمي دپاره ګيټۍ داسي پکار دي چي دشهادت په ګوته او دي سره نزدي ګوتو با ندي نيولي کيدي شي**

په ګوتو کي چي ګيټۍ نيولي کيدي شي دهغي نوم خذف دي

**٨٩٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي الْجِمَارَ بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْأَحْوَصِ، عَنْ أُمِّهِ وَهِيَ أُمُّ جُنْدُبٍ الْأَزْدِيَّةُ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَالْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُعَاذٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ أَهْلُ الْعِلْمِ أَنْ تَكُونَ الْجِمَارُ الَّتِي يُرْمَى بِهَا مِثْلَ حَصَى الْخَذْفِ.** [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چي مارسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدو چي په داسي ګيټو يي رمي دجمار کوله کومه چي په دوه ګوتو مينځ کي نيولي کيدي شود.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دسليمان بن عمرو بن احوص (چي دخپلي مور ام جندب ازديه نه روايت کوي) او ابن عباس، عبدالرحمن بن عثمان تيمي، او عبدالرحمن بن معاذ رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، او په همدي باندي اهل علمو عمل اختيار کړي دي چي درمي جمار دپاره ګيټۍ داسي پکار دي کومي چي دوه ګوتو مينځ کي نيولي کيدي شي.

*****************

## ٦٢ـ باب مَا جَاءَ فِي الرَّمْيِ بَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ

**د نمر دزوال نه پس درمي کولو بيان**

[1] ـ ابي داود في الحج ٦٦ (١٩٤٤) . سنن النسائي في الحج ٢٠٣ (٣٠٢٢) . و٢١٥ (٣٠٥٥) . سنن ابن ماجه في المناسك ٦١ (٣٠٢٣) . (تحفة الأشراف : ٢٧٤٤ و٢٧٥) . مسند احمد (٣ في ٣٠١، ٣٣٢، ٣٦٤، ٣٩١) . ويأتي عند المؤلف رقم : ٨٩٤)

٨٩٨ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي الْجِمَارَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم به رمي دجمار هغه وخت كوله كله چي به نمر ډوب شو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**مسئله** : حاجى به د نحر د ورځو په دريمه ورځ يعنى په دولسمه ذوالحجه هم د نمر د زوال نه پس د وراندې پشان د درې جمراتو رمى اوكړى،اوس كه دده تلوار وى نود رمى نه پس دي هم په دولسمه ذوالحجه باندې مكې ته روان شى،اوكه د ايساريدو اراده ئې وى نود نحر د ورځو په څلورمه ورځ يعنى په ديارلسمه ورځ دي هم د نمر د زوال نه پس د درې واړو جمراتو رمى اوكړى،اوبيا دي مكې ته روان شى،هم ددې وجې د دولسمى ذوالحجه تلو ته نفراول وائى،اود ديارلسمى ذوالحجه روانيدو ته نفر ثانى وائى. ددي قول دليل دالله تعالى فرمان دي:

وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِي أَيَّامٍ مَعْدُودَاتٍ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ۔

اوغوره دا دە،يعنى كوم كس چى دولسم تاريخ باندې زر روان شى نوپه ده باندې هم څه گناه نشته،اوڅوك چى ديارلسمې ورځې ته ايساريږى نوده باندې هم څه گناه نشته.

خوغوره هم دا ده چى د ديارلسمې ذوالحجه پورې په منى كي ايسارشى خكه چى رسول الله صلي الله عليه وسلم په منى كي ايسار شوې وو،تردي چى په څلورمه ورځ يعنى د ذوالحجه په ديارلسمه ورځ ئې د درې واړه جمراتو رمى اوكړله.

***************

## ٦٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي رَمْيِ الْجِمَارِ رَاكِبًا وَمَاشِيًا

### په سورلئ او پيدل حالت كي درمي كولو بيان

٨٩٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، أَخْبَرَنَا الْحَجَّاجُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رَمَى الْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ رَاكِبًا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ، وَقُدَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَأُمِّ سُلَيْمَانَ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْأَحْوَصِ. قَالَ أَبُو عِيسَى:

---

1 ـ سنن ابن ماجه في المناسك ٧٥ (٣٠٥٢) (تحفة الأشراف: ٦٤٦٦)

حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَاخْتَارَ بَعْضُهُمْ أَنْ يَمْشِيَ إِلَى الْجِمَارِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ "يَمْشِي إِلَى الْجِمَارِ" وَوَجْهُ هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَنَا أَنَّهُ رَكِبَ فِي بَعْضِ الأَيَّامِ لِيُقْتَدَى بِهِ فِي فِعْلِهِ. وَكِلَا الْحَدِيثَيْنِ مُسْتَعْمَلٌ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په لسم ذي الحجه په سورلئ رمي دجمار اوكړه

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن دي ، او په دي باب كي دجابر ، قدامه بن عبدالله، سليمان بن عمرو بن احوص رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دبعضي صحابه كرامو هم په دي باندي عمل دي بعضو داقول اختياركړي دي چي حاجي به جمرات پوري پيدل ورځي. دابن عمر رضي الله عنه نه مروي دي او هغوی دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت بيانوي چي رسول الله به جمرات پوري پيدل ورتلو. زمونږ په نزد په دي حديث كي توجيه داده چي كله كله به دسورلئ په حالت رمي دجمار دپاره په دي غرض ورتلو چي دده ددي فعل هم پيروي اوكړي شي او په دواړو احاديثو داهل علمو عمل دي

**تشريح: په سورلئ رمی كول**

كه چري يو كس په سورلئ رمی اوكړله نو روا ده خكه چی د رمی عمل حاصل شو. صاحب د قدوری يوي ضابطی ته اشاره كړې ده.هغه دا چی هره يوه رمی چی دهغې نه پس رمی وی نوپه هغې كي پيدل رمی كول افضل دی،كنی په سورلئ رمی افضل ده ،ددې قاعدي مطابق په يوم النحر په سورلئ باندې د جمره عقبه رمی كول افضل دی خكه چی په يوم النحر دجمره عقبه د رمی نه پس بله رمی نشته.اوپه نورو ورځوكي چونكه د جمره اولی او وسطی د رمی نه پس بله رمی شته نوځكه په هغې كي پيدل رمی افضل ده.او د دريمې جمري نه پس چونكه بله رمی نشته نوځكه په دي رمی كي په سورلئ باندې رمی كول افضل دی،ددي دليل دادی چی كه د رمی نه پس رمی وی نوپيدل رمی ځكه افضل ده چی د اولئ او دويمې رمی نه پس چونكه اودريدل اودعا كول دی نوځكه دي پيدل رمی كوی چی عاجزئ ته زيانه نزدي وی.دا افضليت د امام ابويوسف (رحمه الله) نه نقل دي.

******************

[1] ـ سنن ابن ماجه في المناسك٦٦ (٣٠٣٣) (تحفة الأشراف : ٦٣٦٧)

٩٠٠_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " إِذَا رَمَى الجِمَارَ مَشَى إِلَيْهَا ذَاهِبًا وَرَاجِعًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ عُبَيْدِ اللهِ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: يَرْكَبُ يَوْمَ النَّحْرِ وَيَمْشِي فِي الأَيَّامِ الَّتِي بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَكَأَنَّ مَنْ قَالَ: هَذَا إِنَّمَا أَرَادَ اتِّبَاعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي فِعْلِهِ. لِأَنَّهُ إِنَّمَا رُوِيَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ " رَكِبَ يَوْمَ النَّحْرِ حَيْثُ ذَهَبَ يَرْمِي الجِمَارَ، وَلَا يَرْمِي يَوْمَ النَّحْرِ إِلَّا جَمْرَةَ العَقَبَةِ ".(1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني نبي كريم صلي الله عليه وسلم چي به كله رمي دجمار كوله نو جمراتو پورې به پيدل ورتلو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او بعضي راويانو دا دعبيدالله العمري نه نقل كړي دي ليكن هغوئ مرفوع نه دي بيان كړي داكثرواهل علمو عمل هم په دي باندي وو، دبعضي اهل علمو قول دي چي په لسم ذي الحجه په سورلئ سوريدي شي او دلسم نه پس په باقي ورځو كي پيدل تلل پكار دي، ګويا كي چاچي دا قول كړي دي دهغوئ پيش نظر صرف دنبي كريم صلي الله عليه وسلم ددي فعل اتباع كول دي ، ځكه چي درسول الله نه دا هم مروي دي چي هغه په لسم ذي الحجه په سورلئ سور شو كله چي درمي دجمار دپاره ورغلو. او په لسم ذي الحجه صرف دجمره عقبه رمي كول دي

***************

## ٦٤_ بابُ مَا جَاءَ كَيْفَ تُرْمَى الْجِمَارُ

## دجمراتو رمي څنګه كول پكار دي

٩٠١_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا المَسْعُودِيُّ، عَنْ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ أَبِي صَخْرَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: لَمَّا أَتَى عَبْدُ اللهِ جَمْرَةَ العَقَبَةِ اسْتَبْطَنَ الوَادِيَ وَاسْتَقْبَلَ القِبْلَةَ، وَجَعَلَ يَرْمِي الجَمْرَةَ عَلَى حَاجِبِهِ الأَيْمَنِ، ثُمَّ رَمَى بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ، ثُمَّ قَالَ: " وَاللهِ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ، مِنْ هَاهُنَا رَمَى الَّذِي أُنْزِلَتْ عَلَيْهِ سُورَةُ البَقَرَةِ ". حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ المَسْعُودِيِّ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ، قَالَ: وَفِي البَاب عَنِ الفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وجابر. قَالَ

---

1 _ (تحفة الأشراف: ٨٠١١) وأخرجه مسند احمد (٢ ف/١٣٨)

أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ يَخْتَارُونَ أَنْ يَرْمِيَ الرَّجُلُ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ، يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ إِنْ لَمْ يُمْكِنْهُ أَنْ يَرْمِيَ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي رَمَى مِنْ حَيْثُ قَدَرَ عَلَيْهِ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي بَطْنِ الْوَادِي. [1]

**ترجمه** دعبدالرحمن بن يزيد بيان دي فرماني كله چي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه جمره عقبه ته ورسيدو نو ددي جمري دوقوع محل په مينځ كي اودريدو او قبلي ته مخامخ شو او دخپل مخ دښي طرف په مقابل يي رمي شوع كړه او بيا يي په اوه گيټو رمي اوكړه او هري گيټۍ سره به يي الله اكبر وئيل او بيا يي اوفرمائيل په هغه الله قسم دچا نه علاوه چي بل معبود نشته هغه كس هم ددي خاي نه رمي كړي ود په چاچي سورة بقره نازل شوي ده

امام ترمذي وائي دابن مسعود حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دفضل بن عباس، ابن عباس، ابن عمر او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داهل علمو عمل هم په دي باندي دي دعلماؤ په نزد بهتر همدا صورت دي چي انسان بطن وادي كي اودريږي او په اوه كانړو رمي اوكړي او هري گيټۍ ويشتلو سره الله اكبر اووائي او بعضي اهل علمو اجزت وركړي دي چي كه په بطن وادي كي اودريدل ممكن نه وي نو دداسي خاي نه دي دگيټو ويشتل اوكړي دكوم خاي نه چي دي په دي باندي قادر وي اگر كه هغه دبطن وادي مينځ نه وي.

## دگيټوويشتلوطريقه

د رمي كيفيت دادى چي گيټكى به د خپل ښى لاس د متې گوتې په شا باندې كيږدى.اود مسواكې گوتې په مدد سره به رمى اوكړى.اوپكار ده چي د رمى كونكى اود گيټكى د پريوتو په ځائې كي كم اوكم پنځه گزه فاصله وى.

حسن بن زياد (رحمه الله) د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دا روايت كړې دي ددي قول دليل دادى چي ددې نه كمه فاصله رمي باندې د رمى اطلاق نه كيږى.بلكي د غورځولو اطلاق پرې كيږى، اوكه ده گيټكى د ويشتلو په ځائې په قصد سره اوغورځولو نوهم روا ده خكه چي ده گيټكى خپلو قدمونو طرف ته اوغورځول.خود سنت دمخالفت د وجې به گناهگار وى.اوكه ده گيټكى كيخودل، نو روا به نه وى خكه چي دا رمى نه ده (بلكي كيخودل دى) (كفايه، عنايه)

---

[1] _ صحيح البخاري في الحج ١٣٥ (١١٣٧)، و ١٣٨ (١٧٥٠)، صحيح مسلم في الحج ٥٠ (١٢٩٦)، سنن ابي داود في الحج ٧٩ (١٩٧٤)، سنن النسائي في المناسک ٢٢٦ (٣٠٧٢)، سنن ابن ماجه في المناسک ٦٤ (٣٠٣٠) (تحفة الأشراف : ٩٣٨٢)، مسند احمد (١/ في ٣١٥، ٣٧٤، ٤٣٠، ٤٣٢، ٤٣٦، ٤٥٦، ٤٥٨)

***************

٩٠٢_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، وَعَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّمَا جُعِلَ رَمْيُ الْجِمَارِ وَالسَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا، وَالْمَرْوَةِ لِإِقَامَةِ ذِكْرِ اللَّهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجمراتو رمي او دصفا مروه سعي دالله تعالي دذكر قائمولو دپاره مشروع كړي شوي دي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ٦٥_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ طَرْدِ النَّاسِ عِنْدَ رَمْيِ الْجِمَارِ

**اودجمراتو دويشتو وخت كي خلقو ته دديكو وركولو او دخلقو دلري كولو دكراهت بيان**

٩٠٣_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، عَنْ أَيْمَنَ بْنِ نَابِلٍ، عَنْ قُدَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: " رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي الْجِمَارَ عَلَى نَاقَةٍ لَيْسَ ضَرْبٌ وَلَا طَرْدٌ وَلَا إِلَيْكَ إِلَيْكَ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْظَلَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ قُدَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَإِنَّمَا يُعْرَفُ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَهُوَ حَدِيثُ أَيْمَنَ بْنِ نَابِلٍ، وَهُوَ ثِقَةٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن قدامه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم په داسي حالت كي اوليدو چي په يو اوښه سور وو او دجمراتو رمي يي كوله چي نه خلقو ته ديكي وركول وو او نه چرته دشړلو او لري شه لري شه اواز وو

---

[1] _ سنن ابي داود في الحج ٩١ (١٨٨٨) (تحفة الأشراف : ١٧٥٢٣) مسند احمد (٦ في ٦٤) . سنن الدارمي في المناسك ٣٦ (١٨٩٥)

[2] _ سنن النسائي في الحج ٢٢٠ (٣٠٦٣) . سنن ابن ماجه في المناسك ٦٦ (٣٠٣٥) . سنن الدارمي في المناسك ٦٠ (تحفة الأشراف : ١١٠٧٧)

امام ترمذي وايي دخدامه بن عبدالله حديث حسن صحيح دي او د، حديث په هم دي سند متصل دي دا دايمن بن نابل حديث دي او ايمن دمحدثينو په نزد ثقه دي او په دې باب کي دعبدالله بن حنظله رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

***************

## ٦٦ ـ باب مَا جَاءَ فِي الِاشْتِرَاكِ فِي الْبَدَنَةِ وَالْبَقَرَةِ

### په قرباني کي په اوښ يا غوا کي شراکت کولو بيان

**٩٠٤ ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " نَحَرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ الْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ وَالْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ يَرَوْنَ الْجَزُورَ عَنْ سَبْعَةٍ، وَالْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ وَرُوِي، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَنَّ الْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ، وَالْجَزُورَ عَنْ عَشَرَةٍ ". وَهُوَ قَوْلُ إِسْحَاقَ، وَاحْتَجَّ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ وَجْهٍ وَاحِدٍ. [1]**

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي حديبيه په کال مونږ دنبي اکرم صلي الله عليه وسلم سره اوښ او غوا د اوه کسانو دطرفه قرباني کره

امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي ، په دي باب کي دابوهريره، عائشه او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. اوپه صحابه کرامو او اهل علمو کي داکثرو په دي باندي عمل دي دوئ وائي چي اوښ داوه کسانو دطرفه او غوا غويي هم د اوه کسانو دطرفه وي او همدا دسفيان ثوري، شافعي، او احمد رحمهم الله قول دي. ابن عباس درسول الله نه روايت نقل کوي چي غوا داوه کسانو دطرفه او اوښ دلس کسانو دطرفه کافي دي او دا داسحاق بن راهويه قول دي او هغوئ همدي حديث نه استدلال کري دي او دابن عباس حديث مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي

***************

[1] ـ صحيح مسلم في الحج ٦٢ (١٣١٨) سنن ابي داود في الضحايا ٧(٢٨٠٩) . سنن ابن ماجه في الأضاحي ٥ (٣١٣٢)،تحفة الأشراف : ٢٩٣٣) . موطا امام مالک في الضحايا ٥(٩) . ويأتي عند المؤلف في الأضاحي ٩ (١٥٠٢) وأخرجه (صحيح مسلم في المصدر المذكور) سنن ابي داود في المصدر المذكور سنن النسائي في الضحايا ١٦(٤٣٩٨)

٩٠٥_ حَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ عِلْبَاءَ بْنِ أَحْمَرَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَحَضَرَ الأَضْحَى فَاشْتَرَكْنَا فِي البَقَرَةِ سَبْعَةً، وَفِي الجَزُورِ عَشَرَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ حَدِيثُ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي مونږ په يو سفر کي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وو چي دلوي اختر ورځ راغله چنانچه غوا مونږ داوه کسانو دطرفه ذبح کړه او په اوښ کي لس کسان شريک شو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او دا دحسين بن واقف روايت دي

***************

## ٦٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي إِشْعَارِ الْبُدْنِ

### د اوښانو داشعار بيان

٩٠٦_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ هِشَامٍ الدَّسْتُوَائِيِّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي حَسَّانَ الأَعْرَجِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَلَّدَ نَعْلَيْنِ، وَأَشْعَرَ الهَدْيَ فِي الشِّقِّ الأَيْمَنِ بِذِي الحُلَيْفَةِ، وَأَمَاطَ عَنْهُ الدَّمَ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنِ المِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو حَسَّانَ الأَعْرَجُ اسْمُهُ مُسْلِمٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ يَرَوْنَ الإِشْعَارَ، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. قَالَ: سَمِعْت يُوسُفَ بْنَ عِيسَى، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا، يَقُولُ حِينَ رَوَى هَذَا الحَدِيثَ، قَالَ: لَا تَنْظُرُوا إِلَى قَوْلِ أَهْلِ الرَّأْيِ فِي هَذَا، فَإِنَّ الإِشْعَارَ سُنَّةٌ وَقَوْلُهُمْ بِدْعَةٌ. قَالَ: وسَمِعْت أَبَا السَّائِبِ، يَقُولُ: كُنَّا عِنْدَ وَكِيعٍ، فَقَالَ لِرَجُلٍ عِنْدَهُ مِمَّنْ يَنْظُرُ فِي الرَّأْيِ: "أَشْعَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" وَيَقُولُ أَبُو حَنِيفَةَ هُوَ مُثْلَةٌ، قَالَ الرَّجُلُ: فَإِنَّهُ قَدْ رُوِيَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: الإِشْعَارُ مُثْلَةٌ، قَالَ: فَرَأَيْتُ وَكِيعًا غَضِبَ غَضَبًا شَدِيدًا، وَقَالَ: أَقُولُ لَكَ: قَالَ

---

[1] _ سنن النسائي في الضحايا ١٥ (٤٣٩٧)، سنن ابن ماجه في الأضاحي ٥ (٣١٣١) (تحفة الأشراف ٦١٥٨)، مسند احمد (١/ في ٢٧٥)، ويأتي عند المؤلف في الأضاحي ٨ (١٥٠١)

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَتَقُولُ: قَالَ إِبْرَاهِيمُ: مَا أَحَقَّكَ بِأَنْ تُحْبَسَ. ثُمَّ لَا تَخْرُجَ حَتَّى تَنْزِعَ عَنْ قَوْلِكَ هَذَا.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په ذوالحليفه كي دقرباني څاروي په غاړه كي د دوه پيزارونو اميل واچولو او دهغه دقب دښي طرف اشعار يي اوكړو او وينه يي ورنه پاكه كړه
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي دابو حسان الاعرج نوم مسلم دي. د صحابه كرامو او اهل علمو په دي باندي عمل دي او دوئ داشعار قائل دي همدا دسفيان ثوري، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي، ديوسف بن عيسي قول دي ما دوكيع نه اوريدلي دي كله چي هغه دا حديث بيان كړو چي په دي سلسله كي داهل رائي قول ته مه ګوره ځكه چي اشعار سنت دي او ددوئ قول بدعت دي . ما دابوسائب نه اوريدلي دي وئيل يي چي مونږ دوكيع سره موجود وو او هغه پخپل خوا كي يو كس ته اووئيل څوك چي دهغه كسانو دجملي نه وو چي په رائي كي به يي غور او فكر كولو رسول الله صلي الله عليه وسلم اشعار كړي دي او ابوحنيفه وائي چي دا مثله ده دي كس اووئيل دابراهيم نخعي نه مروي دي دهغه هم دا قول دي چي اشعار مثله ده ابو سائب وائي ما وكيع ته اوكتل چي دده په دي خبره ډير سخت پريشانه اوخفه شو او بيا يي اووئيل زه درته وايم چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي او ته راته ابراهيم نخعي يادوي وكيع ورته اووئيل ته خو ددي لائق يي چي په جيل خانه كي قيد كړي شي اوبيا دهغه وخته پوري دقيد نه راونه ويستلي شي ترڅو چي دي دخپل قول نه رجوع نه وي كړي.

**تشريح** : اشعارديته وائی چی قب ورلـه زخمی کړی،اووینه تـرې راوباسـی . کـه چري يو کـس په بدنه کپړه واچوله،يا ئې اشعار اوکړلو.یعنی د هغه قب ئې ځيرې کړلو.او وینه ئې ترې راوویستله،يا ئې چپلئ ته غاړکئ واچوله، نوبه دې صورتونوکي محرم نـه ګرځی.اګرچی د احرام نیت نـې کـړې وی، ځکـه چـی پـه څـاروو بانـدې کپـړه اچـول کلـه د يخنـئ ګرمئ اومچانونه دحفاظت دپاره وی نـودا عمـل دحـج دخصوصياتو نه نشـو.حالانکه د احرام هغه نیت معتبر دې چی د داسې فعل سره متصل شی چی هغه د حج د خصوصیاتو نه وی.

[1] ـ صحيح مسلم في الحج ٣٢ (١٢٤٣). سنن ابي داود في الحج ١٥ (١٧٥٢). سنن النسائي في الحج ٦٣ (٢٧٧٥). و٦٧ (٢٧٨٢). و٧٠ (٢٧٩٣). سنن ابن ماجه في المناسك ٩٦ (٣٠٩٧). (تحفة الأشراف: ٦٤٥٩). مسند احمد (١ في ٢١٦، ٢٤٥، ٢٨٠، ٣٣٩، ٣٤٤، ٣٤٧، ٣٧٢). سنن الدارمي في المناسك ٦٨ (١٩٥٣)

اشعار د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نزدمکروه دي اوکوم څيز چې مکروه وي،نوهغه مناسك حج څنګه کيدې شي،اوچې د مناسکو د حج نه نشو،نوداحرام نيت د مناسك حج سره متصل نشو، او هر کله چې نيت د مناسك حج سره متصل نشو،نومحرم نه ګرځي.

اوصاحبينو په نزد اګرچې اشعار مستحسن (ښه) دي اومکروه نه دي خودا دحج د خصوصياتو نه نه دي څکه چې اشعار کله دعلاج دپاره هم کولې شي،نوهرکله چې اشعار د صاحبينو په نزد هم اشعارد حج دخصوصياتو څخه نشو،نوپه دې سره محرم نه ګرځي، په خلاف د غاړکۍ اچولوچونکه هغه د حج د افعالوسره خاص دي دبل غرض اومقصد دپاره نه کيږي،اوس پاتې شوه دا خبره چې هرکله تقليد دحج احکامو پورې خاص دي نوبيکاره ده چې چيلۍ ته غاړکۍ اچولوسره محرم ګرځيدلو،حالانکه د چيلۍ په مقلد کولوباندې هم محرم نه ګرځي، ددي جواب دادی چې چيلۍ ته غاړکۍ اچول معتاد نه دی،يعنی دخلقو په عادت کې نشته.

اوسنت هم نه دی،(څکه چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم چيلۍ ته غاړکۍ نه ده اچولې) بلکي تقليد صرف د بدنه يعنی د اوښ اوغوا سره مخصوص دي نوڅکه چيلۍ ته غاړکۍ اچولو سره نه محرم کيږي. (احسن الهدايه ، العنايه)

***************

## ٦٨_ باب

## دقربانۍ دڅاروي متعلق يوبل باب

٩٠٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَبُو سَعِيدٍ الْأَشَجُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْيَمَانِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "اشْتَرَى هَدْيَهُ مِنْ قُدَيْدٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ الْيَمَانِ، وَرُوِيَ عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ "اشْتَرَى هَدْيَهُ مِنْ قُدَيْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم دخپلي قربانۍ څاروي په قديد مقام کې اخستلي وو.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي او مونږ ته دا حديث صرف ديحيي بن يمان په سند معلوم دي او دنافع نه مروي دي چې ابن عمر په قديد کې اخستلي وو او دا زيات صحيح روايت دي

[1] ـ سنن ابن ماجه في المناسك ٩٩ (٣٠٩٨) (تحفة الأشراف : ٧٨٩٤)

***************

## ٦٩_ باب مَا جَاءَ فِي تَقْلِيدِ الْهَدْيِ لِلْمُقِيمِ

### دمقيم دپاره دقربانۍ څاروي په غاړه کي د پټي يا اميل اچول

٩٠٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: " فَتَلْتُ قَلَائِدَ هَدْيِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ لَمْ يُحْرِمْ وَلَمْ يَتْرُكْ شَيْئًا مِنَ الثِّيَابِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: إِذَا قَلَّدَ الرَّجُلُ الْهَدْيَ وَهُوَ يُرِيدُ الْحَجَّ، لَمْ يَحْرُمْ عَلَيْهِ شَيْءٌ مِنَ الثِّيَابِ وَالطِّيبِ حَتَّى يُحْرِمَ. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا قَلَّدَ الرَّجُلُ هَدْيَهُ، فَقَدْ وَجَبَ عَلَيْهِ مَا وَجَبَ عَلَى الْمُحْرِمِ. (١)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم دقربانۍ څاروي په غاړه کي اميلونه واچول او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم نه احرام اوتړلو او نه يي گنډلو جامو اغوستل پريخودل

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باندي دبعضي اهل علمو عمل دي دوئ وائي کله چي يو سړي دقربانۍ څاروي په غاړه کي اميل واچوي او دحج اراده لري نو هيڅ څيزورباندي دجامو او خوشبويي نه نه حراميږي تر څو چي يي احرام تړلي نه وي. او دبعضي اهل علمو قول دي کله چي چا دقربانۍ څاروي په غاړه کي اميل واچولو نو واجب شو په ده باندي هغه احکام کوم چي واجب کيږي په محرم.

**تشريح** : (امام محمد (رحمه الله) په جامع صغيرکښې) وائی چی کوم کس بدنې ته غاړکۍ واچوله.که نفلی وی،اوکه نذر وی،اوکه جزاء د ښکار وی،اود په څيزونو کي د بل څه څيز وی،اوروان شی د بدنې سره پخپله چی اراده ئې لرله د حج نو دې محرم شو.د وجې د وينا د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه،چاچی غاړکۍ واچوله بدنې ته نو دې محرم شو،اوبله دا چی غاړگۍ اچول په معنی د تلبيه وئيلو دی په ښکاره کولو د اجابت کښې،څکه چی نه کوی

---

[1] _ سنن النسائي في الحج ٦٨ (٢٧٨٦) (تحفة الأشراف : ١٧٥١٢) . مسند احمد (٦ في ٨٥) (وأخرجه صحيح البخاري في الحج ١٠٦ (١٦٩٨) ، و١٠٧ (١٦٩٩) ، و١٠٨ (١٦٩٩) ، و١٠٩ (١٧٠٠) ، و١١٠ (١٧٠٢، ١٧٠٣) ، الوكالة ١٣ (٢٣١٧) ، والأضاحي ١٥ (٥٥٦٦) . صحيح مسلم في الحج ٦٣ (١٣٢١) . سنن ابي داود في الحج ١٧ (١٧٥٨) . سنن النسائي في الحج ٦٥ (٢٧٧٤/٢٧٨١) ، و٦٦ (٢٧٨٣) . ٦٨ (٢٧٨٥) . سنن ابن ماجه في المناسک ٩٣ (٣٠٩٥) . مسند احمد (٦ في ٣٥، ٣٦، ٧٨، ٩١، ١٠٢، ١٢٧، ١٧٣، ١٨٠، ١٨٥، ١٩٠، ١٩١، ٢٠٠، ٢٠٨، ٢١٣، ٢١٦، ٢٢٥، ٢٣٦، ٢٥٣، ٢٦٢)

دا (كار د غاړكۍ اچولو)مګرهغه څوك چې اراده لرى د حج،اويا دعمرې،اواظهار د اجابت كله كيږى په فعل سره لكه څنګه چې كيږى په قول سره،نوګرځي په دې (تقليد) سره محرم. د وجې د اتصال د نيت دداسې فعل سره چې هغه د خصوصياتو د احرام نه دي اوطريقه د غاړكۍ اچولو دا ده چې اوتړى په څټ د بدنې پورې څه حصه د پڼې (ياڅپلى) ياد لو ټې لاسكې يا پوستكې د ونې.

***************

## ۷۰_ باب مَا جَاءَ فِي تَقْلِيدِ الْغَنَمِ

### دقرباني دګډو چيلو په غاړه كې داميل اچولو بيان

۹۰۹_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ أَفْتِلُ قَلاَئِدَ هَدْيِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّهَا غَنَمًا، ثُمَّ لاَ يُحْرِمُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ يَرَوْنَ تَقْلِيدَ الْغَنَمِ.[1]

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم دچيلو تول اميلونه به ما دخاروو په غاړه كې اچول او بيا به رسول الله صلي الله عليه وسلم احرام نه تړلو (يعني حلال به اوسيدو).

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، دبعضې صحابه كرامو او دوئ نه پس داهل علمو په دې باندې عمل دي او هغوئ دګډو چيلو په غاړه كې داميل اچولو قائل دي

**تشريح** : دامام شافعي او احمد رحمهما الله په نزد داوښانو پشان دګډو چيلو په غاړه كې هم هار اچول سنت دي.

او دامام ابو حنيفه او امام مالك رحمهما الله په نزد هار اچول صرف په اوښانو او غويانو پورې خاص دي او دچيلو ګډو په غاړه كې هار اچول مشروع نه دي.

---

[1] _ سنن النسائي في الحج ٦٨ (٢٧٨٦) (تحفة الأشراف : ١٧٥١٣) . مسند احمد (٦ في ٨٥) (وأخرجه صحيح البخارى في الحج ١٠٦ (١٦٩٨) ، و١٠٧ ، و١٠٨ (١٦٩٩) ، و١٠٩ (١٧٠٠) ، و١١٠ (١٧٠٢ ، ١٧٠٣) ، الوكالة ١٤ (٢٣١٧) ، والأضاحي ١٥ (٥٥٦٦) . صحيح مسلم في الحج ٦٤ (١٣٢١) ، سنن ابي داود في الحج ١٧ (١٧٥٨) ، سنن النسائي في الحج ٦٥ (٢٧٧٤-٢٧٨١) ، و٦٦ (٢٧٩٣) ، ٦٨ (٢٧٨٥) ، سنن ابن ماجه في المناسك ٩٤ (٣٠٩٥) ، مسند احمد (٦ في ٣٥ ، ٣٦ ، ٧٨ ، ٩١ ، ١٠٢ ، ١٢٧ ، ١٧٤ ، ١٨٠ ، ١٨٥ ، ١٩٠ ، ١٩١ ، ٢٠٠ ، ٢٠٨ ، ٢١٣ ، ٢١٦ ، ٢٢٥ ، ٢٢٦ ، ٢٥٣ ، ٢٦٢)

که چري يو کس د قرباني څاروی ته قلاده واچوله.بدنه نفلي وه.او که د نذر وه.يا چرته مخکي دبنکار کولوپه وجه د جرماني څاروي وی.يا دم د تمتع وغيره وی.او دا کس د حج په اراده خپلي بدني سره مکي مکرمي ته روان هم وی.نو دي محرم شو.که په ژبه ني تلبيه ونيلی وی.او که ئي نه وی ونيلي. رومبي دليل د رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمان دي "من قلد بدنةً فقد احرم" دويم دليل دادي چی د ابراهيم عليه السلام د دعاء د قبوليت په جواب ورکولوکي هديه روانول.: تلبيه په معنی کي دی.څکه چی د هدي بوتللو عمل هغه کس کوی.څوك چی دحج ياعمري اراده لري.د قبوليت اظهار لکه څنگه چی په قول يعنی په تلبيه سره کيږی.دغه شان په سوق. يعنی په هدي سره هم کيږی.په دي وجه داکس په هدي روانولو سره محرم کيږی.څکه چی نيت د حج په داسي فعل سره متصل شوي دي کوم فعل چی د احرام د خصوصياتو نه دي صاحب دهدايه فرمائی.د تقليد صورت دادي چی د بدنه په غاړه کي د څپلئ ټکړه يا د لوټي لاسکي يا د ونې پوټ واچوی.

***************

## ٧١_ باب مَا جَاءَ إِذَا عَطِبَ الْهَدْيُ مَا يُصْنَعُ بِهِ

### کله چي دقرباني څاروي په لاره کي مرګ ته نزدي شي نو څه کول پکار دي

٩١٠_ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ نَاجِيَةَ الْخُزَاعِيِّ صَاحِبِ بُدْنِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ أَصْنَعُ بِمَا عَطِبَ مِنَ الْبُدْنِ؟ قَالَ: "انْحَرْهَا ثُمَّ اغْمِسْ نَعْلَهَا فِي دَمِهَا، ثُمَّ خَلِّ بَيْنَ النَّاسِ وَبَيْنَهَا فَيَأْكُلُوهَا". وَفِي البَابِ عَنْ ذُؤَيْبٍ أَبِي قَبِيصَةَ الْخُزَاعِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ نَاجِيَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. قَالُوا فِي هَدْيِ التَّطَوُّعِ إِذَا عَطِبَ: لَا يَأْكُلُ هُوَ وَلَا أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ رُفْقَتِهِ، وَيُخَلَّى بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّاسِ يَأْكُلُونَهُ، وَقَدْ أَجْزَأَ عَنْهُ. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالُوا: إِنْ أَكَلَ مِنْهُ شَيْئًا غَرِمَ بِقَدْرِ مَا أَكَلَ مِنْهُ. وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: إِذَا أَكَلَ مِنْ هَدْيِ التَّطَوُّعِ شَيْئًا فَقَدْ ضَمِنَ الَّذِي أَكَلَ. (١)

**ترجمه** : درسول الله صلي الله عليه وسلم د اوبنانو پالنه کونکي ناجيه خزاعي رضي الله عنه بيان دي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله کوم اوبن چي په لاره کي مرګ ته نزدي شي په هغه به

[1] ـ سنن ابي داود في الحج ١٩ (١٧٦٢). سنن ابن ماجه في المناسک ١٠١ (٣١٠٦) (تحفة الأشراف: ١١٥٨١). موطا امام مالک في الحج ٤٧ (١٤٨). مسند احمد (٣ في ٣٣). سنن الدارمی في المناسک ٦٦ (١٩٥٠)

څه کوم؟ رسول الله اوفرمائيل نحر (ذبح) يي کړه او بيا د هغه اميل دهغه په وينه ګنده کړه او بيا دا خلقو ته پريږده چي غوښي يي اوخوري.
امام ترمذي وائي دناجيه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دذويب، ابوقبيصه خزاعي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي، او داهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي کله چي دنفلي قربانۍ څاروي مرګ ته نزدي شي نو پخپله يي نشي خوړلي او نه به يي دده دسفر ملګري خوري بلکي دا به خلقو ته پريږدي چي هغوئ يي اوخوري او همدا دده دپاره کفي ده دا دامام شافعي احمد او اسحاق رحمهم الله قول دي دوئ وائي که چري ده ورنه پخپله خوراك اوکړو نو چي څومره يي ورنه خوړلي وي دهغي په مقدار تاوان به ورکوي مګر دبعضي اهل علمو قول دي چي کله څوك دخپلي نفلي قربانۍ دڅاروي نه غوښه اوخوري نوچاچي ورنه خوړلي وي هغه ددي ضامن دي

****************

## ۷۲_ باب مَا جَاءَ فِي رُكُوبِ الْبَدَنَةِ

### دقربانۍ په اوښ دسوريدو بيان

۹۱۱_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بَدَنَةً، فَقَالَ لَهُ: " ارْكَبْهَا " فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهَا بَدَنَةٌ، قَالَ لَهُ فِي الثَّالِثَةِ أَوْ فِي الرَّابِعَةِ: " ارْكَبْهَا وَيْحَكَ " أَوْ وَيْلَكَ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ فِي رُكُوبِ الْبَدَنَةِ إِذَا احْتَاجَ إِلَى ظَهْرِهَا، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا يَرْكَبُ مَا لَمْ يُضْطَرَّ إِلَيْهَا. (1)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم يو کس له داوښ دبوتلو په حالت کي اوليدو نو حکم يي ورته اوکړو چي په دي باندي سور لاړ شه هغه عرض اوکړو اي دالله رسوله دا خو دقربانۍ اوښ دي بيا يي ورته په دريم او څلورم ځل اوونيل چي په دي باندي سور لاړ شه ته دي هلاك شي.

1 _ صحيح البخارى في الوصايا ۱۲ (۲۷۵۴) (تحفة الأشراف : ۱۴۲۷) وأخرجه صحيح البخارى في ۱۰۳ (۱۶۹۰)، والأدب ۹۵ (۶۱۵۹)، صحيح مسلم في الحج ۶۵ (۱۳۲۳)، سنن النسائي في الحج ۷۴ (۲۸۰۲)، مسند احمد (۳ في ۹۹، ۱۷۰، ۱۷۳، ۲۰۲، ۲۳۱، ۲۳۴، ۲۷۵، ۲۷۶، ۲۹۱)، سنن الدارمي في المناسك.

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعلي، ابوهريره، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او همدا د امام احمد او اسحاق بن راهويه قول دي ، بعضي اهل علم وائي ترڅوپوري چي كومه مجبوري راغلي نه وي ترهغي دقرباني په ښاروي سوريدل پكار نه دي

**تشريح** : كوم كس چې بدنه روانه كړې وی،اوحرم ته روان وی.په لاركي ستړې شی.اود تګ طاقت نه لری،نوده ته په بدنه د سوريدو اجازت شته،ځوكه د پيدل تګ طاقت ئې وی،نوسوريږی به پرې نه،ځكه چې بدنه خالص دالله تعالى حق دي نوددې د ذات يا منافع نه فائده اخستل مناسب نه دی. تردې چې خپل محل ته اورسولي شی.اوذبح كړې شی الـتد كه سورلی ته محتاج شو،نو سورلی پرې كولې شی.ځكه چې په حديث كي دی چې يوكس هدی شړله،رسول الله ورته اوفرمائيل، تباه شه (دا خيرې نه دی.دعربومحاوره ده) په دې باندې سورشه،ددې حديث مطلب دادی چې هغه كس د پيدل تلونه عاجز وو.اوسورلی ته محتاج وو،ځكه ورته نبیﷺ په هغې د سوريدوحكم اوكړلو.

***************

## ٧٣ـ باب مَا جَاءَ بِأَيِّ جَانِبِ الرَّأْسِ يَبْدَأُ فِي الْحَلْقِ

### دسر ويښته دكوم طرف نه خريل پكاردي

٩١٢ـ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: لَمَّا رَمَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجَمْرَةَ نَحَرَ نُسُكَهُ. ثُمَّ نَاوَلَ الْحَالِقَ شِقَّهُ الأَيْمَنَ فَحَلَقَهُ فَأَعْطَاهُ أَبَا طَلْحَةَ. ثُمَّ نَاوَلَهُ شِقَّهُ الأَيْسَرَ فَحَلَقَهُ. فَقَالَ: "اقْسِمْهُ بَيْنَ النَّاسِ". حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامٍ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دجمري رمي اوكړه نو دخپلي قرباني اوښ يي ذبح كړو او بيا يي او سر خريلو والاته دخپل سر ښي طرف ورنږدي كړو او هغه ورله سر اوخريل او دا ويښته يي ابوطلحه ته وركړل بيا يي ورته دخپل سر كس طرف ورمخكي كړو نو دا يي ورله هم اوخريل او بيايي اوفرمائيل دا ويښته په

---

[1] ـ صحيح مسلم في الحج ٥٦ (١٣٠٥) . سنن ابي داود في الحج ٧٩ (١٩٠) (تحفة الأشراف : ١٤٥٦) وأخرجه البخاري الوضوء ٣٣ (١٧١)

خلقو کي تقسيم کړئ دابن ابي عمر په سند دهشام نه ددي هم معني حديث مروي دي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

## ٧٤_ باب مَا جَاءَ فِي الْحَلْقِ وَالتَّقْصِيرِ

### دسر دويختو دخريلو يا کمولو بيان

٩١٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: حَلَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَلَقَ طَائِفَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ، وَقَصَّرَ بَعْضُهُمْ " قَالَ ابْنُ عُمَرَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " رَحِمَ اللَّهُ الْمُحَلِّقِينَ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ " ثُمَّ قَالَ: " وَالْمُقَصِّرِينَ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ أُمِّ الْحُصَيْنِ، وَمَارِبَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي مَرْيَمَ، وَحُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ يَخْتَارُونَ لِلرَّجُلِ أَنْ يَحْلِقَ رَأْسَهُ، وَإِنْ قَصَّرَ يَرَوْنَ أَنَّ ذَلِكَ يُجْزِئُ عَنْهُ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل سر په چا اوخريلو او بعضي خلقو ويخته کم کړل ابن عمر فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو ځل يا دوه ځل اوفرمائيل الله تعالي دي په سر خرونکو باندي رحم اوکړي او بيا يي اوفرمائيل په سر کمونکو باندي هم

**تشريح** : د سرخريل واجب دی.اوکه ديو کس په سرباندې ههو ويخته نه وی نوپه ههه واجب دی چی په خپل سرچانړه راکاږی، د حلق د افضليت دليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم حديث دي په صحيحينوکي راغلی دی چی رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی:

"اللهم ارحم المحلقين قالوا والمقصرين يارسول الله قال اللهم ارحم المحلقين قالوا والمقصرين يا رسول الله قال اللهم ارحم المحلقين قالوا و المقصرين يارسول الله قال والمقصرين"

---

[1] ـ صحيح البخاری في الحج ١٢٧ (تعليقا عقب حديث ١٧٢٧) . صحيح مسلم في الحج ٥٥ (١٣٠١) (تحفة الأشراف : ٨٢٦٩) وأخرجه صحيح البخاری في الحج ١٢٧ (١٧٢٧) . صحيح مسلم في الحج . سنن ابن ماجه في المناسك ٧١ (٣٠٢٣) . موطا امام مالک في الحج ٦٠ (١٨٣) . مسند احمد (٢ في ٣٤، ١٣٨، ١٥١) . سنن الدارمی في المناسک ٦٣ (١٩٣٧)

په حديث كي سر خريونكو دپاره رسول پاك صلي الله عليه وسلم دري ځله د رحمت دعا كړي ده.اود قصر كونكودپاره ئې يوځل درحمت دعا كړې ده، نود رحمت دتكرار دعا د حلق په افضليت باندې ښكاره دليل دي:

(۲) دويم دليل دادى چې مقصود دبدن پاكول دى،اوپه دي مقصود حاصلولو كي حلق اكمل دي د قصر نه،اوپه ويختو كټ كولو كي د دي مقصود په حاصلولوكي كوتاهى ده.يعنى په ويختو كټ كولو كي پوره پاكي نه حاصليږى نودا دغسل او اودس سره مشابه شو،دغه شان حلق د قصر نه افضل دي اود حلاليدو دپاره دسر دڅلورمې حصې كټ كول كافى دى لكه څنګه چې په اودس كي د څلورمې حصې سره مسح كافى ده.البته دټول سر خريل افضل دى ځكه چې په دي كي درسول الله صلي الله عليه وسلم د فعل اقتداء ده،اوتقصيريعنى د ويختو كټ كول دادى چې د خپلې ګوتې په برابر باندې ويخته كټ كړى. (فتح القدير)

د حلق يا قصر نه پس د محرم دپاره هرهغه څيزحلال شو،كوم چې د احرم په وجه ممنوع وو.علاوه د ښځو سره د جماع اود اسبابو دجماع نه

امام مالك (رحمه الله) وائى چې د جماع پشان خوشبولګول هم حلال نه دى. ځكه چې خوشبوئى لګول د اسبابود جماع نه دى لكه څنګه چې ښځې مس كول اود هغې نه بوسه اخستل دواعى دجماع دى.

زمونږ دليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم قول دې چې "حل له كل شئ إلا النساء" يعنى د محرم دپارد (دحلق نه پس) هرڅيزحلال شو،اودا نص د امام مالك (رحمه الله) خلاف حجت دي (ځكه چې قياس د نص په مقابله كي مردود وى)

زمونږ په نزدد شرمګاه نه علاوه د بل ځائې په ذريعه جماع كول هم حلال نه دى،(مثلاً په پتون يا خيته كي په دخول سره انزال وغيره) اګرچې امام شافعى (رحمه الله) دحلت قائل دي

زمونږدليل دادى چې د شرمګاه نه علاوه په بل ځائې كي جماع كول هم د شهوت پوره كول دى نوځكه به دا هم د پوره حلالوالى پورې يعنى د طواف زيارت پورې مؤخركولې شى.

***************

## ۷۵ــ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْحَلْقِ لِلنِّسَاءِ

**دښځودپاره دسر خريلو دحرمت بيان**

٩١٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الحَرَشِيُّ البَصْرِيُّ. حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ. حَدَّثَنَا هَمَّامٌ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ خِلَاسِ بْنِ عَمْرٍو. عَنْ عَلِيٍّ. قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنْ تَحْلِقَ المَرْأَةُ رَأْسَهَا". (1)

**ترجمه** . دعلي رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي خبري نه ممانعت فرمانيلي دي چي يوه ښځه خپل سر اوخروي

***************

٩١٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ. عَنْ هَمَّامٍ. عَنْ خِلَاسٍ نَحْوَهُ. وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ عَلِيٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ فِيهِ اضْطِرَابٌ. وَرُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ عَائِشَةَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ تَحْلِقَ المَرْأَةُ رَأْسَهَا". وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ لَا يَرَوْنَ عَلَى المَرْأَةِ حَلْقًا. وَيَرَوْنَ أَنَّ عَلَيْهَا التَّقْصِيرَ. (2)

**ترجمه** : په دي سند سره هم دخلاص نه په سابقه روايت هم معني حديث مروي دي ليکن په دي کي هغوئ دعلي رضي الله عنه واسطه نه ده ذکر کړي.

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه په حديث کي اضطراب دي دا حديث دحماد بن سلمه نه دقتاده په سند عن عائشه ان النبي صلي الله عليه وسلم سره مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم ښځي دسرونو خريلو نه منع کړي دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي چي هغوئ دښځو دپاره سر خريل درست نه ګڼړي او ددوئ په خيال دښځو دپاره تقصير يعني کمول درست دي.

***************

## ٧٦_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ حَلَقَ قَبْلَ أَنْ يَذْبَحَ أَوْ نَحَرَ قَبْلَ أَنْ يَرْمِيَ

### دذبح کولو نه مخکي دسر خريلو يا درمي کولو له مخکي دقربانئ کولو بيان

٩١٦_ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ المَخْزُومِيُّ. وَابْنُ أَبِي عُمَرَ. قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ. عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو. أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: حَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ. فَقَالَ: "اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ". وَسَأَلَهُ آخَرُ. فَقَالَ: نَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ

---

1 ـ سنن النسائي في الزينة ٣ (٥٠٥٢) (تحفة الأشراف: ١٠٠٨٥)

2 ـ سنن النسائي في الزينة ٣ (٥٠٥٢) (تحفة الأشراف: ١٠٠٨٥)

أَرْمِيَ، قَالَ: "ارْمِ وَلَا حَرَجَ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: إِذَا قَدَّمَ نُسُكًا قَبْلَ نُسُكٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو ما دذبح كولو نه مخكي سر خريلي دي' رسول الله اوفرمائيل اوس ذبح كولي شئ او هيڅ حرج نشته، بيا يو بل كس تپوس اوكړو ما درمي كولو نه مخكي نحر كړي دي؟ورته يي اوفرمائيل اوس رمي كولي شئ هيڅ حرج نشته

امام ترمذي وائي دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي. په دي باب كي دجابر، ابن عباس، ابن عمر، اسامه بن شريك رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. او داكثرو اهل علمو عمل هم په دي باندي دي او په همدي باندي احمد .او اسحاق بن راهويه قول كړي دي، بعضي اهل علم وائي كه څوك بعضي نسك لره يعني رمي يا نحر يا حلق وغيره يو دبل نه وړاندي روستو اوكړي نو هغه باندي به دم لازم وي مګر ددي خبري څه دليل نشته

***************

## ٧٧_ باب مَا جَاءَ فِي الطِّيبِ عِنْدَ الإِحْلَالِ قَبْلَ الزِّيَارَةِ

### دطواف زيارت نه مخكي داحرام پرانيستلو وخت كي دخوشبو لكولو بيان

٩١٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا مَنْصُورٌ يَعْنِي ابْنَ زَاذَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ القَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "طَيَّبْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ، وَيَوْمَ النَّحْرِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالبَيْتِ بِطِيبٍ فِيهِ مِسْكٌ". وَفِي البَاب عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، يَرَوْنَ أَنَّ المُحْرِمَ إِذَا رَمَى جَمْرَةَ العَقَبَةِ يَوْمَ النَّحْرِ وَذَبَحَ وَحَلَقَ أَوْ قَصَّرَ، فَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ حَرُمَ عَلَيْهِ إِلَّا النِّسَاءَ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ

---

[1] _ صحيح البخاری في العلم ٢٢ (٨٣)، والحج ١٣١ (١٧٣٦)، والأيمان والنذور ١٥ (٦٦٦٥)، صحيح مسلم في الحج ٥٧ (١٣٠٦)، سنن ابی داود في المناسك ٨٨ (٢٠١٤)، سنن ابن ماجه في المناسك ٧٤ (٣٠٥١) (تحفة الأشراف: ٨٩٠٦)، موطا امام مالک في الحج ٨١ (٢٤٢)، سنن الدارمی في المناسک ٦٥ (١٩٢٨)

عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، أَنَّهُ قَالَ: " حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ وَالطِّيبَ ". وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ الْكُوفَةِ. (1)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي ما په رسول الله صلي الله عليه وسلم داحرام تړلو نه مخکي په لسم ذي الحجه دبيت الله دطواف کولو نه مخکي خوشبو اولګوله چي مشک پکي شامل وو

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي په صحابه کرامو کي او ددوئ نه پس په اهل علمو کي داکثرو په دي باندي عمل دي چي محرم کله په لسم ذي الحجه دجمرد عقبي رمي اوکړي نو څاروي دي ذبح کړي او سر دي اوخروي او يا دي ويخته کم کړي دي وخت کي به ددد دپاره هر څيز حلال شي کوم چي په ده باندي حرام دي مګر علاوه دښځو نه. همدا دامام شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه قول دي، دعمر رضي الله عنه نه مروي دي چي دښځواو خوشبو نه علاوه دده دپاره هر څيز حلال شو.

دبعضي صحابه کرامو او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او دي حديث طرف ته يي ميلان اختيار کړي دي او همدا داهل کوفه قول هم دي

***************

## ٧٨_ باب مَا جَاءَ مَتَى تُقْطَعُ التَّلْبِيَةُ فِي الْحَجِّ

### په حج کي به تلبيه وليل کله بندولي شي

٩١٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ الفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " أَرْدَفَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ جَمْعٍ إِلَى مِنًى، فَلَمْ يَزَلْ يُلَبِّي حَتَّى رَمَى الجَمْرَةَ ". وَفِي البَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الفَضْلِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

---

[1] _ صحيح مسلم في الحج ٤ (١١٨٩). سنن النسائي في الحج ٤١ (٢٦٩٣) (تحفة الأشراف : ١٧٥٢٦) وأخرجه صحيح البخاري في الحج ١٨ (١٥٣٩)، و١٤٣ (١٧٥٤)، واللباس ٧٣ (٥٩٢٢)، و٧٩ (٥٩٢٨)، و٨١ (٥٩٣٠). سنن ابي داود في المناسک ١١ (١٧٤٥). سنن النسائي في الحج ٤١ (٢٦٨٥٢٦٩٢). سنن ابن ماجه في المناسک ١١ (٢٩٢٦)، و٧٠ (٣٠٤٢). موطأ امام مالک في الحج ٧ (١٧). مسند احمد (٦ في ٩٨، ١٠٦، ١٣٠، ١٦٢، ١٨١، ١٨٦، ١٩٢، ٢٠٠، ٢٠٧، ٢٠٩، ٢١٣، ٢١٦، ٢٣٧، ٢٣٨، ٢٤٤، ٢٤٥، ٢٥٨). سنن الدارمي في المناسک (١٨٤٤)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الحَاجَّ لَا يَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ حَتَّى يَرْمِيَ الجَمْرَةَ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ وَإِسْحَاق.[1]

**ترجمه** . دفضل بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه دمزدلفي نه مني پوري خپل رديف جوړ كړم (يعني زه يي شاته خان پسي سور كړم) او مسلسل يي تلبيه ونيل جاري ساتل تردي چي دجمره عقبي رمي يي اوكړه.

امام ترمذي وائي دفضل بن عباس حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دعلي، ابن مسعود ، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دصحابه كرامو او ددوی نه پس داهل علمو په همدي باندي عمل دي چي حاجي به هغه وخته پوري تلبيه نه بندوي ترڅو چي يي جمره عقبه ويشتلي نه وي همدا دامام شافعي او احمد بن حنبل او اسحاق رحمهم الله قول دي.

***************

## ٧٩ـ باب مَا جَاءَ مَتَى تُقْطَعُ التَّلْبِيَةُ فِي الْعُمْرَةِ

### په عمره كي به تلبيه كله بندولي شي

٩١٩ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ يَرْفَعُ الحَدِيثَ " أَنَّهُ كَانَ يُمْسِكُ عَنِ التَّلْبِيَةِ فِي العُمْرَةِ إِذَا اسْتَلَمَ الحَجَرَ ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ، قَالُوا: لَا يَقْطَعُ المُعْتَمِرُ التَّلْبِيَةَ حَتَّى يَسْتَلِمَ الحَجَرَ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا انْتَهَى إِلَى بُيُوتِ مَكَّةَ قَطَعَ التَّلْبِيَةَ، وَالعَمَلُ عَلَى حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ.

**ترجمه** . دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه يو مرفوع روايت مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په عمره كي تلبيه هغه وخت بندوله كله چي به يي دحجر اسود استلام اوكړو

---

[1] ـ صحيح البخاری في الحج ١٠٢ (١٦٨٥) ، صحيح مسلم في الحج ٤٥ (١٢٨١) ، سنن ابي داود في المناسک ٢٨ (١٨١٥) ، سنن النسائي في الحج ٢١٦ (٣٠٥٤) ، و٢٢٨ (٣٠٨١) ، و٢٢٩ (٣٠٨٢) ، مسند احمد (١ / ٢١٠، ٢١١، ٢١٢، ٢١٣، ٢١٣) (تحفة الأشراف : ١١٠٥٠) وأخرجه صحيح البخاری في الحج ٢٢ (١٥٤٣) ، و٩٣ (١٦٧٠) ، صحيح مسلم في الحج (المصدر المذكور) ، سنن ابن ماجه في المناسک ٦٩ (٣٠٤٠) ، مسند احمد (١ في ٢١٢) ، سنن الدارمي في المناسک ٦٠ (١٩٢٣)

[2] ـ سنن ابي داود في الحج ٢٩ (١٨١٧) (تحفة الأشراف : ٥٩٥٨)

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، په دي باب کي د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي، او د اکثرو اهل علمو عمل هم په دي باندي دي دوئ وائي چي عمره کونکي به هغه پوري تلبيه نه بندوي چي څو پوري يي استلام دحجر اسود نه وي کړي ، او دبعضو قول دي چي کله دمکي ابادئ ته ورسيږي نو تلبيه وئيل دي بند کړي ليکن عمل دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په حديث باندي يعني مذکوره حديث او همدا دسفيان ثوري، او شافعي، او احمد بن حنبل او اسحاق قول دي.

***************

## ٨٠_ باب مَا جَاءَ فِي طَوَافِ الزِّيَارَةِ بِاللَّيْلِ

### دشپي دطواف زيارت کولو بيان

٩٢٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ إِلَى اللَّيْلِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي أَنْ يُؤَخَّرَ طَوَافُ الزِّيَارَةِ إِلَى اللَّيْلِ، وَاسْتَحَبَّ بَعْضُهُمْ أَنْ يَزُورَ يَوْمَ النَّحْرِ، وَوَسَّعَ بَعْضُهُمْ أَنْ يُؤَخَّرَ وَلَوْ إِلَى آخِرِ أَيَّامِ مِنًى. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس او ام المؤمنين عائشه رضي الله عنهما نه روايت دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم طواف دشپي پوري مؤخر کړو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او بعضي اهل علمو دشپي پوري دطواف زيارت مؤخر کولو اجازت ورکړي دي او بعضو په لسم ذي الحجه طواف زيارت کول مستحب ګڼړلي دي ليک دبعضو قول دي چي دمني دا ځري ورځ پوري په دي کي دتاخير ګنجائش شته.

***************

## ٨١_ باب مَا جَاءَ فِي نُزُولِ الأَبْطَحِ

### په ابطح مقام کي دقيام کولو بيان

٩٢١_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ يَنْزِلُونَ الأَبْطَحَ". قَالَ:

---

[1] _ صحيح البخاري في الحج ١٣٠ (تعليقا فى الترجمة). سنن ابي داود في المناسک ٨٣ (٢٠٠٠). سنن ابن ماجه في المناسک ٧٧ (٣٠٥٩). (تحفة الأشراف: ٦٣٥٢ و ١٧٥٩٣). مسند احمد (١في ٢٨٨)

وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَأَبِي رَافِعٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ صَحِيحٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّزَّاقِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. وَقَدِ اسْتَحَبَّ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ نُزُولَ الأَبْطَحِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَرَوْا ذَلِكَ وَاجِبًا إِلَّا مَنْ أَحَبَّ ذَلِكَ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَنُزُولُ الأَبْطَحِ لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ، إِنَّمَا هُوَ مَنْزِلٌ نَزَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوبكر او عمر او عثمان رضي الله عنهم به په ابطح مقام كې قيام كولو

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح غريب دي او مونږ ته صرف دعبدالرزاق په سند معلوم دي، هغه دعبيدالله بن عمرنه روايت كوي، او په دې باب كې د عائشه. ابورافع. او ابن عباس رضي الله عنهم نه احاديث مروي دي، بعضې اهل علمو په ابطح مقام كې قيام كول مستحب گرځولي دي او واجب يې نه دي گرځولي كه دچا خوښه وي نو ابطح كې دې قيام اوكړي او كه دلته قيام نه كوي څه باك نشته ، امام شافعي وائي په ابطح كې قيام كول دحج په مناسكو كې نه دي دا خو بس يو ځاي دي چرته چې رسول الله صلي الله عليه وسلم قيام كړې وو.

***************

٩٢٢_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " لَيْسَ التَّحْصِيبُ بِشَيْءٍ، إِنَّمَا هُوَ مَنْزِلٌ نَزَلَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: التَّحْصِيبُ نُزُولُ الأَبْطَحِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چې په محصب مقام كې قيام كول هيڅ شي نه دي دا خو بس يوځاي دي چرته چې رسول الله صلي الله عليه وسلم قيام كړي وو امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دتحصيب معني په ابطح كې قيام كول دي

***************

## ٨٢_ باب مَنْ نَزَلَ الأَبْطَحَ

## په ابطح كې دقيام كولو بيان

[1] _ سنن ابن ماجه في المناسك ٨١ (٣٠٦٩) (تحفة الأشراف : ٨٠٢٥) وأخرجه مسلم فى الحج (٥٩ في ١٣١٠)

[2] _ البخارى في الحج ١٤٧ (١٧٦٦) . صحيح مسلم في الحج ٥٩ (١٣١٢) (تحفة الأشراف : ٥٩٤١)

٩٢٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا حَبِيبٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " إِنَّمَا نَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الأَبْطَحَ لأَنَّهُ كَانَ أَسْمَحَ لِخُرُوجِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ نَحْوَهُ. (١)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ابطح مقام کي قيام اوکړو او دا ځکه چي ددي ځاي نه مديني ته روانيدل ډير اسان وو
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دا مونږ ته ابن ابي عمر بيان کړي دي او ابن عمر وائي مونږ ته سفيان بيان کړي دي او سفيان دهشام بن عروه نه دسابقه حديث پشان نقل کړي دي.

***************

## ٨٣ـ باب مَا جَاءَ فِي حَجِّ الصَّبِيِّ

### دماشوم دحج بيان

٩٢٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَرِيفٍ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوقَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: رَفَعَتِ امْرَأَةٌ صَبِيًّا لَهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلِهَذَا حَجٌّ؟ قَالَ: " نَعَمْ، وَلَكِ أَجْرٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. (٢)

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يوي ښځي خپل بچي رسول الله صلي الله عليه وسلم طرف ته راپورته کړو او تپوس يي اوکړو اي دالله رسوله ايا په ده باندي هم حج کيږي ورته يي اوفرمائيل هو، ستا دپاره به اجر وي
امام ترمذي وائي دجابر حديث غريب دي او په دي باب کي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي.

**تشريح** : دعلماؤ په دي خبره اتفاق دی چي ماشوم که حج اوکړي نو حج يي کيږي او که داحرام په ممنوعاتو کي دکوم څيز ارتکاب اوکړي نو ددم فديه نه په ماشوم واجب ده او نه دده په ولي

---

[1] ـ صحيح مسلم في الحج ٥٩ (١٣١١) (تحفة الأشراف : ١٦٧٨٥) . وأخرجه صحيح مسلم في الحج . سنن ابن ماجه في المناسک ٨١ (٣٠٦٧) من غير هذا الوجه.

[2] ـ سنن ابن ماجه في المناسک ١١ (٢٩١٠) (تحفة الأشراف : ٣٠٧٦)

که ماشوم خوښیار وي نو دحج ارکان به پخپله ادا کوي او که هوښیار نه وي نو دهغه ولي به يي دهغه د طرف نه ادا کوي او احرام په ابتداء کي به دهغه نه ګنډلي جامي اوباسي او احرام به ورته واغوندي

امام نووي په شرح دمسلم کي دا مسامحه کړي ده چي دامام ابو حنيفه په نزد دماشوم حج درست نه دي دماشومانو حج خو صرف يو مشق دی بهر حال امام ابو حنيفه ته ددي قول نسبت صحيح نه دی

که ماشوم حج اوکړو نو ثواب به يي دده دولي وي په دي باندي هم دعلماؤ اتفاق دی که چري دبالغ کيدو نه پس صاحب دنصاب شي نو دی به دوباره حج کوي ليکن د داود ظاهري په نزد دماشوموالي حج هم کافي دی.

وړوکی ماشوم حج له بول جائز دي او ثواب به يي مور او پلار ته ملاېږي ليکن کله چي دبلوغ نه پس په دي ماشوم حج فرض شي نو دوباره به حج کوي او دماشوموالي په وخت کي حج به يي کافي نشي ګڼړلی کيدی. شرح مسلم للنووي باب صحة حج الصبي واجر من حج به.

****************

٩٢٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا قَزَعَةُ بْنُ سُوَيْدٍ الْبَاهِلِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، يَعْنِي حَدِيثَ مُحَمَّدِ بْنِ طَرِيفٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. [1]

**ترجمه** په دي سند سره هم دجابر رضي الله عنه نه دسابقه حديث هم معني روايت مروي دي. امام تره ي واني دا روايت د محمد بن منکدر نه هم منقول دي او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يي ٠.ـ ل نقل کړي دي، داهل علمو په دي باندي اجماع ده چي يو ماشوم کله دبلوغ نه مخکي حج اوکړي (نو فريضه ورنه نه ساقطيږي) چي کله بالغ شي دده په ذمه به حج باقي وي او دکم عمرئ حج به داسلام عائد کړي فريضي دپاره کافي نه وي، همدا رنګي معامله دغلام هم ده که غلام حج کړي وي او بيا ازاد شي نو د ازادئ په حالت کي به هم په ده باندي حج فرض وي خو چي دلاري طاقت يي وي او دغلامئ په حالت کي کړي حج به يي کافي نه وي. دسفيان ثوري، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي

****************

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في المناسک ١١ (٢٩١٠) (تحفة الأشراف : ٣٠٤٦)

٩٢٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيل، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوسُفَ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: " حَجَّ بِي أَبِي مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ، وَأَنَا ابْنُ سَبْعِ سِنِينَ ".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ أَجْمَعَ أَهْلُ الْعِلْمِ أَنَّ الصَّبِيَّ إِذَا حَجَّ قَبْلَ أَنْ يُدْرِكَ فَعَلَيْهِ الْحَجُّ، إِذَا أَدْرَكَ لَا تُجْزِئُ عَنْهُ تِلْكَ الْحَجَّةُ عَنْ حَجَّةِ الْإِسْلَامِ. وَكَذَلِكَ الْمَمْلُوكُ إِذَا حَجَّ فِي رِقِّهِ ثُمَّ أُعْتِقَ فَعَلَيْهِ الْحَجُّ إِذَا وَجَدَ إِلَى ذَلِكَ سَبِيلًا، وَلَا يُجْزِئُ عَنْهُ مَا حَجَّ فِي حَالِ رِقِّهِ. وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (١)

**ترجمه** دسائب بن یزید رضي الله عنه بیان دي فرمائي چي زما پلار زه حجة الوداع ته دخان سره بوتلم او درسول الله صلي الله علیه وسلم سره یي راباندي حج اوکړو او دغه وخت کي زما عمر اوه کاله وو.

امام ترمذي وائي دا حدیث حسن صحیح دي.

**لغات**: حجة جمع یي حجج راځي په معني دکال سره او حجا په معني دقصد کولو سره . په شریعت کي داماکن مقدسه زیارت کولو ته وئیلي شي

**تشریح** : سائب بن یزید رضي الله عنه وائي چي ماباندی زما پلار حج اوکړی د رسول الله صلي الله علیه وسلم سره په حج وداع کي اوزه داوو کالو ماشوم وم

وړوکی ماشوم حج له بول جائز دي او ثواب به یي مور او پلار ته ملاېږي لیکن کله چي دبلوغ نه پس په دي ماشوم حج فرض شي نو دوباره به حج کوي او دماشوموالي په وخت کي حج به یي کافي نشي ګڼړلی کیدی.

دعلماؤ په دي اتفاق دي چي په ماشوم حج فرض نه دي او په دي خبره هم اتفاق دي که ماشوم حج اوکړي نو صحیح به وي که ماشوم خوښیار وي نو مناسك به پخپله اداء کوي او که خوښیار نه وي نو ولي به یي دده دطرفه اداء کوي او دبالغ کیدو نه پس به دوباره مستقل حج کوي.

**دسائب بن یزید رضي الله عنه حالات**

نوم سائب دپلار نوم یزید بن سعید بن ثمامه کندي دي، امام زهري وائي چي کندي په یمن کي داذ قبیلي یو شاخ دی مګر په بنوکنانه کي شمیرلی شي سائب دعمر کندي خوریی دی ، دهجرت په شلم کال پیدا شوی دی ، دده نه عموما زهري او محمد بن یوسف نقل دروایت کوي ګڼړ شمیر روایات ورنه منقول دي او دهجرت په ۸۰ کال وفات شوی دی.

*****************

---

[1] ــ صحیح البخاري في جزاء الصيد ٢٥ (١٨٥٨) (تحفة الأشراف : ٣٨٠٣)

## ٨٤_ باب

### دماشوم دحج متعلق يوبل باب

٩٢٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل الْوَاسِطِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ نُمَيْرٍ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ سَوَّارٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " كُنَّا إِذَا حَجَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُنَّا نُلَبِّي عَنِ النِّسَاءِ وَنَرْمِي عَنِ الصِّبْيَانِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَقَدْ أَجْمَعَ أَهْلُ الْعِلْمِ عَلَى أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا يُلَبِّي عَنْهَا غَيْرُهَا بَلْ هِيَ تُلَبِّي عَنْ نَفْسِهَا، وَيُكْرَهُ لَهَا رَفْعُ الصَّوْتِ بِالتَّلْبِيَةِ. (1)

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه بيان دي كله چي مونږ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره حج كولو نو مونږ به دښخو دطرفه تلبيه وئيله او دماشومانو دطرفه به مو رمي كوله

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي او مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي داهل علمو په دي خبره اتفاق دي چي دښځي دطرفه به بل څوك تلبيه نه وائي بلكي پخپله به تلبيه وائي البته دښځي دپاره په تيز اواز تلبيه وئيل مكروه دي.

***************

## ٨٥_ باب مَا جَاءَ فِي الْحَجِّ عَنِ الشَّيْخِ الْكَبِيرِ. وَالْمَيِّتِ.

### سخت بوډا او مړي دطرفه دحج كولو بيان

٩٢٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ امْرَأَةً مِنْ خَثْعَمٍ، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبِي أَدْرَكَتْهُ فَرِيضَةُ اللَّهِ فِي الْحَجِّ، وَهُوَ شَيْخٌ كَبِيرٌ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يَسْتَوِيَ عَلَى ظَهْرِ الْبَعِيرِ. قَالَ: " حُجِّي عَنْهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَبُرَيْدَةَ، وَحُصَيْنِ بْنِ عَوْفٍ، وَأَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ، وَسَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَيْضًا، عَنْ سِنَانِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْجُهَنِيِّ، عَنْ عَمَّتِهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذِهِ

[1] _ سنن ابن ماجه في المناسك ٦٨ (٣٠٣٨) (تحفة الأشراف : ٢٦٦٣)

الرِّوَايَاتِ. فَقَالَ: أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ مَا رَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ، عَنِ الفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ ابْنُ عَبَّاسٍ سَمِعَهُ مِنَ الْفَضْلِ وَغَيْرِهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ رَوَى هَذَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَرْسَلَهُ وَلَمْ يَذْكُرِ الَّذِي سَمِعَهُ مِنْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ صَحَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَابِ غَيْرُ حَدِيثٍ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وَبِهِ يَقُولُ: الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: يَرَوْنَ أَنْ يُحَجَّ عَنِ الْمَيِّتِ. وقَالَ مَالِكٌ: إِذَا أَوْصَى أَنْ يُحَجَّ عَنْهُ حُجَّ عَنْهُ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُهُمْ أَنْ يُحَجَّ عَنِ الحَيِّ إِذَا كَانَ كَبِيرًا، أَوْ بِحَالٍ لَا يَقْدِرُ أَنْ يَحُجَّ، وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ. (1)

**ترجمه** دفضل بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي يوه ښځه په خدمت نبوي کي حاضر شوه او عرض يي اوکړو اي دالله رسوله زما په پلار باندي حج فرض شوي دي ليکن دومره بوډا دي چي داوښ په شا نشي کيناستلي ما دپاره څه کول پکار دي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ته دهغه دطرفه حج اوکړه.

امام ترمذي وائي دفضل بن عباس حديث حسن صحيح دي، او دابن عباس نه حسين بن عوف مزني مرفوع روايت نقل کړي دي، دابن عباس نه مروي دي چي سنان بن عبدالله جهني دخپلي ترور نه او دده ترور دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کړي دي او ابن عباس براه راست هم درسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کړي دي

امام ترمذي وائي ما ددي روايتونو په باره کي دمحمد بن اسماعيل بخاري نه تپوس اوکړو نو هغه اوونيل په دي باب کي صحيح روايت هغه دي کوم چي فضل بن عباس دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي، امام بخاري وائي ددي خبري احتمال هم شته چي ابن عباس دا حديث دخپل ورور فضل نه او دهغه نه علاوه دبل چانه اوريدلي وي او هغوئ درسول الله نه نقل کړي وي او بيا ابن عباس دا درسول الله نه مرسل نقل کړي وي، او دچا نه چي هغوئ دا اوريدلي دي دهغوئ نوم يي ذکر کړي نه وي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باب کي نور احاديث هم مروي دي، په دي باب کي دعلي، حسين بن عوف، ابو رزيم عقيلي ، سوده بنت زمعه او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي ، دصحابه کرامو او ددوئ نه پس دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري ، ابن مبارک، شافعي.

---

1 ـ صحيح البخاری في جزاء الصيد ۲۳ (۱۸۵۳) . صحيح مسلم في الحج ۷۱ (۱۳۳۵) . سنن النسائي في آداب القضاة ۹ (۵۳۹۱) . سنن ابن ماجه في المناسک ۱۰ (۲۹۰۹) (تحفة الأشراف : ۱۱۰۴۸)

احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي چي دمړي دطرفه حج كيدي شي، امام مالك وائي دمړي دطرفه به حج هغه وخت كولي شي كله چي هغه دحج كولو وصيت كړي وي او بعضي خلقو دژوندي انسان دطرفه حج كول هغه وخت كي جائز ګرخولي دي كله چي هغه ډير بوډا شوي وي او يا په داسي حالت كي وي چي په حج كولو قادر نه وي نو داسي كسانو دطرفه دحج كولو اجازت شته او دا دامام ابن مبارك او شافعي قول هم دي

**تشريح** : مسئله داده كه په چا حج فرض شي اوبخپله حج نشي كولى او عذر يي داسي وي چي دمرګه پوري ختميدى نشي نو په داسي وخت كي به دده دطرف نه بل سړى حج كولى شي خو په دي شرط چي معذور سړى به دده اخراجات ادا كوي او ده ته به دخپل طرفه حكم هم كوي

مطلب دادى چي دا كس په بوډاوالي كي مسلمان شوى وو او يا ورسره په بوډاوالي كي دومره مال راغلى وو چي حج وربانديفرض كيدى شي

علماء وائي دبل چادطرفه حج په هغه وخت كي كيدى شي چي كله دى اخراجات برداشت كولى شي او ددي خبري حكم يي هم كړى وي او يا يي دمرګ په وخت كي وصيت كړى وي

علماء وائي ددي حديث نه حج بدل ثابت شو اودد دحج نه بغير نور بدني عبادتونه دبل چا دطرفه جائز ندي.

***************

٨٦_ باب مِنْهُ

**په حج كي دنيابت متعلق يوبل باب**

٩٢٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَطَاءٍ. قَالَ: وحَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: إِنَّ أُمِّي مَاتَتْ وَلَمْ تَحُجَّ أَفَأَحُجُّ عَنْهَا؟ قَالَ: "نَعَمْ، حُجِّي عَنْهَا". قَالَ: وَهَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دبريده رضي الله عنه بيان دي چي يوه ښځه درسول الله په خدمت كي حاضره شوه او عرض يي اوكړو زما مور مړه شوي ده او حج يي نشو كولي ايا زه دهغي دطرفه حج كولي شم؟

رسول الله اوفرمائيل هو، ته دهغي دطرفه حج اوكړه

امام ترمذي وائي دا حديث صحيح دي

---

[1] _ صحيح مسلم في الصيام ٢٧ (١١٣٩) (بزيادة) (تحفة الأشراف: ١٩٨٠)

### دبريده رضي الله عنه حالات:

نوم بريده كنيه ابو عبدالله او دپلار نوم مصيب بن عبدالله
كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته ورسيدو نو بريده يي په خدمت كي حاضر شو نو رسول الله ورته داسلام دعوت وركړو نو دی فورا مسلمان شو او دده سره دبني اسلم اتيا كسان په اسلام كي داخل شول (طبقات ابن سعد)
په صلح حديبيه او بيعة الرضوان كي يي هم شركت كړی دی (اسد الغابه)
او په فتح مكه كي يي هم ملګرتيا كړي وه (مسند احمد).
تقريبا په شپاړسو عزواتو كي شريك پاتي شوی دی (بخاري كتاب المغازي)
كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داسامه په مشرئ كي اخر لښكر تيار كړو نو په دي كي هم شريك وو (طبقات ابن سعد)
غرض دا چي دده په رګ رګ كي دجهاد جذبي ټوپونه وهل او دژوند مزه به يي داسونو په زغلولو كي ليدله (طبقات ابن سعد).
ديزيد په زمانه كي دهجرت په ۶۳ كال وفات شو چي دمروياتو شمير يي ۱۶۴ دی يو متفق عليه دی او دوه په بخاري كي دي يولس په مسلم كي دي (تهذيب الكمال)

**************

## ۸۷_ باب مِنْهُ

### په حج كي د نيابت متعلق يوبل باب

۹۳۰_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ سَالِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَوْسٍ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ، أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ لَا يَسْتَطِيعُ الْحَجَّ وَلَا الْعُمْرَةَ وَلَا الظَّعْنَ، قَالَ: " حُجَّ عَنْ أَبِيكَ وَاعْتَمِرْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَإِنَّمَا ذُكِرَتِ الْعُمْرَةُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، أَنْ يَعْتَمِرَ الرَّجُلُ عَنْ غَيْرِهِ. وَأَبُو رَزِينٍ الْعُقَيْلِيُّ اسْمُهُ لَقِيطُ بْنُ عَامِرٍ. ([1])

**ترجمه**: دابورزين عقيلي لقيط بن عامر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او عرض مي اوكړو اي دالله رسوله زما پلار ډير

[1] ـ سنن ابي داود في الحج ۲۶ (۱۸۱۰)، سنن النسائي في الحج ۲ (۲۶۲۲)، و ۱۰ (۲۶۲۸)، سنن ابن ماجه في المناسك ۱۰ (۲۹۰۶) (تحفة الأشراف: ۱۱۱۷۳)، مسند احمد (۴ في ۱۰۱۲)

بوډا شوي دي او هغه دحج او عمري كولو او په سورلئ دسفر كولو طاقت نه لري (ماته دهغه باره كي څه حكم دي؟) ورته يي اوفرمائيل ته دخپل پلار دطرفه حج او عمره اوكړه.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دعمري ذكر صرف په همدي حديث كي راغلي دي چي يو سړي دبل چا دطرفه نيابتا عمره كولي شي

***************

## ٨٨_ باب مَا جَاءَ فِي الْعُمْرَةِ أَوَاجِبَةٌ هِيَ أَمْ لاَ

### ايا عمره واجب ده او كنه ده؟

٩٣١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنِ الحَجَّاجِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْعُمْرَةِ أَوَاجِبَةٌ هِيَ؟ قَالَ: "لَا، وَأَنْ تَعْتَمِرُوا هُوَ أَفْضَلُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: الْعُمْرَةُ لَيْسَتْ بِوَاجِبَةٍ، وَكَانَ يُقَالُ: هُمَا حَجَّانِ: الْحَجُّ الأَكْبَرُ يَوْمُ النَّحْرِ، وَالْحَجُّ الأَصْغَرُ الْعُمْرَةُ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْعُمْرَةُ سُنَّةٌ، لَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَخَّصَ فِي تَرْكِهَا، وَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ ثَابِتٌ بِأَنَّهَا تَطَوُّعٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِإِسْنَادٍ، وَهُوَ ضَعِيفٌ لَا تَقُومُ بِمِثْلِهِ الْحُجَّةُ، وَقَدْ بَلَغَنَا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ كَانَ يُوجِبُهَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: كُلُّهُ كَلَامُ الشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دعمري باره كي تپوس اوكړي شو چي دا واجب ده او كنه ده؟ وبي فرمائيل نه ليكن عمره كول ډير بهتر دي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او همدا دبعضي اهل علمو قول دي دوئ وائي چي عمره واجب نه ده او دا هم ونيلي كيږي چي حج دوه قسمه دي يو حج اكبر دي كوم چي په يوم النحر (لسم ذي الحجه) وي او دويم حج اصغر دي كوم ته چي عمره ونيلي شي، امام شافعي وائي دعمري وجوب په سنت ثابت دي مونږ ته داسي څوك نه دي معلوم چاچي ددي دپريخودلو اجازت وركړي وي او دعمري دنفلي كيدو په سلسله كي هيڅ يو شي ثابت نه دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه چي دعمري نفلي كيدل مروي دي هغه روايتونه ضعيف دي او دداسي روايتونو نه استدلال نشي كيدي او مونږ ته دا خبره نه ده رسيدلي چي ابن عباس رضي الله عنه به ددي په وجوب قول كولو او دا ټول كلام دامام شافعي دي.

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٠١١)

**تشريح** : قاضي ثناء الله د عمري د حکم باره کي مدلل او مفصل بحث کړی دی چي دا واجب ده او که سنت نو اول یي د قراني ایت تحقیق کړی دی کوم چي د عمري متعلق وارد دی اومذاهب اربعه تحقیق یي د احادیثو په رڼا کي کړی دی چي په لاندینو کرښو کي یي کتلی شی، الله تعالي فرمائیلي دي
وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ... (اوپوره کړئ حج او عمري لره دالله تعالي دپاره)
دا ایت ددي خبري دلیل دي چي حج اوعمره او ددي پوره کول او حج په عمري سره نه منسوخ کول داټول امور واجب دي
په حج خو اجماع شوي ده چي فرض عین محکم ناقابل نسخ حکم دي اوداسلام په ارکانو کي یورکن دي الله تعالي فرمائیلي دي:
"ولله علي الناس حج البیت من استطاع الیه سبیلا" (اودالله تعالي دپاره فرض دي په خلقو باندي حج کول ددي کور په هغه چا باندي چي طاقت لري درسیدلو)
اورسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي داسلام بنیاد په پنځه څیزونو اینودلي شوي دي اول ګواهي ورکول ددي خبري چي دالله تعالي نه علاوه بل څوك حقدار دبندګئ نشته او محمد صلي الله علیه وسلم دهغه ریښتوني پیغمبر دي دویم قائمول دمونځ دریم ادا کول دزکوة . څلورم حج کول دبیت الله، پنځم روژي نیول دمیاشتي درمضان. (بخاري مسلم)
اوددي مضمون مطابق نور هم ډیر احادیث وارد دي
مګر په عمره کي د علماؤ اختلاف دی
دامام احمد په نزد باندي واجب ده
اودامام شافعي نه دوه قولونه منقول دي صحیح تر دادي چي واجب ده
اودامام ابوحنیفه نه په یو قول کي وجوب مروي دي
او امام مالك وئیلي دي چي عمره سنت ده اودامام ابوحنیفه هم دامذهب مشهور دي
اودامام شافعي نه هم یو قول منقول دي چي سنت ده
څوك چي ددي خبري قائل دي چي عمره سنت ده هغوئ په ایت کریمه کي داسي تاویل کوي چي عمره په شروع کولو سره سرته رسول یي واجب دي اودحج هم دا شان دي
دامام احمد دمذهب تائید دعلقمه او ابراهیم نخعي دقراءت واتمو الحج والعمرة لله نه کیږي.
دعلي رضي الله عنه هم دا قرءت منقول دي
اوډیرو احادیثو نه معلومیږي چي عمره واجب ده دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه د عمر بن الخطاب په حوالي سره دتعلیم دجبریل په حدیث کي روایت کوي چي جبریل علیه السلام عرض اوکړو اي دالله رسوله ماته خبر راکړه چي اسلام څه شي دي رسول کریم صلي الله علیه

وسلم اوفرمائيل ددي خبري گواهي وركول چي علاوه دالله تعالي نه بل معبود نشته اومحمد (صلي الله عليه وسلم) دالله رينبتوني رسول دي ، مونځ قائمول او زكوة وركول او حج او عمره كول او دجنابت نه غسل كول او اودس پوره كول اودرمضان روژي نيول ، دعمري ذكر اگر چي په صحاحو كي نشته ليكن ثقاتو نقل كړي دي اودارقطني ورته صحيح وئيلي دي
همدارنگي دعمري ذكر ابوبكر جوسعي پخپل كتاب المخرج علي الصحيحين كي كړي دي ځكه مقبول دي
دعائشه رضي الله عنهانه مروي دي فرمائي چي ما عرض اوكړو اي دالله رسوله ايا په ښځو جهاد فرض دي رسول كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په هغوئ داسي جهاد فرض دي چي قتال پكي نشته اوهغه حج او عمره دي.
ددي حديث روايت ابن ماجه كړي دي ددينه علاوه نور ډير ضعيف احاديث شته چي مونږ يي نه ذكر كوو ، اوداثارو دصحابه كرامو نه هم معلوميږي چي عمره واجب ده من جمله دهغوئ نه روايت دضبي بن معبد دي فرمائي چي عمر رضي الله عنه ته مي عرض اوكړو چي ما د حج او عمري دواړو دفرضي ارادي په صفت سره احرام تړلي دي ، امير المومنين اوفرمائيل تاته درسول الله په طريقه باندي دتلو توفيق دركړي شوي دي.
دابن عمر رضي الله عنهما قول دي يو وس اوطاقت والا داسي څوك نشته چي حج او عمره ورباندي واجب نه وي ددي اثر روايت ابن خزيمه اودار قطني او حاكم كړي دي او سند ددي صحيح دي او بخاري هم تعليقا ذكر كړي دي او په دي باب كي دابن عباس رضي الله عنهما اثر هم دي كوم چي امام شافعي او بخاري هم تعليقا ذكر كړي دي
اوڅوك چي ددي خبري قائل دي چي عمره سنت ده ددوئ استدلال ددي احاديثو نه دي
دجابر رضي الله عنه نه روايت دي چي يو اعرابي درسول الله په خدمت كي حاضر شو او عرض يي اوكړو چي اي دالله رسوله دا راته اووايه چي عمره واجب ده اوكه نه ده رسول كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل واجب نه ده كه چري اودي كړه نوستادپاره بهترده ددي حديث روايت ترمذي امام احمد او بيهقي كړي دي، ليكن ددي روايت په راويانو كي حجاج بن ارطات راوي مدلس او متروك دي ابن مهدي، او يحيىٰ بن سعيد القطان . او يحيىٰ بن معين، او احمد بن حنبل او ابن مبارك او نسائي دده احاديث ترك كړي دي مگر ذهبي دده په باره كي صدوق لفظ استعمال كړي او ترمذي دي حديث ته حسن صحيح وئيلي دي او بيهقي همداحديث په يو بل سند سره نقل كړي دي چي په هغي كي يحيي بن ايوب دي او دهغه متعلق امام احمد سيء الحفظ وئيلي دي او ابوحاتم په لايحتج به سره ذكركړى دي او ابن عدي په صدوق سره ياد كړى دي....

مونږ وايو دجابر رضي الله عنهما نه مرفوعا مروي دي چي حج اوعمره دواړه فرض دي ابن عدي دابن لهيعه په سند سره داحديث نقل كړي دي اوس ددي حديث دتيرشوي حديث سره تعارض راغي ليكن دوروستني په سند كي ابن لهيعه دي اوهغه ضعيف دي ، دابو امامه رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دفرض مونځ دپاره روان شي نوده ته دحج پشان ثواب ملاويږي او څوك چي دنفل مونځ دپاره روان شي نوده ته دعمري پشان ثواب ملاويږي، دي حديث لره طبراني ديحي بن حارث په سند سره نقل كړي دي ، او عبدالله بن قانع دابوهريره رضي الله عنه روايت بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي حج جهاد دي اوعمره نفل ده ، دا روايت امام شافعي دابوصالح نه مرسلا نقل كړي دي اوهمدي مضمون مطابق حديث طلحه بن عبدالله اوبيهقي دابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړي دي اودارقطني دعبدالله بن قانع متعلق كان يخطئ ليكلي دي اوترقاني ضعيف گرځولي دي ليكن شيخ تقي الدين په كبارو حفاظو كي شمار كړي دي او ابوصالح حنفي دكوم نوم چي ماهان دي ابن حزم ئي تضعيف كړي دي ليكن ابن همام وئيلي دي چي ده لره ضعيف كول صحيح ندي ابن معين دده توثيق كړي دي اويوجماعت داهل علمو دده احاديث قبول كړي دي اودطلحه دحديث په سند كي عمروبن قيس راوي مجروح دي حافظ ابن حجر وئيلي دي چي سند ئي ضعيف دي پاتي شو دابن عباس رضي الله عنهما حديث نودده په سند كي ډير مجهول راويان دي ، اودعمري په عدم وجوب كي ډير اثار متعارض دي ، ابن همام وئيلي دي كله چي تعارض راغي نوبيا خو وجوب په شك سره نه ثابتيږي ، اوصاحب هدايه وئيلي دي چي دتعارض په موجودگئ كي فرضيت نشي ثابتيدي اوصاحب هدايه داقول انتهائي موزون دي ځكه چي دفرضيت مبني به په دليل قطعي وي نوپدي وجه دتعارض په صورت كي احتياطا په وجوب قول كول بهتر دي ترڅوچي تكرار دنسخ لازم نشي.

## حج په عمري فسخ كول

دجمهورو اهل علمو مذهب دادي چي حج په عمري سره فسخ كول جائز ندي ددوئ دپاره دليل همدا ايت كريمه واتموا الحج الخ دي

امام احمد فرمائي چي حج لره په عمري سره فسخ كول جائز دي.

دده دپاره دليل دادي چي په حجة الوداع كي دصحابه كرامو احرام دحج دپاره وو، رسول كريم صلي الله عليه وسلم تولوته حكم وكړو چي حج فسخ كړئ اودعمري نيت وكړئ اودحج احرام دعمري دپاره اوگرځوئ مگرچاچي قرباني ته قلاده اچولي وي هغه دي فسخ نه كوي، اودلسو نه زيات احاديث صحيح په دي باندي شاهد دي دا د شك زائل كيدو دپاره كافي دي.

من جمله ددي احاديثو نه حديث دابو موسي اشعري رضي الله عنه دي فرماني چي زه رسول الله صلي الله عليه وسلم په يمن كي زما قوم ته اوليږلم كله چي زه دهغوئ نه واپس راغلم نو اومي ليدل چي رسول كريم صلي الله عليه وسلم په بطحاء مقام كي دي اويي فرمائيل تادڅه شي نيت كړي دي ما عرض اوكړو رسول كريم صلي الله عليه وسلم چي دڅه شي نيت كړي دي دهغي نيت ما هم كړي دي نو بيايي اوفرمائيل ستاسره قرباني شته؟ ما عرض اوكړو نشته نودرسول كريم صلي الله عليه وسلم په حكم سره مي دبيت الله اودصفا مرواه طواف اوكړو. دطواف په كولو سره حلال شوم او بيا مي دتلبيه په ورځ دحج احرام اوتړلو. بياچي كله دعمر فاروق دور راغي نو هغه اوفرمائيل چي مونږ به دالله تعالي په كتاب عمل كوو الله تعالي داتمام حكم كړي دي لكه چي فرمائيلي يي دي واتموا الحج والعمرة. اودرسول كريم صلي الله عليه وسلم په سنتو عمل كوئ چنانچه هغه دقرباني كولو پوري احرام نه وو پرانستلي

***************

## ٨٩_ باب مِنْهُ

### دحج دوجوب متعلق يوبل باب

٩٣٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ سُرَاقَةَ بْنِ جُعْشُمٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ: أَنْ لَا بَأْسَ بِالْعُمْرَةِ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ. وَهَكَذَا قَالَ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ: أَنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوا لَا يَعْتَمِرُونَ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ، فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ رَخَّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ، فَقَالَ: " دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ". يَعْنِي: لَا بَأْسَ بِالْعُمْرَةِ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ، وَأَشْهُرُ الْحَجِّ شَوَّالٌ وَذُو الْقَعْدَةِ وَعَشْرٌ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ، لَا يَنْبَغِي لِلرَّجُلِ أَنْ يُهِلَّ بِالْحَجِّ إِلَّا فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ وَأَشْهُرُ الْحُرُمِ رَجَبٌ وَذُو الْقَعْدَةِ وَذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ. هَكَذَا قَالَ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. (1)

---

[1] _ (تحفة الأشراف : ٦٣٣٠١) وأخرجه صحيح مسلم في الحج ٣١ (١٢٤١) . سنن ابي داود في المناسك ٢٣ (١٧٩٠) . سنن النسائي في الحج ٧٧ (٢٨١٤) . مسند احمد (١ في ٢٣٦، ٢٥٣، ٢٥٩، ٣٤١) . سنن الدارمي في المناسك ١٨ (١٨٩٨) . من غير هذا

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي عمره په حج كي دقيامت پوري داخل شوي ده
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دسراقه بن جعشم دجابر بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. ددي حديث معني داده چي دحج په مياشتو كي په عمري كولو كي څه ممانعت نشته او همدا تشريح امام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم كړي ده چي دجاهليت په وخت كي به خلقو دحج په مياشتو كي عمره نه كوله مګر چي كله اسلام راغي نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم اجازت وركړو او ويي فرمائيل عمره په حج كي دقيامت پوري داخل شوي ده يعني دحج په مياشتو كي په عمري كولو كي څه بدوالي نشته او دحج مياشتي شوال، ذي قعده، او ذي الحجي لس ورځي دي دهيڅا دپاره دا مناسب نه دي چي دحج دمياشتو نه علاوه په كومي بلي مياشتي كي دحج احرام اوتړي، او دحرمت والا مياشتي دادي، رجب، ذي قعده، ذي الحجه، او محرم صحابه كرامو او ددينه پس اكثرو اهل علمو په دي باندي قول كړي دي

***************

## ٩٠_ باب مَا ذُكِرَ فِي فَضْلِ الْعُمْرَةِ

### دعمري دفضيلت بيان

٩٣٣_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْعُمْرَةُ إِلَى الْعُمْرَةِ تُكَفِّرُ مَا بَيْنَهُمَا. وَالْحَجُّ الْمَبْرُورُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلَّا الْجَنَّةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديوي عمري نه بلي عمري پوري چي څومره وخت وي او ددي په مينځ كي چي ګناهونه شوي دي دا ګناهونه په عمري كولو معاف كيږي او دمقبول حج بدله صرف جنت دي.

---

الطريق. وأصله عند: صحيح البخاري في تقصير الصلاة ٣ (١٠٨٥) . والحج ٢٣ (١٥٣٥) . و٣٤ (١٥٦٣) . والشركة ١٥ (٢٥٠٥) . ومناقب الأنصار ٢٦ (٣٨٣٢)

[1] _ صحيح مسلم في الحج ٧٩ (١٣٤٩) . (تحفة الأشراف : ١٢٥٥٦) . مسند احمد (٢ في ٢٤٦. ٤٦١) وأخرجه صحيح البخاري في العمرة (١٧٧٣) . صحيح مسلم في الحج (المصدر المذكور) سنن النسائي في الحج ٣ (٢٦٢٣) . و٥ (٢٦٣٠) . سنن ابن ماجه في المناسك ٣ (٢٨٨٨) . موطا امام مالك في الحج ٢١ (٦٥) . مسند احمد (٢ في ٢٦٢) . سنن الدارمي في المناسك ٧ (١٨٠٢) .

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشریح** د عمري په فضائلو کي په کثرت سره احاديث وارد دي امام بخاري هم په دي سلسله کي دا بن عباس رضي الله عنهما نه روايت نقل کړی دی:

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: لَمَّا رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ حَجَّتِهِ قَالَ لِأُمِّ سِنَانٍ الْأَنْصَارِيَّةِ مَا مَنَعَكِ مِنَ الْحَجِّ قَالَتْ أَبُو فُلَانٍ تَعْنِي زَوْجَهَا كَانَ لَهُ نَاضِحَانِ حَجَّ عَلَى أَحَدِهِمَا وَالْآخَرُ يَسْقِي أَرْضًا لَنَا قَالَ فَإِنَّ عُمْرَةً فِي رَمَضَانَ تَقْضِي حَجَّةً أَوْ حَجَّةً مَعِي.

وفي رواية: قَالَتْ نَاضِحَانِ كَانَا لِأَبِي فُلَانٍ زَوْجِهَا حَجَّ هُوَ وَابْنُهُ عَلَى أَحَدِهِمَا وَكَانَ الْآخَرُ يَسْقِي عَلَيْهِ غُلَامُنَا قَالَ فَعُمْرَةٌ فِي رَمَضَانَ تَقْضِي حَجَّةً أَوْ حَجَّةً مَعِي. بخاري:۱۷۳۰.

دابن عباس ﷺ نه روايت دي چي هرکله رسول اللهﷺ دحج نه واپس شو نوام سنان انصاريه ته ئی اووئيل چي دحج نه څه شي منع کړي وي نوهغی دخپل خاوند نوم واغستو او وئی وئيل چي دده دابوراوړولودپاره دوه اوښان وو په يوباندي هغه پخپله حج ته لاړو اودويم چي وو زمونږ دپتو داوبو کولو دپاره پاتی وو نورسول کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي زماسره په رمضان کي عمره کول دحج برابردي اوپه بل روايت کي دي چي دهغه دوه اوښان وو په يوباندي دی اودده خوي حج له لاړل .

****************

## ۹۱_ باب مَا جَاءَ فِي الْعُمْرَةِ مِنَ التَّنْعِيمِ

### دتنعيم نه دعمري کولو بيان

۹۳٤_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، وَابْنُ أَبِي عُمَرَ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَوْسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي بَكْرٍ أَنْ يُعْمِرَ عَائِشَةَ مِنَ التَّنْعِيمِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(۱)

**ترجمه** : دعبدالرحمن بن ابي بکر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم ماته دا حکم اوکړو چي عائشه تنعيم ته بوځه او عمره ورباندي اوکړه امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**دابو محمد عبدالرحمن بن ابوبکر صديق رضي الله عنه حالات**

---

(۱) صحيح البخاری في العمرة ٦ (۱۷۸۴) . والجهاد ۱۲۲ (۲۹۸۵) . صحيح مسلم في الحج ۱۷ (۱۲۱۲) . سنن ابن ماجه في المناسک ۴۸ (۲۹۹۹) . (تحفة الأشراف : ۹۶۸۷)

نوم عبدالرحمان كنيه ابو عبدالله دا دابوبكر صديق رضي الله عنه خوي دى دمور نوم يي ام رمان دى دعائشه رضي الله عنها حقيقي ورور دى دصلح حديبيه په موقعه مسلمان شوى دى او بيا ددينه پس يي په مدينه كي دابوبكر رضي الله عنه سره اوسيدل كري دي په تيراندازئ كي ماهروو دصلح حديبيه نه پس په تمامو جنگونو كي دمسلمانانو سره شريك شوى دى او په جنگ يمامه كي يي دبهادرئ كمال خودلى دى. دقلعه يمامه ديوال په يو ځاي كي سورى شو مسلمانانو په دي كي ننوتل غوښتل ليكن ددشمنانو يو سردار محكم بن طفيل هلته موجود وو نو عبدالرحمان په غشي اوويشلو او بياددينه پس مسلمانان هلته داخل شول دوفات قصه يي داسي ده چي په اخري عمر كي مكي ته تلى وو او دبنار نه تقريبا لس ميله لري په حبشي مقام كي په يو كور كي اوسيدو دهجرت په ٥٣ كال يو خل اوده وو او همداسي اوده پاتي شو باخيدو ته جوړ نشو كله چي عائشه رضي الله عنها حج ته لاړه نو دده دقبر سره اودريده او دا اشعار يي اووئيل

| | |
|---|---|
| وكنا عندما في جذيمة حقبة | من الدهر حتي قيل لن يتصدعا |
| فلما تفرقنا كاني ومالكا | اطول اجتماعا لم نبت ليلة معا |

دمروياتو تعداد يي اته دى چي دري په دي كي متفق عليه دي

****************

## ٩٢_ باب مَا جَاءَ فِي الْعُمْرَةِ مِنَ الْجِعْرَانَةِ

### دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دجعرانه مقام دعمري بيان

٩٣٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ مُزَاحِمِ بْنِ أَبِي مُزَاحِمٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ مُحَرِّشٍ الْكَعْبِيِّ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنَ الْجِعِرَّانَةِ لَيْلًا مُعْتَمِرًا، فَدَخَلَ مَكَّةَ لَيْلًا فَقَضَى عُمْرَتَهُ، ثُمَّ خَرَجَ مِنْ لَيْلَتِهِ فَأَصْبَحَ بِالْجِعِرَّانَةِ كَبَائِتٍ، فَلَمَّا زَالَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْغَدِ خَرَجَ مِنْ بَطْنِ سَرِفَ حَتَّى جَاءَ مَعَ الطَّرِيقِ، طَرِيقِ جَمْعٍ بِبَطْنِ سَرِفَ، فَمِنْ أَجْلِ ذَلِكَ خَفِيَتْ عُمْرَتُهُ عَلَى النَّاسِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَلَا نَعْرِفُ لِمُحَرِّشٍ الْكَعْبِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَيُقَالُ: جَاءَ مَعَ الطَّرِيقِ مَوْصُولٌ.[1]

---

[1] _ سنن ابي داود في الحج ٨١ (١٩٩٦)، سنن النسائي في الحج ١٠٤ (٢٨٦٦، ٢٨٦٤)، (تحفة الأشراف ١١٢٢٠)، مسند احمد (٣/٤٢٦)، سنن الدارمي في المناسك ٣١ (١٩٠٢)

**ترجمه** دمحرش کعبي بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دجعراني نه دشپې دعمري په نيت روان شو او په شپه کي مکي ته داخل شو او خپله عمره يي پوره کړه او په همدې شپه دمکي نه اووتلو او واپس يي په جعرانه کي صبا کړو ګويا کي هم دلته يي شپه تيره کړه کله چي په دويمه شپه نمر زائل شو نو رسول الله دسرف مقام نه روان شو تردي چي په هغه لاره لاړو کومه لاره چي سرف والالاري سره يوځاي شوي وي او په همدي وجه دډيرو خلقو نه درسول الله صلي الله عليه وسلم عمره مخفي پاتي شوه، امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي او موږ ته ددي حديث نه علاوه دمحرش کعبي کوم بل حديث معلوم نه دي چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه يي نقل کړي وي او وئيلي کيږي "جاء مع الطريق" واله حصه موصول ده

****************

## ٩٣_ بَابُ مَا جَاءَ فِي عُمْرَةِ رَجَبٍ

## په رجب کي دعمري کولو بيان

٩٣٦_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عُرْوَةَ، قَالَ: سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ فِي أَيِّ شَهْرٍ اعْتَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ: "فِي رَجَبٍ". فَقَالَتْ عَائِشَةُ: "مَا اعْتَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا وَهُوَ مَعَهُ تَعْنِي ابْنَ عُمَرَ، وَمَا اعْتَمَرَ فِي شَهْرِ رَجَبٍ قَطُّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، سَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ. [1]

**ترجمه** : دعروه بيان دي چي دابن عمر رضي الله عنهما نه تپوس اوکړي شو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په کومه مياشت کي عمره کړي وه نو هغوئ اووئيل په رجب کي دي وخت کي عائشه رضي الله عنه اووئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم چي هره يوه عمره کړي ده په هره يوه کي ورسره ابن عمر يوځاي وو او رسول الله درجب په مياشت کي هيڅ کله عمره نه ده کړي.

امام ترمذي وائي داحديث غريب دي ما د محمد بن اسماعيل بخاري نه اوريدلي دي چي د عروه نه د حبيب بن ابي ثابت سماع ثابت نه ده

****************

[1] ـ سنن ابن ماجه في المناسک ٣٧ (٢٩٩٨). (تحفة الأشراف: ٧٣٤٣). وراجع ما عند صحيح البخاري في العمرة ٣ (١٧٧٦)، صحيح مسلم في الحج ٣٥ (١٢٥٥، ١٢٩)

۹۳۷_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَمَرَ أَرْبَعًا إِحْدَاهُنَّ فِي رَجَبٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم څلور عمري کړي دي چې يوه په هغوئ کې په رجب کې وه

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي

****************

## ۹٤_ باب مَا جَاءَ فِي عُمْرَةِ ذِي الْقَعْدَةِ

## په ذي قعده کې دعمري کولو بيان

۹۳۸_ حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدُّورِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ هُوَ: السَّلُولِيُّ الْكُوفِيُّ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الْبَرَاءِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَمَرَ فِي ذِي الْقَعْدَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَفِي الْبَاب: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. ([2])

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په ذي القعده کې عمره کړي وه.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب کې دابن عباس رضي الله عنهما نه هم حديث مروي دي.

****************

## ۹۵_ باب مَا جَاءَ فِي عُمْرَةِ رَمَضَانَ

## په رمضان کې دعمري کولو فضيلت

۹۳۹_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ أُمِّ مَعْقِلٍ، عَنْ أُمِّ مَعْقِلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "عُمْرَةٌ

---

[1] _ تفرد به (بهذا السياق) المؤلف. وراجع ما عند: صحيح البخاري في العمرة ٣ (١٧٧٥). صحيح مسلم في الحج ١٣٥ (١٢٥٥، ٢٢٠). (تحفة الأشراف: ٧٣٨٣)

[2] _ صحيح البخاري في جزاء الصيد ١٧ (١٨٤٤). والصلح ٦ (٢٦٩٩). والمغازي ٤٣ (٤٢٥١) (تحفة الأشراف ١٨٠٣)

وأخرجه صحيح البخاري في العمرة ٣ (١٧٨١)

فِي رَمَضَانَ تَعْدِلُ حَجَّةً ". وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَوَهْبِ بْنِ خَنْبَشٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَيُقَالُ: هَرِمُ بْنُ خَنْبَشٍ. قَالَ بَيَانٌ، وَجَابِرٌ: عَنِ الشَّعْبِيِّ. عَنْ وَهْبِ بْنِ خَنْبَشٍ، وقَالَ دَاوُدُ الأَوْدِيُّ: عَنِ الشَّعْبِيِّ. عَنْ هَرِمِ بْنِ خَنْبَشٍ. وَوَهْبٌ أَصَحُّ. وَحَدِيثُ أُمِّ مَعْقِلٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: قَدْ ثَبَتَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّ عُمْرَةً فِي رَمَضَانَ تَعْدِلُ حَجَّةً". قَالَ إِسْحَاق: مَعْنَى هَذَا الحَدِيثِ مِثْلُ مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ قَرَأَ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ فَقَدْ قَرَأَ ثُلُثَ الْقُرْآنِ ".(1)

**ترجمه** دام معقل رضي الله عنها بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي: په رمضان كي عمره كول دحج سره برابر دي

امام ترمذي وائي دام معقل حديث په دي سند حسن غريب دي او دوهب په خاي عمرو بن خنبش هم ونيلي كيږي بيان او جابر داسي وائي "عن الشعبي عن وهب بن خنبش" داود اودي وائي "عن الشعبي عن هرم بن خنبش" ليكن صحيح وهب بن خنبش دي، په دي باب كي ابن عباس. جابر، ابوهريره، انس، او وهب بن خنبش رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي امام احمد او اسحاق بن راهويه وائي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ثابت دي چي درمضان عمره په ثواب كي دحج سره برابر ده، اسحاق بن راهويه مزيد وائي چي ددي حديث مفهوم هم دهغه حديث دمفهوم پشان دي كوم چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي څوك "قل هو الله احد اووائي نو هغه دريمه حصه دقران اولوستله

***************

## ٩٦ـ باب مَا جَاءَ فِي الَّذِي يُهِلُّ بِالْحَجِّ فَيُكْسَرُ أَوْ يَعْرُجُ

**څوك چي تلبيه وائي او كوم اندام يي مات شي او يا كوډ شي نو څه به كوي**

٩٤٠ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ الصَّوَّافُ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي الحَجَّاجُ بْنُ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كُسِرَ أَوْ عَرِجَ فَقَدْ حَلَّ وَعَلَيْهِ حَجَّةٌ أُخْرَى". فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، فَقَالَا: صَدَقَ. حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ، عَنِ الحَجَّاجِ مِثْلَهُ. قَالَ: وَسَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، هَكَذَا

1 ـ سنن ابن ماجه في المناسک ٤٥ (٢٩٩٣) (تحفة الأشراف: ١٨٣٦٠)

رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ الحَجَّاجِ الصَّوَّافِ نَحْوَ هَذَا الحَدِيثِ. وَرَوَى مَعْمَرٌ. وَمُعَاوِيَةُ بْنُ سَلَّامٍ هَذَا الحَدِيثَ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ عِكْرِمَةَ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَافِعٍ. عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ عَمْرٍو. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الحَدِيثَ. وَحَجَّاجٌ الصَّوَّافُ لَمْ يَذْكُرْ فِي حَدِيثِهِ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَافِعٍ. وَحَجَّاجٌ ثِقَةٌ حَافِظٌ عِنْدَ أَهْلِ الحَدِيثِ. وسَمِعت مُحَمَّدًا يَقُولُ: رِوَايَةُ مَعْمَرٍ وَمُعَاوِيَةَ بْنِ سَلَّامٍ أَصَحُّ. حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ. أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ. عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ عِكْرِمَةَ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَافِعٍ. عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ عَمْرٍو. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. ([1])

**ترجمه** دحجاج بن عمرو رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي وو دچاچي كوم اندام مات شي يا په خپه ګوډ شي نو دده دپاره احرام پرانيستل جائز دي او په ده باندي به دويم حج لازم وي ما ددي ذكر ابوهريره او ابن عباس رضي الله عنهم سره اوكړو نو هغوئ اووئيل چي حجاج ربنتيا وئيلي دي. داسحاق بن منصور سند هم دحجاج رضي الله عنه نه ددي په مثل دي البته په دي كي "عن الحجاج بن عمرو قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم" په ځاي باندي سمعت رسول الله صلي الله عليه وسلم الفاظ دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي دارنګي نورو ډيرو خلقو هم دا حديث دحجاج بن الصواف نه نقل كړي دي ، معمرو او معاويه بن سلام هم دا حديث په سند د يحى بن ابي كثير عن عكرمه عن عبدالله بن رافع عن الحجاج بن عمرو عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او حجاج پخپل روايت كي دعبدالله بن رافع ذكر نه دي كړي او حجاج الصواف دمحدثينو په نزد ثقه دي او حافظ دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي دمعمرو او معاويه بن سلام روايت دټولو نه زيات صحيح دي، او عبدالرزاق په سند د معمرو عن يحى بن ابي كثير عن عكرمه عن عبدالله بن نافع عن الحجاج بن عمرو عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي.

***************

## ٩٧ـ باب مَا جَاءَ فِي الِاشْتِرَاطِ فِي الْحَجِّ

**په حج كي دشرط لګولو بيان**

[1] ـ سنن ابي داود في الحج ٤٢ (١٨٦٢) . سنن النسائي في الحج ١٠٢ (٢٨٦٣) . سنن ابن ماجه في المناسك ٨٥ (٣٠٤٤)
(تحفة الأشراف : ٣٢٩٣) . مسند احمد (٣ في ٤٥٠)

٩٤١_ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَوَّامٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ خَبَّابٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ ضُبَاعَةَ بِنْتَ الزُّبَيْرِ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ أَفَأَشْتَرِطُ ؟ قَالَ: "نَعَمْ". قَالَتْ: كَيْفَ أَقُولُ ؟ قَالَ: "قُولِي: لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ، مَحِلِّي مِنَ الْأَرْضِ حَيْثُ تَحْبِسُنِي". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَرَوْنَ الِاشْتِرَاطَ فِي الْحَجِّ، وَيَقُولُونَ: إِنِ اشْتَرَطَ فَعَرَضَ لَهُ مَرَضٌ أَوْ عُذْرٌ، فَلَهُ أَنْ يَحِلَّ وَيَخْرُجَ مِنْ إِحْرَامِهِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. وَلَمْ يَرَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الِاشْتِرَاطَ فِي الْحَجِّ. وَقَالُوا: إِنِ اشْتَرَطَ فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَخْرُجَ مِنْ إِحْرَامِهِ، وَيَرَوْنَهُ كَمَنْ لَمْ يَشْتَرِطْ. [1]

**ترجمه** . دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي ضباعه بنت زبير نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته راغله او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله ما دحج اراده كړي وه نو ايا زه شرط لګولي شم ‹ددي خبري شرط كه چري عذر پيښ شي نو احرام به پرانيزم› نو رسول الله اوفرمائيل هو. ضباعه اوونيل څنګه به وايم رسول الله اوفرمائيل لبيك اللهم لبيك لبيك محلي من الارض حيث تحبسني . يعني اي الله حاضريم حاضريم او زما داحرام پرانيستلو ځاي هغه دي چرته چي ته ما حصاره كړي.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دجابر، اسماء بنت ابي بكر او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او په همدي دبعضي اهل علمو عمل دي او هغوئ په حج كي دشرط لګولو دجواز قائل دي دوئ وائي كه چا شرط مقرر كړو او بيا ورته څه عذر پيښ شو نو دده دپاره حلاليدل جائز دي او داحرام نه وتلي شي. همدا د امام شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي، بعضي اهل علم په حج كي دشرط لګولو قائل نه دي دوئ وائي كه چا شرط مقرر هم كړو خو داحرام نه دوتلو حق نه لري او دوئ دا كس دهغه چا پشان ګڼري چاچي شرط نه وي مقرر كړي

**تشريح** : پدي كي د اهل علمو اختلاف دى چي اشتراط في الحج معتبر دي او كنه؟
داشتراط في الحج مطلب دادى چي د احرام تړلو وخت كي شرط ولګولى شي چي په هر مقام كي ركاوټ راشي په هم هغه مقام كي به حلاليږم په دي كي د اهل علمو دوه مذاهب دي

---

[1] _ سنن ابي داود في الحج ٢٢ (١٧٧٦) . سنن النسائي في الحج ٦٠ (٢٧٦٤) . سنن الدارمي في المناسك ١٥ (١٨٥٢) . (تحفة الأشراف : ٦٢٣٢) وأخرجه: سنن النسائي في الحج ٥٩ (٢٧٦٦) . و٦٠ (٢٧٦٨) . سنن ابن ماجه في المناسك ٢٤ (٢٩٣٨) . مسند احمد (١/ ٣٥٢)

د امام ابو حنيفه په نزد اشتراط في الحج معتبر نه دی.
د ائمه ثلاثه په نزد اشتراط في الحج معتبر دی دجانبينو دلائل په مطولاتو دفقه کي مذکور دي هلته يي کتلی شئ.

***************

## ۹۸_ باب مِنْهُ

### په حج کي دشرط لګولو متعلق يو باب

۹٤۲_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنِي مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ كَانَ يُنْكِرُ الِاشْتِرَاطَ فِي الْحَجِّ، وَيَقُولُ: "أَلَيْسَ حَسْبُكُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي هغه به په حج کي دشرط لګولو نه انکار کولو او وئيل به يي ايا ستاسو دپاره دنبي کريم صلي الله عليه وسلم طريقه کافي نه ده؟

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ۹۹_ باب مَا جَاءَ فِي الْمَرْأَةِ تَحِيضُ بَعْدَ الإِفَاضَةِ

### دطواف افاضه نه پس دښځي دحيض راتلو بيان دي

۹٤۳_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: ذَكَرْتُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ حَاضَتْ فِي أَيَّامِ مِنًى، فَقَالَ: "أَحَابِسَتُنَا هِيَ؟" قَالُوا: إِنَّهَا قَدْ أَفَاضَتْ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَلَا إِذًا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ

---

[1] _ صحيح البخاری في المحصر ٢ (١٨١٠). سنن النسائي في الحج ٦١ (٢٧٧٠) (تحفة الأشراف: ٦٩٣٤). مسند احمد (٢ في ٣٣)

عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلمِ أَنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا طَافَتْ طَوَافَ الزِّيَارَةِ ثُمَّ حَاضَتْ فَإِنَّهَا تَنْفِرُ وَلَيْسَ عَلَيْهَا شَيْءٌ، وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. (١)

**ترجمه** دام المؤمين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ذكر كرل چي صفيه بنت حيئ دمني په ورځو كي حائضه شوي ده رسول الله تپوس اوكړو ايا دا مونږ لره دمكي نه دوتلو نه حصارونكي ده؟ خلقو عرض اوكړو طواف يي كړي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بيا خو هيڅ حرج نشته.

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عمر، ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي اوداهل علمو په همدي باندي عمل دي چي كومي ښځي طواف زيارت كړي وي او بيا يي بيماري راشي نو تلي شي او په طواف وداع پريخودلو سره په دي باندي هيڅ قسم جرمانه نه لازميږي، دا دامام ثوري، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي.

**تشريح** : د احنافو مذهب دادی كه چري يوه ښځه د وقوف عرفات او طواف زيارت نه پس حائضه شی.نو دادی د مكي نه روانه شی،اود طواف صدر په پريخودو په دې باندې څه واجب نه دی.ځكه چی رسول الله صلي الله عليه وسلم ښځو ته د طواف صدر پريخودو اجازت وركړې وو. هدايه)

********************

٩٤٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "مَنْ حَجَّ الْبَيْتَ فَلْيَكُنْ آخِرُ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ إِلَّا الْحُيَّضَ، وَرَخَّصَ لَهُنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. (٢)

---

[1] ـ مسلم في الحج ٦٧ (١٢١١ في ٣٨٢) (تحفة الأشراف: ١٧٥١٢) و البخاري في الحيض ٢٧ (٣٢٨)، والحج ١٢٩ (١٧٣٣)، و١٣٥ (١٧٥٧)، و١٥١ (١٧٧١)، و مسلم في الحج (المصدر المذكور رقم: ٣٨٢)، ابي داود في الحج ٨٥ (٢٠٠٣)، و النسائي في الحيض ٢٣ (٣٩١)، و ابن ماجه في المناسك ٨٣ (٣٠٧٢)، موطا امام مالك في الحج ٧٥ (٢٦٦)، مسند احمد (٦ في ٣٨، ٣٩، ٨٢، ٩٩، ١٢٢، ١٦٤، ١٧٥، ١٩٣، ٢٠٢، ٢٠٧، ٢١٣، ٢٢٤، ٢٣١، ٢٥٣)، سنن الدارمي في المناسك ٧٣ (١٩٥٨)

[2] ـ أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٨٠٨١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائيل يې چاچي دبيت الله حج اوكړو نو دده دپاره اخري كار دبيت الله طواف ‹وداع› كيدل پكار دي مګر دبيمارو ښځو نه علاوه خکه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته اجازت وركړې دې
امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي او د اهل علمو په همدي باندي عمل دي
***************

## ١٠٠ـ باب مَا جَاءَ مَا تَقْضِي الْحَائِضُ مِنَ الْمَنَاسِكِ

### حائضې ښځې دحج كوم كوم مناسك اداء كولي شي

٩٤٥ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ جَابِرٍ وَهُوَ: ابْنُ يَزِيدَ الْجُعْفِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " حِضْتُ فَأَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقْضِيَ الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا إِلَّا الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: الْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ الْحَائِضَ تَقْضِي الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا مَا خَلَا الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عَائِشَةَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ أَيْضًا. ([1])

**ترجمه** : د ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي زما حيض راغلو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم راته حكم وكړو چي نور ټول مناسك ادا كړم مګر د كعبي طواف به نشم كولى.

امام ترمذي وايي چي د اهل علمو په همدي حديث عمل دى دوئ وايي چي حائضه د طواف نه علاوه نور تمام مناسك دحج اداكولى شي او ددي سند نه علاوه دا حديث د عائشي نه په نورو سندونو هم مروي دى

**تشريح** : كه چري يوه ښځه د احرام په وخت كي حائضه شى،نو دادى داحرام دپاره غسل اوكړى،اود حج ټول افعال دې اوكړى،سوا د طواف نه چى كله پاكه شى .نوبيا دې طواف اوكړى، ددې دليل د عائشې رضى الله عنها حديث دي ځكه چى دا په مقام سرف كي حائضه شوه چى رسول الله صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو .نودا ناسته وه،ژړل ئې،نبى ﷺ ترې په خپله تپوس اوكړلو،ولې ژاړې ،حيض راغلې څه؟ عائشې رضى الله عنها

[1] ـ البخاري في الحيض ٧ (٣٠٥) . والحج ٣٣ (١٥٠٦) . و٨١ (١٦٥٠) . والعمرة ٩ (١٧٨٨) . والأضاحي ٣ (٥٥٤٨) . و١٠ (٥٥٥٩) . ومسلم في الحج ١٧ (١٢١١) . و ابي داود في المناسك ٢٣ (١٧٨٣) . و النسائي في الطهارة ١٨٣ (٢٩١) . والحيض ١ (٣٤٩) . والجهاد ٥ (٢٧٤٢) . و ابن ماجه في المناسك ٣٦ (٢٩٦٣) . سنن الدارمي في المناسك ٦٢ (١٩٣٥)

ورته عرض اوکړلو،هم دا خبره ده، نو نبیﷺ ورته اوفرمائیل.دا خوداسې څيز دې چې د آدم په ټولو لونړو باندې دا بیماری راغلې ،نو حاجیان چې کوم افعال کوی.هغه کوه،خود بیت الله طواف مکوه. ترڅو چې پاکه شوې نه يې.

دویم دلیل دادی چې دحائضې دپاره مسجد ته داخلیدل منع دی.اوطواف په مسجد حرام کې کیږی، نوځکه به طواف نه کوی.اووقوف عرفات چونکه په عام میدان کښې وی،نود ښځې دپاره په دې مقام کې وقوف څه قباحت نه لری.دغه شان چې د حج کوم نورافعال دی،دهغې او د حیض په مينځ کې څه منافات نشته. نوحائضه به هغه ټول افعال کوی.

که چرې څوك اعتراض اوکړی چې حائضې ته غسل څه فائده نه ورکوی،نوبیا دې ته دغسل حکم ولې کولې شی،

ددې جواب دادی چې د احرام په وخت کې غسل د احرام یا دمانځه دپاره نه وی.بلکې د نظافت حاصلولو دپاره وی،اویقینی خبره ده چې په دې غسل سره نظافت حاصلیږی، اوکه چرې یوه ښځه د وقوف عرفات او طواف زیارت نه پس حائضه شی،نو دادی د مکې نه روانه شی،اود طواف صدر په پریخودو په دې باندې څه واجب نه دی،ځکه چې رسول الله صلي الله علیه وسلم ښځو ته د طواف صدر پریخودو اجازت ورکړې وو.

****************

حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ. حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ شُجَاعٍ الْجَزَرِيُّ، عَنْ خُصَيْفٍ. عَنْ عِكْرِمَةَ. وَمُجَاهِدٍ، وَعَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. رَفَعَ الْحَدِيثَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَنَّ النُّفَسَاءَ وَالْحَائِضَ تَغْتَسِلُ وَتُحْرِمُ وَتَقْضِي الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا غَيْرَ أَنْ لَا تَطُوفَ بِالْبَيْتِ حَتَّى تَطْهُرَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. [1]

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه یو مرفوع روایت مروي دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي نفاس او حیض والا ښځي به غسل کوي او احرام به تړي او تمام مناسك به اداء کوي مګر دکعبې طواف به نه کوي چي څو پوري پاکي شوي نه وي.

امام ترمذي وائي دا حدیث په دي سند حسن غریب دي.

*****************

## ١٠١ــ بَاب مَا جَاءَ مَنْ حَجَّ أَوِ اعْتَمَرَ فَلْيَكُنْ آخِرُ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ

**دحج اوعمري کونکي اخري کار دبیت الله طواف کیدل پکار دي**

---

[1] ــ سنن ابي داود في المناسك ١٠(١٧٤٤). (تحفة الأشراف: ٥٨٩٣و٦٠٩٤ و٦٣٩٢)

٩٤٦_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُحَارِبِيُّ، عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ عَنْ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ الْمُغِيرَةِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْبَيْلَمَانِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَوْسٍ، عَنِ الحَارِثِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: " مَنْ حَجَّ هَذَا الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلْيَكُنْ آخِرُ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ ". فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: خَرَرْتَ مِنْ يَدَيْكَ، سَمِعْتَ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ تُخْبِرْنَا بِهِ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الحَارِثِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَوْسٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ مِثْلَ هَذَا وَقَدْ خُولِفَ الحَجَّاجُ فِي بَعْضِ هَذَا الإِسْنَادِ. (١)

**ترجمه** . دحارث بن عبدالله بن اوس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چاچي ددي كور (بيت الله) حج يا عمره اوكړه نو پكار داده چي دده اخري كار دبيت الله طواف وي عمر رضي الله عنه ورته اوونيل ته دي نسكور په زمكه راپريوځي يعني هلاك دي شي تا درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا خبره اوريدلي ده او مونږ ته دي نه ده بيان كړي

امام ترمذي وائي دحارث بن عبدالله بن اوس حديث غريب دي، دا رنګي نورو راويانو هم دا روايت دحجاج بن ارطات نه ددي هم معني نقل كړي ده او ددي سند دبعضي حصي په سلسله كي دحجاج سره اختلاف شوي دي، او په دي باب كي د ابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي.

***************

## ١٠٢_ باب مَا جَاءَ أَنَّ الْقَارِنَ يَطُوفُ طَوَافًا وَاحِدًا

### دقارن حاجي دپاره ديو طواف كولو بيان

٩٤٧_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الحَجَّاجِ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، " أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَنَ الحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَطَافَ لَهُمَا طَوَافًا وَاحِدًا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَغَيْرِهِمْ، قَالُوا: القَارِنُ يَطُوفُ طَوَافًا وَاحِدًا، وَهُوَ

---

[1] ـ (تحفة الأشراف: ٣٢٧٨) وانظر مسند احمد (٣/في ٢١٢٢١٤)

قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: يَطُوفُ طَوَافَيْنِ وَيَسْعَى سَعْيَيْنِ، وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. (1)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم حج او عمره يو كړل او په يوځاي يي اوكړل او ددوئ دپاره يي يو طواف اوكړو.

امام ترمذي وائي دجابر رضي الله عنه حديث حسن دي او په دي باب كي ابن عمر او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دصحابه كرامو او ددوئ نه پس داهل علمو په همدي باندي عمل دي دوئ وائي چي حج قران والا به يو طواف كوي همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه قول دي او دبعضي صحابه كرامو او اهل علمو قول دي چي حج قران والا به د دوه طوافونه او دوه سعي كوي او دا د سفيان ثوري او اهل كوفه قول دي.

**تشريح** : د جمهور احنافو اهل علمو او محققينو رحهم الله په نزدقران افضل دې اود امام شافعي(رحمه الله) په نزدافراد افضل دي په دې باندې مبنی دې چی قارن بـه د حـج اوعمرې دپاره دوه طوافونـه او دوه سـعي كوی،اودامـام شـافعي(رحمـه الله) پـه نزدبـه د دواړو دپـاره يـو طواف اويوه سعي كوی،يعنی په طواف او سعی كي بـه تـداخل وی،نـود دواړو پـه جمـع كولـو كي د امام شافعي(رحمه الله) د مذهب مطابق افعـالو كـي نقص راځی،پـه نـسبت سـره دې تـه چـی دهريودپـاره جـدا جـدا طـواف اوسـعی اوشـی، د دې وجـې د امـام شـافعي(رحمـه الله) پـه نزدحج افراد افضل دي.(الهدايه )

****************

٩٤٨ـ حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ أَسْلَمَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ أَجْزَأَهُ طَوَافٌ وَاحِدٌ وَسَعْيٌ وَاحِدٌ عَنْهُمَا حَتَّى يَحِلَّ مِنْهُمَا جَمِيعًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، تَفَرَّدَ بِهِ: الدَّرَاوَرْدِيُّ عَلَى ذَلِكَ اللَّفْظِ، وَقَدْ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَلَمْ يَرْفَعُوهُ، وَهُوَ أَصَحُّ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دحج او عمري دواړو دپاره احرام اوتړلو نو دده دپاره يو طواف او يوه سعي كافي ده تردي پوري چي دي د دواړو احرام پرانيزي.

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٦٧٧)

2 ـ سنن ابن ماجه في المناسك ٣٩ (٢٩٧٥) . (تحفة الأشراف: ٨٠٢٩)

امام ترمذي واني دا حديث صحيح غريب دي او په دي الفاظو ددي روايت په نقل كولو كي عبدالعزيز دراوردي منفرد دي او دا په نورو سندونو باندي هم دعبيدالله بن عمر العمري نه مروي دي ليكن هغوئ مرفوع نه دي بيان كړي او همدا زيات صحيح دي

***************

## ١٠٣_ باب مَا جَاءَ أَنْ يَمْكُثَ الْمُهَاجِرُ بِمَكَّةَ بَعْدَ الصَّدَرِ ثَلاَثًا

**دمني نه دواپسئ نه پس دمهاجرينو دپاره په مكه كي د دريو ورځو دتيرولو اجازت**

٩٤٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حُمَيْدٍ، سَمِعَ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ، عَنِ الْعَلاَءِ بْنِ الْحَضْرَمِيِّ يَعْنِي مَرْفُوعًا. قَالَ: "يَمْكُثُ الْمُهَاجِرُ بَعْدَ قَضَاءِ نُسُكِهِ بِمَكَّةَ ثَلاَثًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ بِهَذَا الإِسْنَادِ مَرْفُوعًا.(1)

**ترجمه** دعلاء بن الحضرمي نه مرفوع روايت مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مهاجر دحج دمناسكو اداء كولو نه پس په مكه كي دري ورځي پاتي كيدي شي امام ترمذي واني داحديث حسن صحيح دي او ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دي او په دي سند مرفوعا مروي دي.

***************

## ١٠٤_ باب مَا جَاءَ مَا يَقُولُ عِنْدَ الْقُفُولِ مِنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ

**دحج او عمري نه دواپسئ په وخت كي كومي كومي دعاګاني وئيل پكار دي**

٩٥٠_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَفَلَ مِنْ غَزْوَةٍ أَوْ حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ فَعَلاَ، فَدْفَدًا مِنَ الأَرْضِ، أَوْ شَرَفًا كَبَّرَ ثَلاَثًا، ثُمَّ قَالَ: "لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَائِحُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ، صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَهُ، وَهَزَمَ

---

[1] _ البخارى في مناقب الأنصار ٤٧ (٣٩٣٣). صحيح مسلم في الحج ٨١ (١٣٥٢). سنن ابى داود في المناسك ٩٢ (٢٠٢٢) سنن النسائي في تقصير الصلاة ٤ (١٤٥٥). سنن ابن ماجه في الإقامة ٧٦ (١٠٧٣). (تحفة الأشراف: ١١٠٠٨). مسند احمد (٥ في ٥٢). سنن الدارمى في الصلاة ١٨٠ (١٤٧٤)

الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ". وَفِي الْبَابِ: عَنِ الْبَرَاءِ، وَأَنَسٍ، وجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي كله چي به نبي كريم صلي الله عليه وسلم دكومي غزوي يا حج يا عمري نه واپس كيدو او په كوم لوړ خاي به ختلو نو دري پيري به يې الله اكبر اووئيل او بيا به يې دا دعا وئيله:

" لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَائِحُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ. صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ. وَنَصَرَ عَبْدَهُ. وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ"

يعني دالله نه علاوه بل معبود برحق نشته او هغه يواخي دي هيڅ شريك نه لري بادشاهي خاص دهغه دپاره ده او تمام تعريفونه هم خاص دهغه دپاره دي او هغه په هر څيز قادر دي، مونږ واپس كيدونكي يو، رجوع كونكي يو، او عبادت كونكي يو، سير او سياحت كونكي يو، او دخپل رب تعريف كونكي يو، الله تعالي خپله وعده ربنتيني كړه او دخپل بنده مدد يي اوكړو او يواخي يي ټولو فوجونو ته شكست وركړو.

**تشريح** : دحديث ظاهري مفهوم خو دادی كه څوك دا كلمات په سحر كي اولولي نومابنام پوري به دشيطان نه محفوظ وي او سل نيكي به ورله هم اوليكلی شي او سل گناهونه به يي هم معاف شي او دلسوغلامانو دازاديدو ثواب به ورته هم ملاو شي او كه مابنام كي اولولي نو ددي ذكر په حديث كي نشته ليكن محدثين وائي چي په مابنام كي لوستونكي دپاره به هم دا ثوابونه ملاويږي.

سوال: دمابنام ذكر ولي په دي حديث كي نه دی شوی؟

اول جواب: كيدی شي چي رسول الله به كړی وي ليكن راوي به داختصار په وجه حذف كړی وي (او يا به ورنه هيرشوی وي مترجم).

دويم جواب: رسول الله دسحر ذكر كړی دی او دمابنام ذكر ورنه پخپله معلوميږي نو په حديث كي ددي بيانولوته ضرورت پاتي نشو.

امام نووي په شرح مسلم كي ليكلي دي دا انعامات په سل عدد پوره كولو باندي دی ، برابره خبره ده چي انسان يي په يو مجلس كي سل پيري اولولي او كه په مختلفو مجلسونو كي په هر صورت كي به ورته انشاء الله پورتنی ذكر شوی ثواب ملاويږي ليكن بهتر به دا وي چي په يو

[1] ـ مسلم في الحج ٧٦ (١٣٤٢) . (تحفة الأشراف : ٧٥٣٩) وأخرجه صحيح البخاری في العمرة ١٢ (١٧٩٧) . والجهاد ١٣٣ (٢٩٩٥) . والمغازي ٢٩ (٤١١٦) . والدعوات ٥٢ (٦٣٨٥) . و مسلم في الحج ٧٦ . سنن ابی داود في الجهاد ١٧٠ (٢٧٧٠) . مسند احمد (٢ في ٥. ١٥. ٢١. ٣٨. ٦٣. ١٠٥)

مجلس كي اولولي او دورخي په ابتداء كي يي اولولي همدارنگي دا انعامات په سل پيري لوستلو وارد شوي دي ليكن كه څوك دا څومره زيات اولولي نو دومره زيات ثواب به ورته ملاويږي

خلاصه داده چي كله كوم انسان په لوړ ځاي خيژي نو الله اكبر به وائي او چي كله كوزيږي نو سبحان الله به وائي او په واپسئ كي ورسره دا دعا وئيل هم مسنون دي

***************

## ١٠٥_ باب مَا جَاءَ فِي الْمُحْرِمِ يَمُوتُ فِي إِحْرَامِهِ

### په احرام كي دمحرم دمړكيدو بيان

٩٥١_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَرَأَى رَجُلًا قَدْ سَقَطَ مِنْ بَعِيرِهِ فَوُقِصَ فَمَاتَ وَهُوَ مُحْرِمٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اغْسِلُوهُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ، وَكَفِّنُوهُ فِي ثَوْبَيْهِ، وَلَا تُخَمِّرُوا رَأْسَهُ، فَإِنَّهُ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُهِلُّ أَوْ يُلَبِّي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا مَاتَ الْمُحْرِمُ انْقَطَعَ إِحْرَامُهُ وَيُصْنَعُ بِهِ كَمَا يُصْنَعُ بِغَيْرِ الْمُحْرِمِ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي خلق په يو سفر كي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وو نو رسول الله اوكتل يو كس دخپل اوښ نه راپريوتو او څټ يي مات شو او مړ شو او احرام يي تړلي وو رسول الله اوفرمائيل ده ته دبيرو دپاڼړو په اوبو غسل وركړئ او په همدي داحرام په دوه جامو كي ورته كفن وركړئ او سر يي مه پټوئ ځكه چي دقيامت په ورځ به دي دتلبي وئيلو په حال كي راپورته كيږي

[1] _ البخاری في الجنائز ٢١ (١٢٦٨) ، وجزاء الصيد ٢٠ (١٨٣٩) ، و مسلم في الحج ١٣ (١٢٠٦) ، و ابی داود في الجنائز ٨٣ (٣٢٢٨) و النسائي في الجنائز (١٩٠٥) ، والحج ٤٧ (٢٧١٥) ، و١٠١ (١٨٦١) ، و ابن ماجه في المناسک ٨٩ (٣٠٨٣) . (تحفة الأشراف : ٥٥٨٣) . مسند احمد (ا في ٣٤٦) و البخاری في الجنائز ١٩ (١٢٦٥) ، و٢٠ (١٢٦٦) ، و٢١ (١٢٦٧) وجزاء الصيد ١٣ (١٨٣٩) ، و٢١ (١٨٥١) ، و مسلم في الحج (المصدر المذكور) ، و النسائي في الحج ٤٧ (٢٧١٣) ، و٩٧ (٢٨٥٦) ، و٩٨ (٢٨٥٧) ، و٩٩ (٢٨٥٩،٢٨٥٨) ، و١٠٠ (٢٨٦٠) ، مسند احمد (ا في ٢١٥، ٢٦٦، ٢٨٦) ، سنن الدارمی في المناسک ٣٥ (١٨٩٣)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي، او همدا دسفيان ثوري، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول دي، بعضي اهل علم وائي كله چي يو محرم مړ كيږي دهغه احرام ختم كيږي او ددد سرد به هم هغه څه كولي شي كوم چي دغير محرم سره كيږي.

*****************

## ١٠٦_ باب مَا جَاءَ فِي الْمُحْرِمِ يَشْتَكِي عَيْنَهُ فَيَضْمِدُهَا بِالصَّبِرِ

**دستركي دخوږيدو رخت كي دي محرم صبر دوالي په ستركه كي واچوي**

٩٥٢_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ نُبَيْهِ بْنِ وَهْبٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْمَرٍ اشْتَكَى عَيْنَيْهِ وَهُوَ مُحْرِمٌ، فَسَأَلَ أَبَانَ بْنَ عُثْمَانَ، فَقَالَ: اضْمِدْهُمَا بِالصَّبِرِ فَإِنِّي سَمِعْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ يَذْكُرُهَا، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " اضْمِدْهُمَا بِالصَّبِرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا يَرَوْنَ بَأْسًا أَنْ يَتَدَاوَى الْمُحْرِمُ بِدَوَاءٍ مَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ طِيبٌ. (1)

**ترجمه**: نبيه بن وهب وائي چي د عمر بن عبدالله بن معمر ستركي خوږي شوي او احرام يي تړلي وو دابان بن عثمان نه يي دمسئلي تپوس اوكړو نو هغوئ ورته اووئيل صبر ورباندي راكاږه څكه چي ما دعثمان رضي الله عنه نه ددي ذكر اوريدلي وو چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يي روايت كولو رسول الله فرمائيلي وو په دي باندي صبر راكاږه.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي هغوئ دمحرم دپاره دداسي دوائي استعمال دعلاج دپاره اجازت وركوي په كومه كي چي خوشبو نه وي.

*****************

## ١٠٧_ باب مَا جَاءَ فِي الْمُحْرِمِ يَحْلِقُ رَأْسَهُ فِي إِحْرَامِهِ مَا عَلَيْهِ

**محرم كه په حالت داحرام كي سر اوخروي نو په ده باندي به څه جرمانه لازميږي**

---

1 _ صحيح مسلم في الحج ١٢ (١٢٠٤)، سنن ابي داود في المناسك ٣٧ (١٨٣٨)، سنن النسائي في المناسك ٣٥ (٢٧١٣)، (تحفة الأشراف: ٩٧٧٧)، مسند احمد (١/ ٦٠، ٦٥، ٦٨، ٦٩)، سنن الدارمي في المناسك ٨٣ (١٩٣٦)

٩٥٣_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ أَيُّوبَ، وَابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، وحميد الأعرج، وعبد الكريم، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِ وَهُوَ بِالْحُدَيْبِيَةِ قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ. وَهُوَ مُحْرِمٌ. وَهُوَ يُوقِدُ تَحْتَ قِدْرٍ. وَالْقَمْلُ يَتَهَافَتُ عَلَى وَجْهِهِ. فَقَالَ: " أَتُؤْذِيكَ هَوَامُّكَ هَذِهِ ". فَقَالَ: نَعَمْ. فَقَالَ: " احْلِقْ وَأَطْعِمْ فَرَقًا بَيْنَ سِتَّةِ مَسَاكِينَ، وَالْفَرَقُ ثَلَاثَةُ آصُعٍ أَوْ صُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ أَوِ انْسُكْ نَسِيكَةً ". قَالَ ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ: " أَوِ اذْبَحْ شَاةً ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَنَّ الْمُحْرِمَ إِذَا حَلَقَ رَأْسَهُ أَوْ لَبِسَ مِنَ الثِّيَابِ مَا. لَا يَنْبَغِي لَهُ أَنْ يَلْبَسَ فِي إِحْرَامِهِ أَوْ تَطَيَّبَ. فَعَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ. بِمِثْلِ مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([1])

**ترجمه** - دكعب بن عجره رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم مكي ته دداخليدونه مخكي ددوئ په خوا كي تير شو او دوئ په حديبيه كي وو چي احرام يي تړلي وو او ديوي كټوئ لاندي يي اور بلولو او سپږي يي په مخ راپريوتلي رسول الله ورنه تپوس اوكړو ايا دا سپږي تاته تكليف نه دركوي هغه اوونيل ولي نه. ورته يي اوفرمائيل سر اوخروه او شپږو مسكينانو ته يو فرق خوراك وركړه او يا دري ورخي روژي اونيسه او يا ديو څاروي قرباني اوكړه او دابن ابي نجيح په روايت كي دي چي يا يوه چيلئ ذبح كړه

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي چي محرم كه سر اوخروي يا داسي جامي واغوندي دكومو چي احرام كي اغوستل درست نه وي يا خوشبو اولګوي نو په ده باندي به هغه كفاره وي كومه چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي ده

**دابومحمد كعب ابن عجره رضي الله عنه حالات:**

نوم كعب كنيه ابو محمد په يوه غزوه كي يي لاس كټ شوی وو او دسر ويخته يي ګڼړ وو

[1] ـ البخاري في المحصر (١٨١٣) . و٦ (١٨١٥) . و٧ (١٨١٦) . و٨ (١٨١٧) . والمغازي ٣٥ (٤١٥٩ ٤١٩٠) . وتفسير البقرة ٣٢ (٤٥١٧) . والمرضى ١٦ (٥٦٦٥) . والطب ١٦ (٥٧٠٣) . والكفارات ١ (٦٨٠٨) . صحيح مسلم في الحج ١٠ (١٢٠١) . سنن ابي داود في المناسك ٤٣ (١٨٥٦) . سنن النسائي في المناسك ٩٦ (٢٨٥٣) . (تحفة الأشراف : ١١١١٣) . موطأ امام مالك في الحج ٤٨ (٢٣٨) . مسند احمد (٤ في ٢٤٢. ٢٤٣) وأخرجه صحيح مسلم في الحج ١٠ سنن ابن ماجه في المناسك ٨٦ (٣٠٧٩) مسند احمد (٤ في ٢٤٢. ٢٤٣)

(طبقات ابن سعد)
دهجرت نه پس مسلمان شوى وو او دمسلمانيدو نه پس يي په تمامو غزواتو كي شركت كړى دى په غزوه حديبيه كي هم درسول الله صلي سره موجود وو دويختو دګنړوالي په وجه يي په سر كي دومره ډيري سپږي شوي وي چي په مخ به يي راروانى وي نو رسول الله ورته دويختو كټ كولو مشوره وركړه نو بيا يي ددينه پس كټ كړل دده په سيرت كي دحق حمايت او حب رسول سر فهرست دي دكعب رضي الله عنه په اخلاقو كي دا دوه څيزونه ډير روښانه دي چي يو خل درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو چي درسول الله رنګ دلوږي په وجه تغير شوى وو نو دى فورا پوهه شو او ديهودي اوښ يي اوبه كولو ده به اوښ ته يوه بوكه اوبه په يوه كجوره اچولي كله چي يو څو كجوري ورسره جمع شوي نو هغه يي درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضري كړي (الاصابه).
دهجرت په ۵۱ كال كي كله چي دده عمر ۷۵ كلونه وو په مدينه كي وفات شو او درواياتونو تعداد يي ۴۷ دى.

***************

١٠٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ لِلرِّعَاءِ أَنْ يَرْمُوا يَوْمًا وَيَدَعُوا يَوْمًا
دشپونكو دپاره يوه ورځ پريښودلو او يوه ورځ رمي كولو درخصت بيان

٩٥٤ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الْبَدَّاحِ بْنِ عَدِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَرْخَصَ لِلرِّعَاءِ أَنْ يَرْمُوا يَوْمًا وَيَدَعُوا يَوْمًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى ابْنُ عُيَيْنَةَ، وَرَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الْبَدَّاحِ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، وَرِوَايَةُ مَالِكٍ أَصَحُّ، وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ لِلرِّعَاءِ أَنْ يَرْمُوا يَوْمًا وَيَدَعُوا يَوْمًا، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. (1)

**ترجمه** دعدي رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم شپونكو نه رخصت وركړي دي چي يوه ورځ رمي كوي او يوه ورځ يي پريږدي
امام ترمذي وائي دا رنګي دابن عيينه نه هم يو روايت مروي دي، او مالك بن انس په سند د عبدالله بن ابي بكر بن محمد ابن عمرو بن حزم عن ابيه عن ابي البداح بن عدي عن ابيه ان

---

1 ـ ابي داود في الحج ٧٨ (١٩٧٥) . سنن النسائي في الحج ٢٢٥ (٣٠٧١) . سنن ابن ماجه في المناسك ٦٧ (٣٠٣٦) . (تحفة الأشراف: ٥٠٣٠) . مسند احمد (٥ في ٤٥٠) . سنن الدارمي في المناسك ٥٨ (١٩٣٨)

النبي صلي الله عليه وسلم، او دمالك روايت زيات صحيح دي، داهل علمو دجماعت شپونکوته رخصت ورکړي دي چي يوه ورځ دي رمي کوي او يوه ورځ دي پريږدي

## دعدي بن حاتم رضي الله عنه حالات

نوم عدي کنيه ابو طريق او دپلار نوم يې حاتم طايي وو چي دعدي په قبيله طئ بې حکمراني کوله داسلام دظهور په وخت کي عدي حکمران وو کله چي داسلام دائره وسيع کبدل شروع شول نو دی پريشان شو او داسلامي سيلاب دمخنيوي توان يې نه لرلو بل طرف ته دحکمرانئ په وجه داسلام په وړاندي يې سر تيټول هم نه غوښتل خو بهر حال اسلامي فوجونه طئ قبيلي طرف ته روان شول نو عدي په دغه وخت کي خپل تمام خاندان شام ته بوتلو (سيرت ابن هشام)
اتفاق دا وو چي صرف يوه رشته داره ورنه پاتي شوي وه او هغه گرفتاره شوي وه، دي زنانه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چي زما دخاوند راخلاصونکی هيڅوك نشته په مابانـدي احسان اوکړه او الله تعالي به په تا باندي احسان اوکړي رسول الله تپوس اوکړو خلاصونکی څوك دی هغي اووئيل عدي رسول الله اوفرمائيل ايا هغه څوك يادوي څوك چي دالله او درسول نه تختيدلی دی همدا مکالمه په دويمه ورځ بيا هم اوشوه او بيايي دعلي رضي الله عنه د درخواست په بنا ازاد کړو او دډير اعزاز سره يې رخصت کړو نو په دي وجه عدي متاثر شو او درسول الله په خدمت کي حاضر شو دراتلو نه پس رسول الله په يوه گدئ کينولو او پخپله په زمکه کيناستو او بيا ددينه پس عدي مسلمان شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دوباره دخپلي قبيلي بنو طئ امير مقرر کړو (سيرت ابن هشام)
درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات نه پس چي کله خلق مرتد شول او دزکات ورکولو نه يې انکار اوکړو نو دعدي قبيلي په کوشش سره زکات ادا کولو (استيعاب)
عدي به هميشه په اودس کي اوسيدلو او هيڅ کله ورته داقامت په وخت کي اودس ته ضرورت نه دی پيښ شوی (الاصابه)
وفات، دوفات په وخت کي په کوفه کي موجود وو او هم دلته دهجرت په ۲۷کال وفات شو دمرویاتو شمير يې ۶۶ دی چي شپږ متفق عليه دي دري صرف په بخاري کي دي او دوه په مسلم کي دي (تهذيب الکمال)

**************

۹۵۵ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي البَدَّاحِ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَخَّصَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرِعَاءِ الإِبِلِ فِي البَيْتُوتَةِ، أَنْ يَرْمُوا يَوْمَ النَّحْرِ، ثُمَّ يَجْمَعُوا رَمْيَ يَوْمَيْنِ بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ، فَيَرْمُونَهُ فِي أَحَدِهِمَا". قَالَ مَالِكٌ: ظَنَنْتُ أَنَّهُ قَالَ: "فِي الأَوَّلِ مِنْهُمَا، ثُمَّ يَرْمُونَ يَوْمَ

النَّفْرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ. (1)

**ترجمه** دعاصم بن عدي بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوښانو شپونکو ته په منیٰ کي دشپي تیرولو رخصت ورکړي دي چي دوئ دي په لسم ذي الحجه دجمره عقبي رمي اوکړي او بیا دي دلسم ذي الحجي نه پس ورځو رمي جمع کړي او ټول دي په یوځاي اوکړي (مالك وائي زماګمان دي چي راوي داسي اووائیل) په اوله ورځ دي رمي اوکړي او بیا دي دتلو په ورځ رمي اوکړي امام ترمذي وائي دا حدیث حسن صحیح دي او ابن عیینه چي دعبدالله بن ابي بکر نه کوم روایت نقل کړي دي هغه زیات صحیح دي

**تشریح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي په رمي کي تاخیر کول جائز دي او کنه؟ په دي کي دفقهاء او محدثینو دوه مذاهب دي

(۱) دامام ابوحنیفه په نزد په رمي کي تاخیر کول جائز نه دي او که څوك تاخیر اوکړي جزاء به ورباندي واجب شي.

(۲) دائمه ثلاثه په نزد شپونکو ته دا اجازت دي چي یوه ورځ رمي اوکړي او یوه ورځ یي اونکړي او ددوئ په نزد په شپونکو باندي هیڅ جزاء او فدیه نه واجب کیږي او دوئ په دي سلسله کي دحدیث الباب نه استدلال کړي دي چي رسول الله شپونکو ته درمي مؤخر کولو او جمع کولو اجازت ورکړي دي.

جواب: په مذکوره حدیث کي دجمعي نه مراد جمع او تاخیر صوري دي حقیقي نه دي مراد.

**************

## ۱۰۹_ باب

### دماقبل باب متعلق یوبل باب

**۹۵۶_ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ بْنِ عَبْدِ الْوَارِثِ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا سُلَيْمُ بْنُ حَيَّانَ، قَالَ: سَمِعْتُ مَرْوَانَ الْأَصْفَرَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ " عَلِيًّا قَدِمَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْيَمَنِ، فَقَالَ: " بِمَ أَهْلَلْتَ؟ " قَالَ: أَهْلَلْتُ بِمَا أَهَلَّ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ**

---

[1] _ ابي داود في الحج ٧٨ (١٩٧٥) . سنن النسائي في الحج ٢٢٥ (٣٠٧١) . سنن ابن ماجه في المناسک ٦٧ (٣٠٣٦) . (تحفة الأشراف: ٥٠٣٠) . مسند احمد (٥ في ٤٥٠) . سنن الدارمي في المناسک ٥٨ (١٩٣٨)

وَسَلَّمَ. قَالَ: "لَوْلَا أَنَّ مَعِي هَدْيًا لَأَحْلَلْتُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. ([1])

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرماني چي علي رضي الله عنه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ديمن نه راغي رسول الله ورنه تپوس اوکړو تاځنګه تلبيه ونيلي ده او کوم احرام دي تړلي دي علي رضي الله عنه اوونيل ما هغه تلبيه ونيلي ده کومه چي رسول الله ونيلي ده او احرام نه هم عمري تړلي شي رسول الله اوفرمائيل که چري ماخان سره دقربانئ ځاروي نه وي راوستي نو احرام به مو پرانيستلي وي

امام ترمذي وائي دا حديث ددي سند په اعتبار حسن صحيح غريب دي

****************

## ١١٠_ باب مَا جَاءَ فِي يَوْمِ الْحَجِّ الأَكْبَرِ

### دحج اکبر دورځي بيان

٩٥٧_ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ بْنِ عَبْدِ الْوَارِثِ. حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ يَوْمِ الْحَجِّ الأَكْبَرِ، فَقَالَ: "يَوْمُ النَّحْرِ".([2])

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه بيان دي فرماني چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو چي حج اکبر کومه يوه ورځ ده نو راته يي اوفرمائيل "يوم النحر" يعني دقربانئ ورځ.

****************

٩٥٨_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "يَوْمُ الْحَجِّ الأَكْبَرِ يَوْمُ النَّحْرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنَ الْحَدِيثِ الأَوَّلِ، وَرِوَايَةُ ابْنِ عُيَيْنَةَ مَوْقُوفًا، أَصَحُّ مِنْ رِوَايَةِ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ مَرْفُوعًا. هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ

---

[1] _ صحيح البخاري في الحج ٣٢ (١٥٥٨). صحيح مسلم في الحج ٣٢ (١٢٥٠). (تحفة الأشراف: ١٥٨٥). مسند احمد (٣ في ١٨٥)

[2] _ تفرد به المؤلف وأخرجه في تفسير التوبة أيضا (٣٠٨٨) (تحفة الأشراف: ١٠٠٢٩)

الْحُفَّاظِ عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ مَوْقُوفًا. وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، قَالَ: عَنْ عَبْدِاللّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنِ الحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ مَوْقُوفًا. (1)

**ترجمه**. دعلي رضي الله عنه بيان دي چي دحج اكبر ورځ لسم ذي الحجه ده

امام ترمذي وائي ابن ابي عمر راوي دا حديث مرفوع نه دي بيان كړي او اولني حديث زيات صحيح دي، او دابن عيينه موقوف روايت دمحمد بن اسحاق دمرفوع روايت نه زيات صحيح دي، دا رنګي ډيرو حافظانو داحديث په سند د. ابي اسحاق عن علي. موقوفا نقل كړي دي،او شعبه هم دابواسحاق سبيعي نه نقل كړي دي او دهغوئ سند داسي دي عن عبدالله بن مرة عن الحارث عن علي موقوفا.

***************

## ۱۱۱_ باب مَا جَاءَ فِي اسْتِلاَمِ الرُّكْنَيْنِ

### دحجر اسود او ركن يماني داستلام بيان

۹۵۹_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنِ ابْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُزَاحِمُ عَلَى الرُّكْنَيْنِ زِحَامًا مَا رَأَيْتُ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ. فَقُلْتُ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ إِنَّكَ تُزَاحِمُ عَلَى الرُّكْنَيْنِ زِحَامًا مَا رَأَيْتُ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُزَاحِمُ عَلَيْهِ. فَقَالَ: إِنْ أَفْعَلْ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: "إِنَّ مَسْحَهُمَا كَفَّارَةٌ لِلْخَطَايَا". وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "مَنْ طَافَ بِهَذَا الْبَيْتِ أُسْبُوعًا فَأَحْصَاهُ، كَانَ كَعِتْقِ رَقَبَةٍ". وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "لاَ يَضَعُ قَدَمًا وَلاَ يَرْفَعُ أُخْرَى إِلاَّ حَطَّ اللّهُ عَنْهُ خَطِيئَةً، وَكَتَبَ لَهُ بِهَا حَسَنَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنِ ابْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِيهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (2)

**ترجمه**. دعبيد بن عمير بيان دي فرمائي چي ابن عمر رضي الله عنهما په حجر اسود او ركن يماني په استلام داسي جلتي اوكړله چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په صحابه كرامو كي بل څوك په داسي كولو نه دي ليدلي ما ورته تپوس اوكړو اي ابو عبدالرحمن ته په ركنينو كي دومره جلتي ولي كوي ما خو په صحابه كرامو كي هيڅوك داسي نه دي ليدلي؟ هغوئ

---

1 _ تفرد به المؤلف وأخرجه في تفسير التوبة أيضا (۳۰۸۸) (تحفة الأشراف: ۱۰۰۲۹)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۷۳۱۷)

اوونيل كه چري زه داسي كوم نو دا خكه كوم چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي په ركنينو لاس رابنكل دگناهونو كفاره ده او ما ورنه اوريدلي دي چاچي ددي كور (كعبه) اوه پيري طواف اوكړو او ويي شميرلو نو دا داسي ده لكه چي يوغلام يي ازاد كړي وي او ما ورنه اوريدلي دي داسي كس چي څومره قدمونه اخلي او قدم پورته كوي الله تعالي ورته دهر قدم په بدل كي يوه غلطي معاف كوي او يوه نيكي ورله ليكي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي او حماد بن زيد دا حديث په سند دعطاء بن السائب عن ابن عبيد بن عمير عن ابن عمر، سره نقل كړي دي او په دي كي هغوئ دابن عبيد دپلار دواسطي ذكر نه دي كړي

شيخينو هم د حجر اسود د فضيلت په سلسله كي د عابس بن ربيعه نه يو متفق عليه روايت نقل كړى دى.

عابس بن رَبيعة ، قَالَ : رَأَيْتُ عُمَرَ بن الخطاب ﷺ يُقَبِّلُ الحَجَرَ – يَعْنِي : الأَسْوَدَ – وَيَقُولُ : إِنِي أَعْلَمُ أَنَّكَ حَجَرٌ مَا تَنْفَعُ وَلاَ تَضُرُّ ، وَلَولا أَنِّي رَأَيْتُ رسولَ الله ﷺ يُقَبِّلُكَ مَا قَبَّلْتُكَ. مُتَّفَقٌ عَلَيهِ .

عابس بن ربيعه وائي چي ما عمر فاروق رضي الله عنه حجراسود لره ښكلونكى اوليدو او دا مي تري واوريدل ماته پته ده چي ته صرف يوكاڼرى يى نه څه فائده وركولى شي نه نقصان كه چري ما رسول الله صلي الله عليه وسلم تالره ښكلونكى نه وى ليدلى نو مابه ته نه وى ښكل كړى (بخاري ومسلم).

"اعلم انك حجر ماتنفع ولاتضر" يعني عمر فاروق رضي الله عنه حجر اسود مخاطب كړو او ويى ونيل ته خو يو كاڼړى يي چي نه فائده وركولى شي او نه نقصان دفع كولى شي په يوبل روايت كي راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اني لاعلم انك حجر لاتنفع ولاتضر ولولا امرني ربي ان اقبلك ماقبلتك. يعني ته خو يو كاڼړى يي چي دنفعي او نقصان اختيار نه لري خو كه ماته زما رب ستا دښكلولو حكم نه وى كړى نو مابه ته نه وي ښكل كړى، غرض دا چي همدا خبره عمر فاروق رضي الله عنه اوكړه او دا يي په هغه وخت كي اوكړه كله چي يو څو نوي بانډچيان مسلمانان موجود وو دا ددي دپاره چي هغوئ دا گمان اونكړي چي په دي كاڼړي كي كوم اثر شته بلكي ددي ښكلول صرف داتباع رسول په بنياد دي يعني چي رسول الله ښكل كړى وو او زه يي هم دهغه په اتباع كي ښكلوم.

ددينه دا معلومه شوه چي په اتباع رسول كي حكمت تلاش كول نه دي پكاري كله كله ددي حكمت ته ذهن رسيدى شي او په بعضي وخت كي ورته ذهن رسائي نشي كولى بهر حال اصل مقصود اتباع رسول ده ليكن علماؤ ليكلي دي چي دحجر اسود نه علاوه دبل كاڼري ښكلول جائز نه دي.

***************

## ۱۱۲ـ باب مَا جَاءَ فِي الْكَلَامِ فِي الطَّوَافِ

### دطواف كولوپه وخت دخبروكولوبيان

۹٦۰ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الطَّوَافُ حَوْلَ الْبَيْتِ مِثْلُ الصَّلَاةِ إِلَّا أَنَّكُمْ تَتَكَلَّمُونَ فِيهِ، فَمَنْ تَكَلَّمَ فِيهِ، فَلَا يَتَكَلَّمَنَّ إِلَّا بِخَيْرٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، وَغَيْرُهُ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَوْقُوفًا، وَلَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ، أَنْ لَا يَتَكَلَّمَ الرَّجُلُ فِي الطَّوَافِ إِلَّا لِحَاجَةٍ، أَوْ يَذْكُرُ اللَّهَ تَعَالَى، أَوْ مِنَ الْعِلْمِ. (۱)

**ترجمه** . دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دبيت الله نه چاپيره طواف كول دمونځ پشان دي البته فرق پکي دومره دي چې په طواف كي تاسو خبري كولي شئ (او په مونځ كي يې نشئ كولي)، نو كه څوك په طواف كي خبري كوي نو دنيكئ خبري دي كوي.

امام ترمذي وائي دا حديث ابن طاوس وغيره دابن عباس نه موقوفاً نقل كړي دي او مونږ نه صرف دعطاء بن سائب په سند مرفوع رارسيدلي دي، او په همدي داهل علمو عمل دي دوئ دا خبره مستحب گڼري چې په طواف كي بغير دضرورته خبري كول پكار نه دي او كه څوك خبري كوي نو دنيكئ خبري دي كوي

***************

## ۱۱۳ـ باب مَا جَاءَ فِي الْحَجَرِ الأَسْوَدِ

### دحجر اسود بيان

۹٦۱ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ جَرِيرٍ، عَنِ ابْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَجَرِ: " وَاللَّهِ لَيَبْعَثَنَّهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَهُ عَيْنَانِ يُبْصِرُ بِهِمَا، وَلِسَانٌ يَنْطِقُ بِهِ يَشْهَدُ عَلَى مَنِ اسْتَلَمَهُ بِحَقٍّ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (۲)

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٤٣٢)

[2] ـ سنن ابن ماجه في المناسك ٢٧ (٢٩٤٤). (تحفة الأشراف: ٥٥٣٦). سنن الدارمي في المناسك ٢٦ (١٨٨١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دحجر اسود متعلق فرمائيلي دي په الله قسم دابه دقيامت په ورځ په داسي حال كي راپورته كړي شي چي ددي به دوه سترګي وي چي ليدل به ورباندي كوي او يوه به يي ژبه وي چي ونيل به ورباندي كوي او دا به دهغه چا دايمان ګواهي وركوي چاچي په حقه ددي استلام كړي وي (يعني دايمان او اجر په نيت)
امام ترمذي وائي داحديث حسن دي.

****************

## ١١٤_ باب

### دحجر اسود متعلق يو بل باب

٩٦٢_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ فَرْقَدٍ السَّبَخِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدَّهِنُ بِالزَّيْتِ وَهُوَ مُحْرِمٌ غَيْرِ الْمُقَتَّتِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: الْمُقَتَّتُ الْمُطَيَّبُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ فَرْقَدٍ السَّبَخِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَقَدْ تَكَلَّمَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ فِي فَرْقَدٍ السَّبَخِيِّ، وَرَوَى عَنْهُ النَّاسُ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم داحرام په حالت كي دزيتون تيل لګول او دا داسي تيل وو چي خوشبويي نه لرله.
امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي مونږ ته صرف دفرقد سنجي په سند رارسيدلي دي او فرقد دسعيد بن زبير نه نقل كړي دي او يحيٰ بن سعيد په فرقد سنجي باندي كلام كړي دي او دفرقد نه خلقو نقل كړي دي او مقتت په معني دخوشبودار دي

****************

## ١١٥_ باب

### دحج متعلق يو بل باب

٩٦٣_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَزِيدَ الْجُعْفِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، "أَنَّهَا كَانَتْ تَحْمِلُ مِنْ مَاءِ زَمْزَمَ، وَتُخْبِرُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ

---

[1] - سنن ابن ماجه في المناسک ٨٨ (٣٠٨٣). (تحفة الأشراف: ٤٠٦٠)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَحْمِلُهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي هغي به مديني ته دځان سره دزمزم اوبه اوړلي او فرمائيل به يي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به هم د زمزم اوبه دځان سره اوړلي امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي او مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي.

****************

## ١١٦_ باب

## دحج متعلق يوبل باب

٩٦٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْوَزِيرِ الْوَاسِطِيُّ المعنى واحد، قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الْأَزْرَقُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ حَدِّثْنِي بِشَيْءٍ عَقَلْتَهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْنَ صَلَّى الظُّهْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ؟ قَالَ: " بِمِنًى ". قَالَ: قُلْتُ: فَأَيْنَ صَلَّى الْعَصْرَ يَوْمَ النَّفْرِ؟ قَالَ: " بِالْأَبْطَحِ ". ثُمَّ قَالَ: " افْعَلْ كَمَا يَفْعَلُ أُمَرَاؤُكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، يُسْتَغْرَبُ مِنْ حَدِيثِ إِسْحَاقَ بْنِ يُوسُفَ الْأَزْرَقِ، عَنِ الثَّوْرِيِّ. (2)

**ترجمه** : دعبدالعزيز بن رفيع بيان دي چي ما انس بن مالك رضي الله عنه ته اوونيل كومه داسي خبره راته بيان كړه كومه چي تا درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ياده كړي وي او دا راته اووايه چي په اتمه ذي الحجه دي دماسپخين مونځ چرته كړي وو؟ انس اووئيل په مني كي مي كړي وو ما ورنه بيا تپوس اوكړو درخصتيدو په ورځ دي دمازيګر مونځ چرته كړي وو راته يي اوونيل په ابطح مقام كي ليكن ته داسي كوه څنګه چي ستاسو اميران او حاكمان كوي، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او داسحاق بن يوسف الازرق په سند سره غريب ګڼړلي شوي دي كوم چي هغه دثوري نه نقل كړي دي.

****************

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٦٩٠٥)

[2] _ صحيح البخارى في الحج ٨٣ (١٦٥٣)، و١٣٦ (١٧٨٣). صحيح مسلم في الحج ٥٨ (١٣٠٩). سنن ابي داود في المناسك ٥٩ (١٩١٢). سنن النسائي في الحج ١٩٠ (٣٠٠٠). (تحفة الأشراف : ٩٨٨). سنن الدارمي في المناسك ٣٦ (١٩١٢)

# كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## ١ـ باب مَا جَاءَ فِي ثَوَابِ الْمَرِيضِ

### دجنازې احکام او مسائل

جنائز،د جنازې جمع ده.جنازه د جيم په فتح سره د مړی دپاره راځي، او په کسري سره هغه تختی دپاره راځي چی په هغی مړی ايخودلی شی، دماقبل سره يي تعلق دادي چی مرګ چونکه آخری عارض دي.

وجوهات دجنازي دمونځ دمشروعيت :دعقل تقاضا ده.چی کله يوانسان د ډيرو خلقو ډله د يولوی حاکم مخی له بوځی.اودده دپاره سفارش اوکړی.اودده دمعافۍ درخواست اوکړی.اودده دپاره په زارۍ او منت درخواست اوکړی.نو آخر دده قصورمعاف کيږی.هم دا د جنازی د مونځ راز دي

د جنازی مونځ په دی وجه مقرر شوي دي.چی د مومنانو يوه ډله د مړی سفارش کي شرکت اوکړی.نودا د الله تعالی د رحمت نازليدو دپاره ډير لوی اثر لری.نبی کريمﷺ فرمائی:

"مامن مسلم يموت فيقوم على جنازته أربعون رجلاً لايشركون بالله شيئاً إلا شفعهم الله فيه"

يعنی هيڅ يوسړي داسی نه مری.چی دده په جنازه څلويښت سړی راجمع وی.چی دوی د الله تعالی سره څوك نه شريکوی.نوددی مړی په حق کي ددوی سفارش قبلوی.

د جنازي مونځ فرض کفايه دي ددي وجه داده چي بعضی فرائض داسی قسم مقررشوی دی.چی دا ديو مقام بعضی کسان اداکړی.نود ټولوطرفه ادا کيږی وجه ئې دا ده.که ټول دا په جمع باندې اوکړی . نو معاشی انتظام به تباه اوبرباد شی.ددوی د نفع ټول تدبيرونه به معطل شی.نود داسی کارونو دپاره يو سړې کافی دي.د بيمارانو بيمار پرسی اود جنازی مونځ هم په دی طريقه مشروع شوی دی.چی د بيمارانو اومړو ضائع کيدل هم نه وی.اوبعضی خلق که دا پوره کړی.نو مقصد به هم حاصل شی.

***************

٩٦٥ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُصِيبُ الْمُؤْمِنَ شَوْكَةٌ فَمَا فَوْقَهَا، إِلَّا رَفَعَهُ اللَّهُ بِهَا دَرَجَةً، وَحَطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، وَأَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ،

وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَسَدِ بْنِ كُرْزٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَزْهَرَ، وَأَبِي مُوسَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه دمومن په خپه كي ازغي هم لاړ شي يا ورته ددينه زيات تكليف اورسيږي نو الله تعالي په دي باندي دده درجي لوړوي او په دي باندي دده گناهونه محوه كوي

امام ترمذي وائي په دي باب كي دسعد بن ابي وقاص او ابوعبيده بن الجراح او ابوهريره او ابوامامه او ابوسعيد خدري او انس او عبدالله بن عمرو او اسيد بن كرز او جابر بن عبدالله او عبدالرحمن بن ازهر او ابو موسي رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : په خپه كي دازعي تلو په وجه سړي ته كومه پريشاني اورسيږي نو دهغي په بدل كي هم دده گناهونه معاف كيږي.

ددينه معلومه شوه چي كله هم كوم انسان ته څه قسم راحت يا تكليف اورسيږي نو دهغه ذهن فورا الله تعالي ته ورځي چي دا دهغه دطرفه دی او صبر دي اوكړي او كه صبر اونكړي او دصبر په ځاي جزع فزع او دتقدير نه شكايت شروع كړي نو يو خودده دپاره دنياوي تكليف شو ليكن ددي سره به دده دپاره په اخرت كي دثواب نه محروميدل هم وي بلكي ددينه علاوه به دی گنهگار هم وي.

شيخينو د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه يو مرفوع روايت نقل كړی دی

عن ابنِ مسعودٍ ﷺ، قَالَ: دخلتُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ.....(( أَجَلْ، ذَلِكَ كَذَلِكَ، مَامِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذىً، شَوْكَةٌ فَمَا فَوقَهَا إِلاَّ كَفَّرَ اللهُ بِهَا سَيِّئَاتِهِ، وَحُطَّتْ عَنْهُ ذُنُوبُهُ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا )) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اؤ خبره هم دغسی ده هر يو مسلمان ته چي څه تكليف اورسي دا غزي دماتيدو برابر يا ددينه زيات دهغی بدل كي ورته الله تعالي غلطي معاف كوي او گناهونه تري داسي څنډلی شي لكه دونو نه چي پاڼي غورځيږي.

په يو بل روايت كي راغلي دي الحمي شهادة (اي الموت فيها) همدا رنگي داسد بن كرز رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي چه

[1] ـ صحيح مسلم في البر والصلة ١٤ (٢٥٧٢) . (تحفة الأشراف : ١٩٩٥٣) . موطا امام مالك في العين ٣ (٦) . مسند احمد (٦ في ٣٩ ، ٤٢ ، ١٦٠ ، ١٧٣ ، ١٧٥ ، ١٨٥ ، ٢٠٢ ، ٢١٥ ، ٢١٥ ، ٢٥٥ ، ٢٥٧ ، ٢٧٨ ، ٢٧٩) وأخرجه صحيح البخاري في المرضى ١ (٥٦٤٠)

"الحي تحط الخطايا كما تحط الشجرة ورقها اي تسقط".

*****************

٩٦٦ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ شَيْءٍ يُصِيبُ الْمُؤْمِنَ مِنْ نَصَبٍ وَلَا حَزَنٍ وَلَا وَصَبٍ حَتَّى الْهَمُّ يَهُمُّهُ إِلَّا يُكَفِّرُ اللَّهُ بِهِ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ فِي هَذَا الْبَابِ. قَالَ: وَسَمِعْت الْجَارُودَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا، يَقُولُ: لَمْ يُسْمَعْ فِي الْهَمِّ أَنَّهُ يَكُونُ كَفَّارَةً إِلَّا فِي هَذَا الْحَدِيثِ. قَالَ: وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه**: دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه مومن ته هر قسم ستړيا، غم، او بيماري تر دي چي فكر مند كيدل هم ورته لاحق شي نو الله تعالي ددي په بدل كي دده ګناهونه ختموي.
امام ترمذي وائي داحديث حسن دي ، او بعضي خلقو دا حديث په سند دعطاء بن يسار عن ابوهريره رضي الله عنه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي، وكيع وائي ددي حديث نه علاوه په هيڅ يو حديث كي ما "هم" لفظ نه دي اوريدلي چي ګني دا هم دګناهونو كفارد جوړيږي.

*****************

## ٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي عِيَادَةِ الْمَرِيضِ

### دمريض دعيادت بيان

٩٦٧ـ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ الرَّحَبِيِّ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ الْمُسْلِمَ إِذَا عَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ لَمْ يَزَلْ فِي خُرْفَةِ الْجَنَّةِ". وَفِي الْبَاب: عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي مُوسَى، وَالْبَرَاءِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ثَوْبَانَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى أَبُو غِفَارٍ، وَعَاصِمٌ الْأَحْوَلُ هَذَا

---

1 ـ صحيح البخاري في المرضى ١ (٥٦٤١، ٥٦٤٢)، صحيح مسلم في البر والصلة ١٢ (٢٥٧٣)، (تحفة الأشراف: ٤١٦٥)، مسند احمد (٣ في ٣، ٢٤، ٣٨)

الحَدِيثَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الأَشْعَثِ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وسَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: مَنْ رَوَى هَذَا الحَدِيثَ عَنْ أَبِي الأَشْعَثِ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ فَهُوَ أَصَحُّ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَأَحَادِيثُ أَبِي قِلَابَةَ إِنَّمَا هِيَ عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ، إِلَّا هَذَا الحَدِيثَ فَهُوَ عِنْدِي عَنْ أَبِي الأَشْعَثِ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ. [1]

**ترجمه** : دثوبان رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ير مسلمان چي كله دخپل مسلمان ورور بيمار پرسي كوي نو دي به هميشه دجنت په باغونو كي ګرځي.

امام ترمذي وائي دثوبان حديث حسن صحيح دي، او ابوغفار او عاصم احول داحديث په سند د ابي قلابة عن ابي الاشعث عن ابي اسماء عن ثوبان عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او دا زيات صحيح روايت دي، امام بخاري وائي دابو قلابه حديثونه خاص دابو الاسماء نه مروي دي علاوه ددي حديث نه او دا زما په نزد په سند دابوالاشعث عن ابي اسماء مروي دي، او په دي باب كي دعلي، ابوموسي، براء، ابوهريره، انس، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح** : په دي حديث كي دمريض دعيادت فضيلت بيان شوی دی او هغه داچي مريض دمرض په مشقت كي مبتلا وي او دخدمت اوعلاج محتاج وي كله چي دوستان اورشته دار دده بيمار پرسي اوكړي نو دده زړه خوشحاليږي په دي وجه په دي باندي اجر وركولی شي بلكي پدي خوشحالۍ كي دهغه نه خپل مرض هم هير شي او شريعت مطهره عيادت كونكي هم محروم ندي پريخودلي بلكي فرمايلي يي دي چي ته څو پوري دمريض په خواكي يي نو د الله رحمتونه به درباندي نازليږي.

د بخاري په روايت كي مذكور دي چي رسول الله ديهودي هلك عيادت ته ورغلي وو دانس رضي الله عنه نه روايت دی چي يو يهودي هلك به د رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت كولو هغه ناجوړه شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم تپوس ته ورغلو دهغه سره سرته كيناستو ورته يی اوفرمائيل مسلمان شه هغه پلار ته وكتل چي ورسره ولاړو پلار ورته اوويل دابوالقاسم (يعني د رسول الله صلي الله عليه وسلم) خبره ومنه، نو هغه مسلمان شو رسول الله صلي الله عليه وسلم چي بهر ته اووتلو نو اویی فرمائيل ټول تعريفونه دهغه الله دی چي دی يی داور نه بچ كړو

[1] ـ صحيح مسلم في البر والصلة ١٣(٢٥٦٨)، (تحفة الأشراف: ٢١٠٥)، مسند احمد (٥ في ٢٧٧، ٢٨١، ٢٨١، ٢٨٣، ٢٨٤)

أخرجه : البخاري كتاب الجنائز باب اذا اسلم الصبي فمات هل يصلي عليه واحمد وابوداود وابن حبان والبيهقي، والترمذي.

**لغات** : انقذه من النار، نقذ نقذا، معني نجات ورکول.

ددي روايت نه فقهاء استدلال کوي چي ديهودي او غير مسلم په عيادت کي څه حرج نشته ليکن دمجوسيانو په عيادت کي اختلاف دی او همدارنګي دفاسق او فاجر په عيادت کي اختلاف دی مګر راجح داده چي جائز دي همدارنګي امام ابو حنيفه وائي چي ددي روايت په بنياد دنابالغه اسلام معتبر دي.

**ديهودي هلک نوم**

غلام يهودي يخدم. ددي يهودي هلك نوم محدثينو عبد القدوس ليکلي دي ددينه دا استدلال هم کيدی شي چي دکافر نه خدمت اخستل جائز دي

فعقد عند راسه يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم دده سر ته نژدي کيناستو ددينه معلوميږي چي دعيادت په وخت کي دمريض دسر سره کيناستل مستحب دي، فاسلم يعني هغه هلك مسلمان شو په يو بل روايت کي داسي راځي فقال اشهد ان لااله الله وان محمد الرسول الله يعني دشهادت کلمه يي اووئيله.

الحمدلله الذي انقذه من نار تمام تعريفونه هغه ذات لره دي چاچي دا ماشوم دجهنم داور نه بچ کړو په يو بل روايت کي راځي الحمدلله الذي انقذه من نار جهنم او په يو بل روايت کي داسي دي الحمدلله الذي انقذه بي من نار.

د ابو عبدالله عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه نه روايت دی چي هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته د درد شکايت وکړو چي بدن کي يې وو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل په هغه ځايی لاس کيده په کوم ځايی چي درد دی او دری ځله بسم الله اووايه او بيا اوه ځله اووايه (اعوذ بعزة الله وقدرته من شرمااجد واحاذر) دالله دعظيم قدرت او عزت په واسطه ددي درد نه خلاصی غواړم دکوم نه چي زه په تکليف يم

مسلم کتاب السلام باب استحباب رقية المريض ومالك وابوداود والترمذي وابن ماجه وابن حبان.

وجعا وجع يوجع وجعا دمريض دردمند کيدل، الوجع: مرض او تکليف، جمع يي وجاع او اوجاع راځي

علماء وائي مستحب دادي چي په کوم ځاي درد وي هلته لاس راښکلی شي او بيا ورباندي دم واچولی شي او که صرف په دم اکتفا اوکړی شي او لاس رانه ښکلی شي نو هم صحيح ده پورتنۍ دعا ډيره مجربه دعا ده ددي روايت نه دا هم معلومه شوه چي يو سړی پخپله هم پخپل ځان دم اچولی شي صرف بل چالره د دم دپاره تلل ضروري نه دي.

## دثوبان رضي الله عنه حالات

نوم ثوبان كنيه ابو عبدالله چي په يمن كي دمشهور خاندان حمير سره يي تعلق وو ثوبان يو غلام وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه خوښه دي وي خپل خاندان ته لاړ شه او كه زمونږ سره دي اوسيدل خوښ وي نو اوسيږه ته به داهل بيتو نه شميرلي شي نو په دي بنا ثوبان په اهل بيتو كي شميرلو ته پخپل خاندان ترجيح وركړه.

هميشه به يي درسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت كولو او د رسول الله دفرمان سره به يي دخان نه زيات محبت كولو يو خل نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هيڅ كله به چاته لاس نه خوروي نو ددينه پس كه به دده نه داس چابك هم اوغورځيدو نو پخپله به وريسي كوځيدو او اوچتولو به يي خو دچانه به يي سوال نه كولو (مسند احمد).

دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دخدمت كولو په وجه يي پخپله بهترينه استفاده اوكړه په همدي وجه ابن عبدالبر ليكلي دي چي ثوبان دهغه دري كسانو نه دى چاچي احاديث محفوظ كړي دي او ددي اشاعت يي هم كړى دى (استيعاب) دمرورياتو شمير يي ١٢٧ دى (روضة الصالحين).

***************

٩٦٨ـ حَدَّثَنَا ابْنُ وَزِيرٍ الوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الأَشْعَثِ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ وَزَادَ فِيهِ، قِيلَ: " مَا خُرْفَةُ الجَنَّةِ، قَالَ: جَنَاهَا ". حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ حَدِيثِ خَالِدٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِي الأَشْعَثِ. قَالَ أَبُو عِيسَى ١٢: وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ.(١)

**ترجمه**: په دي سند سره هم دثوبان رضي الله عنه نه مروي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل كوي البته په دي كي دومره اضافه ده عرض اوكړي شو چي دجنت خرفه څه وي؟ نو ويي فرمائيل دجنت ميوي شوكول، او په يو بل سند سره دابوايوب نه او هغه دابوقلابه نه او ابو قلابه دابواسماء نه او ابو اسماء دثوبان نه او ثوبان دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي او دخالد الخزاء دروايت پشان روايت يي بيان كړي دي په دي روايت كي احمد بن عبده دابو الاشعث واسطه نه ده ذكر كړي، امام ترمذي وائي بعضي راويانو داحديث دحماد بن زيد نه نقل كړي دي ليكن مرفوع يي نه دي بيان كړي.

---

١ ـ صحيح مسلم في البر والصلة ١٣(٢٥٦٨). (تحفة الأشراف: ٢١٠٥). مسند احمد (٥ في ٢٧٧، ٢٨١، ٢٨١، ٢٨٣، ٢٨٣)

***************

٩٦٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ ثُوَيْرٍ هُوَ: ابْنُ أَبِي فَاخِتَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَخَذَ عَلِيٌّ بِيَدِي، قَالَ: انْطَلِقْ بِنَا إِلَى الْحَسَنِ نَعُودُهُ، فَوَجَدْنَا عِنْدَهُ أَبَا مُوسَى، فَقَالَ عَلِيٌّ رضي الله عنه: أَعَائِدًا جِئْتَ يَا أَبَا مُوسَى أَمْ زَائِرًا. فَقَالَ: لَا بَلْ عَائِدًا. فَقَالَ عَلِيٌّ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَعُودُ مُسْلِمًا غُدْوَةً إِلَّا صَلَّى عَلَيْهِ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُمْسِيَ، وَإِنْ عَادَهُ عَشِيَّةً إِلَّا صَلَّى عَلَيْهِ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُصْبِحَ، وَكَانَ لَهُ خَرِيفٌ فِي الْجَنَّةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، مِنْهُمْ مَنْ وَقَفَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَأَبُو فَاخِتَةَ: اسْمُهُ سَعِيدُ بْنُ عِلَاقَةَ. ()

**ترجمه** دابو فاخته سعید بن علاقه بیان دي چي علي رضي الله عنه زما لاس اونیولو او وې فرمانیل زمونږ سره حسن ته لاړ شه مونږ دهغه عیادت کوو نو مونږ دهغه سره ابو موسي اوموندلو علي رضي الله عنه اووئیل اي ابو موسي ایا ته دعیادت دپاره راغلي یې؟ او که دملاقات دپاره؟ نو هغوئ اوونیل بلکي دعیادت دپاره راغلي یم دي وخت کي علي رضي الله عنه اوونیل ما درسول الله صلي الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چي فرمانیل یې هر یو مسلمان چي دبل دمسلمان دسحر په وخت کي عیادت اوکړي نو ترمابنام پوري اویا زره فرشتي دهغه دپاره مغفرت غوازي او څوك چي په مابنام کي عیادت اوکړي نو دسحر پوري اویا زره فرشتي دده دپاره استغفار غواړي او دداسي کس دپاره به په جنت کي یو باغ وي

امام ترمذي وائي داحدیث حسن غریب دي، دعلي رضي الله عنه داحدیث په نورو سندونو هم مروي دي چي په بعضو کي موقوفاً مروي دي او په بعضو کي مرفوعا

**تشریح** په دي حدیث کي دمریض دعیادت فضیلت بیان شوی دی او هغه داچي مریض دمرض په مشقت کي مبتلا وي او دخدمت اوعلاج محتاج وي کله چي دوستان اورشته دار دده بیمار پرسي اوکړي نو دده زړه خوشحالیږي په دي وجه په دي باندي اجر ورکولی شي

***************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ التَّمَنِّي. لِلْمَوْتِ

**دمرګ دتمنا او ارمان کولو دمما نعت بیان**

٩٧٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى خَبَّابٍ وَقَدِ اكْتَوَى فِي بَطْنِهِ، فَقَالَ: مَا أَعْلَمُ أَحَدًا لَقِيَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْبَلَاءِ مَا لَقِيتُ لَقَدْ كُنْتُ وَمَا أَجِدُ دِرْهَمًا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي نَاحِيَةٍ مِنْ بَيْتِي أَرْبَعُونَ أَلْفًا. وَلَوْلَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانَا أَوْ نَهَى أَنْ نَتَمَنَّى الْمَوْتَ " لَتَمَنَّيْتُ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ خَبَّابٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** د حارثه بن مضرب بيان دي فرمائي چي زه خباب بن ارت رضي الله عنه ته ورغلم او دهغه په خيټه داور د داغونو نشانات وو هغه اوونيل ماته پته نشته چي په صحابه کرامو کي دومره مصيبت په چا راغلي وي څومره چي په ماراغلي دي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په زمانه کي به زما سره يو درهم هم نه وو مګر په دي وخت کي زما دکور په يوګوټ کي څلويښت زره دراهم پراته دي که چري رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ دمرګ دتمنا کولو نه منع کړي نه وي نو ما به ضرور دمرګ تمنا کړي وي

امام ترمذي وائي دخباب بن ارت رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دانس، ابوهريره، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دي.

****************

٩٧١_ وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: " لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ لِضُرٍّ نَزَلَ بِهِ وَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

---

[1] _ سنن ابن ماجه في الزهد ١٣ (٤٢٦٣). (تحفة الأشراف ٣٥١١) مسند احمد (٥ في ١٠٩، ١١٠، ١١١). والمؤلف في القيامة ٤٠ (٢٤٨٣) وأخرجه صحيح البخاري في المرضى ١٩ (٥٦٧٢). والدعوات ٣٠ (٦٣٤٩). والرقاق ٧ (٦٤٣٠) والتمنى ٦ (٧٢٣٤) صحيح مسلم في الذكر ٣ (٢٦٨١). سنن النسائي في الجنائز ٢ (١٨٢٤). مسند احمد (٥ في ١٠٩، ١١١، ١١٢)

[2] _ صحيح البخاري في الدعوات ٣٠ (٦٣٥١). صحيح مسلم في الذكر ٣ (٢٦٨٠). سنن النسائي في الجنائز ١ (١٨٢٢) (تحفة الأشراف ٩٩١) وأخرجه صحيح البخاري في المرضى ١٩ (٥٦٧١). صحيح مسلم في الذكر (المصدر المذكور)

**ترجمه** د انس رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په تاسو کي دي هيڅوك دمصيبت په وجه چي په ده نازل شوي وي دمرگ تمنا نه کوي بلکي داسي دي وائي

اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي " اي الله ما هغه پوري ژوندي اوساته څو پوري چي زندگي زما دپاره بهتر وي او مرگ راته راکړي هغه وخت کي کله چي مرگ زما دپاره بهتر وي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي

**لغات**: احييني: حيي حياة دسمع نه په معني د ژوندي پاتي کيدو دي او احياء ژوندي کولو ته وايي او په ادغام سره هم راځي اومصدر يي حياة دي په معني دشرمنده کيدو او شرمنده کولو

توفني. توفي توفيا په معني دپوره کولو اومودي پوره کولو سره دي توفي پـه معـني دمـرگ ورکولـو دي ، پس الله تعالي متوفي او بنده متوَفیٰ دي وفات په معني دمرگ او جمع يي وفيات راځي.

**تشريح** : "لايتمنين احدكم الموت" دمرگ تمني کول په دي وجه منع دي چي دمستقبل علم دهيچا سره نشته چي په راتلونکي وخت کي به څه کيږي او دده په حق کي مرگ بهتر دی او که ژوند . دويمه خبره داده چي دمرگ تمنا کول په دي وجه منع دي چي دمصيبت په وخت کي دمرگ په تمنا کولو سره بي صبري موندلی شي او حال دادی چي په شريعت کي په مصيبت دصبر کولو حکم شوی دی او که څوك دمرگ دعا هم کوي نو په پورتني حديث کي چي کومه دعا راغلي ده هغه دي اوغواړي يعني ای پرردگاره که زما دپاره مرگ بهتر وي نو مرگ راکړي او که ژوندي پاتي کيدل بهتر وي نو زندگي مي اوږده کړي

***************

## ٤_ باب مَا جَاءَ فِي التَّعَوُّذِ لِلْمَرِيضِ

### په مريض باندي ددم اچولو بيان

٩٧٢_ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ هِلَالٍ الْبَصْرِيُّ الصَّوَّافُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، "أَنَّ جِبْرِيلَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ

---

سنن ابي داود في الجنائز ١٣ (٣١٠٨) . سنن النسائي في الجنائز (١٨٢١) . سنن ابن ماجه في الزهد ٣١ (٤٢٦٥) مسند احمد (١ في ١٠٣ ١٦٣ ١٧١، ١٩٥ ٢٠٨، ٢٤٧)

اشْتَكَيْتَ. قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: بِاسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيكَ. مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ وَعَيْنٍ حَاسِدٍ. بِاسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ وَاللَّهُ يَشْفِيكَ ".[1]

**ترجمه** دابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي جبرائيل نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته راغلو او تپوس يي اوكړو اي محمد ايا ته بيمار يي؟ ويي فرمائيل هو. جبرائيل عليه السلام اوونيل

بِاسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيكَ. مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ وَعَيْنٍ حَاسِدٍ. بِاسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ وَاللَّهُ يَشْفِيكَ"

****************

٩٧٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ. قَالَ: دَخَلْتُ أَنَا وَثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. فَقَالَ ثَابِتٌ: يَا أَبَا حَمْزَةَ اشْتَكَيْتُ؟ فَقَالَ أَنَسٌ: أَفَلَا أَرْقِيكَ بِرُقْيَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: بَلَى. قَالَ: " اللَّهُمَّ رَبَّ النَّاسِ مُذْهِبَ الْبَاسِ. اشْفِ أَنْتَ الشَّافِي لَا شَافِيَ إِلَّا أَنْتَ. شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ أَنَسٍ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَسَأَلْتُ أَبَا زُرْعَةَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ. فَقُلْتُ لَهُ: رِوَايَةُ عَبْدِ الْعَزِيزِ. عَنْ أَبِي نَضْرَةَ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَصَحُّ. أَوْ حَدِيثُ عَبْدِ الْعَزِيزِ. عَنْ أَنَسٍ. قَالَ: كِلَاهُمَا صَحِيحٌ. وَرَوَى عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ. عَنْ أَبِي نَضْرَةَ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. وعَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ. عَنْ أَنَسٍ.[2]

**ترجمه** دعبدالعزيز بن سهيل بيان دي فرمائي چي زه او ثابت بناني دواړه انس بن مالك رضي الله عنه ته ورغلو ثابت اوونيل اي ابو حمزه زه بيمار شوي يم، انس رضي الله عنه اوونيل ايا تا باندي درسول الله صلي الله عليه وسلم دم وانه چوم؟ هغه اوونيل ولي نه نو انس رضي الله عنه اوفرمائيل

" اللَّهُمَّ رَبَّ النَّاسِ مُذْهِبَ الْبَاسِ. اشْفِ أَنْتَ الشَّافِي لَا شَافِيَ إِلَّا أَنْتَ. شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا"

---

[1] _ صحيح مسلم في السلام ١٦ (٢١٨٦) سنن ابن ماجه في الطب ٣٦ (٣٥٢٣). (تحفة الأشراف : ٤٣٦٣) مسند احمد (٣ في ٢٨، ٥٦)

[2] _ صحيح البخارى في الطب ٣٨ (٥٧٤٢). سنن ابي داود في الطب ١٩ (٣٨٩٠) (تحفة الأشراف : ١٠٣٣) مسند احمد (٣ في ١٥١)

يعني اي الله دمخلوقاتو ربه اوّ دمصيبتونو ختمونكيه شفا راكړي او خاص ته شفا وركولو والا يي او ستا نه علاوه بل څوك شفا وركونكي نشته او داسي شفا راكړي چي هيڅ قسم بيماري مي باقي پاتي نشي

امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري حديث حسن صحيح دي. ما دابوذرعه نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو چي دعبدالعزيز بن صهيب روايت په سند د ابي نضرة عن ابي سعيد الخدري زيات صحيح دي او كه دعبدالعزيز روايت دانس نه؟ هغه اوونيل دواړه صحيح دي، عبدالصمد بن عبدالوارث په سند د عبدالوارث عن ابيه عن عبدالعزيز بن صهيب عن ابي نضره عن ابي سعيد سره نقل كړي دي او عبدالعزيز بن صهيب دانس نه هم نقل كړي دي، او په دي باب كي دانس او عائشه رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي.

***************

## ٥_ باب مَا جَاءَ فِي الْحَثِّ عَلَى الْوَصِيَّةِ

### دوصيت داهميت بيان

٩٧٤_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا حَقُّ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَبِيتُ لَيْلَتَيْنِ وَلَهُ شَيْءٌ يُوصِي فِيهِ إِلَّا وَوَصِيَّتُهُ مَكْتُوبَةٌ عِنْدَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په يو مسلمان چي دوه شپي په داسي حال كي تيري شي چي دده سره دوصيت كولو لائق كوم څيز موجود وي نو په ده باندي لازم دي چي دده سره ددي ليكلي وصيت پروت وي.

امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن ابي اوفي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

---

[1] _ صحيح مسلم في الوصايا ١ (١٦٢٧) سنن ابن ماجه في الوصايا ٢ (٢٦٩٩)، (تحفة الأشراف: ٧٩٢٢) مسند احمد (٢ في ٥٧ ٨٠)، (ويأتي عند المؤلف في الوصايا ٣ (٢١١٨)، وأخرجه صحيح البخاري في الوصايا ١ (٢٧٣٨) صحيح مسلم في الوصايا، سنن النسائي في الوصايا ١ (٣٦٤٥، ٣٦٤٦، ٣٦٤٨)، موطا امام مالك في الوصايا ١ (١)، مسند احمد (٢ في ٣، ١٠، ٣٤، ٥٠، ١١٣)، سنن الدارمي في الوصايا ١ (٣٢٢٩)

**تشريح** وَقَالَ تَعَالَى : ﴿ وَالْعَصْرِ إِنَّ الإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ إِلاَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ﴾ [العصر :٢١]

[قسم دي په زمانه چي جنس انسان په تاوان كي دي مگر هغه كسان چي مومنان دي او نيك عملونه كوي او وصيت كوي په حق [او تلقين يي كړي دي يوبل ته دصبر كولو]

دحسن بصري په نزد دعصر نه مراد دزوال نه دنمر پريوتو پوري وخت مراد دى او دقتاده په نزد دورځي اخري حصه مراد ده او دمقاتل په نزد دمازيگر مونځ مراد دى او دعامومفسرينو په نزد زمانه مراد ده.

ان الانسان لفي خسر ، دخسر معني اصل كته ضايع كيدل دي كه انسان خپله ژندگي داخرت په اعمالو كي خرج نكړي نو دده اصل سرمايه عمر دى هغه به ضايع شي ددي تاوان نه دبچ كيدو صرف يوه لار ده چي په انسان كي دي څلور صفات وي اول ايمان، دويم اعمال صالحه كول، دريم او نورو ته هم په دي باندي وصيت كول ، څلورم په هر تكليف دصبر تاكيد كول تواصي بالحق، تواصي دوصيت نه ماخوذ دى وصيت ديته ونيلى شي چي څوك چاته په مؤكد او موسر انداز كي نصيحت اوكړي همدا وجه ده چي مړ كيدونكى دمرگ په وخت كي څه وائي هغي ته هم وصيت ونيلى شي دمخكنو دوه اجزاؤ تعلق دخپل ذات سره دى او داخري دوه اجزاؤ تعلق دعامو مسلمانانو دهدايت سره دى.

تواصي بالصبر، دصبر معني خپل نفس منع كول دي نو دتمامو اعمالو صالحه پخپله هم پابندي كول او دگناهونو نه بچ كيدل هم په دي كي شامل دي.

****************

## ٦ـ باب مَا جَاءَ فِي الْوَصِيَّةِ بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ

### په دريمه يا څلورمه حصه دمال كي دوصيت كولو بيان

٩٧٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، عَنْ سَعْدِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: عَادَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا مَرِيضٌ، فَقَالَ: " أَوْصَيْتَ ". قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: " بِكَمْ ". قُلْتُ: بِمَالِي كُلِّهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، قَالَ: " فَمَا تَرَكْتَ لِوَلَدِكَ ؟ " قُلْتُ: هُمْ أَغْنِيَاءُ بِخَيْرٍ، قَالَ: " أَوْصِ بِالْعُشْرِ ". فَمَا زِلْتُ أُنَاقِصُهُ حَتَّى قَالَ: " أَوْصِ بِالثُّلُثِ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ ". قَالَ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ: وَنَحْنُ نَسْتَحِبُّ أَنْ يَنْقُصَ مِنَ الثُّلُثِ لِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَعْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ: " وَالثُّلُثُ كَبِيرٌ ". وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ

**الْعِلْمِ لَا يَرَوْنَ أَنْ يُوصِيَ الرَّجُلُ بِأَكْثَرَ مِنَ الثُّلُثِ، وَيَسْتَحِبُّونَ أَنْ يَنْقُصَ مِنَ الثُّلُثِ. قَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ: كَانُوا يَسْتَحِبُّونَ فِي الْوَصِيَّةِ الْخُمُسَ دُونَ الرُّبُعِ، وَالرُّبُعَ دُونَ الثُّلُثِ، وَمَنْ أَوْصَى بِالثُّلُثِ فَلَمْ يَتْرُكْ شَيْئًا وَلَا يَجُوزُ لَهُ إِلَّا الثُّلُثُ.** [1]

**ترجمه** دسعد بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم زما عيادت اوكړو او زه بيمار وم نو تپوس يي رانه اوكړو ايا وصيت دي كړي دي، ما عرض اوكړو هو كړي مي دي راته يي اوفرمائيل په څومره كي دي وصيت كړي دي ما اوونيل دالله په لار كي مي دخپل ټول مال باره كي وصيت كړي دي نو تپوس يي اوكړو خپل اولاد ته دي څه پريخودلي دي؟ما عرض اوكړو هغوئ دمال نه بي پرواه دي راته يي اوفرمائيل دلسمي حصي وصيت اوكړه، ما به هسلسل وربانديدا زياتوله تردي چي وبي فرمائيل د دريمي حصي وصيت اوكړه او دريمه حصه هم زياته ده، ابو عبدالرحمن نساني وائي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم ددي فرمان په وجه "چي ثلث هم زيات دي دا مستحب ګڼړو چي دثلث نه په كم كي دي وصيت اوكړي شي.

امام ترمذي وائي دسعد رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او دسعد دا حديث په نورو سندونو هم مروي دي او په دي باب كي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم حديث مروي دي. او دابن عباس نه د "والثلث كثير" په ځاي باندي "والثلث كبير" يعني ثلث هم لوي مقدار دي مروي دي، او داهل علمو په همدي باندي عمل دي هغوئ دا خبره صحيح ګڼړي چي يو كس بخپل مال كي دثلث نه زيات وصيت اوكړي او دا مستحب ګڼړي چي دثلث نه په كم وصيت اوكړي، دسفيان ثوري قول دي علماء دڅلورمي حصي په مقابل كي پنځمه حصه او د دريمي په مقابل كي څلورمه حصه مستحب ګڼړي او ونيل به يي چي ما دثلث وصيت اوكړو او هغه هيڅ پرينخودو مګر دده دپاره دثلث نه دزيات وصيت كول جائز ګڼړي.

**تشريح** : "فالثلث يا رسول الله قال الثلث كثير" يعني اى دالله رسوله دمال د دريمي حصي

---

[1] ـ سنن النسائي في الوصايا ٣ (٣٦٦١) . (تحفة الأشراف ٣٨٩٨) وأخرجه صحيح البخاري في الجنائز ٣٦ (١٢٩٥). والوصايا ٢ (٢٧٤٢) ومناقب الأنصار ٤٩ (٣٩٣٦) . والمغازي ٧٧ (٤٣٩٥) والنفقات ١ (٥٣٥٤) المرضى ١٣ (٥٦٥٩). والدعوات ٤٣ (٦٣٧٣) والفرائض ٦ (٦٧٣٣) صحيح مسلم في الوصايا ٢ (١٦٢٨) . سنن ابي داود في الوصايا ٢ (٢٨٦٤). سنن النسائي في الوصايا ٣ (٣٦٥٦، ٣٦٦٠، ٣٦٦١، ٣٦٦٣، ٣٦٦٥) . سنن ابن ماجه في الوصايا ٥ (٢٧٠٨) . موطا امام مالک في الوصايا ٣ (٤) . مسند احمد (١ في ١٦٨، ١٧٢، ١٧٦، ١٧٩) سنن الدارمي في الوصايا ٧ (٣٢٢٨، ٣٢٢٩) والمؤلف في الوصايا ١ (٢١١٦)

وصيت به اوكرم ورته يي اوفرمائيل هو، د دريمي حصي وصيت كولى شي. ددي حديث نه علماؤ استدلال كړى دى چي دمرګ په وخت کي يوسړى پخپل مال کي د دريمي حصي نه اضافي وصيت نشي كولى علماؤ ليكلي دي كه چري دا مريض چي د دريمي حصي نه يي دزيات وصيت كړى وي او په دي مرض كي مړ شي نو په دي صورت كي به دوارثانو حق تلفي كري وي اوكه ژوندى پاتي شو نو بيابه دي خالي لاس پاتي شي او په قران كريم كي ددينه منع راغلي ده لكه چي الله تعالى فرمائيلي دي

"ولا تبسطها كل البسط فتقعد ملوما محسورا" يعني لاسونه به بالكل نه پراخوي هسي نه چي قابل دملامتيا او محتاج پاتي شي.

****************

## ٧ـ باب مَا جَاءَ فِي تَلْقِينِ الْمَرِيضِ عِنْدَ الْمَوْتِ وَالدُّعَاءِ لَهُ عِنْدَهُ

**دزنكدن په وخت كي مريض ته دلااله الا الله تلقين كول او دده په حق كي ددعا غوښتلو بيان**

٩٧٦ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُمَارَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَعَائِشَةَ، وَجَابِرٍ، وَسُعْدَى الْمُرِّيَّةِ وَهِيَ امْرَأَةُ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابوسعيدخدري رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو خپل مړه كيدونكو مريضانو ته كوم چي بالكل مرګ ته نزدي شوي وي دلااله الاالله تلقين كوئ.

امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري حديث حسن غريب صحيح دي او په دي باب كي د ابوهريره، ام سلمه، عائشه، جابر، سعدي مريه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او سعدي مريه دطلحه بن عبيدالله ښځه ده

**لغات**: لقنوا لقن يلقن تلقينا معني بالمشافه پوهول

**تشريح** په دي روايت كي دمړو نه مراد قريب الموت كسان دي چي دمرګ علامات ورباندي ظاهر

---

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ١ (٩١٦). سنن ابي داود في الجنائز ٢٠ (٣١١٧). سنن النسائي في الجنائز ٢٠ (٣١١٧) سنن النسائي في الجنائز ٣ (١٨٢٧). سنن ابن ماجه في الجنائز ٣ (١٤٤٥) (تحفة الأشراف. ٤٤٠٣). مسند احمد (٣ في ٣)

شوي دي، دمرګ يوه علامه داده چي دمريض ښپي سستي شي او که څوك يې ودروي نو اودريدی نشي
يا دا چي دپوزي هډوکی يې کوږ شي او ښيته يې کيني دتلقين نه مطلب دادی چي دمړکيدونکي سره به
کيني او لااله الاالله به وائي ددي دپاره چي هغه يې واوري علماء وائي په دي وخت کي هغه ته داسي ونيل
نه دي پکار چي ته هم اووايه کيدی شي چي دمرض دسختوالي په وجه دهغه دخولي نه دانکار لفظ
اوځي

## پدې کې يوغلط رسم

مولانا اشرف علي وايي دتلقين مطلب دادي چي د مړي سره کيني او لااله الاالله وايي تردي چي هغه يې
واوري او وېي وايي او ساه پکي نه اخلي مسلسل يې وايي دا سراسر دجهالت کار دي الله دي مونږ ورنه
بچ کړي

علامات ذ مرګ دا دی.

(۱) چی د قريب المرګ دواړه قدمونه سستيږی.

(۲) اودريدی نه شی.

(۳) پوزه کګيږی.

(۴) اود اګو(خصتينو) څرمن ئې اوږده شی

دمحتضر په ايخودو کښ دوه اقوال دي:

(۱)چی دی په ښی اړخ قبلې طرف ته څملولی شی.ځکه چی د مړی په قبر کي د ايخودو هم
دا کيفيت مسنون دي.نوپه دی قياس کولو سره به قريب المرګ هم په دی کيفيت څملولی
شی.ځکه چی دا کس قبر ته نزدی رسيدلی دي.

(۲) صاحب دهدايه رحمه الله وائی.چی زمونږ په علاقو ماوراء النهر وغيره کي په ستونی
ستق څملول غوره ګنړ لی شی.ځکه چی دا کيفيت د روح وتلو دپاره ډير آسان دي.

په دی صورت کي دمړی د سر لاندې تکيه وغيره څه اوچت ځيز ايخودل پکار دی.چی دده
مخ قبلې طرف ته وی . آسمان طرف ته نه وی.خو په دی کيفيت کي هيڅ نص نشته.صرف
اټکلی خبره ده.نوځکه دی ته هيڅ اعتبار نشته .

دويم عمل دادي.چی قريب الموت ته د شهادتينو تلقين اوکړی.يعنی ده سره کينی.اوپه
اوچت آواز "أشهد أن لا اله إلا الله و أشهد أن محمد رسول الله"

اووائی.قريب الموت ته ددی کلمی ونيلو حکم نه کوی.ځکه چی په ده ډيرد سختئ وخت
وی.نعوذ بالله که ده انکار اوکړو .نو خاتمه به ئې په کفر شی.

***************

٩٧٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا حَضَرْتُمُ الْمَرِيضَ أَوِ الْمَيِّتَ فَقُولُوا خَيْرًا، فَإِنَّ الْمَلاَئِكَةَ يُؤَمِّنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ ". قَالَتْ: فَلَمَّا مَاتَ أَبُو سَلَمَةَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبَا سَلَمَةَ مَاتَ، قَالَ: " فَقُولِي: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَلَهُ، وَأَعْقِبْنِي مِنْهُ عُقْبَى حَسَنَةً ". قَالَتْ: فَقُلْتُ: فَأَعْقَبَنِي اللَّهُ مِنْهُ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنْهُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: شَقِيقٌ هُوَ: ابْنُ سَلَمَةَ أَبُو وَائِلٍ الأَسَدِيُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُمِّ سَلَمَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَانَ يُسْتَحَبُّ أَنْ يُلَقَّنَ الْمَرِيضُ عِنْدَ الْمَوْتِ، قَوْلَ: لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا قَالَ ذَلِكَ مَرَّةً فَمَا لَمْ يَتَكَلَّمْ بَعْدَ ذَلِكَ، فَلاَ يَنْبَغِي أَنْ يُلَقَّنَ وَلاَ يُكْثَرَ عَلَيْهِ فِي هَذَا، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ أَنَّهُ لَمَّا حَضَرَتْهُ الْوَفَاةُ، جَعَلَ رَجُلٌ يُلَقِّنُهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَكْثَرَ عَلَيْهِ، فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللَّهِ: إِذَا قُلْتُ مَرَّةً فَأَنَا عَلَى ذَلِكَ مَا لَمْ أَتَكَلَّمْ بِكَلاَمٍ، وَإِنَّمَا مَعْنَى قَوْلِ عَبْدِ اللَّهِ: إِنَّمَا أَرَادَ مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ آخِرُ قَوْلِهِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ. [1]

**ترجمه** دام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چي تاسو يو مريض يا يو مړي ته ورشئ نو دنيكئ خبري كوئ دا خكه تاسو چي څه وائي په هغې باندي فرشتي امين وائي، كله چي ابوسلمه وفات شو نو زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضره شوم او عرض مي اوكړو اي دالله رسوله ابوسلمه خو وفات شوه رسول الله اوفرمائيل ته دا دعا وايه "اللهم اغفرلي وله واعقبني منه عقبي حسنة" يعني اي الله ماته او هغه ته مغفرت اوكړي او ماته دده بدله راكړي دام سلمه بيان دي كله چي ما دا دعا اولوستله نو الله تعالي ماته داسي هستي راكړه كوم چي دابوسلمه نه بهتروو يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم

امام ترمذي وائي دام سلمه حديث حسن صحيح دي، دا به مستحب ګڼرلي كيدل چي مريض ته دمرګ په وخت كي دلااله الا الله تلقين اوكړي شي، دبعضي اهل علمو قول دي كله چي مړي دي لره يو خل اووائي او ددينه پس يي اونه وائي نو مناسب نه ده چي دهغه په وړاندي بار بار دا

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ٣ (٩١٩)، سنن ابي داود في الجنائز ١٩ (٣١١٥) سنن النسائي في الجنائز ٧ (١٨٢٦)، سنن ابن ماجه في الجنائز ٣ (١٤٤٧)، (تحفة الأشراف ١٨١٦٢) مسند احمد (٦ في ٢٩١، ٣٠٦) وأخرجه سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٥ (١٥٩٨) موطا امام مالک في الجنائز ١٣ (٤٢)

کله تکرار کړي شي ـ دابن مبارك نه په دي باره کي مروي دي کله چي دهغه دمرګ وخت راغي نو يو کس ورته د لااله الاالله تلقين شروع کړو او بار بار يي کولو عبدالله بن مبارك ورته اووئيل کله چي دي يو ځل اووئيل نو زه اوس په همدي باندي قائم يم چي څو پوري مي نوري خبري نه وي کړي دعبدالله ددي قول مطلب دادي ددينه دهغه دا مطلب وو کوم چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي دچا اخري خبره "لااله الاالله " وي نو هغه به جنت ته داخليږي

**تشريح** : کله چي دام سلمه خاوند ابو سلمه وفات شو نورسول الله صلي الله عليه وسلم ام سلمه ته ددي دعا وئيلو تلقين اوکړو "اللهم اغفرلي وله واعقبني منه عقبي حسنة" يعني اى الله ماته دده نه بهتر بدل راکړي معلومه شوه چي دمړي وارثانو لره پکار دي چي هغوئ دي دده کمي ډکولو دپاره دعا اوغواړي دام سلمه بيان دی فرمائي چي ما به سوچ کولو چي لا دابو سلمه نه زيات ښه خاوند به ماته څنګ ملاؤ شي ليکن کله چي مي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره نکاح اوکړه نو ماته هله ددي دعا اثر معلوم شو.

دام سلمه رضي الله عنها حالات دحديث ۸۲ په ضمن کي تير شوي دي

کله چي کوم بنده ته کوم مصيبت اورسيږي نو ذکر شوي دعا دي اولولي يعني څه چي زمونږ سره دي سره زمونږه ټول دالله ملکيت دی او هم هغه پيداکړي يو او هم هغه ته به واپس ورځو اګر چي ددي څيز نسبت مونږ ته کيږي ليکن په حقيقت کي دالله ملکيت دی پس دچا په زړه کي چي دا خبره وي او په هر مصيبت کي مبتلا شي نو دی به دالله لمن پري نږدي او هر مصيبت به ورته اسان شي.

****************

## ۸ـ باب مَا جَاءَ فِي التَّشْدِيدِ عِنْدَ الْمَوْتِ

### دمرګ په وخت کي دسختئ بيان

۹۷۸ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنِ ابْنِ الْهَادِ. عَنْ مُوسَى بْنِ سَرْجِسَ. عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ. عَنْ عَائِشَةَ. أَنَّهَا قَالَتْ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِالْمَوْتِ وَعِنْدَهُ قَدَحٌ فِيهِ

مَاءٌ، وَهُوَ يُدْخِلُ يَدَهُ فِي الْقَدَحِ ثُمَّ يَمْسَحُ وَجْهَهُ بِالْمَاءِ، ثُمَّ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى غَمَرَاتِ الْمَوْتِ، وسَكَرَاتِ الْمَوْتِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها. بيان دي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات كيدو وخت كي ليدلي وو او دهغه سره يوه پياله وه چي اوبه پكي پرتي وي هغه به پيالي ته خپل لاس دننه كولو او په مخ به يي رابنكلو او دا دعا به يي ونيله "اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى غَمَرَاتِ الْمَوْتِ، وسَكَرَاتِ الْمَوْتِ" يعني اي الله دمرگ په سختيو او تكليفونو كي زما مدد اوكري، امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي.

**لغات**: اعقبني اعقاب چالره جانشين مقررول ، يا خه بدله وركول ، العقوبة العقبني كار بدله يا دهرخيز اخر، اخرت

**تشريح**. په اخري ورخو كي رسول الله صلي الله عليه وسلم په سخته تبه كي مبتلا وو ددي تبي دحرارت كمولو دپاره به رسول الله باربار خپل لاس په اوبو لمدولو او پخپل مخ به يي رابنكلو او ورسره به يي دا دعا غوښتله چي اى الله دمرگ سختي راباندي اسانه كري.

دپورتني حديث نه معلومه شوه چي انسان ته په اخري وخت كي پكار دي چي دالله تعالي دمدد طلب اوكري

## ديوسوال جواب

سوال: رسول الله صلي الله عليه وسلم باندي دوفات كيدو په وخت كي دومره تكليف ولي وو

جواب: دسكرات الموت په وخت كي په رسول الله دا كيفيت خكه طاري شوى وو چي دامت خلق ددي په سبب دخپل مرگ په باره كي زيات پريشان نشي مطلب دادى چي كله خلقو ته معلومه شوه چي په سكرات الموت كي درسول الله دا كيفيت وو نو باقي خلق خو به پخپله دمرگ په پريشانئ باندي صبر كوي او چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم پريشاني واوري نو دوئ ته به خپله پريشاني اسانه ښكاره شي

******************

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ٣ (٩١٩) . سنن ابي داود في الجنائز ١٩ (٣١١٥) . سنن النسائي في الجنائز ٧ (١٨٢٦) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٣ (١٤٤٧) . (تحفة الأشراف : ١٨١٦٣) . مسند احمد (٦ في ٢٩١ . ٣٠٢) وأخرجه سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٥ (١٥٩٨) . موطا امام مالك في الجنائز ١٢ (٤٢)

۹۷۹_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّارُ الْبَغْدَادِيُّ. حَدَّثَنَا مُبَشِّرُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْحَلَبِيُّ. عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: مَا أَغْبِطُ أَحَدًا بِهَوْنِ مَوْتٍ بَعْدَ الَّذِي رَأَيْتُ مِنْ شِدَّةِ مَوْتِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا زُرْعَةَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ. وَقُلْتُ لَهُ: مَنْ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْعَلَاءِ؟ فَقَالَ: هُوَ الْعَلَاءُ بْنُ اللَّجْلَاجِ. وَإِنَّمَا عَرَّفَهُ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. ([1])

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي درسول الله صلي الله عليه وسلم دمرگ كوم شدت چي ما ليدلي دي دهغي نه پس ما په اسانۍ سره دچا دروح په وتلو غبطه نه كولو

امام ترمذي وائي ما دابوذرعه نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو چي عبدالرحمن بن علاء څوك دي هغوئ اوونيل علاء بن اللجلاج دي او ماته دا حديث په همدي سند معلوم دي

****************

۹۸۰_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْحَسَنِ. قَالَ: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. قَالَ: حَدَّثَنَا حُسَامُ بْنُ الْمِصَكِّ. قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللهِ. يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ نَفْسَ الْمُؤْمِنِ تَخْرُجُ رَشْحًا، وَلَا أُحِبُّ مَوْتًا كَمَوْتِ الْحِمَارِ". قِيلَ: وَمَا مَوْتُ الْحِمَارِ؟ قَالَ: "مَوْتُ الْفَجْأَةِ".([2])

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي دمؤمن روح په مزه مزه لږ لږ وخي لكه چي دچا دجسم نه خوله خنګه اوخي او ماته دخر پشان مرګ خوښ نه دي، عرض اوكړي شو دخر مرګ څنګه وي وېي فرمائيل ناڅاپي وي

****************

## ۹_ باب

## دسابقه باب متعلق يوبل باب

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ٦٤ (١٦٢٣). (تحفة الأشراف ١٧٥٥٦)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٩٥٣٢)

٩٨١_ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا مُبَشِّرُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْحَلَبِيُّ، عَنْ تَمَّامِ بْنِ نَجِيحٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ حَافِظَيْنِ رَفَعَا إِلَى اللَّهِ مَا حَفِظَا مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ فَيَجِدُ اللَّهُ فِي أَوَّلِ الصَّحِيفَةِ وَفِي آخِرِ الصَّحِيفَةِ خَيْرًا إِلَّا قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: أُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لِعَبْدِي مَا بَيْنَ طَرَفَيِ الصَّحِيفَةِ".(1)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي هر كله چي داعمالو دوه ليكونكي فرشتي د ورځي او دشپي دچا كوم عمل ليكي نو الله تعالي ته يې وړي، نو بيامومي الله تعالي په اول ددي صحيفه كي او په اخر ددي صحيفه كي خير لره نو الله تعالي اووائي زه تاسو ګواه كوم چي ما خپل بنده ته مغفرت اوكړو په مينځ دهغه ځه كي چي په دواړو طرفونو ددي صحيفه كي دي.

***************

## ١٠_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الْمُؤْمِنَ يَمُوتُ بِعَرَقِ الْجَبِينِ

### دمرګ په وخت كي دمومن په تندي باندي خوله راځي

٩٨٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ الْمُثَنَّى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُؤْمِنُ يَمُوتُ بِعَرَقِ الْجَبِينِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا نَعْرِفُ لِقَتَادَةَ سَمَاعًا مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ.(2)

**ترجمه** دعبدالله بن بريده رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي مومن دتندي دخولي سره وفات كيږي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي او په دي باب كي دابن مسعود رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي دبعضي اهل علمو قول دي چي مونږ ته دقتاده نه دعبدالله بن بريده دسماع باره كي علم نشته

***************

1 _ تفرد به المؤلف (التحفه: ٥٣٣)

2 _ سنن النسائي في الجنائز ٥ (١٨٢٩) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٥ (١٤٥٢) . مسند احمد (٥ في ٣٥٠، ٣٥٧، ٣٦٠) . (تحفة الأشراف: ١٩٩٢)

## ١١_ باب

### دمومن دمرګ متعلق یو بل باب

٩٨٣_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ الْكُوفِيُّ، وَهَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْبَزَّازُ الْبَغْدَادِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سَيَّارٌ هُوَ: ابْنُ حَاتِمٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَى شَابٍّ وَهُوَ فِي الْمَوْتِ، فَقَالَ: "كَيْفَ تَجِدُكَ". قَالَ: وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنِّي أَرْجُو اللَّهَ، وَإِنِّي أَخَافُ ذُنُوبِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَجْتَمِعَانِ فِي قَلْبِ عَبْدٍ فِي مِثْلِ هَذَا الْمَوْطِنِ إِلَّا أَعْطَاهُ اللَّهُ مَا يَرْجُو وَآمَنَهُ مِمَّا يَخَافُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. ([1])

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم يو نوجوان ته ورغلو او هغه دمرګ په سختئ کې راګير وو ورته يې اوفرمائيل دخان باره کې څنګه محسوسوې؟ هغه عرض اوکړو په الله مې دې قسم وي اې دالله رسوله زه دالله نه اميد هم لرم او دخپلو ګناهونو نه ويريږم هم رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا دواړه څيزونه ددې وخت پشان وخت کې چې دکوم بنده په زړه کې جمع شي نو الله تعالي ورته هغه څيز ورکوي دکوم چې ورنه دې اميد لري او دهغه څيز نه يې محفوظ ساتي دکوم نه چې دې ويريږي

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دې، او بعضي راويانو داحديث دثابت نه او ثابت دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل کړې دې.

***************

## ١٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ النَّعْيِ

### دمرګ دخبر ورکول دکراهت بيان

٩٨٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا حَكَّامُ بْنُ سَلْمٍ، وَهَارُونُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِيَّاكُمْ وَالنَّعْيَ فَإِنَّ النَّعْيَ مِنْ عَمَلِ الْجَاهِلِيَّةِ". قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: وَالنَّعْيُ أَذَانٌ بِالْمَيِّتِ. وَفِي الْبَاب، عَنْ حُذَيْفَةَ. ([2])

---

[1] _ سنن النسائي في عمل اليوم والليلة ٣٠٨ (١٠٦٢). سنن ابن ماجه في الزهد ٣١ (٤٢٦١) (تحفة الأشراف ٢٦٢)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٩٣٦١)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دنعي (دمرګ خبر وركولو) نه منع شئ ځكه چي دا دجاهليت كار دي عبدالله بن مسعود وائي دنعي مطلب دمري دمرګ اعلان كول دي
امام ترمذي وائي په دي باب كي دحذيفه رضي الله عنه نه هم روايث مروي دي

***************

٩٨٥_ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْوَلِيدِ الْعَدَنِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ. وَالنَّعْيُ أَذَانٌ بِالْمَيِّتِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، وَأَبُو حَمْزَةَ هُوَ: مَيْمُونُ الأَعْوَرُ وَلَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. قَالَ ١٢ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ النَّعْيَ، وَالنَّعْيُ عِنْدَهُمْ أَنْ يُنَادَى فِي النَّاسِ أَنَّ فُلَانًا مَاتَ لِيَشْهَدُوا جَنَازَتَهُ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا بَأْسَ أَنْ يُعْلِمَ أَهْلَ قَرَابَتِهِ وَإِخْوَانَهُ، وَرُوِيَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ، أَنَّهُ قَالَ: لَا بَأْسَ بِأَنْ يُعْلِمَ الرَّجُلُ قَرَابَتَهُ. (1)

**ترجمه** په دي سند سره هم دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه دسابقه روايت هم معني حديث مروي دي او راوي مرفوع نه دي ذكر كړي او په دي روايت كي ددي خبري ذكر هم نشته چي نعي دمرګ داعلان كولو نوم دي.
امام ترمذي واي دعبدالله بن مسعود حديث حسن غريب دي او دا دعنبسه دحديث نه كوم چي هغه دابوحمزه نه نقل كړي دي زيات صحيح دي، او دابو حمزه نه مراد ميمون اعور دي او ميمون دمحدثينو په نزد قوي نه دي، بعضي اهل علمو نعي مكروه ګرځولي ده او ددوي په نزد نعي ديته وائي چي په خلقو كي اعلان اوكړي شي چي فلاني مړ شو تردي چي دده په جنازه كي شريك شي، دبعضي اهل علمو قول دي په دي كي هيڅ حرج نشته چي دده رشته دارو او دده رونړو ته دده دمرګ خبر وركړي شي، ابراهيم نخعي وائي په دي كي هيڅ حرج نشته چي يو سړي ته دده درشته دار دمرګ خبر وركړي شي

***************

٩٨٦_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْقُدُّوسِ بْنُ بَكْرِ بْنِ خُنَيْسٍ، حَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ سُلَيْمٍ الْعَبْسِيُّ، عَنْ بِلَالِ بْنِ يَحْيَى الْعَبْسِيِّ، عَنْ حُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ، قَالَ: إِذَا مِتُّ فَلَا تُؤْذِنُوا بِي إِنِّي أَخَافُ

1. تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٩٤٦١)

أَنْ يَكُونَ نَعْيًا فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَنْهَى عَنِ النَّعْيِ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دحذيفه بن اليمان رضي الله عنه نه روايت دي فرمائيل به يي كله چي زه مر كيږم زما دمرګ اعلان به نه کوئ ، ځکه چي ما سره ویره ده چي چرته دا خبره نعي نه وي ځکه چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دنعي ممانعت اوريدلي دي امام ترمذي واني داحديث حسن صحيح دي

**دراوي حذيفه بن يمان رضي الله عنه حالات**

نوم حذيفه كنيه ابو عبدالله صاحب السر لقب دقبيله بني عطفان سره يي تعلق وو دده پلار حذيفه په جاهليت کي څوك قتل کړی دی نو په دي وجه ددشمنۍ نه دبچ کيدو دپاره په مدينه کي اوسيدو حذيفه دمديني نه مکي ته لاړو داسلام قبلولو دپاره، دغزوه بدر نه علاوه تمامو غزواتو کي شريك پاتي شوی دی او عهد نبوي يي په مدينه کي تير کړی دی او بيا ددينه پس عراق، کوفه، بصيبين او مدائن ته منتقل شوی دی او په نصيبين کي يي شاګردي هم کړي ده (اسد الغابه).

عمر فاروق رضي الله عنه دعراق فتح كيدو نه پس په دجله کي حذيفه رضي الله عنه امير مقرر کړو (کتاب الخراج لامام ابو يوسف او بيا دمدائن والي مقرر کړی شو

حذيفه رضي الله عنه دفقه او حديث لوي عالم وو او دمنافقانو په پيژندو کي يي خصوصي مهارت وو په همدي وجه ورته درسول الله صلي الله عليه وسلم رازدار ونيلی شي دی پخپله وائي ددي وخت نه دقيامته پوري راتلونکي ټولي فتني پيژنم، ليکن ددينه دي څوك دا معلومه نکړي چي زما نه علاوه بل چاته نه دي معلومي وجه داده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په دي باره کي مونږ ټولو ته په يو مجلس کي خبر راکړی دی خو اوس په هغوئ کي زما نه علاوه بل هيڅوك ژوندی نشته.

دزهد او تقوي يي دا حالت وو چي دامارت باوجود يي په معاشرت کي څه تغير نه وو راغلی دتواضع په وجه به يي دخورلو کار دخر نه اخستلو او په ډير لږ قوت لايموت رزق به يي ګذاره کوله او ددينه زيات به يي دخان سره نه ساتلو عمر رضي الله عنه ورته څه مال هم اوليږلو ليکن هغه يي پهخلقو تقسيم کړو

وفات دهجرت په ۳۲کال عثمان رضي الله عنه دوفات نه څلويښت ورځي پس وفات شو چي په اخري عمر کي په ډيره ژړا کي مصروف وو خلقو ورنه دوجي تپوس اوکړو نو په جواب کي يي

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ۱۳ (۱۴۹۷) (تحفة الأشراف : ۳۳۰۲)

اوونيل د دنيا دپريښودو غم راسره نشته مرګ خو يو دوست دی ليکن په دي خفه يم چي زما
انجام او حشر به څه وي کله چي يي اخري ساه واخستله نو ويی فرمائيل ستا ملاقات دي زما
سره ماته مبارك شي ځکه چي زما درسره انتهائي زياته مينه ده (مسند احمد)
دحذيفه رضي الله عنه دسلو نه زيات روايات منقول دي چي دولس متفق عليه دي او اته صرف
په بخاري کي دي او اولس په مسلم کي دي (تهذيب الكمال)

*****************

## ١٣ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ الصَّبْرَ فِي الصَّدْمَةِ الأُولَى

**صبر هغه وي کوم چي داولنۍ صدمي په وخت کي وي**

**٩٨٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الصَّبْرُ فِي الصَّدْمَةِ الأُولَى ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.** [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اصل صبر هغه وي کوم چي داولنۍ صدمي په وخت کي وي.
امام ترمذي وائي داحديث ددي سند په اعتبار غريب دي.

**تشريح** : داولنۍ صدمي نه مراد دمصيبت ابتدائي زمانه ده يعني څه وخت کي چي مصيبت شروع شي هغه وخت کي صبر کول اصل صبر دي ځکه چي دزماني په تيريدو سره پخپله بندا دصبر سره عادت شي.

*****************

**٩٨٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الأُولَى ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.** [2]

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٥ (١٥٩٦) (تحفة الأشراف ٨٢٨)

[2] ـ صحيح البخاری في الجنائز ٤ (١٢٥٢) و٣١ (١٢٨٣) و٤٢ (١٣٠٢) والأحكام ١١ (٧١٥٤) صحيح مسلم في الجنائز ٨ (٩٢٦) . سنن ابي داود في الجنائز ٢٧ (٣١٢٤) . سنن النسائي في الجنائز ٢٢ (١٨٧٠) . تحفة الأشراف : ٤٣٩) . مسند احمد (٣ في ١٣٠ . ١٤٣ . ٢١٧)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اصل صبر هغه وي كوم چي داولنئ صدمي په وخت كي وي
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي

*****************

## ١٤ـ باب مَا جَاءَ فِي تَقْبِيلِ الْمَيِّتِ

### دمري دښكلولو بيان

٩٨٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ. عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ. " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبَّلَ عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُونٍ وَهُوَ مَيِّتٌ وَهُوَ يَبْكِي " أَوْ قَالَ: " عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ ". وَفِي الْبَابِ: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ، وَعَائِشَةَ. قَالُوا: إِنَّ أَبَا بَكْرٍ قَبَّلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مَيِّتٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم عثمان بن مظعون ښكل كړو او هغه وفات شوي وو، رسول الله صلي الله عليه وسلم ژړل او كه راوي داسي اووئيل) دواړه سترګي يي په اوښكو لمدي وي.
امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي ابن عباس، جابر، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي هغوئ وائي چي ابوبكر رضي الله عنه رسول الله صلي الله عليه وسلم ښكل كړو او هغه وفات شوي وو

**لغات** : بكي يبكي بكاء ژړل او صفت يي باك راځي جمع يي بكاة ده اومونث باكية او جمع يي باكيات راځي ، المبكي معني دژړا ځاي جمع يي مباكي راځي

**تشريح** : دمذكوره روايت نه معلوميږي چي دمري ښكلول جائز دي لكه چي دبخاري په روايت كي هم دابوبكر رضي الله عنه باره كي مروي دي چي هغوئ رسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات كيدو نه پس ښكل كړو
ددي روايت نه معلومه شوه چي دغم او پريشانئ په وخت كي بي اختياره اوخكي بهيدل اود زړه غمژن كيدل ناجائز ندي، ليكن دغم په وخت كيي داسي خبري ظاهرول كومي چي شريعت

---

[1] ـ سنن ابي داود في الجنائز ٤٠ (٣١٦٣) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٧ (١٤٥٦) (تحفة الأشراف ١٧٤٥٩) . مسند احمد (٦ في ٤٣. ٥٥)

منع کړي دي ناجائزدي
اوهمدارنګي عيادت کول هم سنت نبوي دی او ديو مسلمان په بل مسلمان باندي په حقونو کي يو حق دا هم دی چي کله هغه بيمار شي نو عيادت ته دي ورشي درسول الله صلي الله عليه وسلم دعيادت دپاره تلل دهغه دتواضع او کمال علامه ده

*************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي غُسْلِ الْمَيِّتِ

### مړي ته دغسل ورکولو بيان

٩٩٠_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. أَخْبَرَنَا خَالِدٌ. وَمَنْصُورٌ. وَهِشَامٌ. فأما خالد وهشام. فقالا: عَنْ مُحَمَّدٍ، وَحَفْصَةَ. وَقَالَ: مَنْصُورٌ: عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ. قَالَتْ: تُوُفِّيَتْ إِحْدَى بَنَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: "اغْسِلْنَهَا وِتْرًا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ إِنْ رَأَيْتُنَّ، وَاغْسِلْنَهَا بِمَاءٍ وَسِدْرٍ وَاجْعَلْنَ فِي الْآخِرَةِ كَافُورًا. أَوْ شَيْئًا مِنْ كَافُورٍ. فَإِذَا فَرَغْتُنَّ فَآذِنَّنِي". فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ. فَأَلْقَى إِلَيْنَا حِقْوَهُ، فَقَالَ: "أَشْعِرْنَهَا بِهِ". قَالَ هُشَيْمٌ: وَفِي حَدِيثِ غَيْرِ هَؤُلَاءِ وَلَا أَدْرِي وَلَعَلَّ هِشَامًا مِنْهُمْ. قَالَتْ: وَضَفَّرْنَا شَعْرَهَا ثَلَاثَةَ قُرُونٍ. قَالَ هُشَيْمٌ: أَظُنُّهُ قَالَ: فَأَلْقَيْنَاهُ خَلْفَهَا. قَالَ هُشَيْمٌ: فَحَدَّثَنَا خَالِدٌ مِنْ بَيْنِ الْقَوْمِ. عَنْ حَفْصَةَ. وَمُحَمَّدٍ. عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ. قَالَتْ: وَقَالَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا وَمَوَاضِعِ الْوُضُوءِ" وَفِي الْبَابِ: عَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُمِّ عَطِيَّةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ. أَنَّهُ قَالَ: غُسْلُ الْمَيِّتِ كَالْغُسْلِ مِنَ الْجَنَابَةِ. وَقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ: لَيْسَ لِغُسْلِ الْمَيِّتِ عِنْدَنَا حَدٌّ مُؤَقَّتٌ وَلَيْسَ لِذَلِكَ صِفَةٌ مَعْلُومَةٌ وَلَكِنْ يُطَهَّرُ. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنَّمَا قَالَ مَالِكٌ قَوْلًا مُجْمَلًا: يُغَسَّلُ وَيُنْقَى. وَإِذَا أُنْقِيَ الْمَيِّتُ بِمَاءٍ قَرَاحٍ أَوْ مَاءٍ غَيْرِهِ، أَجْزَأَ ذَلِكَ مِنْ غُسْلِهِ. وَلَكِنْ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يُغْسَلَ ثَلَاثًا فَصَاعِدًا لَا يُقْصَرُ عَنْ ثَلَاثٍ. لِمَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا. وَإِنْ أَنْقَوْا فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثِ مَرَّاتٍ أَجْزَأَ". وَلَا نَرَى أَنَّ قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا هُوَ عَلَى مَعْنَى الْإِنْقَاءِ ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا وَلَمْ يُؤَقِّتْ. وَكَذَلِكَ قَالَ: الْفُقَهَاءُ وَهُمْ

أَعْلَمُ بِمَعَانِي الْحَدِيثِ. وقَالَ أَحْمَدُ. وَإِسْحَاق: وَتَكُونُ الغَسَلاَتُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ. وَيَكُونُ فِي الآخِرَةِ شَيْءٌ مِنْ كَافُورٍ. (1)

**ترجمه** دام عطيه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم كومه لور وفات شوه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ديته طاق غسل وركړئ يعني دري پيري يا پنځه پيري يا ددينه زيات څومره چي ضروري وي او د بيرو دپاڼړو په اوبو كي غسل وركړئ او په اخر كي ورباندي كافور واچوئ او كه داسي يي اوفرمائيل لږ شان كافور داوبو سره ګډ كړئ او كله چي دغسل نه فارغ شي نو ماته خبر راكړئ ام عطيه وائي كله چي مونږ دغسل وركولو نه فارغ شو نو رسول الله ته مو خبر وركړو نو هغوئ خپل لنګ مونږ ته راوغورځولو او ويي فرمائيل په دي كي ددي بدن راونغاړئ. هيثم وائي د نورو راويانو په روايتونو كي ماته معلومه نه ده شايد چي هشام به هم ددوئ دجملي نه وي ام عطيه وائي چي مونږ دهغي دويختو نه دري كمځئ جوړي كړي، هيثم وائي زما خيال دي ددي راويانو په روايتونو كي دا خبره هم ده چي بيا مونږ ددي كمځئ شاته اوغورځوله هيثم وائي خالد مونږ ته دخلقو په وړاندي بيان كړل چي دحفصه او محمد نه يي روايت كولو او هغوئ ام عطيه نه روايت نقل كولو چي ام عطيه وئيل مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اول دښي طرف نه شروع اوكړئ او داودس داندامونو نه غسل وركول شروع كړئ

امام ترمذي وائي دام عطيه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي، په دي باب كي دام سليم رضي الله عنها نه هم روايت وارد د او داهل علمو په همدي باندي عمل دي. ابراهيم نخعي وائي مړي ته غسل وركول دجنابت دغسل پشان دي، مالك بن انس وائي زمونږ په نزد دمړي دغسل دپاره هيڅ حد مقرر نه دي او نه ددي دپاره كوم خاص طريقه مسنون ده پس صرف دمړي پاكول ضروري دي،امام شافعي وائي دامام مالك دا قول چي "غسل دي ورته وركړي شي او پاك دي كړي شي" مجمل دي، كله چي مړي دبيرو دپاڼړو په اوبو پاك كړي شي نو پس

---

[1] ـ صحيح البخاري في الوضوء ٣١ (١٦٧) . والجنائز ١٠ (١٢٥٥) . و١١ (١٢٥٦) . صحيح مسلم في الجنائز ١٢ (٩٣٩) سنن ابي داود في الجنائز ٣٣ (٣١٤٣. ٣١٤٥) . سنن النسائي في الجنائز ٣١ (١٨٨٥) . و٣٢ (١٨٨٦) . (تحفة الأشراف : ١٨١٠٣. و١٨١٠٩. و١٨١١١ و١٨١٢٤. ١٨١٣٥) وأخرجه صحيح البخاري في الجنائز ٨ (١٢٥٣) . و٩ (١٢٥٣) . و١٢ (١٢٥٤) و١٣ (١٢٥٨) . و١٤ (١٢٦٠) . و١٥ (١٢٦١) و١٦ (١٢٦٢) . و١٧ (١٢٦٣) . صحيح مسلم في الجنائز (المصدر المذكور) . سنن ابي داود في الجنائز ٣٣ (٣١٤٢. ٣١٤٦. ٣١٤٧) . سنن النسائي في الجنائز ٣٣ (٣١٤٢. ٣١٤٣. ٣١٤٦. ٣١٤٧) . سنن النسائي في الجنائز ٢٨ (١٨٨٢) و٣٠ (١٨٨٣) . و٣٣ (١٨٨٧) . و٣٤ (١٨٨٨. ١٨٨٩. ١٨٩٠) . و٣٥ (١٨٩١. ١٨٩٢) . و٣٦ (١٨٩٣. ١٨٩٥) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٨ (١٣٥٨) موطا امام مالك في الجنائز ١ (٢) . مسند احمد (٦ في ٤٠٧)

هم دومره كافي دي ، البته زما په نزد مستحب دادي چي د دري پيرو نه ورته زيات غسل ورکړي شي او ددريو نه کم ورنکړي شي ځکه چي ارشاد نبوي دي دري ياپنځه خل ورته غسل ورکړئ او که چري خلق مړي د دري پيرو غسل ورکولو نه په کمو کي پاك کړي نو دا به هم كافي وي، مونږ دا نه ګنړو چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دري يا پنځه پيري غسل ورکولو حکم کول متعين حد دي بلکي دا حکم صرف دپاکولو دپاره دي او رسول الله کوم حد نه دي مقرر کړي دارنګي نورو فقهاؤ هم وئيلي دي او هغوئ دحديث په مفهوم ښه پوهيدونکي دي. امام احمد اواسحاق بن راهويه وائي هر خل به غسل دبيرو دپاڼړو په اوبو ورکوي البته په اخري خل به په اوبو کي کافور شاملوي.

**تشريح**: مړي ته د غسل ورکولو طريقه دا ده:

د صاحب د عنايه د بيان مطابق زمونږ بعضي اصحابو وئيلي دي.چي تخته دي د قبلې په طرف په اُوږدوالي کيخودی شي.يعنې تخته په اوږدوالي شرقاً او غرباً کيخودی شي لکه څنګه چي د مرض په حالت کي په ملاسته په اشاره د مونځ کولو په صورت کي مريض شرقاً او غرباً څملي.يعني خپې د قبلې په طرف او سرد مشرق په طرف وی.

اوبعضي فقهاء وائي.چي تخته دي په پلنوالي کيخودی شي.لکه څنګه چي مړی په قبر کي ايخودی شي.علامه شمس الائمه سرخسي رحمه الله وئيلي دي.چي څنګه ممکن وی.کيخودی به شي.دمړي په تخته د څملولو د کيفيت په باره کي هيڅ روايت منقول نه دي.البته عرف دادي.چي مړی په څټ نيغ څملولی شي.

دمړي په تخته څملولو نه پس به دده په عورت کپړه اچولی شي.ځکه چي ستر د عورت فرض دي.نو ددی فرض اداکولودپاره به دده په عورت کپړه واچوی .وجه ددی داده.چي سړي څنګه په ژوند کي محترم وی.دغه شان د مرګ نه پس هم محترم وی.نو دده د محترميت تقاضا ده.چي دده عورت ښکاره نکړي شي.

صاحب د هدايه رحمه الله وائي.چي د آسانتيا دپاره عورت غليظه يعني د قُبل او دُبر ستر کافي دي.د نوم نه د کونډو پوري ستر ضروري نه دي.هم دا ظاهرالروايه دي.

**دمړي دمضمضي او استنشاق متعلق دوه اقوال دي اول:**

(۱) احناف فقهاء وايي چي بغيردخولي وينځلونه اوپه پوزه کي اوبه اچولونه، مړی له اودس کول پکاردي.اودس خوځکه کول پکار دی.چي اودس دغسل سنت دي.اوخوله وينځل اوپه پوزه کي اوبه اچول ځکه ترك کړې شوی دی.چي د مړی په خوله اوپوزه کي اوبه اچول اوبيا ئې تری راويستل متعذر دی.

(۲) امام شافعي رحمه الله فرمائي.چي د مړی په خوله او پوزه کي هم اوبه اچولی شي د ژوند په حالت باندې يې قياس کوی.

بيا دی غسل ورکونکی خپل خان مری ته ادانه کری.اوکینوی دې.اوپه نرمئ دی د مری خیټه اومګی دا مګل په دی وجه دی که د مری په خیټه کې څه څیز وی.هغه اوخی.چی روسته کفن خراب نه کری په دی سلسله کي اصل دا روایت دې.

"إن علياً(رضي الله عنه) لما غسل رسول الله ﷺ مسح بطنه بيده رفيقاً طلب منه مايطلب من الميت فلم ير شَيْئاً فقال طبت حياً وميتاً"

یعنی علی(رضي الله عنه) چی کله رسول الله ﷺ ته غسل ورکولو نوپه خپل لاس ئې رُو رُو ددوی خیټه اومګله .اومقصود هغه څیز طلب کول وو.چی د مری نه طلب کولی شی یعنی د علی(رضي الله عنه) منشاء دا وه.چی کیدی شي دنبی کریم ﷺ دخیټی نه څه څیزاوخی خوڅه هم اونه وتل.نو علی(رضي الله عنه) اوفرمائیل .تاسو په ژوند او مرګ دواړوکي پاك ئې دخیټی مګولو نه پس که دمری د ګیډی نه څه څیز راؤتلو.نو دا دی اووینځی.او د غسل ورکولو د اعاده کولو ضرورت نشته.اوداودس کولوهم څه ضرورت نشته.ځکه چی د مری غسل مونږ په نص پیژندلی دې. نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی.چی د مسلمان په مسلمان شپږ حقونه دی.په دی کي یود مری غسل دې.بهرحال د مری غسل چی واجب دې.په یوځل دغسل ورکولوسره حاصل شوې دې.اوس دوباره دغسل ورکولو ضرورت نه دی پاتې.دغسل نه د فراغت نه پس د مری بدن په پاکې کپړې سره اوچول پکار دی.چی کفن لوند نه شی. (عنايه وغيره)

## د ام عطيه رضي الله عنها دزندګۍ مختصر حالات

نوم نسیبه دپلار نوم حارث دهجرت نه مخکي مسلمانه شوې وه او کله چي رسول الله مديني ته راغی نو دانصاري ښځو نه يي بيعت واخستلو او په دوئ کي دا هم شامله وه ام عطيه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په جنګونو کي هم شريکه شوي وه چي خوراك به يي تيارولو او دسامانونو حفاظت به يي كولو او دزخميانو دمرهم پټئ كاربه يي كولو (مسلم)

دهجرت په اتم كال چي درسول الله صلي الله عليه وسلم زينب لور وفات شوه نو ام عطيه ديو څو ښځو په ملګرتيا كي هغي ته غسل وركړل ددي يو خويی هم وو چي په كومه غزوه كي شريك شوی وو او دبيماريدو نه پس بصري ته تلی وو په دي وخت كي ام عطيه په مدينه كي وه څنګه چي خبره شوه نوسم دست بصري ته روانه شوه ليكن ددي درسيدو نه دوه ورځي مخكي هغه وفات شوی وو په دريمه ورځ يي خوشبو راوغوښتله او استعمال يي كړه او ونيل يي چي دخاوند نه علاوه دهيچا په مرګ د دري ورځو نه زيات ماتم كول جائز نه دي (بخاري)

***************

## ١٦_باب فِي مَا جَاءَ فِي الْمِسْكِ لِلْمَيِّتِ

## په مرې باندې دمشكو او خوشبو اچولو بيان

۹۹۱ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، وَشَبَابَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ خُلَيْدِ بْنِ جَعْفَرٍ، سَمِعَ أَبَا نَضْرَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَطْيَبُ الطِّيبِ الْمِسْكُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دټولو نه بهتره خوشبو مشك دي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

۹۹۲ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ خُلَيْدِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْمِسْكِ، فَقَالَ: " هُوَ أَطْيَبُ طِيبِكُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الْمِسْكَ لِلْمَيِّتِ، قَالَ: وَقَدْ رَوَاهُ الْمُسْتَمِرُّ بْنُ الرَّيَّانِ أَيْضًا، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ عَلِيٌّ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: الْمُسْتَمِرُّ بْنُ الرَّيَّانِ ثِقَةٌ، قَالَ يَحْيَى: خُلَيْدُ بْنُ جَعْفَرٍ ثِقَةٌ. (2)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دمشك په باره كې تپوس اوكړې شو نو ويې فرمائيل دا ستاسو په خوشبويانو كې دټولو نه بهتره خوشبو ده.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دا حدث مستمر بن ريان په سند د ابي نضره عن ابي سعيد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي، او يحیٰ بن سعيد وائي مستمر بن ريان ثقه دي او دبعضې اهل علمو په همدې باندې عمل دي او همدا دامام احمد بن

---

1 ـ صحيح مسلم في الألفاظ من الأدب ٥ (٢٢٥٢). سنن النسائي في الجنائز ٤٢ (١٩٠٦). والزينة ٣ (٥١٢٢)، و٤٣ (٥٢١٦). (تحفة الأشراف: ٤٣١١) وأخرجه صحيح مسلم. سنن ابي داود في الجنائز ٣٧ (٣١٥٨). سنن النسائي في الجنائز ٤٢ (١٩٠٧). مسند احمد (٣ في ٣٦، ٤٠، ٤٦، ٦٢)

2 ـ صحيح مسلم في الألفاظ من الأدب ٥ (٢٢٥٢). سنن النسائي في الجنائز ٤٢ (١٩٠٦) والزينة ٣ (٥١٢٢)، و٤٣ (٥٢١٦). (تحفة الأشراف: ٤٣١١) وأخرجه صحيح مسلم. سنن ابي داود في الجنائز ٣٧ (٣١٥٨). سنن النسائي في الجنائز ٤٢ (١٩٠٧). مسند احمد (٣ في ٣٦، ٤٠، ٤٦، ٦٢)

حنبل او اسحاق بن راهويه قول هم دي، او بعضي اهل علمو دمړي دپاره دمشکو داستعمال په کراهت قول کړي دي

***************

## ۱۷ـ باب مَا جَاءَ فِي الْغُسْلِ مِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ

### مړي ته د غسل ورکولو په وجه دغسل کولو بيان

۹۹۳ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُخْتَارِ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: "مِنْ غُسْلِهِ الْغُسْلُ، وَمِنْ حَمْلِهِ الْوُضُوءُ يَعْنِي الْمَيِّتَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مَوْقُوفًا. وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الَّذِي يُغَسِّلُ الْمَيِّتَ. فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: إِذَا غَسَّلَ مَيِّتًا فَعَلَيْهِ الْغُسْلُ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: عَلَيْهِ الْوُضُوءُ. وقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ: أَسْتَحِبُّ الْغُسْلَ مِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ وَلَا أَرَى ذَلِكَ وَاجِبًا. وَهَكَذَا قَالَ الشَّافِعِيُّ: وقَالَ أَحْمَدُ: مَنْ غَسَّلَ مَيِّتًا أَرْجُو أَنْ لَا يَجِبَ عَلَيْهِ الْغُسْلُ. وَأَمَّا الْوُضُوءُ فَأَقَلُّ مَا قِيلَ فِيهِ. وقَالَ إِسْحَاقُ: لَا بُدَّ مِنَ الْوُضُوءِ. قَالَ: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ: لَا يَغْتَسِلُ وَلَا يَتَوَضَّأُ مَنْ غَسَّلَ الْمَيِّتَ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي مړي ته په غسل ورکولو غسل کول پکار دي او ددي په پورته کولو اودس کول پکار دي

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او دابوهريره رضي الله عنه نه دا روايت موقوفاً هم مروي دي، په دي باب کي دعلي او عائشه رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي، داهل علمو دهغه کس باره کي اختلاف دي څوك چي مړي ته غسل ورکړي په صحابه کرامو او ددوی نه پس دبعضي اهل علمو دا خيال دي کله چي څوك مړي ته غسل ورکړي په ده باندي غسل کول دي او دبعضي اهل علمو خيال دي چي اودس به کوي مالك بن انس وائي مړي ته په غسل ورکولو سره غسل ورکول زما په نزد مستحب دي او زه يي واجب نه ګنړم دا رنګي دامام شافعي قول هم دي، امام احمد بن حنبل وائي چاچي مړي ته غسل ورکړو زما اميد دي چي په ده باندي به غسل کول واجب نه وي پاتي شوه د اودس خبره نو دا دټولو نه کمه خبره ده کومه چي په دي سلسله کي ونيلي شوي ده ، اسحاق بن راهويه وائي اودس کول

1 سنن ابن ماجه في الجنائز ۸ (۱۴۶۳) (تحفة الأشراف ۱۲۶۲۶)

ضروري دي، او دعبدالله بن مبارك نه مروي دي چي فرمائيل يې چاچي مړي ته غسل ورکړو په هغه باندي نه غسل کول شته اونه اودس کول.

**تشريح** مړي ته چي څوك غسل ورکوي دهغه دپاره دا هدايت دی چي دی که دمړي هر بد حالت اوويني نو دي لره دي پټ کړي او خلقو ته دي ددي دبيانولو نه ډډه اوکړي ددي دپاره چي مړی دذلت او رسوائي نه بچ شي هر کله چي دمرګ نه پس دچا عيب بيانول جائزنه دي نوپه زندګئ کي څنګه جائز کيدی شي ليکن که په مړي کي کومه ښه خبره اومونډلی شي نو ددي په بيانولو کي څه حرج نشته.

ابو رافع اسلم رضي الله عنه راوي دی فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي مړي ته غسل ورکونکی که چری دمړي څه ناخوښه خبره يا عيب پټ کړي نو الله تعالي به ځلويښت خله دهغه مغفرت اوکړي، حاکم دا روايت کړی دی او وئيلي يې دي چي دمسلم دشرط مطابق دا روايت صحيح دی (مسلم)

****************

## ١٨ـ بَاب مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الأَكْفَانِ

### کوم رنګ والا کفن ورکول مستحب دي

٩٩٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْبَسُوا مِنْ ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضَ، فَإِنَّهَا مِنْ خَيْرِ ثِيَابِكُمْ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ". وَفِي الْبَابِ: عَنْ سَمُرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ الَّذِي يَسْتَحِبُّهُ أَهْلُ الْعِلْمِ. وَقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يُكَفَّنَ فِي ثِيَابِهِ الَّتِي كَانَ يُصَلِّي فِيهَا. وَقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: أَحَبُّ الثِّيَابِ إِلَيْنَا أَنْ يُكَفَّنَ فِيهَا الْبَيَاضُ وَيُسْتَحَبُّ حُسْنُ الْكَفَنِ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو سپيني جامي اغوندئ ځکه چي دا ستاسو په ملبوساتو کي بهترين لباس دي او په همدي کي خپلو مړو ته کفن هم ورکوئ.

---

[1] ـ سنن ابي داود في اللباس ١٦ (٤٠٦١). سنن ابن ماجه في الجنائز ١٢ (١٤٧٢) (تحفة الأشراف: ٥٥٣٤). مسند احمد (١/ ٣٥٥)

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دسمره، ابن عمر او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او اهل علم دا عمل مستحب گنړي ابن مبارك وائي زما په نزد مستحب داده چي مړي ته کفن په هغه جامو کي ورکړي شي په کومو کي چي هغه مونځ کولو، امام احمد او اسحاق بن راهويه وائي دكفن وركولو دپاره زما په نزد په ټولو کپړو کي بهتر رنګ سپين دي او مړي ته ښه کفن ورکول مستحب دي

**تشریح** : په کفن ورکولو کي سپينه کپړه او نوي کپړه ورکول ضروري نه دي هره يوه کپړه درسته ده خو چي پاکه وي په هغي کي کفن ورکول جائز دي او په دي کي قاعده کليه داده کومي جامي چي په زندګۍ کي اغوستل جائز وي په هغي کي کفن ورکول هم جائز دي او کومه جامه چي په ژوند کي اغوستل مکروه دي په هغي کي کفن ورکول هم مکروه دي او کومه جامه اغوستل چي حرام دي په هغي کي کفن ورکول هم حرام دي مثلا ښځي ته په ريشمي جامه کي کفن ورکول جائز دي او د سړو دپاره حرام دي ابن مبارك وائي په کومو جامو کي چي به خلقو مونځ کولو او په هغي کي بي عبادتونه کړي وي په هم هغي کي ورته کفن ورکول مستحب دي

*****************

## ١٩ـ باب مِنْهُ

## مړي ته د کفن ورکولو متعلق يوبل باب

٩٩٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا وَلِيَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُحْسِنْ كَفَنَهُ". وَفِيهِ عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: قَالَ سَلَّامُ بْنُ أَبِي مُطِيعٍ فِي قَوْلِهِ: "وَلْيُحْسِنْ أَحَدُكُمْ كَفَنَ أَخِيهِ". قَالَ: هُوَ الصَّفَاءُ وَلَيْسَ بِالْمُرْتَفِعِ. (١)

**ترجمه** دابوقتاده رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي کله چي په تاسو کي څوك دخپل ورور دکفن په سلسله کي کي ذمه وار جوړ شي،يعني دکفن معامله ورته وسپارلي شي، نو ښه کفن دي ورته ورکړي امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي. ابن مبارك دارشاد نبوي "واليحسن احدكم كفن اخيه" په باره کي وائي چي ددينه مراد دجامو پاکوالي او سپين والي دي او قيمتي جامه ورنه مراد نه ده

(١) ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ١٢ (١٤٧٤) (تحفة الأشراف : ١٢١٢٥)

**تشريح** : په يو بل روايت کي راغلي دي الله تعالي جنت سپين جوړ کړی دی او سپين رنګ يي خوښ دی ، دملا علي قاري قول دی چي سپين لباس دتواضع اوعاجزۍ نښه ده او سپين فطري رنګ دی په قران کريم کي ورته هم اشاره ده "فطرة الله التي فطرالناس عليها" مساجد ، محافل او ملاقاتونو په سلسله کي دسپينو جامو اغوستل مستحب دي او همدارنګي داخترونو او جمعي په ورځ سپيني جامي اغوستل هم ښه خبره ده، اوددي په خلاف نور رنګونو استعمال هم ثابت دی، جديد تحقيق وائي چي سپين لباس دموسمي تغيراتو مقابله هم کوي په سختي ګرمۍ کي سپين لباس ګرم نه وي او په سختي يخنۍ کي يخ نه وي او همدارنګي په سپين لباس والاباندي کينسر مرض هم حمله نشي کولی اوهمدارنګي الرجي او هائي بلډپريشر والامريضانو دپاره هم دا مشوره ده ، دهوميوپيهتيک داصولو مطابق سپين لباس ددماغو او زړه اوجلد محافظ وي.

## ابوقتاده حارث بن ربعي رضي الله عنه حالات

نوم ابوقتاده لقب فارس رسول الله صلي الله عليه وسلم په خزرج قبيله کي يي دسلمه خاندان سره تعلق وو.

دهجرت نه لس کاله مخکي په مدينه کي پيدا شوی وو او دغزوه بدر نه علاوه يي په تمامو غزواتو کي شرکت کړی وو علي رضي الله عنه ده لره دمکي امير مقرر کړی وو قتاده ډير زيات متواضع وو او د درس حلقه يي په همدي وجه وسيع وه په حديبيه کي چي کله درسول الله صلي الله عليه وسلم سره مکي ته تلو نو په لاره کي يي ددوستانو او ملګرو سره توقي او خندا کوله (مسند احمد).

په غزوه حنين کي چي دلويو لويو جانبازانو قدمونه اوخويدل نو پدغه وخت کي دابوقتاده خپي مضبوطي وي دحديث په بيانولو کي يي ډير احتياط کولو چي کله يي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه من كذب علي متعمدا والا روايت واوريدو نو نور زيات احتياط يي هم شروع کړو (مسند احمد).

وفات: دده په وفات کي اختلاف دی بعضو ۴۹هجري کوفه ليکلي ده ليکن داکثرو په نزد دپنځوس او شپيتوو په مينځ کي دده وفات شوی دی.

دده دمروياتو شمير ۱۷۰دی چي يولس په بخاري او مسلم کي متفق عليه دي دولس په بخاري کي دي او اته په مسلم کي دي

*****************

## ۲۰ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَفَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دکفن بيان

۹۹٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " كُفِّنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ بِيضٍ يَمَانِيَةٍ، لَيْسَ فِيهَا قَمِيصٌ وَلَا عِمَامَةٌ ". قَالَ: فَذَكَرُوا لِعَائِشَةَ قَوْلَهُمْ: فِي ثَوْبَيْنِ وَبُرْدِ حِبَرَةٍ، فَقَالَتْ: قَدْ أُتِيَ بِالْبُرْدِ وَلَكِنَّهُمْ رَدُّوهُ وَلَمْ يُكَفِّنُوهُ فِيهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دري سپينو يمني کپړو کي کفن ورکړي شو چي نه پکي قميص وو او نه عمامه خلقو عائشه رضي الله عنها ته اوونيل چي ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم ته په دوه جامو او يو کرخو والا يمني څادر کي کفن ورکړي شوي وو؟ ام المؤمنين اوونيل هو يو څادر راوړلي شوي وو ليکن خلقو واپس کړي وو او په هغې کي ورته کفن ورنکړي شو، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**تشريح** : کفن په درى قسمه دي.(۱) کفن مسنون (۲) کفن کفايه (۳) کفن ضرورت دى.

## کفن مسنون

کفن مسنون د سړو په حق کي درى کپړې دى.(۱) ازار، يعنى لنګ خود سرنه پښو پورې مراد دي.(۲) کرته د څټ نه قدم پورې بغيرد نستونړو او د کالر نه(۳) څادر د سر نه پښو پورې چې د پورته نه تړ لى شى.

## کفن کفايي

کفن کفايه د سړى په حق کي دوه جامى دى.يولنګ دويم څادر دي

## کفن ضرورت

د کفن ضرورت څه حد نشته هرڅومره چي ملاو شي مګر دا هغه وخت کي کله چي پوره کفن نه ملاويږي

***************

[1] _ صحيح مسلم في الجنائز ۱۳ (۹۴۱)، سنن ابي داود في الجنائز ۳۴ (۳۱۵۲) سنن النسائي في الجنائز ۳۹ (۱۹۰۰)، سنن ابن ماجه في الجنائز ۱۱ (۱۴۶۹)، (تحفة الأشراف ۱۶۷۸۶) وأخرجه صحيح البخاري في الجنائز ۱۸ (۱۲۶۴) و۲۳ (۱۲۷۱) و۲۴ (۱۲۷۳)، و۹۴ (۱۳۸۷)، صحيح مسلم في الجنائز (المصدر المذكور)، الجنائز (۳۱۵۱) سنن النسائي في الجنائز ۳۹ (۱۸۹۸ و۱۸۹۹)، موطا امام مالک في الجنائز ۲ (۵)، مسند احمد (۶ في ۴۰ ۹۳ ۱۱۸، ۱۳۲ ۱۶۵ ۲۳۱)

٩٩٧_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ السَّرِيِّ. عَنْ زَائِدَةَ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ. عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَفَّنَ حَمْزَةَ بْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فِي نَمِرَةٍ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ عَلِيٍّ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ. وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ فِي كَفَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِوَايَاتٌ مُخْتَلِفَةٌ. وَحَدِيثُ عَائِشَةَ أَصَحُّ الأَحَادِيثِ الَّتِي رُوِيَتْ فِي كَفَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَالْعَمَلُ عَلَى حَدِيثِ عَائِشَةَ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. قَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ: يُكَفَّنُ الرَّجُلُ فِي ثَلاَثَةِ أَثْوَابٍ إِنْ شِئْتَ فِي قَمِيصٍ وَلِفَافَتَيْنِ. وَإِنْ شِئْتَ فِي ثَلاَثِ لَفَائِفَ. وَيُجْزِي ثَوْبٌ وَاحِدٌ إِنْ لَمْ يَجِدُوا ثَوْبَيْنِ. وَالثَّوْبَانِ يُجْزِيَانِ. وَالثَّلاَثَةُ لِمَنْ وَجَدَهَا أَحَبُّ إِلَيْهِمْ. وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ. وَأَحْمَدَ. وَإِسْحَاقَ. قَالُوا: تُكَفَّنُ الْمَرْأَةُ فِي خَمْسَةِ أَثْوَابٍ.[1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم حمزه بن عبدالمطلب ته صرف په يوه كپړه كي كفن وركړي دي

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي ، او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دكفن باره كي مختلف احاديث مروي دي او په دي تمامو احاديثو كي دعائشه حديث زيات صحيح دي، او په دي باب كي دعلي، ابن عباس، عبدالله بن مغفل او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، په صحابه كرامو اهل علمو كي داكثرو په حديث دعائشه باندي عمل دي، سفيان ثوري وائي سړي ته دي په دري جامو كي كفن وركړي شي پكار ده چي يو قميص او دوه لفافي وي او كه دري لفافي وي او كه دوه كپړي نه وي نو يوه هم كافي ده او دوه هم كافي كيږي او چا سره چي دري وي نو دهغه دپاره هم دا دري مستحب دي دامام شافعي او احمد او اسحاق هم دا قول دي دوئ وائي ښځي ته به په پنځه كپړو كي كفن وركولي شي

******************

## ٢١_ باب مَا جَاءَ فِي الطَّعَامِ يُصْنَعُ لِأَهْلِ الْمَيِّتِ

### دمري كور والا دپاره دخوراك دا نتظام كولو بيان

٩٩٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. قَالاَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ جَعْفَرِ بْنِ خَالِدٍ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ. قَالَ: لَمَّا جَاءَ نَعْيُ جَعْفَرٍ. قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٣٦٩)

" اصْنَعُوا لِأَهْلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا فَإِنَّهُ قَدْ جَاءَهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ كَانَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ يَسْتَحِبُّ أَنْ يُوَجَّهَ إِلَى أَهْلِ الْمَيِّتِ شَيْءٌ لِشُغْلِهِمْ بِالْمُصِيبَةِ. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَجَعْفَرُ بْنُ خَالِدٍ: هُوَ ابْنُ سَارَةَ وَهُوَ ثِقَةٌ. رَوَى عَنْهُ ابْنُ جُرَيْجٍ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن جعفر رضي الله عنهما بيان دي كله چي دجعفر طيار دمرگ خبر راغي نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دجعفر دكور دخلقو دپاره دخوراك انتظام اوكړئ خكه چي دوئ باندي نن داسي مصيبت راغلي دي په كوم كي چي هغوئ مشغول دي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي ، او بعضي اهل علم دمړي كور ته په مصيبت كي دانختلو په وجه څه ليږل مستحب گڼري او دا دامام شافعي قول هم دي. دجعفر بن خالد پلار دخالد ساره خوي دي او ثقه دي دده نه ابن جريج نقل درروايت كړي دي

### دعبدالله بن جعفر رضي الله عنهما حالات

نوم عبدالله كنيه ابن جعفر درسول الله سلي الله عليه وسلم دتره خوي دی او دجعفر طيار خوي دی كله چي دده پلار جعفر حبشي ته هجرت اوكړو نو عبدالله دهجرت په دوران كي په حبشه كي پيدا شو او كله چي په اوم هجري كي جعفر مديني ته راغی نو عبدالله داوه كالو وو او په دغه وخت كي ورسره رسول الله صلي الله عليه وسلم بيعت هم اوكړو.
بيا څه موده پس جعفر رضي الله عنه په غزوه موته كي شهيد شو نو په دي وجه به رسول الله صلي الله عليه وسلم دعبدالله سره دير محبت كول دي يو خل نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي عبدالله دصورت سيرت په لحاظ سره زما سره مشابه دي علامه عبدالبر وائي چي عبدالله بن جعفر يو كريم النفس انسان وو خوش طبيعته او عفيف اوربنتونی انسان دی كله چي ابن ملجم علي رضي الله عنه شهيد كړو نو دده په قصاص كي عبدالله بن جعفر رضي الله عنه دده خپي لاسونه كټ كړل او بدل يي ورنه واخستو
دهجرت په ۸۰ كال په مدينه كي وفات شوی دی اود مديني والي ابن بن عثمان ورته كفن وركړی دی او دجنازي كولو نه پس يي په جنة البقيع كي دفن كړو دده په جنازه كي ډيره گڼره وه (اسد الغابه)
كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم وفات شو نو دعبدالله بن جعفر عمر لس كاله وو ليكن دماشوموالي په زمانه كي يي هم يو څو احاديث يادكړي وو چي دوه په دي كي متفق عليه دي

***************

[1] ـ سنن ابي داود في الجنائز ٣٠ (٣١٣٢) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٩ (١٦١٠) (تحفة الأشراف ٥٢١٧)

## ٢٢_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنْ ضَرْبِ الْخُدُودِ، وَشَقِّ الْجُيُوبِ عِنْدَ الْمُصِيبَةِ

**دمصيبت په وخت کي دمخ وهلو او دګريوان شلولو دمما نعت بيان**

٩٩٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي زُبَيْدٌ الأَيَامِيُّ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيْسَ مِنَّا مَنْ شَقَّ الْجُيُوبَ وَضَرَبَ الْخُدُودَ وَدَعَا بِدَعْوَةِ الْجَاهِلِيَّةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چي مري پسي ژړا کي مخ سر وهي ګريوان څري کوي اودجاهليت دزماني په شان ستائينی کوي هغه زمونږ نه نه دی.

**لغات** : الخدود دخد جمع ده په معني درخسار، شق: معني شلول ، شق يشق شقا معني شلول، الجيوب جمع دجيب ده په معني دګريبان.

**تشريح** : "ليس منا من ضرب الخدود" يعني هغه څوک زمونږ نه ندی څوک چي مخ وهي ددي مطلب علماؤ دا بيان کړی دی چي ډير داسي کارونه کوم چي دجاهليت دزماني سره تعلق لري يا شريعت ښه نه دي ګڼرلي دهغي نه په حديث کي په ليس منا سره تعبير شوی دی ددي دا مطلب نه دی چي ددي کار کونکی داسلام نه خارج دی بلکي په طور دمبالغي او زجر داسي ونيلی شوي دي، لکه چي پلار خوي ته اووايي چي ته زما خوي نه يي او زه ستا پلار نه يم.

ودعا بدعوي الجاهلية. او بلنه اوکړي پشان دبلني دجاهليت مطلب دادی چي مري به جاهلانو په جاهليت په وخت کي رابلل مثلا ای زمو دبچو يتيم کونکيه او ای دښخو کوندونکيه وغيره دا سخته کبيره ګناه ده ځکه چي په دي کي دالله په فيصلي دراضي کيدو په ځاي دناراضتيا اظهار دی.

******************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ النَّوْحِ

---

[1] _ صحيح البخاري في الجنائز ٣٥ (١٢٩٤) . والمناقب ٨ (٣٥١٩) . سنن النسائي في الجنائز ١٩ (١٨٦٣) . و٢١ (١٨٦٥) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٢ (١٥٨٤) (تحفة الأشراف : ٩٥٥٩) . مسند احمد (١ في ٣٨٦ . ٤٣٢) ووأخرجه صحيح البخاري في الجنائز ٣٨ (١٢٩٧) . و٣٩ (١٢٩٨) . والمناقب ٨ (٣٥١٩) . صحيح مسلم في الإيمان ٤٤ (١٠٣) . سنن النسائي في الجنائز ١٧ (١٨٦١) . مسند احمد (١ في ٣٦٥)

## په مړي باندې دوېر ځکولو بيان

۱۰۰۰_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا قُرَّانُ بْنُ تَمَّامٍ. وَمَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ. وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدٍ الطَّائِيِّ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبِيعَةَ الأَسَدِيِّ. قَالَ: مَاتَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ يُقَالُ لَهُ: قَرَظَةُ بْنُ كَعْبٍ. فَنِيحَ عَلَيْهِ فَجَاءَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ. وَقَالَ: مَا بَالُ النَّوْحِ فِي الإِسْلاَمِ أَمَا إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: "مَنْ نِيحَ عَلَيْهِ عُذِّبَ بِمَا نِيحَ عَلَيْهِ". وَفِي الْبَابِ: عَنْ عُمَرَ. وَعَلِيٍّ. وَأَبِي مُوسَى. وَقَيْسِ بْنِ عَاصِمٍ. وَأَبِي هُرَيْرَةَ. وَجُنَادَةَ بْنِ مَالِكٍ. وَأَنَسٍ. وَأُمِّ عَطِيَّةَ. وَسَمُرَةَ. وَأَبِي مَالِكٍ الأَشْعَرِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْمُغِيرَةِ حَدِيثٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (۱)

**ترجمه** . د علي بن ربيعه اسدي نه روايت دی فرمائي چي په انصارو کي د قرظه بن کعب په نوم يو کس مړ شو او وير ورباندي و شو نو مغيره بن شعبه رضي الله عنه راغلو او په منبر کيناستو او ونيل يي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي هغوی فرمائيل کوم مړي باندی چي وير اوشو دقيامت په ورځ به ددی وير په وجه عذاب ورکولی شي
امام ترمذي وايي په دي باب کي د عمر ، علي،ابو موسي ، قيس بن عاصم، ابو هريره ، جناده بن ماك، انس، ام عطيه، سمره،او ابو موسي اشعري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.
او حديث دمغيره غريب حسن صحيح دی.

**لغات**: نيح ماضي مجهوله ده د ناح ينوح نوحا نه معني نياحت او نوحه کول يعني په مړي وير کول دي، القيامة يعني قائميدونکي ورځ.

**تشريح** : ددي حديث نه معلوميږي چي په مړي باندي نوحه کول او دهغه ښه صفتونه بيانول اوژړا کول او مخ وهل او جامي شلول په سر خاوري شيندل دا ټول داسي کارونه دي کوم چي په بي صبرئ باندي دلالت کوي او دا ټول حرام دي دچا په مرګ باندي بغير چغو وهل ژړل بد نه دي او داوښکو بهيدل هم بد نه دي دا يوه فطري خبره ده. دا خو يو ناممکن کار دی چي دسړي په دوستانو او رشته دارو کي دي څوك مړ شي او دده زړه ورباندي خوږ نه شي او نه يي دسترګو نه اوښکي رواني شي داسي کول هم په شريعت کي منع نه دي ليکن ممنوع هغه دي کوم چي داعتدال دحد نه خارج وي

---

1 _ صحيح البخاري في الجنائز ۳۳ (۱۲۹۱). صحيح مسلم في الجنائز ۹ (۹۳۳). (تحفة الأشراف ۱۱۵۲۰). مسند احمد (۴/ ۲۴۵، ۲۵۲).

## دعلي بن ربيعه حالات

نوم علي د پلار نوم ربيعه دكوفي اوسيدونكي وو دلويو تابعينو دجملي نه دي او په نقل دروايت كي ثقه دي

****************

١٠٠١ـحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، وَالْمَسْعُودِيُّ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ أَبِي الرَّبِيعِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْبَعٌ فِي أُمَّتِي مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ لَنْ يَدَعَهُنَّ النَّاسُ: النِّيَاحَةُ، وَالطَّعْنُ فِي الْأَحْسَابِ، وَالْعَدْوَى أَجْرَبَ بَعِيرٌ فَأَجْرَبَ مِائَةَ بَعِيرٍ مَنْ أَجْرَبَ الْبَعِيرَ الْأَوَّلَ، وَالْأَنْوَاءُ مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.(1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زما په امت كي څلور كارونه دجاهليت دي او خلق يي هيڅ كله نه پريږدي يو په مړي وير كول دي او بل په نسبونو بد وئيل دي، او ديوه نه بل ته دبيمارۍ دلګيدو عقيده لرل مثلا داسې وئيل يو اوښ پمن شو او دهغه نه سل نور اوښان پمن شول نو ته ووايه اولني چا پمن كړي دي. او دستورو دتاثير عقيده لرل مثلا دفلاني فلاني ستوري په وجه په مونږ باندي باران اوشو امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي.

**تشريح** : په نسبونو طعن كول او په مړي نياحت (وير) كول كه څوك حلال ګڼړي او كوي نو كافر كيږي او كه څوك يي دبشري كمزورۍ په وجه وكړي نو كافر كيږي خو نه ليكن ګنهګار به ضرور.

"الطعن في الاحساب" ددي مطلب دادى چي يو كس ته په طور دحقارت او توبيخ داسي اوونيلى شي چي ستا پلار خو فلانى كار كولو او ستا مور خو داسي داسي ده يا چاته دا پيغور وركړىشي چي ته خو د دوبي، لوهار، موچي وغيره اولاد يي

"النياحة" دنياحت نه مراد دادى چي خپل خان وهي او جامي او ګريوان شلوي او واويلا كوي علامه نووي وائي چي ددي كار دممنوع كيدو ډير وجوهات دى او نوحه دجاهليت دزماني رسم او يو كفري عمل دى او په دي وجه ناجائز دى

****************

(1) تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ١٤٨٨٤)

## ٢٤ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْبُكَاءِ عَلَى الْمَيِّتِ

### په مړي دژړا کولو دکراهت بيان

١٠٠٢ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمَيِّتُ يُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ". وَفِي الْبَابِ: عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ الْبُكَاءَ عَلَى الْمَيِّتِ، قَالُوا: الْمَيِّتُ يُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ، وَذَهَبُوا إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ، وقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: أَرْجُو إِنْ كَانَ يَنْهَاهُمْ فِي حَيَاتِهِ أَنْ لَا يَكُونَ عَلَيْهِ مِنْ ذَلِكَ شَيْءٌ. [1]

**ترجمه** دعمر بن الخطاب رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمنيلي دي مړي ته دده دکور والاپه ده باندي ژړلو په سبب عذاب ورکولي شي

امام ترمذي وائي دعمر فاروق حديث صحيح دي، او په دي باب کي دابن عمر او عمران بن حصين رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي ، داهل علمو يو جماعت په مړي باندي ژړل مکروه تحريمي گنړلي دي دوئ وائي چي مړي ته په ده باندي دژړلو په وجه عذاب ورکولي شي او دوئ همدي حديث ته ذهاب کړي دي، ابن مبارك وائي زما اميد دي که چري دي مړي په زندگئ کي خلق ددي کار نه منع کول نو اوس به ده ته په دي باندي عذاب نشي ملاويدلي

***************

١٠٠٣ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنِي أَسِيدُ بْنُ أَبِي أَسِيدٍ، أَنَّ مُوسَى بْنَ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيَّ أَخْبَرَهُ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا مِنْ مَيِّتٍ يَمُوتُ فَيَقُومُ بَاكِيهِ فَيَقُولُ: وَا جَبَلَاهْ وَا سَيِّدَاهْ أَوْ نَحْوَ ذَلِكَ إِلَّا وُكِّلَ بِهِ مَلَكَانِ يَلْهَزَانِهِ أَهَكَذَا كُنْتَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [2]

---

[1] ـ سنن النسائي في الجنائز ١٣ (١٨٥١) (تحفة الأشراف ١٠٥٢٧) وأخرجه صحيح البخاري في الجنائز ٣٢ (١٢٨٧)، و٣٣ (١٢٩٠، ١٢٩١)، صحيح مسلم في الجنائز ٩ (٩٢٧)، سنن النسائي في الجنائز ١٣ (١٨٤٩)، و١٥ (١٨٥٣) سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٣ (١٥٩٣)، (تحفة الأشراف ٩٠٣١)، مسند احمد (١ في ٢٦ ،٣٦، ٤٧، ٥٠، ٥١، ٥٣)، مسند احمد (٦ في ٢٨١)

[2] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٣ (١٥٩٤) (تحفة الأشراف ٩٠٣١)

**ترجمه** دابوموسي اشعري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر څوك چي مړ شي او بيا هغه ته ژړا كونكي راشي او وائي هاي زما سرداره هاي زما غره يا ددي پشان نور الفاظ وائي نو دي دوه فرشتو ته حواله كولي شي او هغوئ ورته ديكي وركوي او دا ورته وائي ايا ته همداسي وې؟ امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي

*****************

## ٢٥_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي الْبُكَاءِ عَلَى الْمَيِّتِ

### په مړي باندي دژړا كولو درخصت بيان

١٠٠٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ الْمُهَلَّبِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الْمَيِّتُ يُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ ". فَقَالَتْ عَائِشَةُ: يَرْحَمُهُ اللَّهُ لَمْ يَكْذِبْ وَلَكِنَّهُ وَهِمَ. إِنَّمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ مَاتَ يَهُودِيًّا: " إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ وَإِنَّ أَهْلَهُ لَيَبْكُونَ عَلَيْهِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَرَظَةَ بْنِ كَعْبٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ عَائِشَةَ. وَقَدْ ذَهَبَ أَهْلُ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا وَتَأَوَّلُوا هَذِهِ الآيَةَ وَلاَ تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى (الأنعام آية) . وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مړي ته په ده باندي دده دكور والاژړا په سبب عذاب وركولي شي ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها به فرمائيل الله تعالي دي په ابن عمر رحم اوكړي هغه دروغ نه دي وئيلي مګر وهم ورته شوي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم خو دا خبره دهغه يهودي باره كي كړي وه څوك چي مړ شوي وو او مړي ته عذاب وركولي كيږي او دده كور والا په ده باندي ژړا ګاني كوي.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي دا حديث په نورو سندونو هم دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي، په دي باب كي دابن عباس دقرظه بن كعب، ابوهريره، ابن مسعود او اسامه بن زيد رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او بعضي اهل

---

[1] _ (تحفة الأشراف ٨٥٦٣ و١٦٢٨٣) وأخرجه صحيح البخاري في المغازي ٨ (٣٩٧٨) . صحيح مسلم في الجنائز ٩ (٩٢٨ ٩٢٩) سنن ابي داود في الجنائز ٢٩ (٣١٢٩) . سنن النسائي في الجنائز ١٥ (١٨٥٦) . مسند احمد (٢ في ٣٨) و (٦ في ٣٩ ٥٧ ٩٥ ٢٠٩)

علمو همدی قول ته ذهاب کړي دي او دوئ دایت کریمه "ولا تزر وازرة وزر اخري" همدامطلب بیان کړي دي او همدا دامام شافعي قول هم دي

*****************

١٠٠٥ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، فَانْطَلَقَ بِهِ إِلَى ابْنِهِ إِبْرَاهِيمَ فَوَجَدَهُ يَجُودُ بِنَفْسِهِ، فَأَخَذَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعَهُ فِي حِجْرِهِ فَبَكَى، فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ: أَتَبْكِي، أَوَلَمْ تَكُنْ نَهَيْتَ عَنِ الْبُكَاءِ، قَالَ: "لَا، وَلَكِنْ نَهَيْتُ عَنْ صَوْتَيْنِ أَحْمَقَيْنِ فَاجِرَيْنِ: صَوْتٍ عِنْدَ مُصِيبَةٍ، خَمْشِ وُجُوهٍ، وَشَقِّ جُيُوبٍ، وَرَنَّةِ شَيْطَانٍ". وَفِي الْحَدِيثِ كَلَامٌ أَكْثَرُ مِنْ هَذَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي کریم صلي الله علیه وسلم عبدالرحمن بن عوف دلاس نه اونیولو او خپل ځوي ابراهیم ته یي بوتللو نو ویي لیدل چي ابراهیم اخري وخت دي رسول الله صلي الله علیه وسلم ابراهیم خپله غیږ کي راواخستلو او ویي ژړل عبدالرحمن بن عوف اووئیل ایا تاسو هم ژاړئ؟ او ایا تاسو په مړي دژړلو نه منع نه وه فرمائیلي؟ رسول الله اوفرمائیل نه ما خو دهغه دوه کم عقلو او فاجراوازونو نه منع فرمائیله یو خو دمصیبت په وخت کي اوازویستلو نه او بل دمخ زخمي کولو نه او دګریبان شلولو نه او دشیطان دنغمي ونیلو نه.

امام ترمذي واني دا حدیث حسن دي.

*****************

١٠٠٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، قَالَ: وحَدَّثَنَا، إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمْرَةَ أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ، أَنَّهَا سَمِعَتْ عَائِشَةَ، وَذُكِرَ لَهَا أَنَّ ابْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: "إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ الْحَيِّ عَلَيْهِ". فَقَالَتْ عَائِشَةُ: غَفَرَ اللَّهُ لِأَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَمَا إِنَّهُ لَمْ يَكْذِبْ وَلَكِنَّهُ نَسِيَ أَوْ أَخْطَأَ، إِنَّمَا مَرَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٢٨٣)

وَسَلَّمَ عَلَى يَهُودِيَّةٍ يُبْكَى عَلَيْهَا. فَقَالَ: " إِنَّهُمْ لَيَبْكُونَ عَلَيْهَا وَإِنَّهَا لَتُعَذَّبُ فِي قَبْرِهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ ٧٤. ([1])

**ترجمه** : دعمره رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چي ما دام المؤمنين عائشه نه اوريدلي دي چي دهغي په وړاندي داذكر كړي شول ابن عمر رضي الله عنهما دا وائي چي مړي ته په هغه باندي دخلقو دژړلو په وجه عذاب وركولي شي ام المؤمنين اوفرمائيل الله دي ابو عبدالرحمن ته مغفرت اوكړي هغه دروغ نه دي وئيلي بلكي دهغه نه هير شوي دي خبره صرف دومره وه چي ديوي يهوديه ښځي په خوا كي درسول الله تيريدل اوشول چي خلقو ورباندي ژړا كوله رسول الله اوفرمائيل دوئ په دي پسي ژاړي او ديته په قبر كي عذاب وركولي شي.

****************

## ٢٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمَشْيِ أَمَامَ الْجَنَازَةِ

### دجنازي نه دمخكي تلوبيان

١٠٠٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَإِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: " رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ يَمْشُونَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ ".([2])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوابوبكر اوعمر او ټولو لره دجنازي نه مخكي په تلوباندي ليدلي دي.

****************

[1] _ صحيح البخاري في الجنائز ٣٣ (١٢٨٩) . صحيح مسلم في الجنائز ٩ (٩٣٢) . سنن النسائي في الجنائز ٤ (١٨٥) (تحفة الأشراف : ١٧٩٣٨) وأخرجه صحيح البخاري في المغازي ٨ (٣٩٧٨) . صحيح مسلم في الجنائز ٩ (٩٣١) . سنن ابي داود في الجنائز ٢٩ (٣١٢٩) . سنن النسائي في الجنائز ١٥ (١٨٥٦، ١٨٥٨، ١٨٥٩) . مسند احمد (٢ في ٣٨) ، و (٦ في ٣٩، ٥٧، ٩٥، ٢٠٩)

[2] _ صحيح البخاري في الجنائز ٣٣ (١٢٨٩) . صحيح مسلم في الجنائز ٩ (٩٣٢) . سنن النسائي في الجنائز ٤ (١٨٥) (تحفة الأشراف : ١٧٩٣٨) وأخرجه صحيح البخاري في المغازي ٨ (٣٩٧٨) . صحيح مسلم في الجنائز ٩ (٩٣١) . سنن ابي داود في الجنائز ٢٩ (٣١٢٩) . سنن النسائي في الجنائز ١٥ (١٨٥٦، ١٨٥٨، ١٨٥٩) . مسند احمد (٢ في ٣٨) ، و (٦ في ٣٩، ٥٧، ٩٥، ٢٠٩)

١٠٠٨ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ مَنْصُورٍ، وَزِيَادٍ، وَسُفْيَانَ، كلهم يذكر وَبَكْرٍ الكُوفِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ يَمْشُونَ أَمَامَ الجَنَازَةِ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرماني چي ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوابوبكر اوعمر او تولو لره دجنازي نه مخكي په تلوباندي ليدلي دي

******************

١٠٠٩ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ يَمْشُونَ أَمَامَ الجَنَازَةِ". قَالَ الزُّهْرِيُّ: وَأَخْبَرَنِي سَالِمٌ، أَنَّ أَبَاهُ كَانَ يَمْشِي أَمَامَ الجَنَازَةِ. قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ أَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ هَكَذَا رَوَاهُ ابْنُ جُرَيْجٍ، وَزِيَادُ بْنُ سَعْدٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ نَحْوَ حَدِيثِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، وَرَوَى مَعْمَرٌ، وَيُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، وَمَالِكٌ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الحُفَّاظِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَمْشِي أَمَامَ الجَنَازَةِ". وَأَهْلُ الحَدِيثِ كُلُّهُمْ يَرَوْنَ أَنَّ الحَدِيثَ المُرْسَلَ فِي ذَلِكَ أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت يَحْيَى بْنَ مُوسَى، يَقُولُ: قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: قَالَ ابْنُ المُبَارَكِ: حَدِيثُ الزُّهْرِيِّ فِي هَذَا مُرْسَلٌ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عُيَيْنَةَ. قَالَ ابْنُ المُبَارَكِ: وَأَرَى ابْنَ جُرَيْجٍ أَخَذَهُ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ زِيَادٍ وَهُوَ: ابْنُ سَعْدٍ، وَمَنْصُورٍ، وَبَكْرٍ، وَسُفْيَانَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَإِنَّمَا هُوَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، رَوَى عَنْهُ هَمَّامٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي المَشْيِ أَمَامَ الجَنَازَةِ، فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: أَنَّ المَشْيَ أَمَامَهَا أَفْضَلُ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ. قَالَ: وَحَدِيثُ أَنَسٍ فِي هَذَا البَابِ غَيْرُ مَحْفُوظٍ. ([2])

---

[1] ـ صحيح البخارى في الجنائز ٣٢ (١٢٨٩) . صحيح مسلم في الجنائز ٩ (٩٣٢) . سنن النسائي في الجنائز ٤ (١٨٥) (تحفة الأشراف : ١٦٩٣٨) وأخرجه صحيح البخارى في المغازي ٨ (٣٩٧٨) . صحيح مسلم في الجنائز ٩ (٩٣١) . سنن ابى داود في الجنائز ٢٩ (٣١٢٩) . سنن النسائي في الجنائز ١٥ (١٨٥٦، ١٨٥٨، ١٨٥٩) . مسند احمد (٢ في ٣٨) ، و (٦ في ٣٩، ٥٤، ٩٥، ٢٠٩)

[2] ـ موطا امام مالک في الجنائز ٢ (٨) . انظر ما قبله (تحفة الأشراف : ١٩٣٩٣)

**ترجمه** : دابن شهاب زهري قول دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ابوبكر او عمر رضي الله عنهما به دجنازي نه مخكي مخكي تلل زهري دا هم وائي چي ماته سالم بن عبدالله خبر راكړي دي چي دده پلار عبدالله بن عمر به دجنازي نه مخكي تلو.

امام ترمذي وائي دا حديث دعبدالله بن عمر دحديث پشان دي دي لره ابن جريج اوزياد بن سعد او بعضي نورو راويانو دزهري نه دابن عيينه دحديث پشان روايت نقل كړي دي. او زهري دسالم بن عبدالله نه او هغه دخپل پلار ابن عمر نه روايت نقل كړي دي، معمرو ديونس بن يزيد نه اوپه حافظانو كي دنورو راويانو نه هم زهري روايت نقل كړي دي چي رسول الله به دجنازي نه وړاندي تلو زهري وائي ماته سالم بن عبدالله خبر راكړي دي چي دده پلار ابن عمر به دجنازي نه مخكي تلو، دتمامو محدثينو رائي ده چي مرسل حديث په دي باب كي زيات صحيح دي، ابن مبارك وائي په دي سلسله كي دزهري حديث مرسل دي او دابن عيينه حديث زيات صحيح دي، ابن مبارك وائي زما خيال دي چي ابن جريج دا حديث دابن عيينه نه حاصل كړي دي، همام بن يحيیٰ داحديث دزياد بن سعد نه اوهغه دمنصور نه اومنصور دبكر اوسفيان نه او دوئ دزهري نه نقل كړي دي زهري دسالم بن عبدالله نه او سالم دخپل پلار ابن عمر نه او دسفيان نه مراد سفيان بن عيينه دي دچا نه چي مونږ روايت نقل كړي دي، او په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي او دانس حديث په دي باب كي غيرمحفوظ دي، دجنازي نه په مخكي تلو كي داهل علمواختلاف دي دبعضي صحابه كرامودوئ نه پس داهل علمو داخيال دي چي دجنازي نه مخكي تلل افضل دي، امام شافعي او احمد بن حنبل رحمهما الله ددي قائل دي.

****************

١٠١٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسٍ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ كَانُوا يَمْشُونَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: سَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ خَطَأٌ، أَخْطَأَ فِيهِ مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، وَإِنَّمَا يُرْوَى هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ كَانُوا يَمْشُونَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ، قَالَ الزُّهْرِيُّ: وَأَخْبَرَنِي سَالِمٌ، أَنَّ أَبَاهُ كَانَ يَمْشِي أَمَامَ الْجَنَازَةِ، قَالَ مُحَمَّدٌ: هَذَا أَصَحُّ. [1]

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ١٦ (١٤٨٣) (تحفة الأشراف: ١٥٦٢)

**ترجمه** . دانس رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوابوبكر او عمر اوعثمان رضي الله عنهم به دجنازي نه مخكي تلل.
امام ترمذي وائي ما دامام بخاري نه دي حديث باره كي تپوس اوكړو نوهغوئ اووئيل داحديث غلط دي په دي كي محمد بن بكر غلطي كړي ده دا حديث ديونس نه نقل كيږي او يونس دزهري نه مرسل روايت نقل كوي چي رسول الله اوابوبكر او عمر رضي الله عنهما به دجنازي نه مخكي تلل، زهري وائي ماته سالم بن عبدالله خبر راكړي دي چي دده پلار ابن عمربه دجنازي نه مخكي تللو محمد بن اسماعيل بخاري وائي دا زيات صحيح سند دي

***************

## ٢٧_ باب مَا جَاءَ فِي الْمَشْيِ خَلْفَ الْجَنَازَةِ

### دجنازي نه دوروستو تللو بيان

١٠١١_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ يَحْيَى إِمَامِ بَنِي تَيْمِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي مَاجِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: سَأَلْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَشْيِ خَلْفَ الْجَنَازَةِ، قَالَ: " مَا دُونَ الْخَبَبِ فَإِنْ كَانَ خَيْرًا عَجَّلْتُمُوهُ، وَإِنْ كَانَ شَرًّا فَلَا يُبَعَّدُ إِلَّا أَهْلُ النَّارِ الْجَنَازَةُ مَتْبُوعَةٌ وَلَا تَتْبَعُ وَلَيْسَ مِنْهَا مَنْ تَقَدَّمَهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا يُعْرَفُ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يُضَعِّفُ حَدِيثَ أَبِي مَاجِدٍ لِهَذَا، وقَالَ مُحَمَّدٌ: قَالَ الْحُمَيْدِيُّ: قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: قِيلَ لِيَحْيَى: مَنْ أَبُو مَاجِدٍ هَذَا، قَالَ: طَائِرٌ طَارَ فَحَدَّثَنَا، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ إِلَى هَذَا، رَأَوْا أَنَّ الْمَشْيَ خَلْفَهَا أَفْضَلُ، وَبِهِ يَقُولُ: سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَإِسْحَاق. قَالَ: إِنَّ أَبَا مَاجِدٍ رَجُلٌ مَجْهُولٌ لَا يُعْرَفُ، إِنَّمَا يُرْوَى عَنْهُ حَدِيثَانِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَيَحْيَى إِمَامُ بَنِي تَيْمِ اللَّهِ ثِقَةٌ، يُكْنَى أَبَا الْحَارِثِ، وَيُقَالُ لَهُ: يَحْيَى الْجَابِرُ، وَيُقَالُ لَهُ: يَحْيَى الْمُجْبِرُ أَيْضًا، وَهُوَ كُوفِيٌّ، رَوَى لَهُ شُعْبَةُ، وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَأَبُو الْأَحْوَصِ، وَسُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. (١)

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مادنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په جنازي پسي شاته دتلو باره كي تپوس اوكړو نو وېي فرمائيل په درميانه رفتار سره تلل پكار دي چي تړيونه پكي نه وي كه چري مړي نيك وي نو په جلتئ سره يي قبر ته ورسوئ او

---

[1] ـ سنن ابي داود في الجنائز ٥٠ (٣٠٨٤) . سنن ابن ماجه في الجنائز ١٦ (١٤٨٤)

که چرې بد وي نو جهنميان خو ضرور لرې غورځولې کېږي په جنازې پسې شاته تلل ښکار دي او مخکې کيدل ورنه نه دي ښکاري او څوك چې دجنازې نه مخکې ځي دي دجنازې سره دتلونکو نه نه شميرلې کيږي.
امام ترمذي وائي داحديث دعبدالله بن مسعود نه صرف په همدي سند متصل دي ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه دابوحامد ددي روايت تضعيف اوريدلي دي دامام بخاري بيان دي حميري به وئيل چې سفيان بن عيينه وئيلي دي چې ديحي بن معين نه تپوس اوکړي شو چې ابوماجد څوك دي؟ هغوئ اووئيل يوه الوتلې مرغئ وه چې مونږ ورنه روايت کړي دي يعني يو مجهول راوي دي.
**تشريح** : ابوعماره براء ابن عازب رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته د اوو کارونو کولو حکم کړی دی ، دمريض تپوس کول، جنازی سره تلل، پرنجي کونکي ته يرحمك الله وئيل، کمزوری سره مدد کول، دمظلوم امداد کول، سلام عام کول، قسم پوره کول، او دا الفاظ دبخاري شريف ديو روايت دي.
دجنازو سره تلل اوپه دفن کې شريکيدل فقهاؤ فرض کفايه ګڼلي دي. په ډيرو روايتونو کې ددې تاکيد راغلی دی دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمريض عيادت به کوئ او دجنازوسره به ځئ يقينا چې دا کارونه تاسو ته اخرت رايادونکي دي. (شرح رياض الصالحين)

***************

## ٢٨ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الرُّكُوبِ خَلْفَ الْجَنَازَةِ

### په سورلۍ باندې دسوريدو په حالت کې په جنازې پسې دتلو دکراهت بيان

١٠١٢ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ. عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ. عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ ثَوْبَانَ. قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ. فَرَأَى نَاسًا رُكْبَانًا. فَقَالَ: " أَلَا تَسْتَحْيُونَ، إِنَّ مَلَائِكَةَ اللَّهِ عَلَى أَقْدَامِهِمْ وَأَنْتُمْ عَلَى ظُهُورِ الدَّوَابِّ ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ثَوْبَانَ قَدْ رُوِيَ عَنْهُ مَوْقُوفًا. قَالَ مُحَمَّدٌ: الْمَوْقُوفُ مِنْهُ أَصَحُّ.[1]

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ١٥(١٤٨٠)

**ترجمه** : دثوبان رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په يوه جنازه كي روان شو رسول الله څه كسان په سورلو سواره اوليدل نو ويي فرمائيل ايا تاسو نه شرميږئ دالله تعالي فرشتي پيدل رواني دي او تاسود څاروو په شاګانو ناست يئ.
امام ترمذي وائي دثوبان حديث موقوفاً هم مروي دي دامام بخاري قول دي ددوئ موقوف روايت زيات صحيح دي، په دي باب كي دمغيره بن شعبه، او جابر بن سمره رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

****************

## ٢٩ـ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### په جنازي پسي دسورلۍ په حالت كي دتلو داجازت بيان

١٠١٣ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكٍ، قَال: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ، يَقُولُ: "كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةِ أَبِي الدَّحْدَاحِ وَهُوَ عَلَى فَرَسٍ لَهُ يَسْعَى وَنَحْنُ حَوْلَهُ وَهُوَ يَتَوَقَّصُ بِهِ".[1]

**ترجمه** : جابر بن سمره رضي الله عنه وائي مونږ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره دابو دحداح په جنازه كي موجود وو رسول الله دواپسئ وخت كي په يو اس باندي سور وو چي تيز روان وو او مونږ ورنه ګيرچاپير روان وو.

****************

١٠١٤ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الصَّبَّاحِ الْهَاشِمِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو قُتَيْبَةَ، عَنِ الْجَرَّاحِ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّبَعَ جَنَازَةَ أَبِي الدَّحْدَاحِ مَاشِيًا وَرَجَعَ عَلَى فَرَسٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2]

---

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ٢٨ (٩٦٥) . سنن ابي داود في الجنائز ٤٨ (٣١٧٨) . مسند احمد (٥ في ٩٠) (تحفة الأشراف : ٢١٨٠) وأخرجه: سنن النسائي في الجنائز ٩٥ (٢٠٢٨)

[2] ـ صحيح البخاري في الجنائز ٥١ (١٣١٥) . صحيح مسلم في الجنائز ١٦ (٩٤٤) سنن ابي داود في الجنائز ٥٠ (٣١٨١) . سنن النسائي في الجنائز ٤٢ (١٩١١) . سنن ابن ماجه في الجنائز ١٥ (١٤٧٧) (تحفة الأشراف : ١٣١٢٤) وأخرجه مالك في الجنائز ١٢ (٥٦) . موقوفاً على أبي هريرة.

**ترجمه** : دجابر بن سمره رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دابو دحداح دجنازي سره پيدل تلي وو او بيا په واپسئ كي په سورلئ سور راغلو امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ۳۰ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الإِسْرَاعِ بِالْجَنَازَةِ
### په تيزئ سره دجنازي وړلو بيان

۱۰۱۵ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، سَمِعَ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَسْرِعُوا بِالْجَنَازَةِ، فَإِنْ يَكُنْ خَيْرًا تُقَدِّمُوهَا إِلَيْهِ، وَإِنْ يَكُنْ شَرًّا تَضَعُوهُ عَنْ رِقَابِكُمْ ". وَفِي الْبَاب: عَنْ أَبِي بَكْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي دمړي په دفن كولو كي جلتي كوئ ځكه چي كه چرى دنيك بنده جنازه ده نو دانيكي خپل مقام ته زر اورسوئ او كه چرى هغه دبد كاره جنازه ده نو دابوج زر دخپلو اوږونه لرى كړئ.
امام ترمذي وايي په دي باب كي د ابو بكره نه هم روايت وارد دی، اود ابو هريره حديث حسن صحيح دی.

**لغات** : اسرعوا سرع يسرع سرعة وسِرعا وسَرعا وسراعة: جلتي كول.

**تشريح** : مطلب دادی كله چي جنازه قبرستان ته ددفن كولو دپاره اوړئ نو په جلتئ جلتئ يي اورسوئ ليكن ددينه منډي وهل مراد نه دي بلكي متوسط رفتار مراد دی يعني دعام رفتا نه لږ زيات او دمنډو نه كم.

فان تك صالحة: كه دا جنازه دنيك سړي وي نو دا په جلتئ قبر ته ورسوئ ددي دپاره چي دالله اجر ته زر ورسيږي.

وان تك سوي ذلك: اوكه دا جنازه دبد كس وي او زندګي يي دالله په نافرمانئ كي تيره كړي وي نو په جلتئ سره يي دخپلو اوږو نه اوغورځوئ.

***************

(1) ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ۲۱۲۲)

## ٣١_ باب مَا جَاءَ فِي قَتْلَى أُحُدٍ وَذِكْرِ حَمْزَةَ

### داحد دشهيدانو او حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه ذكر

١٠١٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: أَتَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى حَمْزَةَ يَوْمَ أُحُدٍ، فَوَقَفَ عَلَيْهِ فَرَآهُ قَدْ مُثِّلَ بِهِ، فَقَالَ: " لَوْلَا أَنْ تَجِدَ صَفِيَّةُ فِي نَفْسِهَا لَتَرَكْتُهُ حَتَّى تَأْكُلَهُ الْعَافِيَةُ حَتَّى يُحْشَرَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ بُطُونِهَا ". قَالَ: ثُمَّ دَعَا بِنَمِرَةٍ فَكَفَّنَهُ فِيهَا، فَكَانَتْ إِذَا مُدَّتْ عَلَى رَأْسِهِ بَدَتْ رِجْلَاهُ، وَإِذَا مُدَّتْ عَلَى رِجْلَيْهِ بَدَا رَأْسُهُ. قَالَ: فَكَثُرَ الْقَتْلَى وَقَلَّتِ الثِّيَابُ، قَالَ: فَكُفِّنَ الرَّجُلُ وَالرَّجُلَانِ وَالثَّلَاثَةُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ، ثُمَّ يُدْفَنُونَ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُ عَنْهُمْ: " أَيُّهُمْ أَكْثَرُ قُرْآنًا فَيُقَدِّمُهُ إِلَى الْقِبْلَةِ "، قَالَ: فَدَفَنَهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أَنَسٍ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، النَّمِرَةُ الْكِسَاءُ الْخَلَقُ، وَقَدْ خُولِفَ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ فِي رِوَايَةِ هَذَا الْحَدِيثِ، فَرَوَى اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ، وَرَوَى مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ، عَنْ جَابِرٍ، وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا ذَكَرَهُ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، إِلَّا أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: حَدِيثُ اللَّيْثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ جَابِرٍ أَصَحُّ. (١)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داحد په ورځ دحمزه دلاش خواته راغي او ورسره اودريدو نو ويي كتل چي لاش مثله كړي شوي دي نو ويي فرمائيل كه چري صفيه (دحمزه خور) پخپل زړه كي بده نه ګڼړلي نو ما به دي د دفن كولو نه بغير همداسي پريخودلي وو تردي چي درندګانو او مرغو به خوړلي وو او بيا به دي دقيامت په ورځ ددوئ دخيټو نه راپورته كيدو او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم نمر (بوزوړ څادر) راوغوښتلو او حمزه ته يي په دي كي كفن وركړو كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم دده سر طرف ته څادر راښكلو نو دواړه خپي به يي بربنډي شوي او چي كله به يي خپو طرف ته راښكلو نو سر به يي بربنډ شو وجه دا وه چي دمقتولينو تعداد زيات وو او دكپړو كمي واقع شو چنانچه يو يو او دوه دوه او دري دري كسانو ته په يوه يوه كپړه كي كفن وركړي

(١) _ سنن ابي داود في الجنائز ٣١ (٣١٣٦) (تحفة الأشراف: ١٣٧٧)

شو او بيا به تول په يو قبر كي دفن كولي شو رسول الله صلي الله عليه وسلم به ددوئ باره كي تپوس كولو چي په دوئ كي چاته قران زيات ياد دي نو هغه به يي قبلي ته مخامخ كولو تردي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا شهيدان دفن كړل او جنازه يي ورباندي اونكړه
امام ترمذي وائ: دانس حديث حسن غريب دي او مونږ يي صرف په همدي سند پيژنو ددي حديث په روايت كي داسامه بن زيد مخالفت شوي دي، ليث بن سعد په سند د عن ابن شهاب عن عبدالرحمن بن كعب عن مالك بن جابر بن عبدالله بن زيد ، او معمرو په سند د عن الزهير عن عبدالله بن ثعلبه عن جابر زمونږ په علم كي داسامه بن زيد نه علاوه بل څوك نشته چي دا يي دزهري په واسطه دانس نه نقل كړي وي، ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه دي حديث باره كي تپوس اوكړو نو هغوئ اووئيل دليث حديث په سند دعن ابن شهاب عن عبدالرحمن بن كعب عن جابر زيات صحيح دي "نمرة" زوړ څادر ته وئيلي شي.

**تشريح** : قاضي ثناء الله پخپل تفسير كي ددي حديث نه څه مستنبط فقهي مدلل مسائل بيان كړي دي چي په لاندينو كرښو كي يي نقل كوو:

**مسئله:** دعلماؤ اجماع منعقد شوي ده چي شهيد ته به غسل نه شي وركولي ځكه چي داحد شهيدانو ته غسل نه وو وركړي شوي اورسول الله حكم كړي وو چي ددوئ اصلحي اوسامان ورنه لري كړئ اوباقي ويني اوكپړي ورنه مه لري كوئ اودفن يي كړئ (رواه ابو داود وابن ماجه عن ابن عباس).

نسائي په صحيح سند سره دعبدالله بن ثعلبه روايت بيان كړي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دوينو سره يي خښ كړئ دا ځكه څوك چي دالله په لار كي زخمي شي هغه به په قيامت كي دوينو سره راځي دده دوينو رنګ به دوينو پشان وي ليكن خوشبو به يي دمشكو پشان وي ، ددي بحث يو حديث دجابر رضي الله عنه په روايت سره هم راغلي دي چي ديو سړي سينه په غشي اوويشتلي شوه او په دي باندي مړ شو اوده لره په همدغه جامو كي همدغه شان اونغښتلي شو او دفن كړي شو اومونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره هم ركاب وو (رواه ابو داود علي شرط مسلم).

**مسئله:** كه چري دجنابت په حالت كي څوك شهيد شي نو ايا ده ته به غسل وركولي شي ؟دا مسئله اختلافي ده

(١) امام ابو حنيفه او امام احمد رحمهما الله په نزد به ورته غسل وركولي شي.
(٢) امام مالك او امام شافعي رحمهما الله وائي چي غسل به ورته نه شي وركولي ځكه چي درسول الله فرمان "زملوهم بدمائهم" عام دي ، دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد باندي دحنظله بن ابي عامر قصه ماخذ داستدلال دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي وو

ما اوليدل چې فرشتو حنظله بن ابي عامر لره دزمكې او اسمان په مينځ كې دسپينې وريځې په اوبو سره دسپينو زرو په لوښو كې غسل وركولو ، دابو اسيد ساعدي رضي الله عنه بيان دي چې مونږ لاړو دحنظله لاش مو اوليدو اودسر نه يې اوبه څڅيدلې زه چې واپس راغلم نو رسول الله ته مې د دې خبر وركړو نبي كريم صلي الله عليه وسلم دده دښځې نه دمعلومات حاصلولو دپاره هغې ته څوك وروليږلو هغې اووئيل دجنابت په حالت كې بهر تلي وو محنظله ته په دې وجه باندې غسيل الملائكه وئيلې شي.

ابن جوزي دا حديث دمحمد بن سعد په روايت سره مرسل نقل كړي دي او ابن حبان او حاكم او بيهقي داسحاق په سند سره مسند نقل كړي دي حاكم په "اكليل " كې دابو اسيد په روايت سره هم دا روايت نقل كړي دي ليكن سنديې ضعيف دي ، حاكم په مستدرك كې او طبراني او بيهقي دابن عباس رضي الله عنه په روايت سره هم دا حديث بيان كړي دي ليكن دحاكم په روايت كې معلي بن عبدالرحمن رواي دي او هغه متروك دي اودطبراني په اسناد كې حجاج مدلس دي اودبيهقي په سند كې ابوشيبه واسطي ضعيف دي.

**مسئله:** علماؤ اختلاف كړي دي په باره دجنازي كولو كې په شهيد باندې :

(۱) امام شافعي وائي چې جنازه به ورباندې نشي كولې.

(۲) امام ابوحنيفه او امام مالك رحمة الله عليهما فرمائي چې په شهيد باندې دې جنازه وكړې شي ، اود امام احمد نه دواړه روايتونه منقول دي، زمونږ دليل دادې چې دجنازې مونځ ياخو دګناهونو دمغفرت دپاره دې يا دمړي دعزت دپاره دې او د درجاتو دبلندئ دپاره دې ، اوشهيد دعزت زيات مستحق دې، كه چرې به مونځ نه كولو كې تكريم وي نو بيا رسول الله دې زيات مستحق وو ، په هغه باندې دجنازې مونځ شوي وو ، حالانكه اجماعا په هغه باندې جنازه شوې ده او اصل مونځ كول دي، امام شافعي په حديث دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه استدلال كړي دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم به په يوه كپړه كې داحد دوه دوه شهيدان په كفن كول اوبيابه ئې تپوس كولو كوم يو په دوئ كې مشر دې نوچې كوم يوته به اشاره وشوه هغه به ئې لحد ته مخكې كوزولو اوبيا به ئې فرمائيل زه به په دوئ باندې دقيامت په ورځ ګواهي كوم اوحكم به ئې كولو په دفن كولو ددوئ په جامو ددوئ كې او مونځ ئې ورباندې ندې كړې اونه ئې غسل وركړې(رواه البخاري في صحيحه والنسائي وابن ماجة

و ابن حبان

وصححه وقد اعله اوبخاري دا روايت معلول ګڼرلي دي او وئيلي ئي دي چي داسامة بن زيد روايت عن زهري عن انس غلط دي) بخاري دجابر رضي الله عنه پورتني حديث ته ترجيح ورکړي ده ، دامام شافعي داستدلال نه جواب دادي چي شايد رسول الله صلي الله عليه وسلم به داحد په شهيدانو مونځ نه وي کړي چي هغه پخپله زخمي شوي وو او وغابنونه مبارك ئي هم شهيدان شوي وو ډيره ممکنه وه چي بل چا ورباندي کړي وي ، ددي احتمال تائيد هغه حديث هم کوي کوم چي ابوداود په مراسيل کي اوحاکم اوطحاوي دانس رضي الله عنه نه بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دحمزه رضي الله عنه په خوا کي تير شو اوهغه مثله کړي شوي وو ، اورسول کريم صلي الله عليه وسلم دحمزه رضي الله عنه نه علاوه په بل کوم شهيد باندي جنازه ونکړه ، دطحاوي په روايت کي دومره اضافه ده چي رسول کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زه به دقيامت په ورځ ستاسو دټولو ګواه يم.

***************

## ۳۲_ باب آخرُ

### دجنازي متعلق يو بل باب

١٠١٧_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ مُسْلِمٍ الأَعْوَرِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُ المَرِيضَ، وَيَشْهَدُ الجَنَازَةَ، وَيَرْكَبُ الحِمَارَ، وَيُجِيبُ دَعْوَةَ العَبْدِ، وَكَانَ يَوْمَ بَنِي قُرَيْظَةَ عَلَى حِمَارٍ مَخْطُومٍ بِحَبْلٍ مِنْ لِيفٍ عَلَيْهِ إِكَافٌ مِنْ لِيفٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَمُسْلِمٌ الأَعْوَرُ يُضَعَّفُ، وَهُوَ مُسْلِمُ بْنُ كَيْسَانَ المُلَائِيُّ تُكُلِّمَ فِيهِ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ شُعْبَةُ، وَسُفْيَانُ. [1]

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دمريض عيادت کولو او په جنازو کي به يي شرکت کولو او په خر به يي سورلي کوله او دغلامانو دعوت به يي قبلولو، دبنوقريظه په ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو داسي خر سور وو چي واګي يي دکجورو دپاڼو نه جوړي شوي وي او زين ورباندي هم تړلي شوي وو امام ترمذي وائي مونږ ته دا حديث صرف دمسلم په روايت رارسيدلي دي کوم چي هغه دانس نه نقل کړي دي او مسلم اعور دمحدثينو په نزدضعيف دي او همدي مسلم بن کيسان ملائي دي چي کلام ورباندي شوي دي او دده نه شعبه اوسفيان نقل دروايت کړي دي

***************

[1] ـ سنن ابي داود في التجارات ٦٦ (٢٢٩٦)

## ٣٣_ باب
## ددفن متعلق يو بل باب

١٠١٨_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: لَمَّا قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْتَلَفُوا فِي دَفْنِهِ. فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا مَا نَسِيتُهُ، قَالَ: " مَا قَبَضَ اللَّهُ نَبِيًّا إِلَّا فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي يُحِبُّ أَنْ يُدْفَنَ فِيهِ ". ادْفِنُوهُ فِي مَوْضِعِ فِرَاشِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُلَيْكِيُّ يُضَعَّفُ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، فَرَوَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْضًا. [1]

**ترجمه** . دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرماني كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم وفات شو نو دده د دفن كولو متعلق په خلقو كي اختلاف پيدا شو، ابوبكر رضي الله عنه اوونيل ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يوه داسي خبره اوريدلي دي كومه چي ما هيره كړي نه ده او هغه داده فرمائيل يي خومره انبياء چي الله تعالي راليږلي دي او الله تعالي دهغوئ روحونه قبض كړي دي هغوئ چي به چرته دفن كيدل خوښول په هم هغه مقاماتو كي دفن كړي شوي دي نو په دي وجه تاسو ده لره دده دبستري په ځاي باندي دفن كړئ.

امام ترمذي واني داحديث غريب دي او عبدالرحمن بن ابي بكر مليكي دحافظي په اعتبار ضعيف ګڼړلي شوي دي دا حديث ددي سند نه علاوه په بل سند هم مروي دي، ابن عباس دابوبكر صديق نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه هم نقل كړي دي.

***************

## ٣٤_ باب آخَرُ
## دمړي متعلق يو بل باب

١٠١٩_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ أَنَسٍ الْمَكِّيِّ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " اذْكُرُوا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ وَكُفُّوا عَنْ مَسَاوِيهِمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدًا، يَقُولُ: عِمْرَانُ بْنُ أَنَسٍ الْمَكِّيُّ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٦٢٧ و ١٦٢٢٥)

مُنْكَرُ الحَدِيثِ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ: وَعِمْرَانُ بْنُ أَبِي أَنَسٍ مِصْرِيٌّ أَقْدَمُ وَأَثْبَتُ مِنْ عِمْرَانَ بْنِ أَنَسٍ المَكِّيِّ. ([1])

**ترجمه** : دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو دخپلو مړو نيکياني بيانوئ او دبديانو بيانولو نه يي منع شئ.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي عمران بن انس مکي منکر الحديث دي، بعضي راويانودا روايت دعطاء نه او عطاء دعائشه نه نقل کړي دي، عمران بن ابي انس مصري د عمران بن انس مکي نه مخکي تير شوي دي او دده نه زيات ثقه دي.

****************

## ٣٥_ باب مَا جَاءَ فِي الْجُلُوسِ قَبْلَ أَنْ تُوضَعَ

### دجنازي دايخودلو نه مخکي دکيناستلو دکراهت بيان

١٠٢٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عِيسَى، عَنْ بِشْرِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ جُنَادَةَ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اتَّبَعَ الجَنَازَةَ لَمْ يَقْعُدْ حَتَّى تُوضَعَ فِي اللَّحْدِ. فَعَرَضَ لَهُ حَبْرٌ، فَقَالَ: هَكَذَا نَصْنَعُ يَا مُحَمَّدُ، قَالَ: فَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: "خَالِفُوهُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَبِشْرُ بْنُ رَافِعٍ لَيْسَ بِالقَوِيِّ فِي الحَدِيثِ. ([2])

**ترجمه** : دعباده بن صامت رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي کله چي به نبي کريم صلي الله عليه وسلم دجنازي سره تلو نو څو پوري چي به جنازه په لحد (بغلي قبر) کي ايخودلي شوي نه وه ترهغي به نه کيناستلو، يو خل يو يهودي عالم راغي او نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته يي اوونيل اي محمد مونږ هم داسي کوو رسول الله صلي الله عليه وسلم کيناستو او ويي فرمائيل تاسو ددي مخالفت اوکړئ.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي او بشر بن رافع په حديث کي زيات قوي نه دي.

**مسئله**: کله چي مړى واخلى اود هغه قبره پوري اورسي.نوترڅو پوري چي جنازه په زمکه کيخودلى شوي نه وى ترهغي نو دخلقو کيناستل مکروه دى. ددي دوه دلائل دي:

---

[1] ـ سنن ابي داود في الأدب ٥٠ (٤٩٠٠) (تحفة الأشراف: ٧٣٢٨)

[2] ـ سنن ابي داود في الجنائز ٤٧ (٣١٧٦). سنن ابن ماجه في الجنائز ٣٥ (١٥٤٥) الأرواء ٣ في ١٩٣)

(۱) ځکه چې کله کله په جنازه کښې د جنازې اوړونکو سره د مدد ضرورت پېښيږي. او د هغوی سره په وخت باندې مدد کول په هغه وخت کې ممکن وی.چې دوی ولاړ وی.ځکه وئيلی شوی دی.چې دجنازې په زمکه باندې دکيخودلونه وړاندې د خلقو کيناستل مکروه دی. اوکله چې جنازه په زمکه باندې کيخودلی شی.نواوس ولاړ پاتې کيدل مکروه دی.
(۲) دويم دليل دا دی .چې جنازې ته د حاضرويدو په وخت کې د مړی عزت کول مستحب دې.اود جنازې کيخودلو نه وړاندې دخلقو کيناستل د مړی دپاره تحقير دې.نو ځکه دی دجنازې کيخودلو نه وړاندې نه کينی.
د جنازې پورته کولو کيفيت دا دې چې اول دی د جنازې وړاندينۍ حصه کښې د مړی ښی طرف په خپل ښیٔ اوږه باندې کيږدی.بيا دغه شان د مړی د پښو طرف دی په خپله ښیٔ اوږه باندې کيږدی. (احسن الهدايه، والکفايه علي الهدايه)

***************

## ٣٦ــ باب فَضْلِ الْمُصِيبَةِ إِذَا احْتَسَبَ

### په مصيبت باندې دثواب په نيت دصبر کولو دفضيلت بيان

١٠٢١ــ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي سِنَانٍ، قَالَ: دَفَنْتُ ابْنِي سِنَانًا، وَأَبُو طَلْحَةَ الْخَوْلَانِيُّ جَالِسٌ عَلَى شَفِيرِ الْقَبْرِ، فَلَمَّا أَرَدْتُ الْخُرُوجَ أَخَذَ بِيَدِي، فَقَالَ: أَلَا أُبَشِّرُكَ يَا أَبَا سِنَانٍ، قُلْتُ: بَلَى، فَقَالَ: حَدَّثَنِي الضَّحَّاكُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَرْزَبٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا مَاتَ وَلَدُ الْعَبْدِ، قَالَ اللَّهُ لِمَلَائِكَتِهِ: قَبَضْتُمْ وَلَدَ عَبْدِي؟ فَيَقُولُونَ: نَعَمْ، فَيَقُولُ: قَبَضْتُمْ ثَمَرَةَ فُؤَادِهِ؟ فَيَقُولُونَ: نَعَمْ، فَيَقُولُ: مَاذَا قَالَ عَبْدِي، فَيَقُولُونَ: حَمِدَكَ وَاسْتَرْجَعَ، فَيَقُولُ اللَّهُ: ابْنُوا لِعَبْدِي بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَسَمُّوهُ بَيْتَ الْحَمْدِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** : دابوسنان رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما خپل خوي سنان دفن کړو او طلحه خولاني دقبر په موږګه ناست وو کله چي ما دقبر نه دوتلو اراده اوکړه نو هغه زما لاس اونيولو او وېي وئيل اي ابو سنان ايا زيري درته درنکړم؟ ما عرض اوکړو ولي نه ضرور يې راکړه نو هغه اووئيل ماته ضحاك بن عبدالرحمن بن عرزب روايت بيان کړي دي چي ابو موسي اشعري رضي الله عنه وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي ديو بنده بچي وفات

[1] ــ تفرد به المؤلف وانظر: مسند احمد (۴ في ۴۱۵) (تحفة الأشراف: ۹۰۰۵)

شي نو الله تعالي ملائكو ته وائي چي خما دبنده اولاد مو واخستلو هغوئ وائي هو، بيا الله پاك وائي چي دهغه دزړه ټکړه مو راوړه هغوئ وائي هو نو الله پاك ترينه تپوس كوي چي هغه وخت خما بنده څه اووئيل ملائکی وائي هغه ستا حمد بيان کړو او انا لله يی اولوستلو، بيابه الله تعالي حکم اوکړي چي خما ددی بنده دپاره په جنت کي يو محل تيار کړئ او دهغی نوم بيت الحمد کيږدئ.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دی.

**لغات** : فؤاد: زړه جمع يي افئدة راځي ، حمد: حمد حمدا ومحمدا ومحمدة دفضيلت په بنا دچا تعريف کول ، احمد . قابلِ تعريف ګرځول ، يا قابل تعريف کيدل

مات ، مړ شو يا دهوا بنديدل ماته دنصر نه موتا مړکيدل، قبضتم: نيول وژل قبض دضرب نه قبضا نيول وفات کول، فواده: زړه دلته ورنه اولاد مراد دی استرجع: ان لله وانا اليه راجعون وئيل سموه لوړيدل .

**تشريح** : "قبضتم ثمرة فؤاده" يعني دده دزړه ټکړه مو واخستله کله چي دچا کوم ماشوم وي نو دهغه سره يي دځان نه هم زيات محبت وي مګر کله چي دهغه په وفات کيدو دجزعي فزعي کولو په ځاي دالله تعريف بيان کړي چي دا دالله امانت وو او الله تعالي واپس واخستلو نو په دي باندي الله خوشحاليږي او دده دپاره په جنت کي يو کور تياروي.

بخاري دابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي دالله پاك ارشاد دی چي کله زه ديوه بنده محبوب څيز دهغه نه واخلم او هغه خما په رضا باندي راضي شي او صبر اوکړي نو دهغه اجر او بدله دجنت په صورت کي ورکوم

مطلب دادی کله چي دچا څوك مړ شي او بيا هغه په دي باندي صبر اوکړي نو ددي صبر کولو په بدل کي الله تعالي ده ته جنت ورکوي.

ددينه معلومه چي داهل اخرت نه که کوم محبوب څيز فوت شي نو پدي دي صبر وکړي پدي سعادت ملاويږي او الله راضي کيږي اود الله رضا خو دهرڅيز نه بهترين څيز دي.

ددي حديث نه معلومه شوه چي کله څوك په مصيبت صبر کوي نو ده ته به ددي بدله ډيره زياته زر ورکړی شي دويمه ورنه دا خبره هم معلومه شوه چي هر څنګه حال کي راځي خو انسان به په هغي صبر کوي.

سوال: الله تعالي عالم الغيوب والشهادة دی نو دفرشتو نه يي ولي سوال اوکړو؟

جواب: کله چي الله تعالي دانسان دپيدا کولو اراده اوکړه نو د فرشتو نه يي مشوره غوښتلي وه نو فرشتو دانسانانو په باره کي وئيلي وو اتجعل فيها من يفسدفيها الخ. نو الله تعالي فرشتي پوهول غواړي چي په چا باندي تاسو دهنريزئ الزام لګوئ هغوئ اوګورئ چي په هر

حال كي زما تعريف كوي لكه څرنګه چي دي كس په دنيا كي په هر وخت كي دالله حمد ادا كولو نو ده ته به په جنت كي بيت الحمد وركړى شي تردي چي هر چاته ظاهره شي چي په هر حال كي به يي دالله تعالي تعريف كولو.

****************

## ٣٧_ باب مَا جَاءَ فِي التَّكْبِيرِ عَلَى الْجَنَازَةِ

### په جنازه كي دتكبيراتو ونيلو بيان

١٠٢٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى النَّجَاشِيِّ فَكَبَّرَ أَرْبَعًا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ أَبِي أَوْفَى، وَجَابِرٍ، وَيَزِيدَ بْنِ ثَابِتٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَيَزِيدُ بْنُ ثَابِتٍ هُوَ أَخُو زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ وَهُوَ أَكْبَرُ مِنْهُ شَهِدَ بَدْرًا، وَزَيْدٌ لَمْ يَشْهَدْ بَدْرًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، يَرَوْنَ التَّكْبِيرَ عَلَى الْجَنَازَةِ أَرْبَعَ تَكْبِيرَاتٍ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائيل يي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په نجاشي جنازه اوكړه او څلور تكبيرونه يي اوونيل.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن عباس، ابن ابي اوفي، جابر بن يزيد بن ثابت او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، او يزيد بن ثابت دزيد بن ثابت ورور دي او دي ورنه مشر دي او په بدر كي شريك شوي دي او زيد په بدر كي نه وو شريك شوي داكثرو صحابه كرامو او داهل علمو په دي باندي عمل دي ددوئ رائي داده چي دجنازي په مونځ كي څلور تكبيرونه دي، سفيان ثوري ، مالك بن انس، ابن مبارك ، شافعي، احمد بن حنبل، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم په دي باندي قول كړي دي.

**تشريح** : په دي باب كي دوه مسائل مختلف فيه دي:

---

[1] _ صحيح البخارى في الجنائز ٥٣ (١٣١٨) . سنن النسائي في الجنائز ٧٢ (١٩٧٣) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٣٣ (١٥٣٣) (تحفة الأشراف : ١٣٢٦٦) ( صحيح البخارى في الجنائز ٣ (١٣٣٥) . و٦٣ (١٣٣٣) . والمناقب ٣٨ (٣٨٨٠، ٣٨٨١) . صحيح مسلم في الجنائز ٢٢ (٩٥١) . سنن ابي داود في الجنائز ٦٢ (٣٢٠٣) . سنن النسائي في الجنائز ٧٢ (١٩٧٣) . و٧٦ (١٩٨٣) . موطا امام مالك في الجنائز ٥ (١٣) . مسند احمد (٢ في ٢٨٩، ٣٣٨، ٥٢٩)

**اوله مسئله:** غائبانه جنازه كول جائز دي اوكه نه؟
(۱) د امام ابو حنيفه او امام مالك رحمهما الله په نزد جائز نه ده
(۲) د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نزد جائز ده
**۲ مسئله:** د جنازي په مونځ تكبيرونه څو دي؟
(۱) د جمهور فقهاؤ او محدثينو په نزد په جنازه كي تكبيرو نه څلور دي.
(۲) اود غير مقلدينو په نزد د څلورو نه زيات دي
در حقيقت په جنازه كي د څلورو نه نهو پوري تكبيرات ثابت دي، ليكن د جمهورو په نزد د روايات صحيحه په بنا څلور راجح دي
ددوئ اول دليل حديث الباب دی.
و دويم دليل. رسول الله د علي رضي الله عنه د مور په جنازه كي څلور تكبيرونه ونيلي وو
دريم دليل : بيهقي د ابو وائل نه روايت نقل كړی دی چي د عمر فاروق په زمانه كي په جنازه كي څلور تكبيرونه ونيلی كيدل، او په خلقو كي اختلاف پيدا شو نو عمر فاروق ټول علماء راجمع كړل او په څلورو يي متفق كړل.(عنايه، فتح القدير).

*****************

١٠٢٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: كَانَ زَيْدُ بْنُ أَرْقَمَ يُكَبِّرُ عَلَى جَنَائِزِنَا أَرْبَعًا، وَإِنَّهُ كَبَّرَ عَلَى جَنَازَةٍ خَمْسًا، فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَغَيْرِهِمْ رَأَوْا التَّكْبِيرَ عَلَى الْجَنَازَةِ خَمْسًا، وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: إِذَا كَبَّرَ الإِمَامُ عَلَى الْجَنَازَةِ خَمْسًا فَإِنَّهُ يُتَّبَعُ الإِمَامُ. [1]

**ترجمه** دعبدالرحمن بن ابي ليلي بيان دي فرمائي چي زيد بن ارقم رضي الله عنه به زمونږ په جنازو څلور تكبيرونه ونيل او هغه په يوه جنازه كي پنځه تكبيرونه اوونيل نو مونږ ورنه ددي د وجي تپوس اوكړو نو وېي فرمائيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به هم داسي كول
امام ترمذي وائي دزيد بن ارقم حديث حسن صحيح دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي بعضو هم په دي باندي هم قول كړي دي ددوئ رائي داده چي په جنازه كي تكبيرونه پنځه دي،

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ٢٣ (٩٥٧). سنن ابي داود في الجنائز ٥٨ (٣١٩٧). سنن النسائي في الجنائز ٧٦ (١٩٨٣). سنن ابن ماجه في الجنائز ٢٥ (١٥٠٥). (تحفة الأشراف: ٣٦٧١). مسند احمد (٣ في ٣٦٧، ٣٦٨، ٣٧٠، ٣٧٢)

امام احمد او اسحاق رحمهما الله وائي كله چي امام په جنازه كي پنځه تكبيرونه اوواني نو دامام پيروي دي اوكړي شي (يعني مقتدي به هم پنځه تكبيرونه وائي)

## دزيد بن ارقم رضي الله عنه حالات

نوم زيد كنيه ابوعمر قبيله خزرج په ماشوموالي كي يتيم شوى وو او پرورش يي خپل تره عبدالله بن رواح رضي الله عنه اوكړو او همدا دزيد په اسلام كي دداخليدو سبب اوګرځيدو دماشوموالي په وجه په غزواتو كي شريك شوى نه وو او شركت يي په غزوه خندق كي كړى وو دى پخپله وائي ما په اولس غزواتو كي شركت كړى دى، په دربار رسالت كي ډير مقرب وو كله چي به بيمار شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به يي عيادت له راتلو يو خل يي په ستر ګه درد راغلى وو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دده دعيادت دپاره راغى دجوړيدو نه پس يي ورنه تپوس اوكړو كه دا مرض اوس هم باقي پاتي شوى وى نو څه به دي كول زيد عرض اوكړو چي صبر او داجر اميد به مي كولو رسول الله ورته اوفرمائيل كه داسي دي كولى نو دالله تعالي به وړاندي به بي ګناه ګرځيدلى وى (مسند احمد)

په ۶۸هجري كي په كوفه كي وفات شوى دى او دا دمختار بن ابي عبيد ثقفي زمانه وه دمروياتو شمير يي ۹۰دى مزيد حالات يي ابن سعد په طبقات كي ذكر كړي دي

***************

## ٣٨_ باب مَا يَقُولُ فِي الصَّلاَةِ عَلَى الْمَيِّتِ

### دجنازي په مونځ كي څه ويل پكار دي

١٠٢٤_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. أَخْبَرَنَا هِقْلُ بْنُ زِيَادٍ. حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ. عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. حَدَّثَنِي أَبُو إِبْرَاهِيمَ الأَشْهَلِيُّ. عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى عَلَى الْجَنَازَةِ قَالَ: "اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا. وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا. وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا. وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا". قَالَ يَحْيَى: وَحَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ ذَلِكَ. وَزَادَ فِيهِ: "اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الإِسْلاَمِ. وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الإِيمَانِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. وَعَائِشَةَ. وَأَبِي قَتَادَةَ. وَعَوْفِ بْنِ مَالِكٍ. وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ وَالِدِ أَبِي إِبْرَاهِيمَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرَوَى هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ. وَعَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ هَذَا الْحَدِيثَ. عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلاً. وَرَوَى عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ. عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ أَبِي سَلَمَةَ. عَنْ عَائِشَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَحَدِيثُ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ غَيْرُ مَحْفُوظٍ. وَعِكْرِمَةُ رُبَّمَا يَهِمُ فِي حَدِيثِ

يَحْيَى، وَرُوِيَ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وسَمِعْت مُحَمَّدًا يَقُولُ: أَصَحُّ الرِّوَايَاتِ فِي هَذَا حَدِيثُ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي إِبْرَاهِيمَ الْأَشْهَلِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، وَسَأَلْتُهُ عَنِ اسْمِ أَبِي إِبْرَاهِيمَ فَلَمْ يَعْرِفْهُ. [1]

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه واني ابوقتاده او ابو ابراهيم اشهلي دخپل پلار نه چې صحابي وو (رضي الله عنه) روايت بيانوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په يوه جنازه باندی دا دعا اولوستله ای الله (زمونږ ژوندي هم اوبخښی اومړي هم، واړه هم، اولوئ هم، سړي هم اوښځی هم کوم چې زمونږ سره دي هغوي هم او کوم چې زمونږ نه غائب دي هغوي هم، ای الله په مونږ کي چې چا ته ژوند ورکوی نو هغه په السلام باندی ژوندی اوساتی اوچاته چې مرګ ورکړی هغه ته په ايمان باندي مرګ ورکړی

امام ترمذي واني دابراهيم دپلار حديث حسن صحيح دي، هشام دستوائي علي بن مبارك دا حديث په سند د يحیٰ بن ابي كثير عن ابي سلمة بن عبدالرحمن عن النبي صلي الله عليه وسلم مرسلا سره نقل کړي دي، او عکرمه بن عمار په سند د يحیٰ بن ابي كثير عن ابي سلمة عن عائشه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي مګر دعکرمه بن عمار حديث محفوظ نه دي عکرمه اکثر ديحي بن ابي کثير په احاديثو نقل کولو کي په وهم کي واقع کيږي، او دارنګي دا حديث په سند د يحیٰ بن ابي كثير عن عبدالله بن ابي قتادة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره هم مروي دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چې په دي سلسله کي ديحي بن ابي کثير حديث کوم چې هغوئ په سند د ابي ابراهيم الاشهلي عن ابيه سره نقل کړي دي دټولو نه زيات صحيح روايت دي او ما ورنه دابوابراهيم دنوم تپوس اوکړو نو ويې نه پيژندلو، په دي باب کي د عبدالرحمن، عائشه، ابوقتاده، عوف بن مالك او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**لغات**: فتوفه توفي توفيا پوره کيدل ، مړ کولو ته هم توفي ونيلي شي

**تشريح** په پورتني روايت کي چې کومه دعا منقول ده دا دجنازي په دريم تکبير کي مشهوره دعا ده او په همدي دعا ونيلو دعام امت عمل دی

****************

۱۰۲۵ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى

[1] ـ سنن النسائي في عمل اليوم والليلة ۳۱۳ (۱۰۸۳)

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي عَلَى مَيِّتٍ، فَفَهِمْتُ مِنْ صَلَاتِهِ عَلَيْهِ: "اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَاغْسِلْهُ بِالْبَرَدِ وَاغْسِلْهُ كَمَا يُغْسَلُ الثَّوْبُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ مُحَمَّدٌ: أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ هَذَا الْحَدِيثُ. [1]

**ترجمه** دعوف بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په مړي باندي جنازه كول اوريدلي دي او ما دهغه دمونځ نه دا كلمات ياد كړي دي

"اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَاغْسِلْهُ بِالْبَرَدِ وَاغْسِلْهُ كَمَا يُغْسَلُ الثَّوْبُ"

يعني اي الله دي مړي ته مغفرت اوكړي او په ده باندي رحم اوكړي او ده لره په واوره اووينځي او ده لره دګناهونو نه داسي پاك كړي څنګه چي جامي دخيري نه پاكولي شي

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي او دمحمد بن ابراهيم بخاري قول دي دا حديث په دي باب كي دټولو نه زيات صحيح حديث دي

**تشريح** : دجنازي په مونځ كي د دريم تكبير نه پس هره يوه دعا لوستلي شي مګر ددي خبري خيال ساتل پكار دي چي په دعا كي به دمړي دپاره دمغفرت دعا غوښتل شامل وي او د واوري او ګلي تخصيص يي څكه كړي دي چي واوره قدرتي وي او كه دكارخاني جوړه وي خو خيري ختموي او مذكوره دعا دلته مختصر ده مګر په مشكواة كي رقم ۱۷۵۵كي په تفصيل سره ده او امام بخاري داحديث په دي باب كي اصح ګرځولي دي

**عوف بن مالك اشجعي رضي الله عنه حالات**

نوم عوف دپلار نوم مالك كنيه ابو عبدالرحمان قبيله يي اشجعي وه دخيبر په غزوه كي دټولو نه مخكي شريك شوي دي او اسلامي جهنډه ورسره وه دفتح مكي په ورځ هم دده دقوم جهنډه دده سره وه چي په شام كي اوسيدو او هم هلته يي په ۷۳هجري كي انتقال شوي دي

مرويات: ۶۷احاديث ورنه مروي دي چي شپږ متفق عليه دي او يو په بخاري كي دي او باقي په مسلم كي

* * * * * * * * * * * * * *

## ۳۹_ باب مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ

**دجنازي په مونځ كي دسورة فاتحي لوستلو بيان**

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ۲۶ (۹۶۳) . سنن النسائي في الطهارة ۵۰ (۶۲) . والجنائز ۷۷ (۱۹۸۵) . (تحفة الأشراف : ۱۰۹۰۱) مسند احمد (۶ ي ۲۸) وأخرجه سنن ابن ماجه في الجنائز ۲۳ (۱۵۰۰) مسند احمد (۶ ي ۲۳)

١٠٢٦ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عُثْمَانَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ: عَنْ أُمِّ شَرِيكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَلِكَ الْقَوِيِّ، إِبْرَاهِيمُ بْنُ عُثْمَانَ هُوَ: أَبُو شَيْبَةَ الْوَاسِطِيُّ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ، وَالصَّحِيحُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَوْلُهُ: مِنَ السُّنَّةِ الْقِرَاءَةُ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ. (1)

**ترجمه** . دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ديو مري په جنازه كي سورة فاتحه اولوستله.

امام ترمذي وائي دابن عباس ددي حديث سند قوي نه دي او دابراهيم بن عثمان نه مراد ابو شيبه واسطي دي او دا منكرالحديث دي دابن عباس نه چي په جنازه كي كوم صحيح څيزونه مروي دي په هغي كي په جنازه كي دسورة فاتحي لوستل سنت خودلي شوي دي، او په دي باب كي دام شريك رضي الله عنها نه هم حديث مروي دي.

*****************

١٠٢٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَوْفٍ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ". فَقُلْتُ لَهُ، فَقَالَ: "إِنَّهُ مِنَ السُّنَّةِ أَوْ مِنْ تَمَامِ السُّنَّةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، يَخْتَارُونَ أَنْ يُقْرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ بَعْدَ التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا يُقْرَأُ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَازَةِ، إِنَّمَا هُوَ ثَنَاءٌ عَلَى اللَّهِ، وَالصَّلَاةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالدُّعَاءُ لِلْمَيِّتِ، وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَغَيْرِهِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ، وَطَلْحَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَوْفٍ هُوَ: ابْنُ أَخِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، رَوَى عَنْهُ الزُّهْرِيُّ. (2)

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ٢٢ (١٤٩٥) . انظر الحديث الآتي (تحفة الأشراف : ٦٤٦٨)

[2] ـ صحيح البخاري في الجنائز ٦٥ (١٣٣٥) . سنن ابي داود في الجنائز ٥٩ (٣١٩٨) . سنن النسائي في الجنائز ٧٧ (١٩٨٩) (تحفة الأشراف ٥٧٦٤)

**ترجمه** طلحه بن عوف بيان دي چي ابن عباس رضي الله عنهما په يو مړي جنازه اوکړه او سورة فاتحه يي پکي اولوستله ما ورنه دسورة فاتحي باره کي تپوس اوکړو نو ويي فرمايل دا سنت دي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او طلحه بن عبدالله بن عوف دعبدالرحمن بن عوف وراره دي دده نه ابن شهاب زهري نقل دروايت کړي دي. په صحابه کرامو او اهل علمو کي بعضو هم په دي باندي قول کړي دي ددوئ په نزد دتکبير اولي نه پس په جنازه کي سورة فاتحه لوستل بهتر دي او همدا دامام شافعي اواحمد بن حنبل اواسحاق قول دي. مګر بعضي اهل علم وائي په جنازه کي به سورة فاتحه نشي لوستلي ځکه چي په جنازه کي حو صرف دالله ثناء ده او په نبي کريم صلي الله عليه وسلم درود دي او دمړي دپاره دعا ده اهل کوفه او سفيان ثوري وغيره هم په دي باندي قول کړي دي
**تشريح**: په دي مسئله کي اختلاف دي چي په جنازه کي د سورت فاتحي لوستل شته او که نه؟ په دي کي دوه مذاهب دي
(۱) د امام ابو حنيفه او امام مالك رحمهما الله په نزد په جنازه کي د فاتحي لوستل نشته
(۲) مګر د امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله په نزد سنت دي، اودوئ ددي دپاره د حديث الباب نه استدلال کړی دی
امام طحاوي ددي نه دا جواب کړی دی دبعضي صحابه کرامو نه چي د فاتحي لوستل ثبت دي دا په طور د ثناء اودعاء دي
فريق اول په دي دي مسئله کي په موطا کي دابن عمر د روايت نه استدلال کړی دی ، او دويم دليل يي په ابوداود کي د ابوهريره روايت دی وفيه "فأخلصوا له الدعاء". والبسط في موطولات الفقه. والله اعلم.

***************

## ٤٠_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ عَلَى الجَنَازَةِ وَالشَّفَاعَةِ لِلْمَيِّتِ

### دجنازي مونځ اودمړي دپاره دشفاعت بيان

١٠٢٨_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَيُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْيَزَنِيِّ، قَالَ: كَانَ مَالِكُ بْنُ هُبَيْرَةَ إِذَا صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ، فَتَقَالَّ النَّاسَ عَلَيْهَا جَزَّأَهُمْ ثَلاَثَةَ أَجْزَاءٍ، ثُمَّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى عَلَيْهِ ثَلاَثَةُ صُفُوفٍ فَقَدْ أَوْجَبَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَأُمِّ حَبِيبَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ.

وَمَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مَالِكِ بْنِ هُبَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. هَكَذَا رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، وَرَوَى إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ هَذَا الْحَدِيثَ، وَأَدْخَلَ بَيْنَ مَرْثَدٍ، وَمَالِكِ بْنِ هُبَيْرَةَ رَجُلًا، وَرِوَايَةُ هَؤُلَاءِ أَصَحُّ عِنْدَنَا. (1)

**ترجمه** . مرثد بن عبدالله يزني وائي چي مالك بن هبيره رضي الله عنه به چي دچا جنازه كوله او خلق به لږ وو نو هغوي به يې درى صفونه جوړول اوفرمانيل به يې چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چي په كوم مړي باندى درى صفونه مونځ اوكړي هغه دپاره جنت واجبيږي

امام ترمذي وائي دمالك بن حبيره حديث حسن دي دارنګي نورو راويانو هم دمحمد بن اسحاق نه نقل كړي دي، او ابراهيم بن سعد هم دا حديث دمحمد بن اسحاق نه نقل كړي دي اوهغوئ په سند دمرثد او مالك بن هبيره په مينځ كي يو كس داخل كړي دي زمونږ په نزد ددوئ روايت زيات صحيح دي، او په دي باب كي دعائشه، ام حبيبه، ابوهريره، او ميمونه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**لغات** : تقال: تقال الشيء يعني فلاني شي بي كم كړو، په اجزاؤ تقسيمول، يوجزء ګرځول. اكتفاء كول.

**تشريح** : ديو مسلمان په بل مسلمان دا حق هم دى چي كله مړ شي دهغه په جنازه كي به شركت كوي كه چري په جنازه كي ډير خلق شريك وي نو خومره چي صفونه زيات جوړ شي بهتر ده او كه چري كسان كم وي نو بيا په دري صفونو تقسيمول پكار دي.

**ايا په الله تعالي كوم څيز لازم دي؟**

فقد اوجب ، يعني جنت يي واجب كړو؟

سوال: په الله تعالي خو دچا حق نشته نو دلته څنګه ذكر شوي دي چي الله تعالي به په ده باندي جنت واجب كړي.

جواب: الله تعالي پخپل فضل او كرم سره پخپل خان باندي پخپله لازم كړي دي چي دى به جنت ته داخلوي مطلب دادى چي دداسي قسم كس دپاره الله تعالي جنت ته دداخلولو وعده كړي ده او دا خو ظاهره ده چي الله تعالي كومه وعده اوكړي هغه پوره كوي ديته وجوب لغيره ونيلى شي كوم چي جائز دي ليكن وجوب لذاته دالله تعالي دذات دپاره جائز نه دى.

---

1 ـ سنن ابي داود في الجنائز ۳۳ (۳۱٦٦) . سنن ابن ماجه في الجنائز ۱۹ (۱۴۹۰) . (تحفة الأشراف : ۱۱۲۰۸) . مسند احمد (۴/ ۷۹)

دعلامه كرماني په قول دعامو مونځونو په جماعت كي داول صف فضيلت زيات وي په خلاف دجنازي چي په دي كي په اخري صف كي فضيلت زيات وي.

## دمرثد بن عبدالله يزني حالات:

نوم مرثد دپلار نوم عبدالله كنيه ابو الخير يزني او مصري ورته وئيلى شي دمشرانو تابعينو دجملي نه دى چي عموما به يي دعقبه بن عامر او ابو ايوب او عبدالله بن عمر او عمرو بن العاص رضي الله عنهم نه نقل دروايت كولو، دهجرت په ۹۰ كال وفات شوى دى او په صحاح سته كي يي روايات موجود دي.

***************

۱۰۲۹_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ أَيُّوبَ، وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ رَضِيعٍ كَانَ لِعَائِشَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا يَمُوتُ أَحَدٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَتُصَلِّي عَلَيْهِ أُمَّةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَبْلُغُونَ أَنْ يَكُونُوا مِائَةً فَيَشْفَعُوا لَهُ إِلَّا شُفِّعُوا فِيهِ ". وقَالَ عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ فِي حَدِيثِهِ: مِائَةٌ فَمَا فَوْقَهَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ أَوْقَفَهُ بَعْضُهُمْ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (1)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي يو مسلمان مړ شي او دمسلمانانو يوه ډله چي تعداد يي سلو ته رسيږي ورباندي جنازه اوكړي او دده شفاعت اوكړي نو ددوئ شفاعت به دده په حق كي قبليږي. علي بن محمد پخپل حديث كي "مائة ومافوقها" ذكر كړي دي يعني سل يا دسلو نه زيات. امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي او بعضو راويانو دا موقوفاً نقل كړي دي، او مرفوع يي نه دي نقل كړي.

## عبدالله بن يزيد خطمي صحابي رضي الله عنه مختصر حالات:

نوم عبدالله كنيه ابو موسي قبيله اوس او دپلار نوم يي يزيد دى.
دخپل پلار سره يوځاي مسلمان شوى دى او په بيعت الرضوان كي يي شركت كړى دى او پدغه وخت كي دده عمر اولس كاله وو عبدالله بن زبير دخلافت په زمانه كي ديو ځو ورځو دپاره دمكي امير پاتي شوى دى دده په باره كي حافظ ابن حجر ليكلي دي كان اكثر الناس صلاة

---

1 _ صحيح البخاري في الجنائز ۱۸ (۹۳۶). سنن النسائي في الجنائز ۷۸ (۱۹۹۳). (تحفة الأشراف: ۱۶۲۹۱). مسند احمد (۶ في ۳۲، ۴۰، ۹۷، ۲۳۱)

وكان لايصوم الا يوم عاشورا. يعني دخپلو ملګرو نه دمونځ په کثرت کي ممتاز وو البته روژه به يي دعاشوري ضرور نيوله په کوفه کي وفات شوى دى او دمروياتو شمير يي ۱۲۷ دى چي بعضي په دي کي بلا واسطه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي او بعضي يي دابو ايوب انصاري او ابن مسعود او حذيفه بن يمان او عمر رضي الله عنهم نه نقل کړي دي

****************

## ٤١ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّلاَةِ عَلَى الْجَنَازَةِ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَعِنْدَ غُرُوبِهَا

### دنمر ختلو او ډوبيدلو په وخت کي دجنازي کولو دکراهت بيان

١٠٣٠ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُلَيِّ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: " ثَلاَثُ سَاعَاتٍ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَانَا أَنْ نُصَلِّيَ فِيهِنَّ أَوْ نَقْبُرَ فِيهِنَّ مَوْتَانَا: حِينَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ بَازِغَةً حَتَّى تَرْتَفِعَ، وَحِينَ يَقُومُ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ حَتَّى تَمِيلَ، وَحِينَ تَضَيَّفُ الشَّمْسُ لِلْغُرُوبِ حَتَّى تَغْرُبَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. يَكْرَهُونَ الصَّلاَةَ عَلَى الْجَنَازَةِ فِي هَذِهِ السَّاعَاتِ، وقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ أَنْ نَقْبُرَ فِيهِنَّ مَوْتَانَا يَعْنِي: الصَّلاَةَ عَلَى الْجَنَازَةِ. وَكَرِهَ الصَّلاَةَ عَلَى الْجَنَازَةِ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ، وَعِنْدَ غُرُوبِهَا، وَإِذَا انْتَصَفَ النَّهَارُ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، قَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا بَأْسَ فِي الصَّلاَةِ عَلَى الْجَنَازَةِ فِي السَّاعَاتِ الَّتِي تُكْرَهُ فِيهِنَّ الصَّلاَةُ. [1]

**ترجمه** : دعقبه بن عامر جهني بيان دي چي دري ساعتونه داسي دي په کوم کي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ کولو نه او دخپلو مړو خښولو نه منع فرمائيله يو هغه وخت کي دي کله چي نمر راخيژي ترڅو چي پوره نه وي راختلي او دويم دغرمي وخت کي تردي چي نمر زائل شوي نه وي او بل دنمر ډوبيدو ته دمائل کيدو وخت دي ترڅو چي غائب شوي نه وي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو په دي باندي عمل دي هغوئ په دي وختونو کي جنازه کول مکروه ګنړي، ابن مبارک وائي په دي وختونو کي دمړو خښولو نه مراد په دوئ باندي جنازه کول دي او هغوئ دنمر ستړکي ختلو په

---

[1] ـ صحيح مسلم في المسافرين ٥١ (٨٣١) . سنن ابي داود في الجنائز ٥٥ (٣١٩٢) . سنن النسائي في المواقيت ٣١ (٥٦١) و٣٣ (٥٦٦) . والجنائز ٨٩، (٢٠١٥) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٣٠ (١٥١٩) . (تحفة الأشراف : ٩٩٣٩) . مسند احمد (٤ في ١٥٢) . سنن الدارمي في الصلاة ١٤٢ (١٤٧٣)

وخت كي او دغرمي وخت كي او نمر پريوتو وخت كي جنازه كول مكروه گڼلي دي احمد بن حنبل او اسحاق هم ددي قائل دي، امام شافعي وائي په كومو وختونو كي چي مونځ كول مكروه دي په هغي كي جنازه كولو كي څه قباحت نشته.

**دعقبه بن عامر رضي الله عنه حالات:**

نوم عقبه كنيه ابوعمرو دپلار نوم عامر رسول الله صلي الله عليه وسلم چي كله مديني ته راغی نو عقبه په اسلام مشرف شو علامه ذهبي ليكلي دي چي عقبه فقيه او دكتاب الله قاري وو او دفرائضو ماهر او فصيح اللسان شاعر وو (تذكرة الحفاظ).

دقران كريم سره يي خصوصي مينه وه يوه نسخه دقران كريم يي پخپل لاس هم ليكلي وه (تهذيب التهذيب).

دنبي كريم صلي الله عليه وسلم بنه خدمت يي كړی دی په سفر كي به درسول الله سورلۍ رابـكل په ده پوري متعلق وو لكه چي په روايتونو كي راځي كان صاحب بغلة رسول الله صلي الله عليه وسلم الشهباء.

دده دوفات دتاريخ باره كي مختلف اقوال مروي دي صحيح قول دادی چي په ۵۸هجري كي وفات شوی دی، او دده دمروياتو شمير ۵۵ دی چي يو په دي كي متفق عليه دی او يو په بخاري كي دی او اوه په مسلم كي دي (تهذيب الكمال).

داكابرو صحابه كرامو نه نقل درروايت كوي تردي چي صرف ديو حديث اوريدو دپاره مصر ته دابوايوب انصاري سره دملاويدو دپاره تللی وو خو چي هغه يي واوريدو نو فورا واپس لاړو

***************

## ٤٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الأَطْفَالِ

**په ماشومانو دجنازي كولو بيان**

١٠٣١_ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ آدَمَ ابْنُ بِنْتِ أَزْهَرَ السَّمَّانِ البَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ زِيَادِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ حَيَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ المُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الرَّاكِبُ خَلْفَ الجَنَازَةِ وَالمَاشِي حَيْثُ شَاءَ مِنْهَا، وَالطِّفْلُ يُصَلَّى عَلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، رَوَاهُ إِسْرَائِيلُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، وَالعَمَلُ

عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، قَالُوا: يُصَلَّى عَلَى الطِّفْلِ، وَإِنْ لَمْ يَسْتَهِلَّ بَعْدَ أَنْ يُعْلَمَ أَنَّهُ خُلِقَ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. ([1])

**ترجمه**: دمغيره بن شعبه رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په سورلو سواره خلق دي په جنازه پسي وروستو خي او پيدل تلونكي چي څنګه تلل غواړي هغه شان تلي شي او په ماشومانو باندي هم دجنازي مونځ كيږي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي اسرائيل او بعضي نورو راويانو دا حديث دسعيد بن عبدالله نه نقل كړي دي، په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي دوئ وائي په ماشوم باندي جنازه كول دساء اخستلو نه پس وي يعني كوم مړ ماشوم كي ساه اچولي شوي وي په هغه به جنازه كيږي برابره خبره ده چي دولادت وخت كي يي اواز كړي وي او كنه وي احمد بن حنبل او اسحاق بن راهويه ددي قائل دي.

**تشريح**

## دژوندى ماشوم پيدا كيدو احكام

"وان لم يستهل" د پيدائش په وخت د ماشوم آواز كولو مطلب دا دى.چى داسى خيز يا مومى.چى د ماشوم په ژوند دلالت اوكړى.مثلاً د ماشوم د يو اندام حركت كول يا دده د ژړا آواز كول وغيره.بهرحال كه ماشوم د پيداكيدو سره مړشى.يعنى كه د پيدائش په وخت د ژوند څه دليل موجود شي.اومړ شى.نو دى ماشوم ته به نوم كيخودى شى.ده ته به غسل هم وركولى شى.او په ده به د جنازى مونځ هم كولى شى.

ددي دليل د نبى كريمﷺ قول دى:

"إذا إستهل المولود صلى عليه وان لم يستهل لم يصل عليه".

او عقلى دليل دادي.چى استهلال يعنى دماشوم آواز كول د ژوند نښه ده.نود ده په حق كي د مړو طريقه متحقق ده.

اوكوم ماشوم چى د پيدائش په وخت د ژړا آواز اونكړى.او د ژوند څه بله نښه هم اونه موندى شى.نودى به د كفن په شان يوه جامه كي راونغاړى.او په كنده كي به ئي ښخ كړى.دا عمل به صرف د آدم د اولاد د تكريم په خيال سره وى.او په ده به د جنازى مونځ نشى كولي. دليل تيرشوي روايت دي.

(٢) البته د غير ظاهروايت مطابق به ده ته غسل وركولى شى. دليل دادي.چى دا من وجه د بدن يوه حصه ده. او من وجه نفس دي.نو د دواړو اعتبار اوكړي شو.چونكه د بدن يوه حصه

[1] ـ سنن ابي داود في الجنائز ٤٩ (٣١٨٠) . سنن النسائي في الجنائز ٥٥ (١٩٤٣) . سنن ابن ماجه في الجنائز ١٥ (١٤٨١) . ٢٦و (١٥٠٧) . (تحفة الأشراف : ١١٤٩٠) . مسند احمد (٤ في ٢٤٧، ٢٥٢)



او اندام دي.خکه به په ده د جنازې مونځ کولی شی.او چونکه من وجه نفس دي. خکه به ده ته غسل ورکولی شی. دا د ابویوسف رحمه الله نه هم نقل دی.او هم دا مختار قول دي.

***************

## ٤٣ــ باب مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الصَّلاَةِ عَلَى الْجَنِينِ حَتَّى يَسْتَهِلَّ

### په جنین (دمور په خیټه کې په موجود بچي ) دجنازې نه کولو بیان چې څو پورې هغه دولادت وخت کې ژړلي نه وي

١٠٣٢ــ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ الْمَكِّيِّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الطِّفْلُ لاَ يُصَلَّى عَلَيْهِ، وَلاَ يَرِثُ وَلاَ يُورَثُ حَتَّى يَسْتَهِلَّ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ قَدِ اضْطَرَبَ النَّاسُ فِيهِ، فَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرْفُوعًا، وَرَوَى أَشْعَثُ بْنُ سَوَّارٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ مَوْقُوفًا، وَرَوَى مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ جَابِرٍ مَوْقُوفًا، وَكَأَنَّ هَذَا أَصَحُّ مِنَ الْحَدِيثِ الْمَرْفُوعِ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، قَالُوا: لاَ يُصَلَّى عَلَى الطِّفْلِ حَتَّى يَسْتَهِلَّ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه روایت دي نبي کریم صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي په هغه ماشوم باندې جنازه نه کیږي او نه به دي دچا وارث ګرځي او نه بل څوك دده وارث ګرځي څو پورې چې هغه دپیدائش وخت کې ژړلي نه وي

امام ترمذي وائي په دې حدیث کې راویان په اضطراب کې واقع شوي دي بعضو دا دابو الزبیر نه او هغه دجابر نه او جابر درسول الله نه مرفوعا نقل کړي دي او اشعث بن سوار او بعضو نورو راویانو دابوزبیر نه او ابوزبیر دجابر نه موقوفاً نقل کړي دي، محمد بن اسحاق دعطاء بن ابي رباح نه او عطاء دجابر نه موقوفاً نقل کړي دي ګویا کې موقوف روایت دمرفوع نه زیات صحیح دي او بعضي اهل علمو هم دا قول اختیار کړي دي دوئ وائي په ماشوم به هغه وخته پورې جنازه نه کیږي ترڅو چې هغه دپیدائش وخت کې ژړلي نه وي او همدا دسفیان ثوري او امام شافعي قول دي.

**تشریح** :د استهلال مطلب دا دی.چی داسی څیز بیا مومی.چی د ماشوم په ژوند دلالت اوکړی.مثلاً د ماشوم د یو اندام حرکت کول یا دده د ژړا آواز کول وغیره.بهرحال که ماشوم

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٦٦٠) وأخرجه: سنن ابن ماجه في الجنائز ٢٦ (١٥٠٨).

د پيداكيدو سره مړشي.يعنى كه د پيدائش په وخت د ژوند څه دليل موجود شي.اومړ شي.نو دى ماشوم ته به نوم كيخودى شي.ده ته به غسل هم وركولى شي.او په ده به د جنازى مونځ هم كولى شي.ددي دليل د نبى كريمﷺ قول: "إذا إستهل المولود صلى عليه وان لم يستهل لم يصل عليه".

اوكوم ماشوم چې د پيدائش په وخت د ژړا آواز اونكړى.او د ژوند څه بله نښه هم اونه مونډى شي.نودي به د كفن په شان يوه جامه كي راونغاړى.او په كنده كي به ئې ښخ كړى.دا عمل به صرف د آدم (١) د اولاد د تكريم په خيال سره وى.او په ده به د جنازى مونځ نشي كولې. دليل تيرشوې روايت دې.(٢) البته د غير ظاهروايت مطابق به ده ته غسل وركولى شي. دليل دادې.چې دا من وجه د بدن يوه حصه ده. او من وجه نفس دې.نو د دواړو اعتبار اوكړې شو.چونكه د بدن يوه حصه او اندام دې.ځكه به په ده د جنازى مونځ كولى شي.او چونكه من وجه نفس دې. ځكه به ده ته غسل وركولى شي. دا د ابويوسف رحمه الله نه هم نقل دى.او هم دا مختار قول دې.

***************

## ٤٤ـ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ عَلَى الْمَيِّتِ فِي الْمَسْجِدِ

### په مسجد كي په مړي دجنازي كولو بيان

١٠٣٣ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ الْوَاحِدِ بْنِ حَمْزَةَ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى سُهَيْلِ ابْنِ بَيْضَاءَ فِي الْمَسْجِدِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالَ الشَّافِعِيُّ: قَالَ مَالِكٌ: لَا يُصَلَّى عَلَى الْمَيِّتِ فِي الْمَسْجِدِ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُصَلَّى عَلَى الْمَيِّتِ فِي الْمَسْجِدِ، وَاحْتَجَّ بِهَذَا الْحَدِيثِ. ([1])

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسهيل بن بيضاء جنازه په مسجد كي كړي وه

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ٣٣ (٩٧٣) . سنن النسائي في الجنائز ٧٠ (١٩٦٩) . مسند احمد (٦ في ٧٩، ١٣٣، ١٦٩) (تحفة الأشراف : ١٦١٧٥) وأخرجه صحيح مسلم في الجنائز . سنن ابي داود في الجنائز ٥٣ (٣١٨٩) . سنن ابن ماجه في الجنائز ٢٩ (١٥١٨) . موطا امام مالک في الجنائز ٨ (٢٢)

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي، دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي امام شافعي وائي دامام مالك قول دي مسجد كي به په مړي جنازه نه كيږي مګر دامام شافعي خپل قول دادي چي په مسجد كي په مړي جنازه كيدي شي او هم ددي حديث نه يي استدلال كړي دي

***************

## ٤٥_ باب مَا جَاءَ أَيْنَ يَقُومُ الإِمَامُ مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ

### دسړي او دښځي دجنازي كولو په وخت كي به امام چرته اودريږي

١٠٣٤_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ أَبِي غَالِبٍ، قَالَ: " صَلَّيْتُ مَعَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَلَى جَنَازَةِ رَجُلٍ، فَقَامَ حِيَالَ رَأْسِهِ، ثُمَّ جَاءُوا بِجَنَازَةِ امْرَأَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ، فَقَالُوا: يَا أَبَا حَمْزَةَ، صَلِّ عَلَيْهَا، فَقَامَ حِيَالَ وَسَطِ السَّرِيرِ، فَقَالَ لَهُ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ: هَكَذَا رَأَيْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْجَنَازَةِ مُقَامَكَ مِنْهَا، وَمِنَ الرَّجُلِ مُقَامَكَ مِنْهُ. قَالَ: نَعَمْ. فَلَمَّا فَرَغَ. قَالَ: احْفَظُوا ". وَفِي الْبَابِ: عَنْ سَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ هَمَّامٍ مِثْلَ هَذَا. وَرَوَى وَكِيعٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ هَمَّامٍ فَوَهِمَ فِيهِ. فَقَالَ: عَنْ غَالِبٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَالصَّحِيحُ عَنْ أَبِي غَالِبٍ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ أَبِي غَالِبٍ مِثْلَ رِوَايَةِ هَمَّامٍ، وَاخْتَلَفُوا فِي اسْمِ أَبِي غَالِبٍ هَذَا. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: يُقَالُ: اسْمُهُ نَافِعٌ، وَيُقَالُ: رَافِعٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ.[1]

**ترجمه** . دابوغالب بيان دي چي ما دانس بن مالك سره په يو كس باندي جنازه كړي وه او هغه دمړي سر ته اودريدو بيا دقريشو خلقو يوي ښځي جنازه راوړه او ويې وئيل اي ابو حمزه په دي باندي هم جنازه اوكړه نو هغه دكټ دمينځ سره يعني دښځي ملا ته مخامخ اودريدو علاء بن زياد ورنه تپوس اوكړو ايا تا رسول الله صلي الله عليه وسلم دښځي او سړي په جنازو كي په داسي طريقه اودريدو باندي ليدلي دي لكه چي ته اوس څنګه اودريدلي يي ؟ انس اووئيل هو، او چي كله دجنازي نه فاغ شو نو ويې وئيل دا طريقه ياد اوساتئ

امام ترمذي وائي دانس داحديث حسن دي او نورو راويانو هم دحمام نه ددي پشان روايت نقل كړي دي، وكيع هم دا حديث دحمام نه نقل كړي دي ليكن هغه ته وهم شوي وو چي عن غالب

[1] ـ سنن ابي داود في الجنائز ٥٧ (٣١٩٤)، سنن ابن ماجه في الجنائز ٢١ (١٤٩٤) . (تحفة الأشراف ١٩٢١) . مسند احمد (٣/ ١٥١)

عن انس یي وئیلي وو او صحیح عن ابي غالب دي، عبدالوارث بن سعید او بعضي نورو راویانو دابو غالب نه روایت کړي دي څنګه چي حمام کړي دي، او په دي باب کي دسمره رضي الله عنه نه هم روایت مروي دي او بعضي اهل علمو هم دا قول اختیار کړي دي او دا دامام احمد او اسحاق بن راهویه قول هم دي

**تشریح:** مذاهب دفقهاؤ

(۱) دمالکیانو په نزد دجنازي کولو دپاره به امام دمړي دسر سره اودریږي برابره خبره ده چي جنازه دسړي وي او که دښځي.

(۲) داحنافو په نزد دمړي دسیني سره مخامخ اودریدل پکار دي

(۳) او دشوافع او حنابله په نزد که جنازه د سړي وي نو دسر سره اودریدل دي او که دښځي وي نو ذبدن دنیمي مخامخ اودریدل پکار دي

***************

۱۰۳۵ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَالْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى امْرَأَةٍ فَقَامَ وَسَطَهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ.[1]

**ترجمه:** دسمره بن جندب رضي الله عنه بیان دي چي نبي کریم صلي الله علیه وسلم په یو ښخه جنازه اوکړه نو هغه ددي دمینځ یعني دملا سره اودریدو.

امام ترمذي وائي داحدیث حسن صحیح دي او شعبه هم دا روایت دحسین المعلم نه نقل کړي دي

**دابوسعید سمره بن جندب رضي الله عنه حالات**

نوم سمره کنیه ابو سعید او دپلار نوم یي جندب بن بلال وو چي په ماشوم والي کي یي پلار وفات شوی وو او مور مدیني ته راوړی وو او انصارو ته یي دنکاح پیغام ورکړو خو شرط پکي دا وو هر څوك که ماسره نکاح کوي هغه به زما او زما د خوي سمره دواړو کفالت کوي نو په دي شرط یي دمرلي بن شیبان بن ثعلبه سره نکاح اوشوه

سمره رضي الله عنه دماشوم توب په وجه په بدر کي دشرکت نه پاتي شو لیکن په احد کي چي

[1] ـ صحیح البخاری في الحیض ۲۹ (۳۳۲) ، والجنائز ۶۲ (۱۳۳۱) ، و ۶۳ (۱۳۳۲) . صحیح مسلم في الجنائز ۲۷ (۹۶۴) . سنن ابی داود في الجنائز ۵۷ (۳۱۹۵) . سنن النسائی في الحیض ۲۵ (۳۹۱) . والجنائز ۷۳ (۱۹۷۸) . سنن ابن ماجه في الجنائز ۲۱ (۱۴۹۳) . (تحفة الأشراف : ۴۶۲۵) . مسند احمد (۵ في ۱۴، ۱۹)

كله رسول الله صلي الله عليه وسلم يو ماشوم ته اجازت ورکړو نو سمره اوونيل زه خو دده نه طاقتور يم او په کشتئ کي هغه ته سمره رضي الله عنه په مقابله کي شکست ورکړو نو ددينه پس په احد کي ورته دشرکت اجازت ملاؤ شو او بيا ددينه پس په تمامو غزواتو کي شريك پاتي شوی دی

وفات: دهجرت په ۵۴ کال وفات شوی دی ددي واقعه دا وه چي يخ وهلی وو نو دګرمو اوبو په ديګ کينولی شو تردي چي اوبو ته ورپريوتو او دا دده دوفات کيدو سبب اوګرځيدو

ابن سعد په طبقات کي ليکلي دي يوځل ابوهريره او ابو محذوره او سمره رضي الله عنهم دري واړه درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي ناست وو رسول الله اوفرمائيل په تاسو کي يو کس په اور باندي مري نو درسول الله دا پيشن ګويي دسمره په باره کي رشتيا شوه (طبقات ابن سعد اسد الغابه).

مرويات ۱۱۲۳ احاديث ورنه مروي دي چي دوه په دي کي متفق عليه دي يو په بخاري کي دی او څلور په مسلم کي.

****************

## ٤٦ـ باب مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الصَّلاَةِ عَلَى الشَّهِيدِ

## په شهيد دجنازي نه کولو بيان

١٠٣٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلَى أُحُدٍ فِي الثَّوْبِ الوَاحِدِ، ثُمَّ يَقُولُ: "أَيُّهُمَا أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ"، فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدِهِمَا قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ، وَقَالَ: "أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هَؤُلَاءِ يَوْمَ القِيَامَةِ، وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ فِي دِمَائِهِمْ، وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ وَلَمْ يُغَسَّلُوا". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرُوِيَ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ بْنِ أَبِي صُعَيْرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمِنْهُمْ مَنْ ذَكَرَهُ عَنْ جَابِرٍ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الشَّهِيدِ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا يُصَلَّى عَلَى الشَّهِيدِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَهْلِ

الْمَدِينَةِ، وَبِهِ يَقُولُ: الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: يُصَلَّى عَلَى الشَّهِيدِ، وَاحْتَجُّوا بِحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ صَلَّى عَلَى حَمْزَةَ، وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَبِهِ يَقُولُ: إِسْحَاقَ.[1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به د احد شهيدان په كفن كي دوه دوه يو خايى كول، نو اول به يى دا تپوس اوكړو په دى دواړو كي چاته قران ډير ياد وو، چي كوم يو به ورته اوخودلى شو نو هغه به يى لحد كي مخكي كينبودلو او فرمائيل به يي دقيامت په ورځ به زه په دي خلقو باندي ګواه يم او رسول الله دوئ لره پخپلو وينو كي د دفن كولو حكم اوكړو او جنازه ييورباندي اونكړه او نه يي ورته غسل وركړو

امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي داحديث دزهري نه مروي دي او هغه دانس نه نقل كړي دي او انس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي . دارنګي داحديث دزهري نه عبدالله بن ثعلبه بن ابي صغير په واسطه هم مروي دي او هغوئ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كوي او په دوئ كي بعضي راويانو داحديث دجابر په روايت ذكر كړي دي، په دي باب كي دانس بن مالك نه هم روايت وارد دي او په شهيد دجنازي كولو باره كي په اهل علمو كي اختلاف دي دبعضو قول دي چي په شهيد به جنازه نه كيږي او دا داهل مدينه قول دي امام شافعي او احمد رحمهما الله هم دا وائي، او دبعضو قول دي چي په شهيد به جنازه كيږي او هغوئ به دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دحديث نه استدلال كړي دي چي رسول الله په حمزه رضي الله عنه جنازه كړي وه امام ثوري او اهل كوفه ددي قائل دي او دا داسحاق بن راهويه قول هم دي.

**لغات** : اشير ، اشار باب افعال لكه اشار اليه ، او اشار بيده ، يعني اشاره كول عليه. حكم كول.

**تشريح** : قاضي ثناء الله پخپل تفسير كي ددي حديث نه څه مستنبط فقهي مدلل مسائل بيان كړي دي چي په لاندينو كرښو كي يي نقل كوو:

**مسئله**: دعلماؤ اجماع منعقد شوي ده چي شهيد ته به غسل نه شي وركولي څكه چي داحد شهيدانو ته غسل نه وو وركړي شوي اورسول الله حكم كړي وو چي ددوئ اصلحي اوسامان

[1] ـ صحيح البخاري في الجنائز ۷۲ (۱۳۴۳)، و ۷۳ (۱۳۴۵)، و ۷۵ (۱۳۴۶)، و ۷۸ (۱۳۴۸)، والمغازي ۲۶ (۴۰۷۹)، سنن ابي داود في الجنائز ۳۱ (۳۱۳۸)، سنن النسائي في الجنائز ۶۲ (۱۹۵۷)، سنن ابن ماجه في الجنائز ۲۸ (۱۵۱۴)، (تحفة الأشراف: ۲۳۸۲)

ورنه لري كړئ اوباقي ويني او كپړي ورنه مه لري كوئ اودفن يي كړئ «رواه ابو داود وابن ماجه عن ابن عباس»

نسائي په صحيح سند سره دعبدالله بن ثعلبه روايت بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دوينو سره يي خښ كړئ دا خكه څوك چي دالله په لاړ كي زخمي شي هغه به په قيامت كي دوينو سره راځي دده دوينو رنګ به دوينو پشان وي ليكن خوشبو به يي دمشكو پشان وي . ددي بحث يو حديث دجابر رضي الله عنه په روايت سره هم راغلي دي چي ديو سړي سينه په غشي اوويشتلي شوه او په دي باندي مړ شو اوده لره په همدغه جامو كي همدغه شان اونغښتلي شو او دفن كړي شو اومونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره هم ركاب وو «رواه ابو داود علي شرط مسلم»

**مسئله:** كه چري دجنابت په حالت كي څوك شهيد شي نو ايا دده ته به غسل وركولي شي ؟ دا مسئله اختلافي ده

(۱) امام ابو حنيفه او امام احمد رحمهما الله په نزد به ورته غسل وركولي شي

(۲) امام مالك او امام شافعي رحمهما الله وائي چي غسل به ورته نه شي وركولي خكه چي درسول الله فرمان "زملوهم بدمائهم" عام دي ، دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد باندي دحنظله بن ابي عامر قصه ماخذ داستدلال دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي وو ما اوليدل چي فرشتو حنظله بن ابي عامر لره دزمكي او اسمان په مينځ كي دسپيني وريخي په اوبو سره دسپينو زرو په لوښو كي غسل وركولو ، دابو اسيد ساعدي رضي الله عنه بيان دي چي مونږ لاړو دحنظله لاش مو اوليدو اودسر نه يي اوبه څڅيدلي زه چي واپس راغلم نو رسول الله ته مي ددي خبر وركړو نبي كريم صلي الله عليه وسلم دده دښځي نه دمعلومات حاصلولو دپاره هغي ته څوك وروليږلو هغي اووئيل دجنابت په حالت كي بهر تلي وو . حنظله ته په دي وجه باندي غسيل الملائكه وئيلي شي.

ابن جوزي دا حديث دمحمد بن سعد په روايت سره مرسل نقل كړي دي او ابن حبان او حاكم او بيهقي داسحاق په سند سره مسند نقل كړي دي حاكم په "اكليل " كي دابو اسيد په روايت سره هم دا روايت نقل كړي دي ليكن سند يي ضعيف دي ، حاكم په مستدرك كي او طبراني او بيهقي دابن عباس رضي الله عنه په روايت سره هم دا حديث بيان كړي دي ليكن دحاكم په روايت كي معلي بن عبد الرحمن رواي دي او هغه متروك دي اودطبراني په اسناد كي حجاج مدلس دي اودبيهقي په سند كي ابوشيبه واسطي ضعيف دي

**مسئله:** علماؤ اختلاف كړي دي په باره دجنازي كولو كي په شهيد باندي :

(۱) امام شافعي وائي چي جنازه به ورباندي نشي كولي.

(۲) امام ابوحنيفه او امام مالك رحمة الله عليهما فرمائي چي په شهيد باندي دي جنازه وکړي شي

(۳) اود امام احمد نه دواړه روايتونه منقول دي

زمونږ دليل دادي چي دجنازي مونځ ياخو دګناهونو دمغفرت دپاره دي يا دمړي دعزت دپاره دي او د درجاتو دبلندئ دپاره دي ، اوشهيد دعزت زيات مستحق دي، که چري په مونځ نه کولو کي تکريم وي نو بيا رسول الله ددي زيات مستحق وو ، په هغه باندي دجنازي مونځ شوي وو ، حالانکه اجماعا په هغه باندي جنازه شوي ده او اصل مونځ کول دي، امام شافعي په حديث دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه استدلال کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به په يوه کپړه کي داحد دوه دوه شهيدان په کفن کول اوبيابه ئي تپوس کولو کوم يو په دوئ کي مشر دي نوچي کوم يوته به اشاره وشوه هغه به ئي لحد ته مخکي کوزولو اوبيا به ئي فرمائيل زه به په دوئ باندي دقيامت ورځ ګواهي کوم اوحکم به ئي کولو په دفن کولو ددوئ په جامو ددوئ کي او مونځ ئي ورباندي ندي کړي اونه ئي غسل ورکړي(رواه البخاري في صحيحه والنسائي وابن ماجة وابن حبان).

پدي باره کي دانس رضي الله عنه نه هم يوحديث مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دجنګ احد په ورځ په يوه يوه کپړه کي دوه دوه او دري دري کسه شهيدان دفن کړي وو او مونځ ئي ورباندي ندي کړي (رواه احمد وابوداود والترمذي وقال حديث حسن والحاکم وصححه وقد اعله البخاري اوبخاري دا روايت معلول ګڼلي دي او ونيلي ئي دي چي داسامة بن زيد روايت عن زهري عن انس غلط دي) بخاري دجابر رضي الله عنه پورتني حديث ته ترجيح ورکړي ده ، دامام شافعي داستدلال نه جواب دادي چي شايد رسول الله صلي الله عليه وسلم به داحد په شهيدانو مونځ ځکه نه وي کړي چي هغه پخپله زخمي شوي وو اوغابنونه مبارك ئي هم شهيدان شوي وو ډيره ممکنه وه چي بل چا ورباندي کړي وي ، ددي احتمال تائيد هغه حديث هم کوي کوم چي ابوداود په مراسيل کي اوحاکم اوطحاوي دانس رضي الله عنه نه بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دحمزه رضي الله عنه په خوا کي تېر شو اوهغه مثله کړي شوي وو ، اورسول کريم صلي الله عليه وسلم دحمزه رضي الله عنه نه علاوه په بل کوم شهيد باندي جنازه ونکړه ، دطحاوي په روايت کي دومره اضافه ده چي رسول کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زه به دقيامت په ورځ ستاسو دټولو ګواه يم

قدّمه في اللحد، قبر په دوه قسمه وي اول لحد ، لحد ديته ونيلی شي چي دقبر کنستلو نه پس په قبر کي دننه مغربي طرف ته بله کنده اوکنستلی شي ، دويم شق، شق ديته ونيلی شي چي قبر اوکنستلی شي او هيڅ يو طرف ته پکي مزيد کنستل اونکړی شي په دي حديث کي حافظ قران ته ترجيح ورکولی شي او په دي باندي نور اهل علم اهل زهد او تقوي او نور صاحب

فضيلت قياس كولى شي همدا دقران خدمت به په دنيا كي هم پكار راځي او په اخرت او په قبر كي به هم پكار راځي دمرګ نه پس هيڅ يو دنياوي څيز فائده نشي وركولى

***************

## ٤٧_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ عَلَى الْقَبْرِ

### په قبر دجنازي كولو بيان

١٠٣٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا الشَّيْبَانِيُّ، حَدَّثَنَا الشَّعْبِيُّ، أَخْبَرَنِي مَنْ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَأَى قَبْرًا مُنْتَبِذًا، فَصَفَّ أَصْحَابَهُ خَلْفَهُ فَصَلَّى عَلَيْهِ. فَقِيلَ لَهُ: مَنْ أَخْبَرَكَهُ ؟ فَقَالَ: ابْنُ عَبَّاسٍ. قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ أَنَسٍ، وَبُرَيْدَةَ، وَيَزِيدَ بْنِ ثَابِتٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَسَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: لَا يُصَلَّى عَلَى القَبْرِ، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ المُبَارَكِ: إِذَا دُفِنَ المَيِّتُ وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ، صُلِّيَ عَلَى القَبْرِ، وَرَأَى ابْنُ المُبَارَكِ الصَّلَاةَ عَلَى القَبْرِ، وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: يُصَلَّى عَلَى القَبْرِ إِلَى شَهْرٍ، وَقَالَا: أَكْثَرُ مَا سَمِعْنَا عَنِ ابْنِ المُسَيِّبِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى قَبْرِ أُمِّ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ بَعْدَ شَهْرٍ".[1]

**ترجمه** : دشعبي بيان دي چي ماته يو داسي كس خبر راكړي دي چاچي رسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي رسول الله يو قبر يواځي اوليدو نو په ځان پسي يي صحابه كرام په صفونو كي اودرول او جنازه يي ورباندي اوكړه دشعبي نه چا تپوس اوكړو چي تاته دا خبر چا دركړي دي هغه اوونيل ابن عباس رضي الله عنهما

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دانس ، بريده، يزيد بن ثابت، ابوهريره، عامر بن ربيعه، ابوقتاده، او سهيل بن حنيف رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي داكثرو صحابه كرامو او اهل علمو هم په دي باندي عمل دي او دامام شافعي او احمد او اسحاق هم دا قول دي، مګر بعضي اهل علم وائي چي په قبر جنازه نه كيږي او دا دمالك بن انس قول دي ،ابن مبارك وائي كله چي مړي دفن كړي شي او جنازه ورباندي نه

[1] _ صحيح البخاري في الأذان٦١ (٨٥٧) والجنائز٥ (١٢٤٧) و٥٣ (١٣١٩) و٥٥ (١٣٢٢) ٥٩ (١٣٢٦) و٦٦ (١٣٣٦) و٦٩ (١٣٤٠) صحيح مسلم في الجنائز٢٣ (٩٥٤) سنن ابي داود في الجنائز٥٨ (٣١٩٦) سنن النسائي في الجنائز٩٣ (٢٠٢٥) سنن ابن ماجه في الجنائز٣٢ (١٥٣٠) (تحفة الأشراف: ٥٧٦٦) مسند احمد (١/ ٣٣٨)

وي شوي نو دهغه جنازه په قبر باندي كيږي ابن مبارك په قبر دجنازي كولو قائل دي. امام احمد او اسحاق بن راهويه رحمهما الله وائي په قبر باندي جنازه ديوي مياشتي پوري كيدي شي خكه چي مونږ اكثر اوريدلي دي دسعيد بن مسيب نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دسعد بن عباده د مور په قبر يوه مياشت پس جنازه كړي وه.

*****************

١٠٣٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، " أَنَّ أُمَّ سَعْدٍ مَاتَتْ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَائِبٌ، فَلَمَّا قَدِمَ صَلَّى عَلَيْهَا، وَقَدْ مَضَى لِذَلِكَ شَهْرٌ ".(1)

**ترجمه** دسعيد بن مسيب نه مروي دي چي ام سعد وفات شوه او نبي كريم صلي الله عليه موجود نه وو كله چي رسول الله راغلو نو په ام سعد يي جنازه اوكړه او ددي واقعي يوه مياشت تيره شوي وه

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي په قبر جنازه كيږي او كنه.

(١) دامام مالك په نزد مطلقاناجائز ده.

(٢) دامام شافعي په نزد چي دچا جنازه نه وي شوي دهغه په قبر جنازه كيدي شي.

(٣) دامام ابو حنيفه په نزد قبر باندي جنازه كول ناجائز دي البته په دوه صورتونو كي په قبر جنازه جائز ده كله چي دمړي ولي وربانديجنازه نه وي كړي، او كله چي يو كس بغير دجنازي دفن كړي شوي وي او دا دواړه صورتونه هم په يو شرط مشروط دي چي په قبر جنازه هغه وخت جائز ده كله چي په اغضاؤ كي انتشار نه وي راغلي او بعضي علماؤ ددي حد دري ورخي بيان كړي دي ليكن اصل خبره داده چي د اماكنو او دحالاتو او كيفياتو لحاظ به كولي شي

*****************.

## ٤٨ـ باب مَا جَاءَ فِي صَلاَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى النَّجَاشِيِّ

### په نجاشي بادشاه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم دجنازي كولو بيان

١٠٣٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، وَحُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، قَالاَ: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ أَخَاكُمُ النَّجَاشِيَّ قَدْ مَاتَ، فَقُومُوا فَصَلُّوا عَلَيْهِ "، قَالَ:

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٨٤٣٢)

فَقُمْنَا فَصَفَفْنَا كَمَا يُصَفُّ عَلَى الْمَيِّتِ، وَصَلَّيْنَا عَلَيْهِ كَمَا يُصَلَّى عَلَى الْمَيِّتِ. وَفِي الْبَابِ: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَحُذَيْفَةَ بْنِ أَسِيدٍ، وَجَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رَوَاهُ أَبُو قِلَابَةَ، عَنْ عَمِّهِ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَأَبُو الْمُهَلَّبِ اسْمُهُ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرٍو، وَيُقَالُ لَهُ: مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو. ([1])

**ترجمه** دعمران بن حصين رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم مونږ ته اوفرمائيل ستاسو ورور نجاشي وفات شوي دي پاځئ او جنازه ورباندي اوكړئ عمران وائي چي مونږ اودريدو او صفونه مو جوړ كړل لكه څنګه چي دعامو جنازو دپاره صفونه جوړولي شي.

امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي. داحديث ابو قلابه هم دخپل تره ابومهلب نه او هغه دعمران بن حصين نه نقل كړي دي. او دابومهلب نوم عبدالرحمن بن عمرو دي او هغه ته معاويه بن عمرو هم وئيلي شي، او په دي باب كي دابوهريره، جابر بن عبدالله، ابوسعيد، حذيفه بن اسيد او جرير بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**تشريح** د نجاشي باد شاه د حالاتو باره كي په تفسير مظهري كي په تفسير د سورة ال عمران كي د يوي مسئلي په ضمن كي دلچسپ معلومات را جمع كړي دي تاسو ته يي په لاتدينو كرښو كي پيش كوو

بغوي په روايت د كلبي اومحمد بن اسحاق په روايت دزهري سره دابن عباس رضي الله عنهما قول نقل كړي دي كله چي جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه مكه پريخوده اويوڅو صحابه كرام يي دخان سره حبشي ته روان كړل اورسول الله صلي الله عليه وسلم هم مديني ته هجرت اوكړو اوپه دي دوران كي دبدر جنګ هم اوشو ،په كوم كي چي دقريشو لوي لوي سرداران مړه شول اوډير ګرفتار هم شول، نوددينه پس قريشو په دار الندوه كي مشوره وكړه او ويي وئيل دمحمد صلي الله عليه وسلم كوم ملګري چي نجاشي بادشاه ته تلي دي په هغوئ باندي زمونږ دبدر دمقتولينو قصاص دي . لهذا څه قدري مال جمع كړئ اوپه طور دتحفي يي نجاشي بادشاه ته وسئ ددي دپاره كله چي دا خلق هغه ته ورسيږي نوهغه به يي مونږ ته حواله كړي ،او انتقام به ورنه واخستي شو، پس په دي سلسله كي هغوئ يودوه پوهه كسان پخپلي نمائندګئ اوليږل چي عمرو بن عاص او عماره بن ابي معيط وو اوڅه چړي وغيره يي ورته په طور دتحفي په

---

[1] ـ سنن النسائي في الجنائز ٤٧ (١٩٧٧) سنن ابن ماجه في الجنائز ٣٣ (١٥٣٥) (تحفة الأشراف : ١٠٨٨٩) مسند احمد (٤ في ٤٣٩) وأخرجه صحيح مسلم في الجنائز ٢٢ (٩٥٣) سنن النسائي في الجنائز ٥٧ (١٩٤٨) مسند احمد (٤ في ٤٣٣، ٤٤١، ٤٤٦)

اتفاق سره اوليږلي ، دوئ دواړه دسمندر په لاره حبشي ته اورسيدل او د نجاشي دربار ته په حاضريدوسره يي سجده اوکړه اودسلامتئ دعا يي اوکړه او عرض يي اوکړو چي زمونږه قوم ستاسو خيرخواهان دي اوستاسو شکرگذار دي اوستاسو دعافيت دپاره دعا گو دي زمونږ قوم مونږ تاسوته راليږلي يو په دي خبره باندي دخبرولو دپاره چي تاته به دمکي نه يوڅوکسان راغي چي ته ورباندي خبر يي دوئ ديو لوي دروغژن سړي ملگري وو چاچي دالله درسول کيدو دروغژنه وعده کړي ده مگر علاوه دبي وقوفانونه يي په مونږ کي څوك نه دي ملگري شوي مونږ دوئ دومره تنگ کړي دي چي په مجبوره کيدوسره يي زمونږ دملك په يوه ډيرئ کي پناه اخــتلي ده اوهلته دخلقو تگ راتگ بندشوي دي نه هلته څوك ورځي اونه ورنه څوك بهر راوځي، اولږه اوتنده په دوئ مسلط شوي ده دډيري سختئ نه دتنگيدو په وجه يي دخپل تره خوي تاته راليږلي دي ددي دپاره چي هغه ستا مذهب خراب کړي اوستا حکومت او رعيت تباه کړي ته ددغه خلقو په باره کي ډير احتياط اوکړه اوکه هغوئ مونږ ته حواله کړي ددي دپاره چي ستا نه يي منع کړو نو بهتره به وي زمونږ ددي خبري ثبوت دا دي چي هغوئ به ستاددين او طريقي نه نفرت کوي اوکله چي راشي نوستا په وړاندي به سجده نه کوي او نه به دنورو خلقو پشان دشاهي ادابو تعميل کوي.

نجاشي چي دا واوريدل نوجعفر رضي الله عنه يي سره دملگرو طلب کړو دوئ چي دروازي ته ورسيدل نوجعفر رضي الله عنه په چغه اوونيل چي دالله تعالي ډله دداخليدو اجازت غواړي نجاشي چي اواز واوريدو نوحکم يي اوکړو چي دي اواز کونکي ته حکم اوکړئ چي خپل الفاظ دوباره اووائي نو جعفر رضي الله عنه دوباره اوونيل نجاشي اوونيل دالله تعالي په اذن او ذمه دارئ سره داخل شئ عمرو بن عاص خپلو ملگرو ته اوونيل دا خبري خو اورئ چي دالله تعالي ډله يي اوونيله او نجاشي ورته څه جواب ورکړو عمرو بن عاص او عماره دجعفر سره د نجاشي په سلوك باندي خفه شو کله چي هغوئ دننه راغلل نو نجاشي ته يي سجده اونکړه عمرو بن عاص نجاشي ته اوونيل ستا خيال دي کنه دغرور په وجه تاته سجده نه کوي نجاشي دوئ ته اوونيل څه وجه ده چي تاسو ماته سجده اونکړه اوهغه اداب مو ولي ادا نکړل کوم چي دبهر نه راتلونکي يي ادا کوي ؟ صحابه کرامو اوونيل مونږ هغه الله ته سجده کوو چاچي ته پيدا کړي يي اوبادشاهي يي درکړي ده دسلام دا طريقه زمونږ په هغه وخت کي وه کله چي به مونږ دبتانو عبادت کولو ليکن اوس الله تعالي په مونږ کي يو رښتوني نبي پيدا کړي دي هغه مونږه دداسي قسم سلام کولو نه منع کړي يو، اومونږ ته يي دداسي قسم سلام کولو حکم کړي دي کوم چي دالله تعالي خوښ دي يعني دا طريقه دسلام داهل جنت ده ، په دي گفتگو سره نجاشي پوهه شو چي همدا خبري حقي دي اوپه تورات او انجيل کي هم داسي دي ،نجاشي وونيل په تاسو کي هغه کس کوم يو دي چاچي اواز کړي وو چي دالله تعالي ډله دداخليدو

اجازت غواړي جعفر رضي الله عنه اوفرمائيل ما ونيلي وو اوددينه پس يي اوفرمائيل په دي
كي هيڅ شك نشته چي ته دزمكې په بادشاهانو كي يو بادشاه يي اوداهل كتابو نه يي نه ستا
په وړاندي ډيري خبري كول مناسب دي اونه په چاباندي ظلم كول زه غواړم چي دخپلو ملګرو
دطرف نه يواځي پخپله تاته جواب دركړم خوته دي دواړو كسانوته حكم اوكړه چي په دوئ كي
دي يوكس خبري اوكړي او بل دي زمونږ دخبرو اوريدو دپاره خاموش پاتي شي ددي په اوريدو
سره عمرو جعفر ته اوونيل وايه جعفر رضي الله عنه نجاشي ته اوونيل ددوئ نه تپوس اوكړه
چي مونږ غلامان يو كه ازاد (چي په تيښته راغلي يو) عمرو اوونيل هيڅ كله نه تاسو ازاد او
معزز يي نجاشي اوونيل د غلامئ دالزام نه خو بچ شوئ جعفر اوونيل دا تپوس هم ورنه اوكړه
ايا مونږ په ناحقه قتل كړي دي اودقصاص دويري نه راغلي يو عمرو اوونيل نه. يو څاڅكي
وينه هم تاسو نه ده بيولي جعفر اوونيل ايامونږ دناداريٰ اوقرضداريٰ په وجه راغلي يو چي
دهغي ادا كول زمونږ په ذمه دي نجاشي اوونيل كه چري ستاسو په ذمه يو قنطار (يعني ډير
مال هم وي) نودهغي ادا كول زما په ذمه دي عمرو اوونيل هيڅ مال په تاسو دچا نشته يوقيراط
هم درباندي نشته نجاشي اوونيل نوبياتاسوددوئ نه څه غواړئ عمرو اوونيل مونږ او دوئ
ديو مذهب والا وو اوديلار اودنيكه په دين باندي وو دوئ هغه پريخودو او په بل مذهب پسي
روان شول نوپه دي وجه باندي زمونږ قوم مونږ تاسو ته راوليږلو چي دوئ مونږ ته حواله كړي
نجاشي تپوس اوكړو ماته رشتيا رشتيا اووائي تاسو چي په كوم مذهب باندي وئ هغه څنګه
مذهب وو او اوس هغه كوم مذهب ته اوړيدلي دي؟ جعفر اوونيل په كوم مذهب باندي چي
مونږ وو هغه دشيطان دين وو مونږ به دالله تعالي نه انكار كولو اودكاڼړو عبادت به موكولو
اوس چي مونږ كوم دين ته راوړيدلي يو هغه دالله تعالي اسلام دين دي دا دين دالله تعالي
دطرف نه مونږ ته يو رسول راوړي دي اودهغه سره يوكتاب هم دي لكه څنګه چي ابن مريم
عليه السلام راوړي وو دا كتاب هم دهغه سره موافق دي نجاشي اوونيل تاسو خوډيري لوي
خبري اوكړي اوددينه پس يي دناقوص غړولو حكم اوكړو ناقوص اووهلي شو اوتمام عيساني
علماء او مشائخ راجمع شول كله چي ټول رايوځاي شول نو نجاشي ورته اوونيل زه تاسو ته په
هغه الله باندي قسم دركوم چاچي په عيسي عليه السلام باندي انجيل نازل كړي وو اوتپوس
درنه كوم چي ايا تاسو په انجيل كي دا خبره ليدلي ده چي دعيسي عليه السلام اودقيامت په
مينځ كي كوم نبي راتلونكي دي ؟

علماؤ جواب وركړو يقينا الله تعالي ګواه دي داسي شته مونږ ته عيسي عليه السلام
ددي بشارت راكړي دي اودايي هم فرمائيلي دي چاچي درباندي ايمان راوړو نو ګوياكي
هغه په ماباندي ايمان راوړو اوچاچي ورنه انكار اوكړو نولكه چي زما نه يي انكار اوكړو
، نجاشي جعفر ته اوونيل دا كس تاسو ته دڅه شي حكم كوي؟ اودكومو څيزونو نه مو

منع كوي ؟ جعفر اوونيل هغه زمونږ په وړاندي د الله كتاب لولي او دنيكو كارونو دكولو حكم كوي او د بدو كارونو نه منع كول كوي دګاونډيانو او رشته دارانو او يتيمانانو سره دنيك سلوك كولو او همدردۍ كولو حكم كوي او د دي خبري حكم هم كوي چي مونږ دې صرف ديو الله عبادت اوكړو دچاسره چي هيڅ شريك نشته.

نجاشي اوونيل كوم كلام چي هغه ستاسو په وړاندي لولي دهغي نه څه قدري ماته هم واوروئ نو جعفر رضي الله عنه سورة عنكبوت او سورة روم اولوستلو نجاشي او دده ملګرو چي واوريدو نو دسترګو نه يي اوښكي رواني شوي دنجاشي ملګرو اوونيل اي جعفر دا پاك كلام مونږ ته دوباره واوروه نوجعفر رضي الله عنه سورة كهف واوړولو. عمرو بن عاص چي دا حالت ليدو نوزړه يي غوښتل چي نجاشي جعفر ته غصه كړي نوپه دي وجه يي اوونيل چي دا خلق عيسي عليه السلام او دهغه مور ته كنځل كوي نجاشي چي دا واوريدل نو د جعفر نه يي تپوس اوكړو چي تاسو دعيسي عليه السلام او دهغه دمور په باره كي څه وائي نوجعفر رضي الله عنه په جواب كي دسورة مريم تلاوت اوكړو كله چي دمريم او عيسي تذكري ته اورسيدو نو نجاشي دخپل مسواك دبور نه يوه وړه ذره لكه دبوس پشان راواخستله او ويي وئيل په الله قسم عيسي عليه السلام ددي بيان نه دومره هم زيات نه وو او بيا يي جعفر او دهغه ملګرو ته اوونيل چي زما په ملك كي ګرځئ تاسو به محفوظ ئي يعني په امن سره اوسيږئ څوك چي ستاسو بي عزتي اوكړي يا تكليف دركړي مونږ به دهغي تفتيش كوو بيا يي اوونيل خوشحاله اوسئ هيڅ ويره مه كوئ دابراهيم عليه السلام ډله به هيڅوك خرابه نكړي عمرو تپوس اوكړو چي اي نجاشي ابراهيم عليه السلام ډله كومه يوه ده نجاشي په جواب كي اوونيل دا خلق دي او ددوئ هغه مشر «رسول كريم صلي الله عليه وسلم » دچادطرف نه چي دوئ راغلي دي او دهغه تابعداري كونكي دي مشركينو ددي خبري دمنلو نه انكار كولو او پخپله يي ددين ابراهيمي دتابعدارۍ دعوي كوله او بيا نجاشي هغه مال هم دوئ ته وروا پس كړو كوم چي عمرو او دهغه ملګرو راوړي وو او وورته يي اوونيل ستاسو دا تحفه محض رشوت دي داپخپله قبضه كي واخلئ زما رشوت ته ضرورت نشته الله تعالي ماته بادشاهي راكړي ده . دجعفر رضي الله عنه بيان دي چي بيا مونږ دهغه نه واپس شو او په بهترين محل كي دډير عزت او عمده ميلمستيا سره اوسيدو.

## دراوي عمران بن حصين رضي الله عنه دزندګئ مختصر حالات

نوم عمران كنيه او ابو نجيد او دپلار نوم يي حصين وو دهجرت په ابتداء كي مسلمان شوى وو «مستدرك حاكم»

په بعضي غزواتو كي يي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملګرتيا كړي وه او درسول الله په توله زندګئ كي دى په مدينه كي پاتي شوى دى او د وفات نبوي نه پس يي مدينې ته راتلل

پریخودل او گوشه نشیني يې اختيار کړه، عمرفاروق رضي الله عنه په زمانه کې چې کله بصره اباده شوه نو هلته منتقل شو او عمر فاروق رضي الله عنه ورته دتعليم خدمت حواله کړو (طبقات ابن سعد). عمر رضي الله عنه ددور نه پس چې کله جنگونه شروع شول نو ده ورنه ځان اوساتلو (الاصابه).

علامه ابن عبدالبر ليکلي دي کان من فضلاء الصحابة وفقهائهم (الاستيعاب).

دحسن بصري قول دی چې دعمران پشان بل بهترين سړی بصري ته نه دی راغلی (استيعاب).

دده په ژوند کې يو څو خصوصيات وو مثلا احترام رسول داسوه رسول پابندي په عبادت کې رياضت کول باوجود ددې چې دده ذات مرجع الخلائق وو څوک چې به په لاره تيريدل نو دده نه به يې مسائل معلومول.

وفات: داستخساء په مرض مريض شو او هم دې مرض په نتيجه کې په ۵۲هجري کې په بصره کې وفات شو (مستدرك).

مرويات: دده دمروياتو شمير ۱۳۰دی، په احاديثو کې به يې ډير زيات احتياط کولو نو ځکه يې دمروياتو شمير کم دی چې ۸ دهغې نه متفق عليه دي په بخاري کې څوارلس او نهه په مسلم کې دي.

***************

## ۴۹_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الصَّلاَةِ عَلَى الْجَنَازَةِ

### دجنازې مونځ دفضيلت بيان

۱۰۴۰_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ فَلَهُ قِيرَاطٌ، وَمَنْ تَبِعَهَا حَتَّى يُقْضَى دَفْنُهَا فَلَهُ قِيرَاطَانِ أَحَدُهُمَا، أَوْ أَصْغَرُهُمَا مِثْلُ أُحُدٍ". فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لاِبْنِ عُمَرَ. فَأَرْسَلَ إِلَى عَائِشَةَ فَسَأَلَهَا عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَتْ: صَدَقَ أَبُو هُرَيْرَةَ. فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: لَقَدْ فَرَّطْنَا فِي قَرَارِيطَ كَثِيرَةٍ، وَفِي الْبَاب: عَنِ الْبَرَاءِ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَثَوْبَانَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. ([1])

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې په کوم مړي جنازه اوکړه دهغه دپاره يو قيراط اجر دي او څوک چې ورسره پاتې شو تردې چې

[1] . تفرد به المؤلف رحمه الله تعالى.

تدفين او خښول يې مکمل کړي دهغه دپاره دوه قيراطه اجر دي، چې په دوئ کې به يو قيراط يا وړوکې قيراط د احد دغرسره برابر وي، راوي وائي ما ابن عمر ته ددې ذکر اوکړو نو هغه عائشه رضي الله عنها ته اوليږلم او دهغې نه مې په دې باره کې تپوس اوکړو ام المؤمنين اوونيل ابوهريره رښتيا وائي، ابن عمر اوونيل مونږ خو په قيراطونو کې زيادت اوکړو

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دی او دا روايت دابوهريره نه په ډيرو سندونو مروي دی، او په دې باب کې دبراء ، عبدالله بن مغفل، عبدالله بن مسعود ، ابوسعيد خدري، ابئ بن کعب، ابن عمر او ثوبان رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**لغات** : ، قيراط. يعني دځلورو وريشو په مقدار نيم وانق جمع يې قراريط راځي.

**تشريح** : قيراط په دوه قسمه دی يو ددنيا قيراط دی چې د درهم شپږمې حصې ته وئيلې شي او بل داخرت قيراط دی نو داخرت قيراط دلته په دې حديث کې مراد دی.

په دې حديث کې په جنازه کې دمسلمان شرکت کونکو فضيلت بيانولی شي او هغه دادی که څوک په جنازه کې شريك شي دهغه دپاره يو قيراط اجر دی او که څوک په ښخولو کې هم شريك شي نو دهغه دپاره دوه قيراطه اجر دی.

دملا علي قاري قول دی چې قيراط په اصل کې ددرهم دولسمې ته ويلې شي چې وزن يې تقريبا دځلورو وريشو سره برابر دی ليکن دلته ورنه يو ډير لوی انبار او ډيرې مراد دی دکوم تشبيه چې يې داحد دغر سره ورکړې ده.

****************

## ٥٠_ باب آخَرُ

### دجنازې متعلق يو بل باب

١٠٤١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ. حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مَنْصُورٍ. قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْمُهَزِّمِ. قَالَ: صَحِبْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَشْرَ سِنِينَ سَمِعْتُهُ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ تَبِعَ جَنَازَةً وَحَمَلَهَا ثَلاَثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ قَضَى مَا عَلَيْهِ مِنْ حَقِّهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ بِهَذَا الإِسْنَادِ وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَأَبُو الْمُهَزِّمِ اسْمُهُ: يَزِيدُ بْنُ سُفْيَانَ وَضَعَّفَهُ شُعْبَةُ. (١)

---

١ _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٨٢٢)

**ترجمه** دعباد بن منصور بيان دي فرمائي چي ما دابو المهزم نه اوريدلي دي فرمائيل يي چي لس كاله دابوهريره په خدمت كي پاتي شوي يم او ما دهغه نه اوريدلي وو چي فرمائيل يي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي څوك چي دكومي جنازي سره لاړو او دري پيري يي ورته اوړه وركړه نو ده خپل هغه حق اداء كړو كوم چي په ده باندي لازم وو
امام ترمذي وائي دا حديث قوي دي بعضي راويانو په همدي سند نقل كړي دي ليكن مرفوع يي نه دي بيان كړي، او دابو المهزم نوم يزيد بن سفيان دي او شعبه محدث دده تضعيف كړي دي.

****************

## ٥١ـ باب مَا جَاءَ فِي الْقِيَامِ لِلْجَنَازَةِ

### دجنازي دپاره د اودريدو بيان

١٠٤٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا لَهَا حَتَّى تُخَلِّفَكُمْ أَوْ تُوضَعَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَجَابِرٍ، وَسَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، وَقَيْسِ بْنِ سَعْدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دعامر بن ربيعه رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي جنازه اووينئ نو اودريږئ تردي چي جنازه تاسو پريږدي او مخكي درنه تيره شي او يا خو كيخودلي شي
امام ترمذي وائي دعامر بن ربيعه حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دابوسعيد خدري، جابر، سهل بن حنيف، قيس بن سعد ، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي.

****************

[1] ـ صحيح البخاري في الجنائز٤٦ (١٣٠٧، ١٣٠٨) و٤٧ (١٣٠٨) صحيح مسلم في الجنائز٢٤ (٩٥٨) سنن ابي داود في الجنائز٤٧ (٣١٧٢) سنن النسائي في الجنائز٤٥ (١٩١٦) سنن ابن ماجه في الجنائز٣٥ (١٥٤٢) (تحفة الأشراف: ٥٠٤١) مسند احمد (٣ في ٤٤٧)

١٠٤٣ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ الحلواني، قَالَا: حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ، فَقُومُوا لَهَا فَمَنْ تَبِعَهَا فَلَا يَقْعُدَنَّ حَتَّى تُوضَعَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالَا: مَنْ تَبِعَ جَنَازَةً فَلَا يَقْعُدَنَّ حَتَّى تُوضَعَ عَنْ أَعْنَاقِ الرِّجَالِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّهُمْ كَانُوا يَتَقَدَّمُونَ الْجَنَازَةَ فَيَقْعُدُونَ قَبْلَ أَنْ تَنْتَهِيَ إِلَيْهِمُ الْجَنَازَةُ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چي تاسو جنازه اووينئ ورته اودريږئ او ځوك چي ددي سره يو ځاي لاړ شي هغه دي هغه وخته پوري هرګز نه كيني ترڅو چي جنازه ايخودلي شوي نه وي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابوسعيد خدري حديث حسن صحيح دي، او همدا د امام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي دوئ وائي ځوك چي دكومي جنازي سره لاړ شي نو تلونكي به هغه وخته پوري نه كيني ترڅو پوري چي جنازه دخلقو دځټونو نه لاندي ايخودلي شوي نه وي په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو نه مروي دي چي هغوئ به دجنازي نه مخكي تلل او دجنازي رسيدو نه مخكي به كيناستل او همدا دامام شافعي قول دي.

***************

## ٥٢ـ باب الرُّخْصَةِ فِي تَرْكِ الْقِيَامِ لَهَا

### دجنازي دپاره د نه اودريدلو داجازت بيان

١٠٤٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ وَاقِدٍ وَهُوَ: ابْنُ عَمْرِو بْنِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ مَسْعُودِ بْنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّهُ ذُكِرَ الْقِيَامُ فِي الْجَنَائِزِ حَتَّى تُوضَعَ، فَقَالَ عَلِيٌّ: قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَعَدَ". وَفِي الْبَابِ: عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِيهِ رِوَايَةُ أَرْبَعَةٍ

---

[1] ـ صحيح البخاري في الجنائز ٤٨ (١٣١٠) صحيح مسلم في الجنائز ٢٤ (٩٥٩) سنن النسائي في الجنائز ٤٤ (١٩١٥)، و٤٥ (١٩١٨) و٨٠ (٢٠٠٠) مسند احمد (٣ في ٢٥، ٤١، ٥١) (تحفة الأشراف: ٤٤٢٠) وأخرجه سنن ابي داود في الجنائز ٤٧ (٣١٧٣) مسند احمد (٣ في ٨٥، ٩٧)

مِنَ التَّابِعِينَ بَعْضُهُمْ عَنْ بَعْضٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَهَذَا أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ. وَهَذَا الْحَدِيثُ نَاسِخٌ لِلأَوَّلِ إِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا. وقَالَ أَحْمَدُ: إِنْ شَاءَ قَامَ وَإِنْ شَاءَ لَمْ يَقُمْ. وَاحْتَجَّ بِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ رُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ قَامَ ثُمَّ قَعَدَ، وَهَكَذَا قَالَ: إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: مَعْنَى قَوْلِ عَلِيٍّ: قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنَازَةِ ثُمَّ قَعَدَ. يَقُولُ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَى الْجَنَازَةَ قَامَ ثُمَّ تَرَكَ ذَلِكَ بَعْدُ فَكَانَ لَا يَقُومُ إِذَا رَأَى الْجَنَازَةَ".(1)

**ترجمه** مروي دي چي دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه نه په مذكوره مسئله يعني څو پوري چي جنازه ايخودلي شوي نه وي تر هغي كيناستل منع دي. كي تپوس اوكړي شو نو وې فرمانيل رسول الله صلي الله عليه وسلم به اودريدلو او بيابه كيناستلو.

امام ترمذي وائي دعلي حديث حسن صحيح دي. او په دي باب كي دڅلورو تابعينو روايتونه دي چي يو دبل نه روايت كوي، امام شافعي وائي په دي باب كي دټولو نه زيات صحيح روايت همدا دي او دا حديث دمخكني حديث "كله چي جنازه اوويني نو ورته اودريږئ" دپاره ناسخ دي او په دي باب كي دحسن بن علي او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دبعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي، امام احمد وائي دا مسئله اختياري ده كه څوك اودريږي او كنه اودريږي هغوئ په دي مسئله كي ددي ارشاد نبوي نه استدلال كړي دي چي رسول الله به اودريدو او بيا به كيناستلو او ددي پشان قول داسحاق بن ابراهيم بن راهويه هم دي دعلي رضي الله عنه ددي قول مفهوم دادي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به كله جنازه اوليده نو اودريدلو به او بيا ددينه منع شو دهغي نه پس چي به يي كله جنازه اوليده نو نه به اودريدلو.

***************

## ٥٣_ باب مَا جَاءَ فِي قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّحْدُ لَنَا وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا

### ارشاد نبوي دي بغلي قبر زمونږ دپاره دي او صندوقي قبر د نورو دپاره دي

١٠٤٥_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَنَصْرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْكُوفِيُّ، ويوسف بن موسى القطان البغدادي، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَكَّامُ بْنُ سَلْمٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ الأَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ

---

1 _ صحيح مسلم في الجنائز ٢٥ (٩٦٢) سنن ابي داود في الجنائز ٤٧ (٣١٧٥) سنن النسائي في الجنائز ٨١ (٢٠٠١، ٢٠٠٢)، سنن ابن ماجه في الجنائز ٣٥ (١٥٤٤) (تحفة الأشراف: ١٠٢٧٦)

عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اللَّحْدُ لَنَا وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا". وَفِي الْبَابِ: عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بغلي قبر زمونږ دپاره دي او صندوقي قبر دنورو دپاره دي
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث په دي سند حسن غريب دي او په دي باب كي دجرير بن عبدالله، عائشه، ابن عمر، او جابر رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي

***************

## ٥٤_ باب مَا يَقُولُ إِذَا أُدْخِلَ الْمَيِّتُ الْقَبْرَ

### كله چي مړي په قبر كي كيخودلي شي كومه دعا وئيل پكار دي

١٠٤٦_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أُدْخِلَ الْمَيِّتُ الْقَبْرَ قال، وَقَالَ أَبُو خَالِدٍ: مَرَّةً إِذَا وُضِعَ الْمَيِّتُ فِي لَحْدِهِ قَالَ مَرَّةً: "بِسْمِ اللَّهِ وَبِاللَّهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللَّهِ"، وَقَالَ مَرَّةً: "بِسْمِ اللَّهِ وَبِاللَّهِ وَعَلَى سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ أَبُو الصِّدِّيقِ النَّاجِيُّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ النَّاجِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ موقوفاً أَيْضًا. (٢)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي كله چي به مړي قبر كي كيخودلي شو ، او كله كله به ابو خالد راوي داسي الفاظ وئيل كله چي به مړي پخپل قبر كي كيخودلي شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به كله كله "بسم الله وبالله وعلي ملة رسول الله" وئيل او كله كله به يي "بسم الله وبالله وعلي سنة رسول الله" وئيل يعني دالله دنوم په مدد او دالله درسول په طريقه زه دامړي په قبر كي ږدم .

[1] _ ابن ماجه في الجنائز ٦٥ (٢٢٠٨) سنن النسائي في الجنائز ٨٥ (٢٠١١) سنن ابن ماجه في الجنائز ٣٩ (١٥٥٤) (تحفة الأشراف : ٥٥٤٢)

[2] _ سنن ابن ماجه في الجنائز ٣٨ (١٥٥٠) (تحفة الأشراف : ٧٦٤٢)

امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند حسن غريب دي، دا حديث په نورو سندونو هم دابن عمر نه مروي دي او هغوئ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي، او دا حديث ابو الصديق ناجي هم دابن عمر نه نقل كړي دي او هغه درسول الله نه نقل كړي دي او همدا رنګي دا حديث ابوالصديق ناجي دابن عمر نه موقوفاً هم نقل كړي دي

*****************

## ٥٥ـ باب مَا جَاءَ فِي الثَّوْبِ الوَاحِدِ يُلْقَى تَحْتَ الْمَيِّتِ فِي الْقَبْرِ

### په قبر كي دمړي دلاندي دجامي يا كپړي غوړولو بيان

١٠٤٧ـ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ الطَّائِيُّ البَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ فَرْقَدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ جَعْفَرَ بْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "الَّذِي أَلْحَدَ قَبْرَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبُو طَلْحَةَ، وَالَّذِي أَلْقَى القَطِيفَةَ تَحْتَهُ شُقْرَانُ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ جَعْفَرٌ: وَأَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي رَافِعٍ، قَالَ: سَمِعْتُ شُقْرَانَ، يَقُولُ: أَنَا وَاللَّهِ طَرَحْتُ القَطِيفَةَ تَحْتَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي القَبْرِ. قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ شُقْرَانَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَرَوَى عَلِيُّ بْنُ المَدِينِيِّ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ فَرْقَدٍ هَذَا الحَدِيثَ.[1]

**ترجمه** . عثمان بن فرقد وائي ما دمحمدبن جعفر نه اوريدلي دي او هغه دخپل پلار نه روايت كولو چي كوم كس درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره بغلي قبر كنستلي وو هغه ابو طلحه دي او چاچي درسول الله لاندي په قبر كي څادر غوړولي وو هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم ازاد كړي غلام شقران دي جعفر وائي ما ته عبيدالله بن ابي رافع خبر راكړي دي فرمائيل يي چي ما دشقران نه اوريدلي دي په الله قسم ما په قبر كي درسول الله صلي الله عليه وسلم لاندي څادرغوړولي وو.

امام ترمذي وائي دشقران حديث حسن غريب دي او په دي باب كي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي او ابن مديني هم دعثمان بن فرقد نه دا حديث نقل كړي دي.

****************

١٠٤٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "جُعِلَ فِي قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطِيفَةٌ حَمْرَاءُ". قَالَ: وقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَيَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَذَا أَصَحُّ. قَالَ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٨٢٦)

أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ الْقَصَّابِ وَاسْمُهُ: عِمْرَانُ بْنُ أَبِي عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ الضُّبَعِيِّ وَاسْمُهُ: نَصْرُ بْنُ عِمْرَانَ، وَكِلَاهُمَا مِنْ أَصْحَابِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ كَرِهَ أَنْ يُلْقَى تَحْتَ الْمَيِّتِ فِي الْقَبْرِ شَيْءٌ. وَإِلَى هَذَا ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په قبرمبارك كي يو سور څادر ايخودلي شوي وو او محمد بن بشار په بل مقام كي په دي سند كي ابوجمره لفظ ذكر كړي دي او دا زيات صحيح دي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي ، او شعبي دابوحمزه قصاب نه هم روايت نقل كړي دي او دهغه نوم عمران بن ابي عطاء دي او دجمره ضبعي نه هم روايت مروي دي او دهغه نوم نصر بن عمران دي او دوئ دواړه دابن عباس شاګردان دي ، دابن عباس نه دا روايت هم منقول دي چي هغوئ په قبر كي دمړي لاندي كوم څيز غوړول مكروه ګڼړل او بعضي اهل علمو هم دا قول اختيار كړي دي.

***************

## ٥٦_ باب مَا جَاءَ فِي تَسْوِيَةِ الْقُبُورِ

### دزمكي سره دقبرونو دبرابرولو بيان

١٠٤٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، أَنَّ عَلِيًّا، قَالَ لِأَبِي الْهَيَّاجِ الْأَسَدِيِّ: أَبْعَثُكَ عَلَى مَا بَعَثَنِي بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنْ لَا تَدَعَ قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ، وَلَا تِمْثَالًا إِلَّا طَمَسْتَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، يَكْرَهُونَ أَنْ يُرْفَعَ الْقَبْرُ فَوْقَ الْأَرْضِ، قَالَ الشَّافِعِيُّ: أَكْرَهُ أَنْ يُرْفَعَ الْقَبْرُ إِلَّا بِقَدْرِ مَا يُعْرَفُ أَنَّهُ قَبْرٌ لِكَيْلَا يُوطَأَ وَلَا يُجْلَسَ عَلَيْهِ. (2)

---

1 _ صحيح مسلم في الجنائز ٣٠ (٩٦٧) سنن النسائي في الجنائز ٨٨ (٢٠١٣) (تحفة الأشراف : ٦٥٢٦) مسند احمد (١/ في ٢٢٨، ٣٥٥)

2 _ صحيح مسلم في الجنائز ٣١ (٩٦٩) سنن ابي داود في الجنائز ٧٢ (٣٢١٨) سنن النسائي في الجنائز ٩٩ (٢٠٣٣) (تحفة الأشراف : ١٠٠٨٣) مسند احمد (١/في ٩٦، ١٢٩)

**ترجمه** د ابوالهياج حيان بن حصين نه روايت دی چي ماته علي رضي الله عنه اوفرمائي ايا تا په داسی کار پسی وانه ستوم کوم پسی چي زه رسول الله صلي الله عليه وسلم استولی وم، هغه دا چي ته هرچرته اوچت قبر اووينې نو دبرابرولو بغير يي مه پريږده او هر چرته چي مجسمه او بت اووينې نو دماتولو نه بغير يي مه پريږده

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن دي، او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او دبعضي اهل علمو عمل هم په دي باندي دي چي هغوئ قبر دزمکي نه اوچت حالت کي مکروه تحريمي ګڼړي، امام شافعي وائي قبر چي ددومره اندازي نه زيات وي په څومره چي ددي پيژندګلي کيدي شي هغه دده په نزد مکروه تحريمي دي او دا دي وران کړي شي اوکيناستل ورباندي پکارنه دي.

**لغات**: طمسته طمس طمسا معني ورانول.

**تشريح** تصوير جوړول او لوړ قبرونه جوړول داسي ګناهونه دي دکومو ختمول چي دمسلمان حکمران ذمه داري ده څکه چي په شريعت کي پاخه قبرونه او ديو ګز نه لوړ قبرونه جوړول منع دي

**د ابوالهياج حيان بن حصين حالات**

نوم حيان کنيه ابو الحياج او دپلار نوم حصين وو دقبيله بن اسد سره يي تعلق دی داسماء الرجال والاپه نزد د متوسطي درجي تابعينو نه دی چي د عمر فاروق او علي رضي الله عنهما وغيره نه يي احاديث نقل کړي دي او ابن حبان وغيره په ثقات تابعينو کي شميرلی دی دده نه دده ځامن، منصور او شعبي وغيره نقل دروايت کوي.

**دابووائل شقيق ابن سلمه رضي الله عنه حالات**

نوم شقيق کنيه ابو وائيل قبيله بني اسد، دکوفي اوسيدونکي وو. دتابعينو دجملي نه دي، دابن حجر په قول په ۲۴ هجري کي وفات شوي دي(التقريب)

**************

## ۵۷ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْمَشْيِ عَلَى الْقُبُورِ وَالْجُلُوسِ عَلَيْهَا وَالصَّلاَةِ إِلَيْهَا

**په قبرونو دپاسه دګرځيدو او کيناستلو او قبرونو ته مخامخ دمونځ کولو دکراهت بيان**

۱۰۵۰ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلاَنِيِّ، عَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الأَسْقَعِ، عَنْ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيِّ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لاَ تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ وَلاَ تُصَلُّوا إِلَيْهَا ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ أَبِي

هُرَيْرَةَ، وَعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، وَبَشِيرِ ابْنِ الْخَصَاصِيَةِ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. (1)

**ترجمه** . د ابومرثد (کناز بن الحصین) غنوي رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي، په قبرونو مه کینئ او مه ددوئ په مخامخ مونځ کوئ امام ترمذي وائي په دي باب کي دابوهریره، عمرو بن حزم، بشیر بن خصاصیه رضي الله عنهم نه هم روایات وارد دي.

دعبدالله بن مبارك نه هم په مذکوره سند ددي حدیث هم معني روایت مروي دي.

**لغات** : القبر معني هغه ځاي چرته چي مړي دفن کولي شي ، قبر یقبر قبرا مقبرا معني مړي دفن کول، اقبره معني قبر ته یي داخل کړو.

**تشریح** : ددي حدیث مطلب دادی چي قبرونو ته مخامخ مونځ مه کوئ او که چري دقبر دتعظیم په وجه قبلي ته مخامخ مونځ کوي نو په دي باندي انسان کافر کیږي او که دقبر تعظیم یي مقصود نه وي او بیاهم قبر ته مخامخ مونځ وکړي نو کم از کم مکروه تحریمي به ضرور وي او همدا رنګي په قبرونو باندي کیناستل هم مکروه دي په قبر باندي دناستي په وجه دقبر سپکاوی کیږي خو الله تعالي خو دقبرونو دعزت کولو حکم کړی دی امام نووي وائي قبر پوخ جوړول هم مکروه تحریمي دي او ورباندي کیناستل او ورته ډډه وهل هم حرام دي

## د ابومرثد کنازبن الحصين رضي الله عنه حالات

نوم مرثد دپلار نوم کناز بن حصین بن یربوع بن جهینه دي چي په مکه کي مسلمان شوی دی او دبدر نه مخکي یي دمکي نه مدیني ته هجرت کړی دی او د اوس بن صامت سره رسول الله دده ورور ولي قائم کړي وه په غزوه بدر کي درسول الله سره په جهاد کي شریك وو

وفات: بنو عزل او قاره داسلام قبلولو نه پس درسول الله نه دمذهبي تعلیم دپاره دمعلم دپاره درخواست اوکړو نو رسول الله ددوئ په درخواست مرثد یا عاصم بن ثابت په امارت کي یو جماعت اولیږلو په رجیع مقام کي بنو هزیل قبیلي والا دبربنډو تورو سره راغلل او جنګ شروع شو او په دي جنګ کي مرثد او خالد او عاصم رضي الله عنهم شهید.ان شول مزید حالات په اسد الغابه طبقات ابن سعد استیعاب کي کتلی شئ.(روضة الصالحين)

****************

---

1 ـ صحيح مسلم في الجنائز ٣٣ (٩٧٢) سنن ابي داود في الجنائز ٧٧ (٣٢٢٩) سنن النسائي في القبلة ١١ (٧٦١) (تحفة الأشراف: ١١١٦٩) مسند احمد (٤ في ١٣٥)

١٠٥١ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، وَأَبُو عَمَّارٍ، قَالَا: أَخْبَرَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ، عن أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَيْسَ فِيهِ عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ، وَهَذَا الصَّحِيحُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ مُحَمَّدٌ: وَحَدِيثُ ابْنِ الْمُبَارَكِ خَطَأٌ، أَخْطَأَ فِيهِ ابْنُ الْمُبَارَكِ، وَزَادَ فِيهِ عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ، وَإِنَّمَا هُوَ بُسْرُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ وَاثِلَةَ، هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، وَلَيْسَ فِيهِ عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ، وَبُسْرُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَدْ سَمِعَ مِنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ. (١)

**ترجمه** په دي سند سره هم دابومرثد غنوي رضي الله عنه نه روايت مروي دي البته په دي سند كي دابو ادريس واسطه نشته او همدا صحيح روايت دي

امام ترمذي وائي دامام بخاري قول دي چي دابن مبارك روايت غلط دي په دي كي دابن مبارك نه غلطي شوي ده چي په دي كي دابوادريس خولاني واسطه زياته كړي ده صحيح دادي كوم چي بسر بن عبدالله دواثله نه بغير دواسطي نه نقل كړي دي دا رنګي نورو ډيرو راويانو هم دعبدالرحمن بن يزيد بن جابر نه نقل كړي دي او په دي كي هغوئ دابوادريس واسطه نه ده ذكر كړي او بسر بن عبدالله دواثله بن اسقع نه سماع كړي ده

****************

## ٥٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ تَجْصِيصِ الْقُبُورِ وَالْكِتَابَةِ عَلَيْهَا

### دقبرونو دپخولو او په دي باندي دليكل كولو دكراهت بيان

١٠٥٢ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ أَبُو عَمْرٍو الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُجَصَّصَ الْقُبُورُ، وَأَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهَا، وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهَا، وَأَنْ تُوطَأَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ جَابِرٍ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْهُمْ الْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ فِي تَطْيِينِ الْقُبُورِ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا بَأْسَ أَنْ يُطَيَّنَ الْقَبْرُ. (٢)

---

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ٣٣ (٩٧٢) سنن ابي داود في الجنائز ٧٧ (٣٢٢٩) سنن النسائي في القبلة ١١ (٧٦١) (تحفة الأشراف: ١١١٦٩) مسند احمد (٤ في ١٣٥)

[2] ـ صحيح مسلم في الجنائز ٣٢ (٩٧٠) سنن ابي داود في الجنائز ٧٦ (٣٢٢٥) سنن النسائي في الجنائز ٩٦ (٢٠٢٩) (تحفة الأشراف: ٢٧٩٦) مسند احمد (٣ في ٢٩٥)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم قبر پوخ جوړول او چونه کول او ورباندي ليکل کول او ورباندی منجور کيدل او دهغه دپاسه ابادي کول منع کړي دي.
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دا په نورو سندونو هم دجابر نه مروي دي بعضي اهل علمو په قبرونو د خاوري اچولو اجازت ورکړي دي او حسن بصري هم په دوی کي شامل دي، دامام شافعي قول دي په قبرونو باندي په خاورو اچولو کي هيڅ قباحت نشته
**لغات** : القبر معني هغه ځاي چرته چي مړي دفن کولي شي ، قبر يقبر قبرا مقبرا معني مړي دفن کول، اقبره معني قبر ته يي داخل کړو.
**تشريح** : علماء وائي چي قبر پوخ جوړول ناجائز دي قبر که دننه نه پوخ کړی شي او که دبهر نه دواړه يوشان ناجائز دي او همدا رنګي په قبر باندي کيناستل هم جائز نه دي خکه چي ددي په وجه دقبر والا سپکاوی کيږي بعضي خلق وائي که څوك دغم داظهار په وجه په قبر مسلسل کيني نو دا هم ناجائز دي.
او همدا رنګي په قبر باندي عمارت او ګنبد وغيره جوړول هم درست نه دي بلکي که جوړ کړی شوی وي نو ماتول يي واجب دي لکه چي يو ځل نبي کريم صلي الله عليه وسلم علي رضي الله عنه ددي کار دپاره ليږلی وو
علامه توريشتي وائي چي دجاهليت په زمانه کي هم دا رسم وو چي کفارو به دقبر دپاسه دلو ورځو پوري سوری کولو ددوئ سره دمشابهت کولو نه هم ممانعت راغلی دی (منهاج الصالحين ، روضة الصالحين)
داولياؤ دقبرونو سره دمونځ کولودپاره مسجد جوړول دشيخ استاد محدث محمد فاخر په نزد مکروه دي اودکراهت ثبوت دلاندي ذکر شوو احاديثونه معلوميږي.
مسلم دابو الهياج اسدي قول نقل کړي دي چي ماته علي رضي الله عنه فرمائيلي دي ايا په هغه کار پسي دي اونه ليږم په کوم پسي چي زه رسول الله صلي الله عليه وسلم ليږلي وم اوهغه دادي چي هرچرته کومه درګاه ويني نه ورانوي به يي اوچي هرچرته لوړ قبر ويني نو اواروي به يي اودزمکي په برابر به يي پريږدي اوددينه زيات به يي نه پريږدي.
مسلم دجابر رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دقبرونو دپخولو او پدي باندي دکيناستلو اودعمارت جوړولونه منع فرمائيلي ده.
بخاري اومسلم دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها او ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت بيان کړي دي فرمائيل يي چي کله د رسول الله صلي الله عليه وسلم مرض سخت شو (او بيهوشي ورباندي راغله) نوپه مخ مبارك يي څادر خور کړي شو ليکن چي کله يي روح ختلو

نوخادر يي دمخ نه لري کړو اوپه همدي حالت کي يي ونيل په يهودو اونصاراوو دي دالله لعنت وي هغوئ دخپلو انبياؤ قبرونه مسجدونه گرځولي وو ، عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل رسول الله امت لره داهل کتابوپشان ويرولو

ددي احاديثو نه دقبرونو پخولو اولوړولو اوپدي باندي دعمارت جوړولو ممانعت ثابتيږي دقبرونوسره نزدي دمسجدونو جوړولو ممانعت ورنه نه ثابتيږي . پاتي شوه داچي رسول الله صلي الله عليه وسلم داهل کتابو مذمت کړي وو نوهغوئ دخپلو انبياؤ قبرونه مسجدونه گرځولي وو يعني قبرونو ته يي سجدي شروع کړي وي اودابومرثد غنوي رضي الله عنه په روايت کي دا مطلب په صراحت سره راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په قبرونو به نه کينئ اونه به دوئ ته مخامخ مونځونه کوئ (رواه مسلم )

***************

## ٥٩_ باب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا دَخَلَ الْمَقَابِرَ

### قبرستان د داخليدو وخت کي څه ونيل پکار دي

١٠٥٣_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّلْتِ، عَنْ أَبِي كُدَيْنَةَ، عَنْ قَابُوسَ بْنِ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: مَرَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقُبُورِ الْمَدِينَةِ، فَأَقْبَلَ عَلَيْهِمْ بِوَجْهِهِ، فَقَالَ: " السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ، يَغْفِرُ اللَّهُ لَنَا وَلَكُمْ، أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالأَثَرِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ بُرَيْدَةَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو كُدَيْنَةَ: اسْمُهُ يَحْيَى بْنُ الْمُهَلَّبِ، وَأَبُو ظَبْيَانَ اسْمُهُ: حُصَيْنُ بْنُ جُنْدُبٍ. [1]

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مدينه منوره کي ديوڅو قبرونو خوا کي تيريدو نو هغی قبرونو ته يی مخ کړو اوويي فرمائيل السلام عليکم ای دقبرونو خاوندانو الله تعالي دی مونږ او تاسو تول اوبخښي تاسو مخکي شوئ او مونږ دريسي يو دا امام ترمذي روايت کړی دی او حديث حسن يی ورته ونيلی دی امام ترمذي وائي په دي باب کي دبريده او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**لغات** : سلف تير شوي اباء او اجداد جمع يي اسلاف راځي . سلف د نصر ينصر نه په معني دتيريدوسره دي.اقبل ماضي صيغه ده دباب افعال نه په معني دراتلو.اقبال عليه ، متوجه کيدل مجرد يي دسمع نه په معني دقبلولو دي

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٣٠٣)

**تشريح** : ددعا غوښتلو په وخت کي مخ کوم طرف ته کول پکاردي؟

فاقبل عليهم بوجهه. رسول الله به خپل مخ مبارك قبر طرف ته مخامخ کړو او دا دعا به يې ونيله، علماء وائي ددعا ونيلو په وخت کي که مخ دقبر طرف ته وي نو په دي کي څه حرج نشته همدا دجمهورو علماؤ او مجتهدينو مسلك دی ليکن ابن حجر ددي خلاف دی دهغه په نزد مستحب داده چي قبر ته تلونکی به دمغفرت غوښتو په وخت کي خپل مخ قبلي ته مخامخ کوي

دملا علي قاري قول دی چي دمړي زيارت داسي کول پکار دي لکه څرنګه چي دهغه په ژوند کي کول پکار وو نو که په ژوند کي ورنه لري کيناستو نو اوس به هم ورنه لري کيني.

ملا علي قاري وائي چي دقبر دزيارت په وخت کي کم از کم يو ځل سورة فاتحه او دري ځله سورة اخلاص ونيل پکار دي او ددي ثواب مړي ته بخل پکار دي او دده دپاره دي دمغفرت دعا اوغواړي

***************

## ٦٠_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي زِيَارَةِ الْقُبُورِ

### قبرستان ته دتلو دجواز بيان

١٠٥٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ. قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ النَّبِيلُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَدْ كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ. فَقَدْ أُذِنَ لِمُحَمَّدٍ فِي زِيَارَةِ قَبْرِ أُمِّهِ. فَزُورُوهَا فَإِنَّهَا تُذَكِّرُ الآخِرَةَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بُرَيْدَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا يَرَوْنَ بِزِيَارَةِ الْقُبُورِ بَأْسًا. وَهُوَ قَوْلُ: ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** دبريده رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: ما تاسو قبرونو ته دتلو نه منع کړي وئ خو اوس محمد (صلي الله عليه وسلم) ته دخپلي

---

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ٣٦ (٩٧٧) (بزيادة في السياق) (تحفة الأشراف : ١٩٣٢) وأخرجه صحيح مسلم في الأضاحي٥ (٩٧٧) سنن ابي داود في الأشربة٧ (٣٦٩٨) سنن النسائي في الجنائز١٠٠ (٢٠٣٤) والأضاحي٣٥ (٤٤٣٤، ٤٤٣٥) مسند احمد (٥في٣٥٠، ٣٥٥، ٣٥٦، ٣٥٧)

مور دقبر دزيارت كولو اجازت وركړي شوي دي نو تاسو هم ددوئ زيارت كولي شئ او دا ځيزونه اخرت لره رايادونكي دي.
امام ترمذي وائي دبريده حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابوسعيد خدري، ابن مسعود، انس، ابوهريره، اوام سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داهل علمو عمل هم په دي باندي دی چي هغوئ ته دقبرونو په زيارت كولو كي څه قباحت نه ښكاري، ابن مبارك، امام شافعي، احمد ، او اسحاق رحمهم الله هم ددي قائل دي.
**لغات** : نهيتكم: نهي ينهي نهيا دضرب نه په معني درټلو او منع كولو دي اود سمع او كرم وغيره نه هم راځي او په مزيدو كي د باب افتعال او افعال وغيره نه هم مستعمل دي.
**تشريح : په ابتداء داسلام كي دقبرونو زيارت كول منع وو وروسته جائز شول**

"نهيتكم عن زيارة القبور" يعني ماتاسو دقبرونو دزيارت كولونه منع كړي وئ خو اوس يي كولي شئ، په ابتداء داسلام كي رسول الله دقبرونو دزيارت كولو نه ممناعت فرمائيلي دی ځكه چي هغه وخت دجاهليت زمانه نزدي وه او دا خطره وه چي شايد خلق به قبرونو ته دتلونه پس شرك شروع كړي ليكن كله چي رسول الله اوليدل چي اوس دصحابه كرامو په زړونو كي اسلام كلك شو نو قبرونو ته دتلو اجازت يي وركړو
دتمامو علماؤ په دي خبري اتفاق دی چي دقبرونو دزيارت كولو دپاره تلل مستحب دي او ددي په وجه انسان تهمرګ رايادېږي او زړه يي نرم كېږي او په زړه كي يي دا سوچ پيدا كېږي چي دنيا فاني ده. دمرګ نه پس الله ته پيش كيدل دي.

**دبريده رضي الله عنه حالات**

نوم بريده كنيه ابو عبدالله او دپلار نوم مصيب بن عبدالله.
كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته ورسيدو نو بريده يي په خدمت كي حاضر شو نو رسول الله ورته داسلام دعوت وركړو نو دی فورا مسلمان شو او دده سره دبني اسلم اتيا كسان په اسلام كي داخل شول (طبقات ابن سعد)
په صلح حديبيه او بيعة الرضوان كي يي هم شركت كړی دی (اسد الغابه)
او په فتح مكه كي يي هم ملګرتيا كړي وه (مسند احمد).
تقريبا په شپاړسو غزواتو كي شريك پاتي شوی دی (بخاري كتاب المغازي).
كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داسامه په مشرئ كي اخر لښكر تيار كړو نو په دي كي هم شريك وو (طبقات ابن سعد).
غرض دا چي دده په رګ رګ كي دجهاد جذبي توپونه وهل او دژوند مزه به يي داسونو په زغلولو كي ليدله (طبقات ابن سعد).

ديزيد په زمانه كي دهجرت په ۲۳ كال وفات شو چي دمرويـاتو شمير يي ۱۲۴ دى يو متفق عليه دى او دوه په بخاري كي دي يولس په مسلم كي دي (تهذيب الكمال)

***************

۱۰۵۵ـ حَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، قَالَ: تُوُفِّيَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ بِالحُبْشِيِّ، قَالَ: فَحُمِلَ إِلَى مَكَّةَ، فَدُفِنَ فِيهَا، فَلَمَّا قَدِمَتْ عَائِشَةُ، أَتَتْ قَبْرَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، فَقَالَتْ:

وَكُنَّا كَنَدْمَانَيْ جَذِيمَةَ حِقْبَةً مِنَ الدَّهْرِ حَتَّى قِيلَ لَنْ يَتَصَدَّعَا

فَلَمَّا تَفَرَّقْنَا كَأَنِّي وَمَالِكًا لِطُولِ اجْتِمَاعٍ لَمْ نَبِتْ لَيْلَةً مَعَا

ثُمَّ قَالَتْ: "وَاللَّهِ لَوْ حَضَرْتُكَ مَا دُفِنْتَ إِلَّا حَيْثُ مُتَّ، وَلَوْ شَهِدْتُكَ مَا زُرْتُكَ".(۱)

**ترجمه** دعبدالله بن ابي مليكه نه مروي دي چي عبدالرحمن بن ابي بكر په حبشه كي وفات شو نو مكي ته د دفن كولو دپاره راوړلي شو او هلته دفن كړي شو كله چي ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها مكي ته راغله نو دعبدالرحمن بن ابي بكر قبر ته ورغله او دا اشعار يي اوونيل.

وَكُنَّا كَنَدْمَانَيْ جَذِيمَةَ حِقْبَةً مِنَ الدَّهْرِ حَتَّى قِيلَ لَنْ يَتَصَدَّعَا

فَلَمَّا تَفَرَّقْنَا كَأَنِّي وَمَالِكًا لِطُولِ اجْتِمَاعٍ لَمْ نَبِتْ لَيْلَةً مَعَا

يعني مونږ دواړه خو ديوي زماني پوري يوځاي اوسيدو لكه دجزيمه مقام د بادشاه د دوه ملګرو پشان تردي پوري چي دا ونيل شروع شو چي دوئ دواړه به ديو بل نه هيڅ كله جدا نشي. او بيا يي اوونيل په الله قسم كه چري زه تاسره موجود وي نو ته به هم هلته دفن شوي وي چرته چي ته وفات شوي يي او كه چري زه تاسره حاضره وي نو اوس به دي ملاقات ته نه وم راغلي

## دابو محمد عبد الرحمن بن ابي بكر صديق رضي الله عنه حالات

نوم عبدالرحمن كنيه ابو عبدالله دا دابوبكر صديق رضي الله عنه خوي دى دمور نوم يي ام زمان دى دعائشه رضي الله عنها حقيقي ورور دى دصلح حديبيه په موقعه مسلمان شوى دى

---

[1] ـ صحيح مسلم في الجنائز ۲۲ (۹۷۷) (بزيادة في السياق) (تحفة الأشراف : ۱۹۳۲) وأخرجه صحيح مسلم في الأضاحى٥ (۹۷۷) سنن ابي داود في الأشربة۷ (۳۶۹۸) سنن النسائي في الجنائز۱۰۰ (۲۰۳۲) والأضاحى۳۵ (۴۴۳۴، ۴۴۳۵) مسند احمد (٥ في۳۵۰، ۳۵۵، ۳۵۶، ۳۵۷)

او بيايي د دينه پس يي په مدينه كي دابوبكر رضي الله عنه سره اوسيدل كړي دي په تيراندازئ كي ماهروو دصلح حديبيه نه پس په تمامو جنگونو كي دمسلمانانو سره شريك شوى دى او په جنگ يمامه كي يي دبهادرئ كمال خودلى دى، دقلعه يمامه ديوال په يو خاي كي سورى شو مسلمانانو په دي كي ننوتل غوښتل ليكن ددشمنانو يو سردار محكم بن طفيل هلته موجود وو نو عبدالرحمن په غشي اوويشلو او بيا د دينه پس مسلمانان هلته داخل شول دوفات قصه يي داسي ده چي په اخري عمر كي مكي ته تلى وو او دښار نه تقريبا لس ميله لري په حبشي مقام كي په يو كور كي اوسيدو دهجرت په ۵۳ كال يو خل اوده وو او همداسي اوده پاتي شو پاخيدو ته جوړ نشو كله چي عائشه رضي الله عنها حج ته لاړه نو دده دقبر سره اودريده او دا اشعار يي اووئيل

وكنا كندما ني جذيمة حقبة  من الدهر حتي قيل لن يتصدعا

فلما تفرقنا كاني ومالكا  لطول اجتماع لم نبت ليلة معا

دمروياتو تعداد يي اته دى چي دري په دي كي متفق عليه دي.

***************

## ٦١ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ زِيَارَةِ الْقُبُورِ لِلنِّسَاءِ

### دښځو دپاره دقبرونو دزيارت كولو دمما نعت بيان

١٠٥٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، " أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ زَوَّارَاتِ الْقُبُورِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: أَنَّ هَذَا كَانَ قَبْلَ أَنْ يُرَخِّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي زِيَارَةِ الْقُبُورِ، فَلَمَّا رَخَّصَ دَخَلَ فِي رُخْصَتِهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّمَا كُرِهَ زِيَارَةُ الْقُبُورِ لِلنِّسَاءِ لِقِلَّةِ صَبْرِهِنَّ وَكَثْرَةِ جَزَعِهِنَّ.[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دقبرونو په زيارت كونكو ښځو باندي لعنت ونيلي دي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دابن عباس، اوحسان بن ثابت رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، دبعضي اهل علمو خيال دي دا دهغه وخت خبره ده كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم قبرونو ته دتلو اجازت نه وو وركړي مگر چي كله يي اجازت وركړو نو اوس داجازت په عموم كي نارينه او زنانه دواړه شامل دي، بعضي اهل علم

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ٤٩ (١٥٧٦) (تحفة الأشراف : ١٤٩٨٠) مسند احمد (٢ في ٣٣٧، ٣٥٦)

واني دښخو دپاره دقبرونو زيارت ته تلل ددوئ د بي صبرئ او دجزع فزع دکثرت په وجه مکروه دي.

***************

## ٦٢_ باب مَا جَاءَ فِي الدَّفْنِ بِاللَّيْلِ

### دشپې دمړي دخښولو بيان

١٠٥٧_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو السَّوَّاقُ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْيَمَانِ، عَنِ الْمِنْهَالِ بْنِ خَلِيفَةَ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ قَبْرًا لَيْلًا فَأُسْرِجَ لَهُ سِرَاجٌ فَأَخَذَهُ مِنْ قِبَلِ الْقِبْلَةِ، وَقَالَ: " رَحِمَكَ اللَّهُ إِنْ كُنْتَ لَأَوَّاهًا تَلَّاءً لِلْقُرْآنِ، وَكَبَّرَ عَلَيْهِ أَرْبَعًا ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ جَابِرٍ، وَيَزِيدَ بْنِ ثَابِتٍ وَهُوَ أَخُو زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَكْبَرُ مِنْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، وَقَالُوا: يُدْخَلُ الْمَيِّتُ الْقَبْرَ مِنْ قِبَلِ الْقِبْلَةِ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: يُسَلُّ سَلًّا. وَرَخَّصَ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي الدَّفْنِ بِاللَّيْلِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دشپې يو قبر ته داخل شو او چراغ ورته اولګولي شو نو مړي دقبلي دطرف نه راواخستلو او وېي فرمائيل الله دي په تا باندي رحم اوکړي ته خو ډير نرم دل او ژړيدونکي او دقران زيات تلاوت کونکي يې او بيا يې په ده باندي څلور تکبيرونه اووئيل
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن دي، او په دي باب کي دجابر او يزيد بن ثابت رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او يزيد بن ثابت دزيد بن ثابت ورور وو او دده نه مشر دي بعضي اهل علمو هم داقول اختيارکړي دي، دوئ وائي مړي به په قبر کي دقبلي دطرف نه راوېستلي شي. او بعضي وائي چي دسر دطرفه به يې په قبر کي راکش کړي او اکثر اهل علمو دشپې د تدفين کولو اجازت ورکړي دي.

***************

## ٦٣_ باب مَا جَاءَ فِي الثَّنَاءِ الْحَسَنِ عَلَى الْمَيِّتِ

### دمړي دتعريف کولو بيان

[1] _ سنن ابن ماجه في الجنائز ٣٠ (١٥٢٠)

١٠٥٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: مُرَّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجَنَازَةٍ، فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " وَجَبَتْ ". ثُمَّ قَالَ: " أَنْتُمْ شُهَدَاءُ اللَّهِ فِي الأَرْضِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَكَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په وراندي يوه جنازه تيره کړي شوه او خلقو دهغي تعريف اوکړو او رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل (جنت) واجب شو او بيا يي اوفرمائيل تاسو خلق په زمکه کي دالله تعالي ذو الجلال گواهان يئ.

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعمر، کعب بن عجره، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

***************

١٠٥٩_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، وَهَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْبَزَّازُ، قَالاَ: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي الْفُرَاتِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِي الأَسْوَدِ الدِّيلِيِّ، قَالَ: قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فَجَلَسْتُ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، فَمَرُّوا بِجَنَازَةٍ فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا، فَقَالَ عُمَرُ: وَجَبَتْ، فَقُلْتُ لِعُمَرَ: وَمَا وَجَبَتْ؟ قَالَ: أَقُولُ كَمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ لَهُ ثَلاَثَةٌ إِلاَّ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ ". قَالَ: قُلْنَا: وَاثْنَانِ، قَالَ: " وَاثْنَانِ ". قَالَ: وَلَمْ نَسْأَلْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْوَاحِدِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو الأَسْوَدِ الدِّيلِيُّ اسْمُهُ: ظَالِمُ بْنُ عَمْرِو بْنِ سُفْيَانَ. ([2])

**ترجمه** : د ابو الاسود رضي الله عنه روايت کوي چي مديني ته راغلم اود عمربن الخطاب سره کيناستم نو صحابه کرامو يوه جنازه اوليده نو دهغه يي په ښه لفظونو کي تعريف اوکړو په دي باندي عمر رضي الله عنه اوفرمائيل دده دپاره واجب شو ما ورته ووئيل څه شي واجب شو

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٨١٢) وأخرجه صحيح البخاری في الجنائز ٨٥ (١٣٦٧) والشهادات ٦ (٢٦٤٢) صحيح مسلم في الجنائز ٢٠ (٩٤٩) سنن النسائي في الجنائز ٥٠ (١٩٣٤) سنن ابن ماجه في الجنائز ٢٠ (١٤٩١) مسند احمد (٣ في١٦٩، ١٨٦، ١٩٧، ٢٤٥، ٢٨١)

[2] _ صحيح البخاری في الجنائز ٨٥ (١٣٦٨) والشهادات ٦ (٢٦٤٣) سنن النسائي في الجنائز ٥٠ (١٩٣٦) (تحفة الأشراف : ١٠٤٧٢) مسند احمد (١ في ٢٢، ٣٠، ٣٦)

هغه ووئيل زه درته داسي وايم څنګه چي رسول الله وئيلي وو رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي ووپه هر مسلمان چي دري کسان ګواهي وکړي نو جنت دهغه دپاره واجب کيږي، مونږ ووئيل او که دوه کسان ورباندي د نيکئ ګواهي وکړي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل او دوه هم، خو مونږ ورنه د يو باره کي تپوس ونکړو.
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دابوالاسود الديلي نوم ظالم بن عمرو بن سفيان دي

**لغات** : فاثنوا: الثناء تعريف کول جمع يي اثنية دضرب او باب افعال نه مستعمل دي.

**تشريح** . ايا دمړي په تعريف کولو سره هغه ته جنت ملاويږي؟

وجبت په تعريف کولو سره جنت واجب شو، په بعضو روايتونو کي وجبت لفظ دري ځلي راغلی دی مطلب دادی لکه څنګه چي تاسو ددي مړي تعريف کوئ او ستاسو تعريف صحيح او رښتيا دی نو دده دپاره به جنت واجب شي يا مطلب دادی چي ددي انسان مرګ به په خير باندي اوشي لکه څرنګه چي يي تاسو بيانوئ نو بيا هم جنت دده دپاره واجب کيږي او همدا رنګي ددوزخ دواجب کيدو مطلب دادی چي دکوم کس بدي تاسو بيانوئ که چري داپه ده کي حقيقتا موجود وي او يايي مرګ ددي بدئ په حالت کي شوی وي نو اوس به دده دپاره دجهنم سزا واجب شي.
علامه مظهري وائي ښه او بد وئيل دخلقو معتبر نه دي په دي کي مخلصينو او امانتدارو خلقو او متقيانو قول لره اعتبار دی که دوئ چاته ښه اووائي هغه به حقيقتا ښه وي او که بد اووائي نو حقيقتا به بد وي ځکه چي دداسي قسم مومن خبره کي دنفس دخواهش ګډون نه وي
علامه زين عرب وائي چي چالره په خيراو شر سره يادول دده دپاره دجنت او جهنم نه واجبوي بلکي ددي کس په باره کي صرف دعلامي کار ورکولی شي
انتم شهداء الله في الارض: يعني تاسو په زمکه کي دالله ګواهان يئ مطلب دادی په تاسو کي چي خلق دچا تعريف اوکړي نو هغه به حقيقتا همداسي وي او په همدي وجه به الله تعالي دخلقو په ژبه دا خبري جاري کړي او ددوئ نه ګواهي واخلي او که همدا رنګي څوک بد وي نو دده بدي به الله تعالي دخلقو په ژبو جاري کړي او دهغوئ نه به په دي ګواهي واخلي

***************

## ٦٤ــ بَاب مَا جَاءَ فِي ثَوَابِ مَنْ قَدَّمَ وَلَدًا

**دهغه چا اجر او ثواب بيان چاچي يو ماشوم داخرت دذخيري په طور مخکي ليږلي وي**

١٠٦٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. ح وحَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا يَمُوتُ لِأَحَدٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ فَتَمَسَّهُ النَّارُ إِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَمُعَاذٍ، وَكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، وَعُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ، وَأُمِّ سُلَيْمٍ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي ثَعْلَبَةَ الأَشْجَعِيِّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَقُرَّةَ بْنِ إِيَاسٍ الْمُزَنِيِّ. قَالَ: وَأَبُو ثَعْلَبَةَ الأَشْجَعِيُّ لَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثٌ وَاحِدٌ هُوَ هَذَا الْحَدِيثُ، وَلَيْسَ هُوَ الْخُشَنِيُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : ابوهریره رضي الله عنه وائي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چي دکوم مسلمان دری بچي وفات شي هغه به اور مسح هم نه کړي، البته دقسم پوره کولو دپاره چي هغه به په پل صراط باندی تیریږي.

قسم پوره کول دالله تعالي هغه قول دی چي په تاسو کي یو هم داسی نشته چي په دی دوزخ به نه تیریږي دورود نه مراد په پل صراط باندی تیریدل دي چي دجهنم دپاسه به قائمولی شي، الله تعالي دي مونږ ټول ددوزخ نه محفوظ اوساتي.

امام ترمذي وائي دابوهریره حدیث حسن صحیح دي او په دي باب کي دعمر، معاذ، کعب بن مالك، عتبه بن عبد، ام سلیم، جابر، انس، ابوذر، ابن مسعود، ابوثعلبه اشجعي، ابن عباس، عقبه بن عامر، ابوسعید خدري، او قره بن ایاس مزني رضي الله عنهم نه هم احادیث مروي دي، او دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه دابو ثعلبه اشجعي صرف همدا یو حدیث مروي دي او هغه همدادي او دا ثعلبه خشني نه دي هغه بل یو دي

**لغات** : تحلة القسم دقسم کفاره ورکول یا په قسم کي استثناء، حللّ تحليلا وتحلّة وتحلا، حلال ګنړل.

**تشریح** : که دچا دري بچي مړه شي نو جنت ته به داخل شي لیکن دقسم پوره کولو دپاره به دجهنم دپاسه تیریږي لکه چي ارشادالهي دی وان منکم الاواردها ، یعني داسي به هیڅوك نه وي چي دوزخ ته به داخل شوی نه وي اګر که هغه دبجلی دبرق پشان یوه لمحه وه او کافران چي دي دوی خو به دجهنم دپاسه په تیریدو کي ورغورځولی شي او کمزوري ایمان والابه دشفاعت

[1] _ صحيح البخارى في الأيمان والنذور ٩ (٦٦٥٦) صحيح مسلم في البر والصلة ٤٧ (٢٦٣٢) سنن النسائى في الجنائز ٢٥ (١٨٧٦) (تحفة الأشراف : ١٣٢٣٤) مسند احمد (٢ في ٤٧٣) وأخرجه صحيح البخارى في الجنائز ٦ (١٢٥١) صحيح مسلم في الجنائز سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٧ (١٦٠٣) مسند احمد (٢ في ٢٤٠، ٢٧٦، ٤٧٩)

په ذريعه راويستلي شي دحديث مطلب دا شو چي دكوم مسلمان دري بچي مړه شي نو دى به دوزخ ته نه ځي مګر ددومره لمحي دپاره به ځي په څومره كي چي تلل كيدى شي چي دالله تعالي قسم پوره شي او دا قسم په مختصر وخت كي دپل صراط دپاسه دتيريدو وقفه ده.

****************

١٠٦١ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا الْعَوَّامُ بْنُ حَوْشَبٍ، عَنْ أَبِي مُحَمَّدٍ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ قَدَّمَ ثَلَاثَةً لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ، كَانُوا لَهُ حِصْنًا حَصِينًا مِنَ النَّارِ ". قَالَ أَبُو ذَرٍّ: قَدَّمْتُ اثْنَيْنِ، قَالَ: " وَاثْنَيْنِ ". فَقَالَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ سَيِّدُ الْقُرَّاءِ: قَدَّمْتُ وَاحِدًا، قَالَ: " وَوَاحِدًا، وَلَكِنْ إِنَّمَا ذَاكَ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو عُبَيْدَةَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِيهِ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دري بچي (هلكان وي او كه جينكۍ وي) په طور دذخيري داخرت دخان نه مخكي اوليږل او هغوئ بلوغ ته رسيدلي نه وي نو دا ماشومان به ددوئ دپاره دجهنم نه دبچ كولو يوه مضبوطه قلعه جوړه شي، دي وخت كي ابو ذر رضي الله عنه عرض اوكړو ما خو دوه بچي مخكي ليږلي دي ؟ رسول الله اوفرمائيل دوه هم كافي دي ابيّ بن كعب سيدالقراء رضي الله عنه عرض اوكړو ما خو صرف يو بچي مخكي ليږلي دي ؟ رسول الله اوفرمائيل يو هم كافي دي البته داقلعه به په هغه وخت كي وي كله چي هغوئ د صدمي په اول وخت كي يعني دمرګ په وخت كي صبر كړي وي.

امام ترمذي وائي داحديث غريب دي او ابو عبيده دخپل پلار عبد الله بن مسعود نه اوريدل نه دي كړي، يعني سماع يي ورنه ثابته نه ده

****************

١٠٦٢ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، وَأَبُو الْخَطَّابِ زِيَادُ بْنُ يَحْيَى الْبَصْرِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ رَبِّهِ بْنُ بَارِقٍ الْحَنَفِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ جَدِّي أَبَا أُمِّي سِمَاكَ بْنَ الْوَلِيدِ الْحَنَفِيَّ يُحَدِّثُ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يُحَدِّثُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " مَنْ كَانَ لَهُ فَرَطَانِ مِنْ أُمَّتِي أَدْخَلَهُ اللَّهُ بِهِمَا الْجَنَّةَ " فَقَالَتْ عَائِشَةُ: فَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ مِنْ أُمَّتِكَ ؟ قَالَ: " وَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ يَا

---

[1] ـ ابن ماجه في الجنائز ٥٧ (١٦٠٦) (تحفة الأشراف : ٩٦٣٣) مسند احمد (١/ ٣٧٥، ٤٢٩).

مُوَفَّقَةُ ". قَالَتْ: فَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ فَرَطٌ مِنْ أُمَّتِكَ؟ قَالَ: " فَأَنَا فَرَطُ أُمَّتِي لَنْ يُصَابُوا بِمِثْلِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ بَارِقٍ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ. حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ المُرَابِطِيُّ، حَدَّثَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ، أَنْبَأَنَا عَبْدُ رَبِّهِ بْنُ بَارِقٍ ا فَذَكَرَ نَحْوَهُ، وَسِمَاكُ بْنُ الوَلِيدِ هُوَ: أَبُو زُمَيْلٍ الحَنَفِيُّ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرماني چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي زما په امت كي چي چا دوه بچي مخكي ليږلي دي الله تعالي به دهغوئ په وجه دي جنت ته داخل كړي، عائشه رضي الله عنها عرض اوكړو كه ستا په امت كي چا يو بچي مخكي ليږلي وي نو ويي فرمائيل يو هم كافي دي اي توفيق والا زنانه. هغوئ بيا تپوس اوكړو ستا په امت كي چي چا كوم بچي مخكي نه وي ليږلي نو هغوئ به څه حال وي رسول الله اوفرمائيل زه دخپل امت دطرفه مخكي ليږلي شوي يم او دچا په جدائي سره چاته دومره تكليف نه رسيږي څنګه چي به زما په جدائي هغوئ ته رسيږي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دعبد ربه بن بارق په سند سره معلوم دي او دهغه نه ډيرو محدثينو نقل دروايت كړي دي

***************

## ٦٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الشُّهَدَاءِ مَنْ هُمْ

### شهيدان څوك دي

١٠٦٣ـ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ. ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الشُّهَدَاءُ خَمْسٌ: المَطْعُونُ، وَالمَبْطُونُ، وَالغَرِقُ، وَصَاحِبُ الهَدْمِ، وَالشَّهِيدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ أَنَسٍ، وَصَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ، وَجَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ، وَخَالِدِ بْنِ عُرْفُطَةَ، وَسُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ، وَأَبِي مُوسَى، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

---

[1] ـ اابن ماجه في الجنائز ٥٧ (١٦٠٦) (تحفة الأشراف: ٦٩٣٢) مسند احمد (١ في ٣٤٥، ٣٢٩)

[2] ـ صحيح البخاري في الأذان ٣٢ (٦٥٢) و٧٣ (٧٢٠)، والجهاد ٣٠ (٢٨٢٩) والطب ٣٠ (٥٧٣٣) صحيح مسلم في الإمارة ٥١. موطا امام مالک في الجماعة. مسند احمد (٢ في ٣٢٥، ٥٣٣)

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي شهيدان پنځه دي طاعون والا هيضى والا ډوب شوى اوچي ديوال يابل څه شي لاندي شي اوپه جهاد في سبيل الله كي شهيد شي.
امام ترمذي وائي په دي باب كي دانس رضي الله عنه او دصفوان بن اميه او جابر بن عتيك او خالد بن عرفة او سليمان بن صرد او ابوموسي او عائشه، رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دابوهريره حديث حسن صحيح دي.
**لغات** : المبطون · دخيټي يو قسم بيماري ده په هغي كي مبتلا كس ته مبطون ويلي شي . بطانة عظيم البطن كس ته ويلي شي
**تشريح** : دشهيد دوه قسمونه :
په دي حديث كي دا معلوم شو چي شهيد په دوه قسمه دى يو كامل شهيد دى او دويم ناقص شهيد دى يا حكمي شهيد دي

## كامل شهيد

كامل شهيد هغه چاته وائي كوم چي په جنګ كي په داسي حالاتو كي قتل كړى شي چي په جسم يي زخمونه وي او ددينه پس يي كومه دنياوي نفع حاصله كړي نه وي دداسي شهيد حكم دادى چي غسل به ورته نشي وركولى مګر جنازه به ورباندي كولى شي ليكن دامام ابو حنيفه په نزد او دامام شافعي په نزد به په كامل شهيد باندي نه جنازه كولى شي او نه به غسل وركولى شي.

## ناقص شهادت

ناقص شهادت كي هم ثواب ملاوېږي ليكن دعامو مړو پشان به ورته غسل او كفن وركولى شي نو په پورتني حديث كي دناقص شهيد حكم بيان شوى دى.
المطعون: يعني څوك چي دطاعون په مرض مړ شي.
المبطون: چي دخيټي دبيمارۍ په مرض مړ شي.
صاحب الهدم: څوك چي دديوال لاندي مړ شي
دناقص شهيد نه دلته څلور بيان شوي دي ، امام سيوطي تقريبا ۳۸ شميرلي دي او نورو علماؤ هم څه لږ ډير بيان كړي دي.

***************

١٠٦٤ــ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنِ أَسْبَاطِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْقُرَشِيُّ الْكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا أَبُو سِنَانٍ الشَّيْبَانِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ السَّبِيعِيِّ، قَالَ: قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ صُرَدٍ لِخَالِدِ بْنِ عُرْفُطَةَ، أَوْ خَالِدٌ لِسُلَيْمَانَ: أَمَا

سَمِعْتَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ قَتَلَهُ بَطْنُهُ لَمْ يُعَذَّبْ فِي قَبْرِهِ". فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: نَعَمْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ فِي هَذَا الْبَابِ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** دابو اسحاق سبيعي بيان دي فرمائي چي سليمان بن صرد دخالد بن عرفة نه تپوس اوکړو ايا تا درسول الله صلي الله عليه وسلم نه څه نه دي اوريدلي دي چي څوک دخيټي دبيمارۍ په وجه مړ شي هغه ته به په قبر کي عذاب نشي ورکولي کيدي نو په دوئ کي يو تن خپل ملګري ته اوونيل هو اوريدلي مي دي

امام ترمذي وائي په دي باب کي دا حديث حسن غريب دي او ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دي

**تشريح :** **دشهيد مزيد نور اقسام**

عن ابي هريرة قَالَ: قَالَ رسول الله ﷺ: ((مَا تَعُدُّونَ الشُّهَدَاءَ فِيكُمْ ؟)) قالوا: يَا رسولَ اللهِ. مَنْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَهُوَ شَهِيدٌ. قَالَ: ((إِنَّ شهَدَاءَ أُمَّتِي إِذاً لَقَلِيلٌ)) ! قالوا: فَمَنْ هُمْ يَا رسول الله ؟ قَالَ: ((مَنْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ الله فَهُوَ شَهِيدٌ. وَمَنْ مَاتَ فِي سَبِيلِ الله فَهُوَ شَهِيدٌ. وَمَنْ مَاتَ فِي الطَّاعُونِ فَهُوَ شَهِيدٌ. وَمَنْ مَاتَ فِي البَطْنِ فَهُوَ شَهِيدٌ. وَالغَرِيقُ شَهِيدٌ)) رواه مسلم.

أخرجه: مسلم كتاب الامارة باب بيان الشهداء واحمد وعبد الرزاق وابن ماجة وابن حبان.

ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل تاسو شهيد څوک ګڼئ اصحابو عرض اوکړو يارسول الله څوک چي په جهاد کي دکفارو دلاسه قتل شي هغه شهيد دی رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل داسی خوبه خما دامت شهيدان ډيرکم شي هغوئ عرض اوکړو نو بل څوک شهيد دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څوک چي په جهاد کي قتل شي هغه خو شهيد، مګر څوک چي جهاد ته روان وي اوپه لاره کي په خپل مرګ مړ شي دی هم شهيد دی اوڅوک چي په طاعون مړ شي هغه هم شهيد دی اوڅوک چي دخيټی په مرض مړ شي هغه هم شهيد دی او څوک چي اوبو کي ډوب شي هغه هم شهيد دی

ان شهداء امتي اذا لقليل: زما دامت شهيدان به کم وي دحقيقي شهيد نه علاوه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي نور هم ډير حکمي شهيدان شته دکومو بيان چي په مخکني حديث کي تير شوی دی او څه به وروسته راشي

1 ـ سنن النسائي في الجنائز ١١١ (٢٠٥٢) (تحفة الأشراف: ٣٥٠٢ و٤٥٦٧) مسند احمد (٤ في ٢٦٢) و (٥ في ٢٩٢)

## دحكمي شهيدانو فهرست

علامه جلال الدين سيوطي په قول ددوئ تعداد ۳۷دی کوم چي مندرجه ذيل دي.

(۱) دخيتي بيمارئ والا

(۲) په اوبو کي دوب شوی

۳ دديوال نه پريوتلی

(۴) دسيني زخم والااو سخت درد والاچي مړ شي

(۵) دتيبي بيمارئ والا.

(۶) په سفر کي مړ شوی.

(۷) په ميرگو مړ شوی.

(۸) په تبه مړشوی

(۹) دمال او جان په حفاظت کي مړشوی

(۱۰) په ظلم قتل شوی.

(۱۱) دپاكدامنئ په محبت کي مړشوی.

(۱۲) دجذام په بيمارئ مړشوی.

(۱۳) ځناورو خوړلی

(۱۴) څوك چي بادشاه په ظلم وژلی وي

(۱۵) ضرري ځناور مار وغيره چي څوك چيچلی وي او مړشي.

(۱۶) دعلم په طلب کي يا تدريس ياتصنيف دولو په حال کي چي څوك مړ وي

(۱۷) هغه مؤذن چي دثواب په نيت اذان کوي او تنخوا نه اخلي.

(۱۸) رښتيا ويونکی تاجر.

(۱۹) څوك چي دخپل اهل او عيال دپاره دحلال رزق په کوشش کي مړشي.

(۲۰) دسمندر په سفر کي چي په چا قی اولگي او مړشي.

(۲۱) روزانه پنځويشت پيري ددي کلماتو ويونکی چي مړ شي اللهم بارك لي في الموت وفيما بعد الموت

(۲۲) دڅاښت دمونځ اهتمام کونکی او په هره مياشت کي دري روژي نيونکی چي په سفر او حضر کي يي نه پريږدي.

(۲۳) دامت دفساد په وخت کي دسنت اهتمام کونکی.

(۲۴) څوك چي په بيمارئ کي لا اله الا انت سبحانك اني کنت من الظالمين څلور پيري اووائي او بيا په همدي بيمارئ کي مړ شي.

(۲۵) هره شپه سورة يسين لوستونكى
(۲۲) څوك چي دسفر په وخت كي اعوذ بالله السميع العليم من الشيطن الرجيم دري پيري اوواني او دسورة حشر دري ايتونه اولولي
(۲۷) روزانه په نبي كريم صلي الله عليه وسلم سل پيري درود ويونكى
(۲۸) دزړه په صدق سره دشهادت تمنا كونكى
(۲۹) دجمعې په ورځ چي څوك مړ شي
(۳۰) دكفارو سره دجنګ دپاره په سرحدونو كي داسونو ساتونكى
(۳۱) دسورلئ نه دغورځيدو په وجه چي څوك مړ شي
(۳۲) دطاعون په مرض مړشوى
(۳۳) په سوزيدو مړشوى.
(۳۴) كومه ښځه چي دبچي پيدا كيدو په وخت كي دبيمارئ ختميدو نه مخكي مړه شي
(۳۵) په پيغلتوب كي مړه شوي ښځه.
(۳۲) هغه څوك چي په طهارت كي يي شپه تيره كړي وي او مړ شي
(۳۷) دچا ژوندكي چي دتشدد نه خالي وي او نرم مزاج والاوي
****************

## ٦٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْفِرَارِ مِنَ الطَّاعُونِ

### دطاعون نه دتخيدو دكراهت بيان

١٠٦٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ الطَّاعُونَ، فَقَالَ: "بَقِيَّةُ رِجْزٍ، أَوْ عَذَابٍ أُرْسِلَ عَلَى طَائِفَةٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ، فَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا مِنْهَا، وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَلَسْتُمْ بِهَا فَلَا تَهْبِطُوا عَلَيْهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَعْدٍ، وَخُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَجَابِرٍ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** : داسامه بن زيد رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دطاعون ذكر اوكړو او ويي فرمائيل دا دهغه عذاب باقي پاتي شوي حصه ده كوم چي دبني اسرائيلو په يوي ډلي ليږلى شوي وو كله چي په كومه زمكه يا ښار كي طاعون بيماري

---

[1] ـ صحيح البخاري في أحاديث الأنبياء ٥٣ (٣٤٧٣) والحيل ١٣ (٦٩٧٤) صحيح مسلم في السلام ٣٢ (٢٢١٨) (تحفة الأشراف ٩٢) وأخرجه صحيح البخاري في الطب ٣٠ (٥٧٢٨) صحيح مسلم في السلام.

وي او هلته تاسو موجود يئ نو ددغه خاي نه د وتلو كوشش مه كوئ او كله چي طاعون په كومه زمكه كي خور شوي وي او هلته تاسو موجود نه يئ نو تاسو هلته مه ورځئ.

امام ترمذي وائي داسامه بن زيد حديث حسن صحيح دي، په دي باب كي دسعد بن ثابت، عبدالرحمن بن عوف، جابر، او عائشه رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي.

**تشريح** : ددي روايت نه معلومه شوه چرته چي طاعون وي هلته ورتلل پكار نه دي ددي وجه داده كه چري هلته ورشي نو ممكن ده چي اتفاقا په ده باندي هم بيماري اولګي او دى به بيا دا ګمان كوي شايد چي دا دلته دراتلو په وجه داسي اوشول تردي چي دعقيدي دخرابيدو سبب اوګرځي ددينه لري اوسيدل پكار دي تردي چي په هيڅ حال كي دمرض دمتعدي كيدو دعقيدي احتمال پيدا نشي.

ددي جملي نه دموجوده زماني خلق استدلال كوي چي بعضي مرضونه داسي شته كومو ته چي متعدي ونيلى شي په غوړونو كي يو داسي قسم وائرس وي كوم چي دنورو خلقو دبيمارئ سبب ګرځي دجاهليت په زمانه كي دا عقيده وه چي بيماري پخپله متعدي كيږي حالانكه مرض پخپله نه متعدي كيږي شريعت ددينه مخالف دى بلكي دبيمارئ دپاره سبب جوړيږي چي جراسيم بل چاته منتقل شي او بيا دا دبل چا دبيماريدو سبب اوګرځي ددينه دبچ كيدو دپاره حكم اوكړى شو او په دي كي دوه فائدي هم دي يوه داده چي پخپله دبيمارئ نه بچ شي او دويم دا چي دعقيدي حفاظت يي هم اوشي (روضة الصالحين)

***************

## ٦٧ ــ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ أَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ

**څوك چي دالله تعالي سره ملاقات كول خوښوي الله تعالي دهغه سره ملاقات كول خوښوي**

١٠٦٦ ــ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مِقْدَامٍ أَبُو الأَشْعَثِ الْعِجْلِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ أَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ، وَمَنْ كَرِهَ لِقَاءَ اللَّهِ كَرِهَ اللَّهُ لِقَاءَهُ ". وَفِي الْبَاب: عَنْ أَبِي مُوسَى، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

---

[1] ـ صحيح البخاري في الرقاق ٤١ (٦٥٠٧) صحيح مسلم في الذكر ٥ (٢٦٨٣) سنن النسائي في الجنائز ١٠ (١٨٣٦) مسند احمد (٥ في ٣١٦، ٣٢١) سنن الدارمي في الرقاق ٤٣ (٢٧٩٨) ويأتي عند المؤلف في الزهد ٦ (٢٣٠٩) (تحفة الأشراف : ٥٠٧٠)

**ترجمه** د عباده رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچاچي الله تعالي سره ملاقات خوښ وي الله تعالي هم دهغه سره ملاقات خوښوي اودچاچي الله تعالي سره ملاقات خوښ نه وي الله تعالي هم ورسره ملاقات نه خوښوي
امام ترمذي وائي دعباده بن صامت حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابو موسي اشعري، ابوهريره، عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**تشريح** : دپورتني حديث نه معلومه شوه چي دزنګدن په وخت كي مومن ته فرشتي راځي او دا زيری ورته وركوي "نحن اولياء كم في الحياة الدنيا وفي الاخرة ولكم فيها ماتشتهي انفسكم ولكم فيها ماتدعون".
پس په همدي وجه دمومن روح په وتو كي جلتي كوي په خلاف دكافر انسان څكه چي دهغه دروح دوتلو په وخت كي هغه ته جهنم خودلی شي چي كافر ته به پكي دائمي هلاكت او خسران ښكاره شي او ددي په سبب به دده په زړه كي دا ارمان پيدا شي چي كاش مرګ راغلی وی كه مرګ راشي نو بربادي به راشي.

****************

١٠٦٧ـ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، قَالَ: وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا ذَكَرَتْ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ أَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ وَمَنْ كَرِهَ لِقَاءَ اللَّهِ كَرِهَ اللَّهُ لِقَاءَهُ" قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كُلُّنَا نَكْرَهُ الْمَوْتَ، قَالَ: "لَيْسَ ذَلِكَ، وَلَكِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا بُشِّرَ بِرَحْمَةِ اللَّهِ وَرِضْوَانِهِ وَجَنَّتِهِ، أَحَبَّ لِقَاءَ اللَّهِ وَأَحَبَّ اللَّهُ لِقَاءَهُ، وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا بُشِّرَ بِعَذَابِ اللَّهِ وَسَخَطِهِ كَرِهَ لِقَاءَ اللَّهِ وَكَرِهَ اللَّهُ لِقَاءَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچاچي الله تعالي سره ملاقات خوښ وي الله تعالي هم دهغه سره ملاقات خوښوي اودچاچي الله تعالي سره ملاقات خوښ نه وي الله تعالي هم ورسره ملاقات نه خوښوي عائشه

[1] ـ صحيح البخاری في الرقاق ٤١ (تعليقا بعد حديث عبادة) صحيح مسلم في الذكر ٥ (٢٦٨٤) سنن النسائي في الجنائز ١٠ (١٨٣٩) سنن ابن ماجه في الزهد ٣١ (٤٢٦٤) (تحفة الأشراف : ١٦١٠٣) وأخرجه صحيح مسلم في الذكر مسند احمد (٦ في ٤٤، ٥٥، ٢٠٧)

رضي الله عنها فرمائي ما عرض اوکړو يا رسول الله، الله تعالي سره ملاقات خو مرګ نه پس کيږي. الله تعالي سره ملاقات نه خوښولو مطلب دادی چي ايا مرګ يې خوښ نه وي که داسې وي خو ګرانه شوه مرګ دهيڅچا هم خوښ نه دی، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل خبره داسې نه ده بلکي ددی مطلب دادی چي مسلمان ته دالله درحمتونو اودجنت دنعمتونو زيري ورکړی شي، نو هغه وربانديي يقين اوکړي اودهغه ملاقات خوښ کړي او کافر ته چي دالله تعالي دغضب او قهر خبر ورکړل شي نو هغه دالله تعالي ملاقات خوښ نه کړي نو الله تعالي يې هم ملاقات خوښ نه کړي

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی

**لغات** سخط سخطا غصه کيدل ، او ناخوښي کول مسخوط يي مفعول دي جمع يي مساخط ده.

**تشريح** : ولکن المومن اذا بشر برحمة الله ورضوانه:يعني مومن ته چي کله دالله درحمت زيري وشي، دپورتني حديث نه معلومه شوه چي دزنګدن په وخت کي مومن ته فرشتي راځي او دا زيری ورته ورکوي "نحن اولياءکم في الحياة الدنيا في الاخرة ولکم فيها ماتشتهي انفسکم ولکم فيها ماتدعون".

نو پدي وجه دمومن روح په وتو کي جلتي کوي په خلاف دکافر انسان څکه چي دهغه دروح دوتلو په وخت کي هغه ته جهنم خودلی شي چي کافر ته به پکې دائمي هلاکت او خسران ښکاره شي او ددي په سبب به دده په زړه کي دا ارمان پيدا شي چي کاش مرګ راغلی نه وی که مرګ راشي نو بربادي به راشي.

***************

## ٦٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ

### په خودکوشي کونکي باندي دجنازي نه کولوبيان

١٠٦٨ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، وَشَرِيكٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، "أَنَّ رَجُلًا قَتَلَ نَفْسَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي هَذَا. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: يُصَلَّى عَلَى كُلِّ مَنْ

صَلَّى إِلَى الْقِبْلَةِ، وَعَلَى قَاتِلِ النَّفْسِ. وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَإِسْحَاق. وقَالَ أَحْمَدُ: لَا يُصَلِّي الْإِمَامُ عَلَى قَاتِلِ النَّفْسِ وَيُصَلِّي عَلَيْهِ غَيْرُ الْإِمَامِ. [1]

**ترجمه** دجابر بن سمره رضي الله عنه نه مروي دي چې يو كس خودكوشي اوكړه نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم په هغه باندي جنازه اونكړه

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په دي مسئله كې داهل علمو اختلاف دي دبعضو قول دادي چې مونځ دجنازي به په هر چا باندي كولي شي چې قبلي ته مونځ كوي او په خودكوشي كونكي باندي به هم كيږي دسفيان ثوري او اسحاق هم دا قول دي او امام احمد بن حنبل وائي په خودكوشي كونكي باندي به جنازه نه كيږي البته دمسلمانانو دحاكم نه علاوه كه امام بل څوك وي نو بيا يې كولي شي.

***************

## ٦٩_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْمَدْيُونِ

### دقرضداري دجنازي دمونځ كولو بيان

١٠٦٩_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي قَتَادَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِرَجُلٍ لِيُصَلِّيَ عَلَيْهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ فَإِنَّ عَلَيْهِ دَيْنًا". قَالَ: أَبُو قَتَادَةَ: هُوَ عَلَيَّ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بِالْوَفَاءِ". قَالَ: بِالْوَفَاءِ، فَصَلَّى عَلَيْهِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَسَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دابوقتاده رضي الله عنه نه مروي دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته يوكس راوړلي شو چې جنازه ورباندي اوكړي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل تاسو پخپل ملګري جنازه اوكړئ څكه چې په ده باندي قرض دي (او زه ورباندي جنازه نه كوم)

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ٣١ (١٥٢٦) (تحفة الأشراف: ٢١٣٠، ٢١٤٣) (٥ في ٨٧، ٩٣)

[2] ـ سنن النسائي في الجنائز ٦٧ (١٩٦٣) سنن ابن ماجه في الصدقات ٩ (٢٢٠٧) سنن الدارمي في البيوع ٥٣ (٢٦٣٥) (تحفة الأشراف: ١٢١٠٣) مسند احمد (٥ في ٣٠٢)

دي وخت کي ابوقتاده عرض اوکړو چي دده دقرض اداء کول زما په ذمه شول رسول الله صلي الله عليه وسلم تپوس اوکړو ايا پوره پوره به يي اداء کوي؟ ابوقتاده اوونيل هو پوره پوره به يي اداء کوي نوبيا ورباندي رسول الله صلي الله عليه وسلم جنازه اوکړه

امام ترمذي وائي دابوقتاده حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کي دجابر، سلمه بن الاکوع، او اسماء بنت يزيد رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**ابوقتاده حارث بن ربعي رضي الله عنه حالات**

نوم ابوقتاده لقب فارس رسول الله صلي الله عليه وسلم، په خزرج قبيله کي يي دسلمه خاندان سره تعلق وو.

دهجرت نه لس کاله مخکي په مدينه کي پيدا شوی وو او دغزوه بدر نه علاوه يي په تمامو غزواتو کي شرکت کړی وو علي رضي الله عنه ده لره دمکي امير مقرر کړی وو قتاده ډير زيات متواضع وو او د درس حلقه يي په همدي وجه وسيع وه په حديبيه کي چي کله درسول الله صلي الله عليه وسلم سره مکي ته تلو نو په لاره کي يي ددوستانو او ملګرو سره ټوقي او خندا کوله (مسند احمد).

په غزوه حنين کي چي دلويو لويو جانبازانو قدمونه اوخويدل نو پدغه وخت کي دابوقتاده خپي مضبوطي وي دحديث په بيانولو کي يي ډير احتياط کولو چي کله يي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه من کذب علي متعمدا والا روايت واوريدو نو نور زيات احتياط يي هم شروع کړو (مسند احمد).

وفات: دده په وفات کي اختلاف دی بعضو ۴۹هجري کوفه ليکلي ده ليکن داکثرو په نزد دپنځوس او شپيتو په مينځ کي دده وفات شوی دی.

دده دمروياتو شمير ۱۷۰دی چي يولس په بخاري او مسلم کي متفق عليه دي دولس په بخاري کي دي او اته په مسلم کي دي.

***************

۱۰۷۰ـ حَدَّثَنِي أَبُو الفَضْلِ مَكْتُومُ بْنُ العَبَّاسِ التِّرْمِذِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ صَالِحٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي اللَّيْثُ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُؤْتَى بِالرَّجُلِ المُتَوَفَّى عَلَيْهِ الدَّيْنُ، فَيَقُولُ: "هَلْ تَرَكَ لِدَيْنِهِ مِنْ قَضَاءٍ"، فَإِنْ حُدِّثَ أَنَّهُ تَرَكَ وَفَاءً صَلَّى عَلَيْهِ، وَإِلَّا قَالَ لِلْمُسْلِمِينَ: "صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ". فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ الفُتُوحَ قَامَ، فَقَالَ: "أَنَا أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ، فَمَنْ تُوُفِّيَ مِنَ المُسْلِمِينَ فَتَرَكَ دَيْنًا عَلَيَّ قَضَاؤُهُ، وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَهُوَ لِوَرَثَتِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، نَحْوَ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَالِحٍ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته به كله يوداسي مړي راوړلي شو په كوم چي به دچا قرضه وه نو تپوس به يي كولو ايا ده دخپل قرض اداء كولو دپاره څه پريخي دي؟ نو كه اوبه ونيلي شول چي هو دومره دومره مال يي پريخي دي او په هغي به دده قرض مكمل اداء كيدي شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به دهغه جنازه اوكړه او كنه نو عامو مسلمانانو ته به يي اوفرمائيل تاسو خپل ملګري جنازه اوكړئ (او زه يي نشم كولي)، مګر بيا چي كله الله تعالي خپل رسول ته دفتوحاتو دروازه پرانيستله نو اودريدو او ويي فرمائيل زه مسلمانانو ته ددوئ دنفسونو نه زيات عزيز يم او په مسلمانانو كي چي څوك مړشي او قرض يي پريخي وي نو دهغي اداء كول زما په ذمه دي او كه څوك مړ شي او څه مال يي پريخي وي نو هغه دده دوارثانو دي . امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، دا روايت يحيٰ بن بكير او بعضي نورو راويانو دليث بن سعد نه دعبدالله بن صالح دحديث پشان نقل كړي دي.

***************

## ٧٠ـ باب مَا جَاءَ فِي عَذَابِ الْقَبْرِ

### دعذاب قبر بيان

١٠٧١ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ الْبَصْرِيُّ. حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا قُبِرَ الْمَيِّتُ "، أَوْ قَالَ: " أَحَدُكُمْ أَتَاهُ مَلَكَانِ أَسْوَدَانِ أَزْرَقَانِ، يُقَالُ لِأَحَدِهِمَا: الْمُنْكَرُ وَالْآخَرُ النَّكِيرُ، فَيَقُولَانِ: مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ ؟ فَيَقُولُ: مَا كَانَ يَقُولُ هُوَ: عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ. فَيَقُولَانِ: قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ هَذَا،

---

1 ـ صحيح البخارى في الكفارة ٥ (٢٢٩٨) والنفقات ١٥ (٥٣٧١) صحيح مسلم في الفرائض ٤ (١٦١٩) (تحفة الأشراف: ١٥٢١٦) مسند احمد (٢ في ٤٥٣) وأخرجه سنن النسائي في الجنائز٦٧ (١٩٦٥) سنن ابن ماجه في الصدقات١٣ (٢٤١٥) مسند احمد (٢ في ٢٩٠) من غير هذا الوجه. وأخرجه: صحيح البخارى في الاستقراض١١ (٢٣٩٨، ٢٣٩٩) وتفسير الاقراب١ (٤٧٩١) والفرائض ٤ (٦٧٣١) و١٥ (٦٧٤٥) و٢٥ (٦٧٦٣) صحيح مسلم في الفرائض (المصدر المذكور) مسند احمد (٢ في ٤٥٦)

ثُمَّ يُفْسَحُ لَهُ فِي قَبْرِهِ سَبْعُونَ ذِرَاعًا فِي سَبْعِينَ، ثُمَّ يُنَوَّرُ لَهُ فِيهِ، ثُمَّ يُقَالُ لَهُ: نَمْ. فَيَقُولُ: أَرْجِعُ إِلَى أَهْلِي فَأُخْبِرُهُمْ. فَيَقُولَانِ: نَمْ كَنَوْمَةِ الْعَرُوسِ الَّذِي لَا يُوقِظُهُ إِلَّا أَحَبُّ أَهْلِهِ إِلَيْهِ حَتَّى يَبْعَثَهُ اللهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ، وَإِنْ كَانَ مُنَافِقًا، قَالَ: سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُولُونَ: فَقُلْتُ مِثْلَهُ: لَا أَدْرِي. فَيَقُولَانِ: قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ ذَلِكَ. فَيُقَالُ لِلْأَرْضِ: الْتَئِمِي عَلَيْهِ فَتَلْتَئِمُ عَلَيْهِ. فَتَخْتَلِفُ فِيهَا أَضْلَاعُهُ، فَلَا يَزَالُ فِيهَا مُعَذَّبًا حَتَّى يَبْعَثَهُ اللهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ". وَفِي الْبَابِ: عَنْ عَلِيٍّ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَالْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَأَنَسٍ، وَجَابِرٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، كُلُّهُمْ رَوَوْا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عَذَابِ الْقَبْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې يو مړي او که داسي يي وفرمائيل چې په تاسو کي يو کس په قبر کي کيخودي شي نودوه شين سترګي فرشتي ورته راشي چې يوي نوم منکر اودبلي نوم نکير وي اودواړه ورنه تپوس کوي چې تاددغه کس په باره کي څه وئيل دي به اووائي دالله بنده او رسول وو زه ګواهي ورکوم چې دالله نه علاوه بل معبود نشته او محمد (صلي الله عليه وسلم) دهغه بنده اورسول دي فرشتي به اووائي مونږ پوهيدو چې ته به همدا وائي اوبيا به دده قبر اويا لاسه فراخه کړي شي اوروښانه به شي او ورته به اووئيلي شي چې اوده شه نودي به اووائي زه واپس تلل غواړم چې خپل اهل ته ددي حالت خبر ورکړم نوهغوئ به ورته اووايي چې دهغه ناوي پشان اوده شه چالره چې په کور کي دهغه چا نه علاوه نه راوينبوي کوم چې ورته ډير محبوب وي تردي چې الله تعالي ده لره دده دخواب ګاه نه راپورته کړي او که چري منافق وي نوپه جواب کي به اووائي مادخلقو نه اوريدلي وو چې وئيل يي نو مابه هم هغه شان وئيل اوماته معلومه نه ده چې دي دالله رسول وو اوکه نه فرشتي به ووائي مونږ دمخکي نه پوهيدو چې ته به همداسي وائي اوبيابه زمکي ته حکم اوکړي شي اوپده باندي به راجوخته کړي شي زمکه به منافق ته دومره زور ورکړي چې ديو طرف پوختئ به يي دبل طرف نه وخي اوپدي شان سره به دي تردي پوري په عذاب کي مبتلا وي چې الله تعالي ده لره دخپل خواب ګاه نه راپورته کړي

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن غريب دي او په دي باب کي دعلي، زيد بن ثابت، ابن عباس، براء بن عازب، ابوايوب، انس، جابر، عائشه، او ابوسفيان رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي دوئ ټولو درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دعذاب قبر متعلق روايت نقل کړي دي.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢٩٤٦)

**تشريح** : دابو داود او امام احمد په روايت کي ذکر شوي حديث پدي الفاظو مروي دي چي مړي ته دوه فرشتي راشي اوده لره کينوي او ورته وائي ستا رب څوك دي نوهغه ورته په جواب کي وائي الله زما رب دي بيا ورته تپوس اوکړي چي دين دي څه دي قبر والابه ورته وائي دين مي اسلام دي بيا ورته تپوس اوکړي هغه کس څنګه وو څوك چي تاسو ته درليږلي شوي وو نو قبر والابه اووائي هغه دالله رسول ووفرشتي به اووائي تاته څه معلومه وه دي به اووائي مادالله کتاب لوستلي دي اومنلي مي دي او دهغه تصديق مي کړي دي پس دايت کريمه "يُثَبِّتُ اللهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ" همدا مطلب دي
رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بيا به داسمان نه اواز اوشي چي زما بنده رښتيا اوونيل دده دپاره دجنت بستري تياري کړئ اودجنت لباس ورته واغوندئ اودده دپاره دجنت دروازه پرانيخئ، درسول الله فرمان دي بيابه ددينه پس په دده باندي دجنت هواګاني او خوشبوګاني اولګي او دنظر دلګيدو دحده پوري به دده ته جنت وسيع کړي شي، دکافر دذکر کولو په حال کي رسول الله اوفرمائيل چي دده روح به دده بدن ته واپس کړي شي او دوه فرشتي ورته ورشي اوده لره کينوي اوتپوس ورنه اوکړي ستا رب څوك دي نودي وائي هاه هاه ماته معلومه نه ده فرشتي وائي ستا دين څه دي نودي به وائي هاه هاه ماته معلومه نه ده فرشتي به وائي کوم کس چي تاسوته درليږلي شوي وو دهغه څه حالت وو نودي به اووائي هاه هاه ماته معلومه نه ده ، پس بيابه داسمان نه اواز اوشي چي ده دروغ اوونيل دده دپاره داور بستره اوغوړوئ او داور لباس ورته واغوندئ اوددوزخ دطرفه به ورته يوه دروازه پرانيخئ اوبيا به په ده باندي ددوزخ ګرمي اوبړاس راتلل شروع شي اودده قبر به دومره تنګ کړي شي چي پختئ به يي يوه دبلي نه اوخي اوبيابه ده ته دعذاب ورکولودپاره پده باندي يوه کنړه اوړنده فرشته مقرره کړي شي چي په لاسونو کي به يي داوسپني داسي ګرز وي.که چري پدغه ګرز په غر وار اوکړي شي نوخاوري به يي کړي اودا فرشته به کافر لره پدغه ګرز وهي چي اواز به يي دانسانانو اوجناتو نه علاوه دمشرق نه دمغربه پوري هر يوځيز اوري ګوياکي پدي ګذار به کافر خاوري کيږي او بيابه په هغه کي واپس روح اچولي کيږي.
عثمان رضي الله عنه نه روايت دي کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم دمړي د دفن کولو نه فارغ شو نودقبر سره به يي توقف کولو اوفرمائيل به يي دخپل دي ورور دپاره مغفرت اوغواړئ اودالله تعالي نه دده دپاره دثابت قدم کيدو سوال اوکړئ اوپدي وخت کي دده نه سوال کيږي (رواه ابوداود).
دانس رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يوانسان چي کله په قبر کي کيخودي شي اوخلق ورنه روان شي نومړي ددوئ دپيزارونو کشار اوري

اوبدغه وخت كي ورته دوه فرشتي راشي اوده لره كينوي او ورته اووائي چي ته ددغه كس (محمد صلي الله عليه وسلم) په باره كي څه وائي مومن په جواب كي وائي گواهي وركوم چي هغه دالله بنده اورسول دي دي به دخپل دوزخ والاځكانه اوويني او الله تعالي به ورته دجنت ځكانه وركري مومن دواړو لره ويني . دمنافق اوكافر نه به تپوس اوشي چي ته ددغه كس په باره كي څه وائي نودي به اووائي ماته معلومه نه ده نورو خلقو چي څه ونيل هغه ماهم ونيل فرشتي به ورته اووائي ته نه پوهه شوي يي اونه دي لوستل كړي دي اوبيابه يي داوسپني په گرزونو اووهي او چغي به وهي اودده چغي به دجناتو اوانسانانو نه علاوه نور ټول نزدي ځيزونه اوري (متفق عليه)

***************

١٠٧٢ــ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا مَاتَ الْمَيِّتُ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ، فَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَمِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَمِنْ أَهْلِ النَّارِ، ثُمَّ يُقَالُ: هَذَا مَقْعَدُكَ حَتَّى يَبْعَثَكَ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي يو سړي مړ كيږي نو هغه ته سحر او ماښام دهغه ځكانه (اوسيدوځاي) خودلي كيږي كه چري دي دجنتيانو نه وي نو په جنت كي به خپل داوسيدوځاي اوويني او كه ددوزخيانو نه وي نو په جهنم كي به خپل ځاي اوويني، او بيا به ده ته وئيلي كيږي دا ستا داوسيدوځاي دي تردي پورې چي په قيامت كي دي الله پاك راپورته كړي.
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي

***************

## ٧١ــ بَاب مَا جَاءَ فِي أَجْرِ مَنْ عَزَّى مُصَابًا

### دهغه چا داجر او ثواب بيان څوك چي ديو مصيبت زېلي تعزيت اوكړي

---

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٠٥٤) وأخرجه صحيح البخارى في الجنائز٨٩ (١٣٧٩) وبدء الخلق٨ (٣٢٤٠) والرقاق٤٢ (٦٥١٥) صحيح مسلم في الجنة١٧ (٢٨٦٦) سنن النسائى في الجنائز ١١٦) (٢٠٧٢، ٢٠٧٣، ٢٠٧٤) الزهد٣٢ (٤٢٧٠) موطا امام مالك في الجنائز١٦ (٤٧) مسند احمد (٢ في ١٦، ٥١، ١١٣، ١٢٣)

١٠٧٣_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَاصِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا وَاللَّهِ ا مُحَمَّدُ بْنُ سُوقَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ عَزَّى مُصَابًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَلِيِّ بْنِ عَاصِمٍ. وَرَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوقَةَ بِهَذَا الإِسْنَادِ مِثْلَهُ موقوفاً وَلَمْ يَرْفَعْهُ. وَيُقَالُ: أَكْثَرُ مَا ابْتُلِيَ بِهِ عَلِيُّ بْنُ عَاصِمٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ نَقَمُوا عَلَيْهِ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دكوم مصيبت وهلي تعزيت اوكړو ده ته به هم ددي پوره پوره اجر ملاويږي.

امام ترمذي وائي داحديث غريب دي مونږ يي صرف دعلي بن عاصم په روايت مرفوع پيژنو او بعضي راويانو دمحمد بن سوقه نه ددي پشان روايت په همدي سند مرفوعا نقل کړي دي او دا يي نه دي مرفوع کړي. ونيلي کيږي په علي بن عاصم چي کوم زيات طعن لګيدلي وو او خلقو ورباندي اعتراضونه کړي وو هغه ددي حديث په وجه وو

***************

## ٧٢_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ مَاتَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### دجمعي په ورځ دمړ کيدونکي بيان

١٠٧٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، وَأَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ سَيْفٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوْ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ إِلَّا وَقَاهُ اللَّهُ فِتْنَةَ الْقَبْرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. قَالَ: وَهَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ رَبِيعَةُ بْنُ سَيْفٍ، إِنَّمَا يَرْوِي عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَلَا نَعْرِفُ لِرَبِيعَةَ بْنِ سَيْفٍ سَمَاعًا مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. ([2])

[1] ـ سنن ابن ماجه في الجنائز ٥٦ (١٦٠٢) (تحفة الأشراف : ٩١٦٦)

[2] ـ تفرد به المؤلف وانظر: مسند احمد (٢ في ١٦٩) (تحفة الأشراف : ٨٦٢٥)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كوم مسلمان چي دجمعي په ورځ يا دجمعي په شپه وفات كيږي الله تعالي هغه لره دقبر دفتني نه محفوظ كوي

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي او سند يي متصل نه دي ربيعه بن اسيد د ابوعبدالرحمن حبلي نه روايت كوي او هغه دعبدالله بن عمرو نه او مونږ ته نه ده معلومه چي د ربيعه بن سيف سماع دعبدالله بن عمرو نه ثابت ده او كنه ده.

**تشريح** : په العرف الشذي كي ليكلي دي چي دجمعي په ورځ د مړ كيدو په فضيلت كي چي څومره احاديث وارد دي ټول ضعيف دي او دقبر دفتني نه مراد دسوال او جواب وخت كي خوف ناك صورة حال دي

***************

## ۷۳_ بَاب مَا جَاءَ فِي تَعْجِيلِ الْجَنَازَةِ

### په جنازه كي دجلتئ كولو بيان

۱۰۷۵_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْجُهَنِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: "يَا عَلِيُّ، ثَلَاثٌ لَا تُؤَخِّرْهَا: الصَّلَاةُ إِذَا أَتَتْ، وَالْجَنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ، وَالْأَيِّمُ إِذَا وَجَدْتَ لَهَا كُفْئًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَمَا أَرَى إِسْنَادَهُ بِمُتَّصِلٍ. [1]

**ترجمه** دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل اي علي په دري څيزونو كي تاخير مه كوه يو په مونځ كي كله چي ددي وخت راشي او يو په جنازه كي كله چي حاضره شي او دكونډي په نكاح وركولو كي كله چي تاسو ته ددي مناسب څوك ملاؤ شي، امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي، او ماته ددي متصل سند معلوم نه دي

**تشريح** : همدا مضمون دابن عمر رضي الله عنهما نه هم مروي دی فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي كله چي په تاسو كي څوك مړ شي نوپه كور كي يي دېر مه حصاروئ قبر ته يي زر ورسوئ او په دفن كولو كي يي دجلتئ نه كار واخلئ.

**يوغلط رسم**

---

[1] _ سنن ابن ماجه في الجنائز ۱۸ (۱۴۸۶) (تحفة الأشراف.

حكيم الامت اشرف علي تهانوي وايي په بعضې خايونو کې مال او دولت دمعلومولو يا دترکې دتقسيم انتظام او اهتمام يا ددوستانو او رشته دارانو انتظام يا دمونځ ګذارو کثرت يا دبل کوم غرض دپاره دمړي په تدفين کې تاخير کيدی شي ترڅو چې په بعضې خايونو کې پوره دوه ورځې مړی پروت وي دا ټول ناجائز او ممنوع دي (روضة الصالحين)

*****************

## ٧٤_ باب آخَرُ فِي فَضْلِ التَّعْزِيَةِ

## دتعزيت دفضيلت په بيان کې يو بل باب

١٠٧٦_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ الْمُؤَدِّبُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنَا أُمُّ الأَسْوَدِ، عَنْ مُنْيَةَ بِنْتِ عُبَيْدِ بْنِ أَبِي بَرْزَةَ، عَنْ جَدِّهَا أَبِي بَرْزَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ عَزَّى ثَكْلَى كُسِيَ بُرْدًا فِي الْجَنَّةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ. (١)

**ترجمه** دابو برزه رضي الله عنه بيان دی رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې دکومې داسې ښځې تعزيت اوکړو چې خوی يې مړ شوی وي نو ده ته به په جنت کې ددې په بدل کې يو بهترينه جوړه واغوستولی شي.

امام ترمذي وائي داحديث غريب دی او سند يې قوي نه دی

**تشریح** : ترمذي په رقم ۹۹۸ کې د تعزيت متعلق روايت نقل کړی دی

دعبدالله بن جعفر رضي الله عنهما بيان دی کله چې دجعفر طيار دمرګ خبر راغی نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دجعفر دکور دخلقو دپاره دخوراك انتظام اوکړئ ځکه چې دوئ باندې نن داسې مصيبت راغلی دی په کوم کې چې هغوئ مشغول دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دی ، او بعضې اهل علم دمړي کور ته په مصيبت کې دانختلو په وجه څه ليږل مستحب ګڼړي او دا دامام شافعي قول هم دی. دجعفر بن خالد پلار دخالد ساره خوی دی او ثقه دی دده نه ابن جريج نقل دروايت کړی دی

*****************

## ٧٥_ باب مَا جَاءَ فِي رَفْعِ الْيَدَيْنِ عَلَى الْجَنَازَةِ

## دجنازې په مونځ کې دلاسونو پورته کولو بيان

١ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١١٦٠٩)

١٠٧٧_ حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ دِينَارٍ الْكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ أَبَانَ الْوَرَّاقُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِي فَرْوَةَ يَزِيدَ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ زَيْدٍ وَهُوَ: ابْنُ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَبَّرَ عَلَى جَنَازَةٍ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ وَوَضَعَ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي هَذَا. فَرَأَى أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنْ يَرْفَعَ الرَّجُلُ يَدَيْهِ فِي كُلِّ تَكْبِيرَةٍ عَلَى الْجَنَازَةِ. وَهُوَ قَوْلُ: ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ. وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَذُكِرَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ أَنَّهُ قَالَ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَازَةِ: لَا يَقْبِضُ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ". وَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنْ يَقْبِضَ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ كَمَا يَفْعَلُ فِي الصَّلَاةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: يَقْبِضُ أَحَبُّ إِلَيَّ.(1)

**ترجمه**. دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو جنازه كي الله اكبر اووئيل او داولني تكبير سره يي رفع اليدين اوكړل او ښي لاس يي په ګس لاس باندي دپاسه كيخودو

امام ترمذي وائي داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي. داهل علمو په دي مسئله كي اختلاف دي په صحابه كرامو او ددوی نه پس په اهل علمو كي دبعضو خيال دي چي په جنازه كي دهر تكبير په وخت كي دواړه لاسونه پورته كول ضروري دي دا دابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول دي مګر بعضي اهل علم وائي صرف په اول ځل به لاسونه پورته كوي (او بيا به يي نه پورته كوي)، دا دسفيان ثوري او اهل كوفه قول دي. ابن مبارك وائي دجنازي په مونځ كي به ښي لاس چپ لاس لره نه نيسي. او بعضي اهل علم وائي چي په ښي لاس به چپ لاس نيسي لكه چي په نورو مونځونو كي ښكه كيږي. امام ترمذي وائي لاس تړل زما زيات خوښ دي

***************

## ٧٦_ باب مَا جَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ نَفْسُ الْمُؤْمِنِ مُعَلَّقَةٌ بِدَيْنِهِ حَتَّى يُقْضَى عَنْهُ

1_ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣١١)

## دمومن روح دقرض په وجه هغه وخته پورې زوړند وي ترڅو پورې چې دا ازاد شوي نه وي

۱۰۷۸_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَفْسُ الْمُؤْمِنِ مُعَلَّقَةٌ بِدَيْنِهِ حَتَّى يُقْضَى عَنْهُ".[1]

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه بيان كوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دمومن روح دقرض دوجې نه ترهغې پورې زوړند وي څو پورې چې دهغه قرضه ادا نکړې شي

**لغات**: يقضي عنه قضيٰ يقضي قضاء، دده څه شي ادا كول

**تشريح**: مطلب دادې چې دنجات ياپه عذاب كي دمبتلا كيدو فيصله دقرض په ادا كولو پورې موقوف ده او په همدې وجه علماء وائي چې دمړي دمال نه به دهر څه نه مخكي دهغه قرضه ادا كولې شي او ددينه هغه قرضه مراد ده كومه چې بغير دضرورت نه اخستلې شوې وي اوكه چرې دضرورت په بنا يې اخستلې وي او بيا مړ شي نو داسې قرض ده لره جنت ته دتلو نه . نه منع كوي او دوخت بادشاه يا څوك رشته داربه يې ادا كوي

***************

۱۰۷۹_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "نَفْسُ الْمُؤْمِنِ مُعَلَّقَةٌ بِدَيْنِهِ حَتَّى يُقْضَى عَنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ وَهُوَ أَصَحُّ مِنَ الأَوَّلِ.[2]

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه بيان كوي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دمومن روح دقرض دوجې نه ترهغې پورې زوړند وي څو پورې چې دهغه قرضه ادا نکړې شي.

امام ترمذي ونيلي دي چې دا حديث حسن دی اود اولني نه زيات اصح دی

**تشريح**: تشريح په پورتني حديث كي تيره شوه

***************

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ۱۴۹۵۹) وانظر مسند احمد (۲ في ۴۴۰) واخرجه سنن ابن ماجه في الصدقات ۱۲، مسند احمد (۲ في ۵۰۸)

[2] تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف ۱۴۹۵۹) وانظر. مسند احمد (۲ في ۴۴۰) وأخرجه سنن ابن ماجة في الصدقات ۱۲ و مسند احمد (۲ في ۵۰۸)

# كتاب النكاح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

نكاح په لغت کي ضم کولو ته وايي . او په شرع کي په دوه معانيو مستعمل ده. يوه معني حقيقي ده او بله مجازي ده.
د امام ابو حنيفه په نزد نکاح په معني د وطي حقيقي معني ده او دعقد د نکاح يي مجازي معني ده
اود امام شافعي په نزد عکس دي يعني نکاح په معني د وطي مجازي معني ده او دعقد د نکاح يي حقيقي معني ده.
اود بعضي اهل علمو په نزد نکاح په دوارو معانيو کي مشترك ده
د نکاح شرعی درې قسمونه دی، سنت موکده. واجب ،مکروه.
په مهر ،نفقه اوپه وطی د قدرت په صورت کښې نکاح سنت موکد ده
ښخو ته د سخت رغبت په وخت کي واجب ده.
کوم وخت چي د ظلم کولو ،اود فرضو اوسنتو د پريخودلو غالب گمان وی نو په داسې صورت کي نکاح مکروه ده.
دداود ظاهري داقول چي نکاح فرض عين ده دده دا قول داجماع دامت نه خلاف دي . دبعضي علماؤ په نزد واجب بالکفايه ده اواستدلال يي ددي ايت "فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ" نه کړي دي.

*****************

## ١ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ التَّزْوِيجِ وَالْحَثِّ عَلَيْهِ

### د نکاح کولو دفضيلت او ديته دترغيب بيان

١٠٨٠ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنِ الحَجَّاجِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ أَبِي الشِّمَالِ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَرْبَعٌ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِينَ: الحَيَاءُ، وَالتَّعَطُّرُ، وَالسِّوَاكُ، وَالنِّكَاحُ ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عُثْمَانَ، وَثَوْبَانَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي نَجِيحٍ، وَجَابِرٍ، وَعَكَّافٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي أَيُّوبَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.(١)

١ تفرد به المؤلف (٣٢٩٩)، مسند احمد (د في ٣٢١)

**ترجمه** ابوايوب رضي الله عنه دا ارشاد نبوي نقل كړي دي چي څلور سنتونه دتمامو انبياؤ اتفاقي دي حيا كول، دخوشبو استعمال، مسواك وهل، نكاح كول
امام ترمذي وائي په دي باب كي دعثمان، ثوبان، ابن مسعود، عائشه، عبدالله بن عمرو، ابي نجيح، جابر، او عكاف رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابو ايوب حديث حسن غريب دي

**تشريح** : صحيحينو دانس رضي الله عنه په روايت سره دا ارشاد نبوي نقل كړي دي چي زه روژي هم نيسم او افطار هم كوم اودښځو سره نكاح هم كوم. نكاح زما سنت دي اوچاچي زما سنت پريخودل هغه زمونږ نه نه دي
ابن ماجه دعائشه رضي الله عنها په روايت سره دا ارشاد نبوي نقل كړي دي چي نكاح زما سنت دي اوچاچي زما سنت پريخودل نوهغه زمونږ نه نه دي
دنكاح كوم حكم چي مونږ په پورتنو كرخو كي ليكلي دي هغه داحنافو علماؤ دقول موافق دي اودامام احمد هم دا قول دي دامام شافعي په نزد نكاح په هر حالت كي داستحباب نه پورته درجه نه لري او استحباب به هم په هغه وخت كي وي كله چي په جماع قادر وي اوخرچ برداشت كولي شي او دحق تلفي كولو خطره ورته نه وي ددي شرائطو په موجودګۍ كي اګر چي نكاح مستحب دد ليكن دعبادت دپاره دكاملي توجه حاصلولو په عرض سره نكاح نه كول افضل دي اوكه چري په ذكر شوو دريو شرطونو كي كوم شرط مفقود وي نونكاح حرام يامكروه تحريمي دد مګر كه شهواني جوش مغلوب وي او په حرامو كي دمبتلاكيدو خوف وي نو بيادنكاح استحباب زيات قوي كيږي اوپدي حالت كي نكاح دنفل مونځ اودنفلي روژي او دنفلي حج او دنفلي جهاد نه افضله ګرځي دامام مالك هم دا قول دي

***************

حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خِدَاشٍ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ أَبِي الشِّمَالِ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ حَدِيثِ حَفْصٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ هُشَيْمٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ الْوَاسِطِيُّ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ أَبِي الشِّمَالِ، وَحَدِيثُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، وَعَبَّادِ بْنِ الْعَوَّامِ أَصَحُّ. (١)

---
1 - تفرد به المؤلف (٣٣٩٩). مسند احمد (٥ في ٣٢١)

**ترجمه** ابو ايوب انصاري رضي الله عنه نه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دحفص دحديث هم معني روايت نقل كړي دي

امام ترمذي وائي دا حديث هشيم او محمد بن يزيد الواسطي او ابو معاويه او نورو ډيرو راويانو دحجاج نه او هغه دمعقول نه او هغه دابوايوب انصاري نه نقل كړي دي او په دي كي يي دابوشمال ذكر نه دي كړي اوحديث دحفص بن غياث او عباد بن العوام زيات صحيح دي

**دابو ايوب خالد بن زيد انصاري رضي الله عنه حالات:**

نوم خالد كنيه ابو ايوب قبيله خزرج كي دبنو نجار خاندان سره تعلق لري دنسب پوره سلسله يي داسي ده خالد بن زيد بن كليب بن ثعلبه بن عبدعوف خزرجي

په بيعت عقبه كي داسلام قبلونكو مسلمانانو دجملي نه وو مديني ته دراتلو نه وروسته نبي كريم صلي الله عليه وسلم دده په كور كي قيام كړی وو او درسول الله صلي الله عليه وسلم سره هميشه په غزواتو كي شريك شوی دی په صحابه كرامو كي دفقهاؤ په ډله كي شميرلی شي داختلاف په وخت كي به دصحابه كرامو مرجع وه (اسد الغابه)

په خالد كي يو دري خصوصيات وو ، اول حب رسول، دويم ايماني جذبه، دريم حق گويي ، په دي باره كي ډير واقعات مشهور دي غرض دا چي په طبعي طور حياء او شرم هم په كي زيات وو دبخاري په يو روايت كي راځي چي كله به يي په كوهي يا حوض كي غسل كول نو دشرم په وجه به يي څلورو واړو طرفونو ته كپړي زوړندولي (بخاري)

وفات: قسطنطنيه (توركي) باندي دحملي دپاره روان وو چي په ۵۲هجري كي ديزيد بن معاويه په امارت كي دا تقريب منعقد شوی وو غرض دا چي په دي سفر كي عامه وباء خوره شوه او ډير خلق پكي مړه شول چي يو پكي خالد هم وو دقسطنطنيه د ديوال سره نژدي دفن كړی شو چي اوس يي هم زيارت موجود دی دمروياتو شمير يي ۱۵۰ دی چي او۷ په كي متفق عليه دي

***************

۱۰۸۱ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ شَبَابٌ لَا نَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ، فَقَالَ: " يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ، عَلَيْكُمْ بِالبَاءَةِ فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ، فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمُ البَاءَةَ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ، فَإِنَّ الصَّوْمَ لَهُ وِجَاءٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ عُمَارَةَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ

بِهَذَا الإِسْنَادِ مِثْلَ هَذَا، وَرَوَى أَبُو مُعَاوِيَةَ، وَالْمُحَارِبِيُّ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: كِلَاهُمَا صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي مونږ د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره ووتلو او مونږ خوانان وو چي په هيڅ مو قدرت نه لرلو نو رسول الله اوفرمائيل اي دخوانانو ډلي پتاسوكي چي څوك دنكاح طاقت لري هغه لره پكار دي چي نكاح وكړي خكه نكاح بندونكي ده نظرله او محفوظ كونكي ده فرج لره دحرام نه . اوڅوك چي دنكاح طاقت نه لري هغه لره روژي نيول پكاردي خكه چي روژي نيول د بنده دپاره د خصي كيدو پشان دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي سند ډيرو راويانو ددي هم معني احاديث داعمش نه نقل كړي دي، او ابومعاويه او محاربي داحديث داعمش نه په سند د عن ابراهيم عن علقمه عن عبدالله عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او ددي هم معني روايت يي بيان كړي دي او دا دواړه حديثونه صحيح دي

***************

## ٢_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ التَّبَتُّلِ

### دلونډتوب ژوند تيرولو دمما نعت بيان

١٠٨٢_ حَدَّثَنَا أَبُو هِشَامٍ الرِّفَاعِيُّ، وَزَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ الطَّائِيُّ، وإسحاق بن إبراهيم البصري. قَالُوا: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ التَّبَتُّلِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَزَادَ زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ فِي حَدِيثِهِ، وَقَرَأَ قَتَادَةُ: وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً سورة الرعد آية ٣٨. قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ سَعْدٍ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَرَوَى

---

[1] _ صحيح البخاري في النكاح ٣ (٥٠٦٦) . صحيح مسلم في النكاح ١ (١٤٠٠) . سنن النسائي في الصوم ٤٣ (٢٢٤١ ٢٢٤٢) . والنكاح ٣ (٣٢١١ ، ٣٢١٢) . مسند احمد ١ في ٣٧٤ ، ٤٢٥ ، ٤٣٢) (تحفة الأشراف . ٩٣٨٥) سنن الدارمي في النكاح ٣ (٢٢١١) وأخرجه صحيح البخاري في الصوم ١٠ (١٩٠٥) والنكاح ٣ (٥٠٦٥) صحيح مسلم في النكاح سنن ابي داود في الصوم ١ (٢٠٤٦) سنن ابن ماجه في الصوم ١ (١٨٤٥) . (سنن النسائي في الصيام ٤٣ (٢٢٤٣ ، ٢٢٤٤ ، ٢٢٤٥) والنكاح ٣ (٣٢٠٩ ، ٣٢١٠ ، ٣٢١٣) . مسند احمد (١ في ٣٧٨) . سنن الدارمي في النكاح ٢ (٢٢١٢)

الْأَشْعَثُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَيُقَالُ: كِلَا الْحَدِيثَيْنِ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** . دسمره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په لونډتوب كي دژوند تيرولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي زيد بن اخرم پخپل حديث كي دومره اضافه كړي ده چي قتاده دا ايت كريمه "ولقد ارسلنا رسلا من قبلك وجعلنا لهم ازواجا وذرية" تلاوت كړو

امام ترمذي وائي دسمره حديث حسن صحيح دي او اشعث بن عبدالملك په سند د حسن او سعيد بن هشام عن عائشه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او ددي هم معني روايت يي بيان كړي دي او وئيلي شوي دي چي دا دواړه روايتونه صحيح دي او په دي باب كي دسعد ، انس بن مالك، عائشه، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

***************

١٠٨٣ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، قَالَ: " رَدَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عُثْمَانَ بْنِ مَظْعُونٍ التَّبَتُّلَ، وَلَوْ أَذِنَ لَهُ لَاخْتَصَيْنَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** . دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم عثمان بن مظعون ته بغير دواده كولو دزندګئ تيرولو اجازت ورنكړو او كه هغه ته يي اجازت وركړي وي نو مونږ به خانونه خسيان كړي وو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**تشريح** : تبتل په لغت كي انقطاع ته وائي او په اصطلاح دشريعت كي تبتل رهبانيت ته وئيلي شي او درهبانيت معني دنيا پريخودل دي چاچي دعيسي عليه السلام په دين كي عبادت كولو او عيسايانو رهبانيت په خان باندي پخپله لازم كړي دي لكه څنګه چي زمونږ په شريعت

---

[1] ـ سنن النسائي في النكاح ٣(٣٢١٦) سنن ابن ماجه في النكاح ٢(١٨٤٩) (تحفة الأشراف : ٤٥٩٠) مسند احمد (٥ في ١٧)

[2] ـ صحيح البخاري في النكاح ٨(٥٠٧٣) . صحيح مسلم في النكاح ١(١٤٠٢) . سنن النسائي في النكاح ٣(٣٢١٤) . سنن ابن ماجه في النكاح ٢(١٨٤٨) . (تحفة الأشراف : ٣٨٥٦) . مسند احمد (١ في ١٧٥، ١٧٦، ١٨٣) . سنن الدارمي في النكاح ٣(٢٢١٣)

کي په نذر منلو سرد يو څيز په بنده لازميږي بيا نصارئ ددې په اداء کولو کي کوتاهي اوکړي. او زمونږ په شريعت کي د رهبانيت هيڅ تصور نشي کيدې بلکي نکاح او واده کول عبادت دي

***************

# ٣_ باب مَا جَاءَ إِذَا جَاءَكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ دِينَهُ فَزَوِّجُوهُ

## ديو ديندار انسان دطرفه د نكاح دپيغام راتلو وخت كي د نكاح كولو حكم

١٠٨٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الحَمِيدِ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنِ ابْنِ وَثِيمَةَ النَّصْرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا خَطَبَ إِلَيْكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ دِينَهُ وَخُلُقَهُ فَزَوِّجُوهُ، إِلَّا تَفْعَلُوا تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الأَرْضِ وَفَسَادٌ عَرِيضٌ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي حَاتِمٍ المُزَنِيِّ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ قَدْ خُولِفَ عَبْدُ الحَمِيدِ بْنُ سُلَيْمَانَ فِي هَذَا الحَدِيثِ، وَرَوَاهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ مُحَمَّدٌ: وَحَدِيثُ اللَّيْثِ أَشْبَهُ، وَلَمْ يَعُدَّ حَدِيثَ عَبْدِ الحَمِيدِ مَحْفُوظًا. ([1])

**ترجمه**: ابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي تاسو ته داسي كس دنكاح پيغام دركړي دچادينداري او اخلاق چي تاسو ته درست ښكاري نو نكاح ورسره اوكړئ او كه چري داسي اونكړئ نو په زمكه كي به فتنه او فساد خور شي

امام ترمذي وائي د ابوهريره رضي الله عنه په دې روايت كي دعبدالحميد بن سليمان دروايت مخالفت شوي دي هغه لره ليس بن سعد په سند دابن عجلان عن ابي هريره عن النبي صلي الله عليه وسلم مرسلا (منقطعا) نقل كړي دي (يعني دابن وشيمه ذكر يي نه دي كړي) دمحمد بن اسماعيل بخاري قول دي دليث حديث اشبه (قريب تر) ترددي او امام بخاري دعبدالحميد حديث محفوظ نه دي ګڼرلي او په دې باب كي دابوحاتم مزني او عائشه رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي

***************

١٠٨٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو السَّوَّاقُ البَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُسْلِمِ بْنِ هُرْمُزَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، وَسَعِيدٍ ابني عبيد، عَنْ أَبِي حَاتِمٍ المُزَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

[1] _ سنن ابن ماجه في النكاح ٤٦ (١٩٦٧)

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا جَاءَكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ دِينَهُ وَخُلُقَهُ فَأَنْكِحُوهُ، إِلَّا تَفْعَلُوا تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الأَرْضِ وَفَسَادٌ ". قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَإِنْ كَانَ فِيهِ، قَالَ: " إِذَا جَاءَكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ دِينَهُ وَخُلُقَهُ فَأَنْكِحُوهُ، ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو حَاتِمٍ الْمُزَنِيُّ لَهُ صُحْبَةٌ. وَلَا نَعْرِفُ لَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ. (1)

**ترجمه** دابوحاتم مزني رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي تاسو ته داسي كس دنكاح پيغام دركړي دچا دينداري او اخلاق چي ستاسو خوښ شي نو دهغه سره نكاح اوكړئ او كه داسي اونكړئ نو په زمكه كي به فتنه او فساد خور شي، خلقو عرض اوكړو اي دالله رسوله كه په هغه كي څه عيب وي رسول الله خپله خبره دري پيري تكرار كړه چي كله تاسو ته داسي څوك دنكاح پيغام دركړي چي په ديندارئ او اخلاقو كي درست وي نو هغه سره نكاح اوكړئ.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او ابوحاتم مزني ته شرف دصحبت حاصل دي او ددي روايت نه علاوه دده نه كوم بل مروي حديث معلوم نه دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه يي نقل كړي وي.

*****************

## ٤ـ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ الْمَرْأَةَ تُنْكَحُ عَلَى ثَلَاثِ خِصَالٍ

### يوه ښځه عموما د دري خبرو په سبب خوښولي شي

١٠٨٦ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى، أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الأَزْرَقُ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ الْمَرْأَةَ تُنْكَحُ عَلَى دِينِهَا، وَمَالِهَا، وَجَمَالِهَا، فَعَلَيْكَ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد نقل كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ښځی سره د يوڅو خوبيانو په وجه نكاح كولی شي يو د دهغی ديندارئ په وجه، اود مالدارئ په وجه ، د هغی ښايست په وجه او پكار ده چي ته په

---

[1] ـ ابي داود في المراسيل

[2] ـ تفرد به المؤلف. سنن الدارمي في النكاح ٣ (٢٢١٧) (تحفة الأشراف : ٢٤٤٣) وأخرجه صحيح مسلم في الرضاع ١٥ (٥٤ في ٥٣)، النسائي في النكاح ١٠ (٣٢٢٨)، مسند احمد (٣ في ٣٠٢)

دینداره کامیابي حاصله کړی، لاسونه دی په خاورو ککړ شه ښیري نه دي تکیه کلام دی
امام ترمذي وائي دجابر حدیث حسن صحیح دي. او په دي باب کي دعوف بن مالك، عائشه،
عبدالله بن عمرو، او ابو سعید خدري رضي الله عنهم نه هم احادیث مروي دي

**لغات**: فاظفر امر دي دظفر نه دسمع یسمع نه په معني دکامل کیدو او غالب کیدو راخي

**تشريح**: "تنکح المراءة لاربع" دښځو سره دخلورو صفتونو په وجه نکاح کولي شي. مطلب دادي چي دا خلور وجوهات عموما اکثر وي ، کله کله ددي نه علاوه دبل صفت په وجه هم کیدي شي ، کله خو سړي مال ته وګوري چي ددینه به راته فائده راورسیږي. یا یي حسب او نسب او خانداني شرافت ته وګوري چي ددینه پیدا کیدونکي اولاد به هم دشرف او مرتبي والا وي. او کله کله دښځي حسن او جمال ته کتلي شي چي خانسته وي نو دي وایي که دا مي دژوند ملګري شي نو ډیره به ښه وي

"فاظفر بذات الدين تربت يداك" یعني کله کله دین دارئ ته کتلي شي . دا مقصد نه دي چي صرف دیندارئ ته به کتلي شي که چري دین داري او باقي تمام صفات ټول پکي موجود وو نو بیا خو نور علي نور دد ، خو که یوصفت پکي دینداري وي او څه نور وي نو بیا هم ښه ده خو که یوه ښځه کي دین داري وي او نور څه نه وي او بله ښځه کي نور صفات وي او دین داري نه وي نو دین داري به مقدم کولي شي په نورو صفتونو او هم دي مضمون ته په یوبل روایت کي هم اشاره شوي ده ولا تزوجوا النساء لحسنهن فعسي حسنهن ان يؤذيهن ولا تزوجوهن لاموالهن فعسي اموالهن ان يطغيهن ، ولكن تزوجوهن علي الدين ولا مرأة جذماء سوداء ذات دين افضل.

"تربت يداك" یعني که دینداره دي پریخوده او بله دي اختیار کړه نو لاسونه دي په خاورو ککړ شه به دي جمله کي خیري کول مراد نه دي بلکي ددینداري ښځي دخولو ترغیب ورکوي

****************

## ٥ـ باب مَا جَاءَ فِي النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوبَةِ

### کومي ښځي ته چي دنکاح پیغام ورکولي شي دهغي دلیدلو بیان

١٠٨٧ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَاصِمُ بْنُ سُلَيْمَانَ هُوَ: الأَحْوَلُ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، أَنَّهُ خَطَبَ امْرَأَةً، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " انْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا ". وَفِي الْبَابِ: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي حُمَيْدٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ

الْعِلْمِ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ، وَقَالُوا: لَا بَأْسَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا مَا لَمْ يَرَ مِنْهَا مُحَرَّمًا. وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَمَعْنَى قَوْلِهِ أَحْرَى: أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا. قَالَ: أَحْرَى أَنْ تَدُومَ الْمَوَدَّةُ بَيْنَكُمَا. (1)

**ترجمه** دمغيره بن شعبه رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي ما بوي ښځي ته د نکاح پيغام اوليږلونبي كريم صلي الله عليه وسلم راته اوفرمائيل ته يي اووينه او يقيناً ليدل ستاسو ددواړو په مينځ كي دمحبت پيدا كولو دپاره زيات مناسب دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي، او په دي باب كي د محمد بن مسلمه، جابر، ابو حميد، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دبعضي اهل علمو قول دي چي ديته په كتلو كي څه حرج نشته چي څو پوري داسي كتل نه وي كړي كوم چي حرام وي اوهمدا دامام احمد او اسحاق رحمهما الله قول هم دي او د "احري ان يؤدم بينكما" معني دا ده چي په تاسو كي دمحبت پيداكولو دپاره زيات موزون دي.

***************

## ٦ ـ باب مَا جَاءَ فِي إِعْلَانِ النِّكَاحِ

### د نكاح داعلان بيان

١٠٨٨ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا أَبُو بَلْجٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ حَاطِبٍ الْجُمَحِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَصْلُ مَا بَيْنَ الْحَرَامِ وَالْحَلَالِ الدُّفُّ وَالصَّوْتُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَجَابِرٍ، وَالرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ حَاطِبٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو بَلْجٍ اسْمُهُ: يَحْيَى بْنُ أَبِي سُلَيْمٍ وَيُقَالُ: ابْنُ سُلَيْمٍ أَيْضًا، وَمُحَمَّدُ بْنُ حَاطِبٍ قَدْ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ غُلَامٌ صَغِيرٌ. (2)

**ترجمه** دمحمد بن حاطب جمحي بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دحلالي او حرامي نكاح په مينځ كي فرق صرف دچمبه (ډول) وهل او ددي اعلان كول دي

امام ترمذي وائي دمحمد بن حاطب حديث حسن دي محمد بن حاطب رسول الله صلي الله عليه وسلم لره ليدلي وو ليكن په دغه وخت كي دده عمر انتهائي كم وو بلكي ماشوم وو. اوپه

---

[1] ـ النسائي في النكاح ١٧ (٣٢٣٧)، سنن ابن ماجه في النكاح ٩ (١٨٦٦)، (تحفة الأشراف: ١١٤٨٩)، مسند احمد (٤ في ٢٤٥ ٢٤٦)، سنن الدارمي في النكاح ٥ (٢٢١٨)

[2] ـ سنن النسائي في النكاح ٧٢ (٣٣٧٢)، سنن ابن ماجه في النكاح ٢٠ (١٨٩٦)، (تحفة الأشراف: ١١٢٢١)، مسند احمد (٣ في ٤١٨)

دي ب ب كي دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها . جابر . او ربيع بنت معوذ رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**تشريح** : دجاهليت په زمانه كي په عربو كي دنكاح ځلور طريقي رائج وي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ديوي طريقي نه علاوه نوري تولي طريقي ختمي كړي ځكه چي هغه طريقي انتهائي گنده او دشرم نه ډكي وي او دنكاح داعلان حكم يي اوكړو تردي چي دهغه نكاح گانو نه فرق او جداوالي راشي كومي چي په پټه كيږي

مثلا دنكاح د اعلان ډيري طريقي دي دجاهليت په زمانه كي به خلقو دنكاح په موقعه شور كولو او ډول باجي چمبي به يي غړولي نو رسول الله صلي الله عليه وسلم نه صرف دا چي ددي اجازت يي وركړي وي بلكي ديته يي يو قسم ترغيب وركړي دي تردي چي د تشهير سره څه ناځه تفريح هم اوشي او كه نكاح په مسجد كي اوتړلي شي نو دمسجد دعزت بركت به هم حاصل شي او تشهير به هم اوشي چنانچه په يو حديث كي په دي باندي حكم شوي دي او په وليمي وركول سره هم تشهير كيږي او په همدي وجه وليمه مسنون گرځولي شوي ده

* * * * * * * * * * * * * * *

١٠٨٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ مَيْمُونٍ الأَنْصَارِيُّ، عَنِ القَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعْلِنُوا هَذَا النِّكَاحَ وَاجْعَلُوهُ فِي المَسَاجِدِ وَاضْرِبُوا عَلَيْهِ بِالدُّفُوفِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ فِي هَذَا البَابِ، وَعِيسَى بْنُ مَيْمُونٍ الأَنْصَارِيُّ يُضَعَّفُ فِي الحَدِيثِ، وَعِيسَى بْنُ مَيْمُونٍ الَّذِي يَرْوِي عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ التَّفْسِيرَ هُوَ ثِقَةٌ. (1)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ددي نكاح اعلان اوكړئ او دا په مسجد كي اوتړئ او ډول باجي . چمبي ورباندي اووهئ

امام ترمذي واني په دي باب كي داحديث حسن غريب دي او عيسي بن ميمون انصاري دحديث دروايت په باب كي ضعيف گڼلي شوي دي اوعيسي بن ميمون چي دابن نجيح نه په تفسير كي روايت كوي هغه ثقه دي

* * * * * * * * * * * * * * *

١٠٩٠ـ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ البَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ المُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ ذَكْوَانَ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ، قَالَتْ: جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ عَلَيَّ غَدَاةَ بُنِيَ بِي، فَجَلَسَ عَلَى

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٥٢٤:١١)

فِرَاشِي كَمَجْلِسِكَ مِنِّي، وَجُوَيْرِيَاتٌ لَنَا يَضْرِبْنَ بِدُفُوفِهِنَّ وَيَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ آبَائِي يَوْمَ بَدْرٍ، إِلَى أَنْ قَالَتْ إِحْدَاهُنَّ: وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ. فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اسْكُتِي عَنْ هَذِهِ وَقُولِي الَّذِي كُنْتِ تَقُولِينَ قَبْلَهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** ربيع بنت معوذ رضي الله عنها وائي چي په كومه شپه زما واده اوشو ددغي په سحر رسول الله صلي الله عليه وسلم زما خواته تشريف راوړو او زما په بستره داسي كيناستو لكه څنګه چي ته (خالد بن ذكوان) ناست يي او وړو وړو جينكو به چمبي وهلي او كوم كسان چي زمونږ په پلار نيكه كي په جنګ بدر كي شهيدان شوي وو دهغوئ مرثيي به يي وئيلي تردي پوري چي په دي جينكو كي يوي اووئيل زمونږ په مينځ كي يو داسي نبي دي كوم چي دهغه ځيزونو نه خبردار دي چي صبا به كيږي رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل داسي مه وايه او هغه اووايه كوم چي تا مخكي وئيل.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

## ٧ـ باب مَا جَاءَ فِيمَا يُقَالُ لِلْمُتَزَوِّجِ

### دواده دځلمي ته دمباركۍ وركولو وخت كي كومه دعا وئيل پكار دي

١٠٩١ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَفَّأَ الإِنْسَانَ إِذَا تَزَوَّجَ، قَالَ: "بَارَكَ اللَّهُ لَكَ وَبَارَكَ عَلَيْكَ وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِي الْخَيْرِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به كله دواده مباركي وركوله نو دا دعا به يي لوستله "بارك الله لك وبارك عليك وجمع بينكما

---

[1] ـ صحيح البخارى في المغازي ١٢ (٤٠٠١) . سنن ابي داود في الأدب ٥٩ (٤٩٢٢) . سنن ابن ماجه في النكاح ٢١ (١٨٩٧) (تحفة الأشراف : ١٥٨٢٢) . مسند احمد (٦/ ٣٥٩، ٣٦٠)

[2] ـ صحيح البخارى في الوضوء ٨ (١٤١) . وبدء الخلق ١١ (٣٢٨٣) والنكاح ٦٦ (٥١٦١) والدعوات ٥٥ (٦٣٨٨) والتوحيد ١٣ (٧٣٩٦) . صحيح مسلم في النكاح ١٨ (١٤٣٤) . سنن ابي داود في النكاح ٣٦ (٢١٦١) سنن ابن ماجه في النكاح ٢٥ (١٩١٩) (تحفة الأشراف : ٦٣٤٩) . مسند احمد (١/ ٢٢٠، ٢٢٣، ٢٨٣، ٢٨٦) سنن الدارمي في النكاح ٢٩ (٢٢٥٨)

في الخير" الله تعالي دي تاته برکت درکړي او په تادي برکت نازل کړي او تاسو دواړه دي په خير سره جمع کړي
امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعلي رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي.

***************

## ٨_ باب مَا جَاءَ فِيمَا يَقُولُ إِذَا دَخَلَ عَلَى أَهْلِهِ

**دهغه وختونو ددعاء بيان په کوموکي چي سړي خپلي کوروالا سره خلوت کوي**

١٠٩٢_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَتَى أَهْلَهُ، قَالَ: بِسْمِ اللهِ اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا. فَإِنْ قَضَى اللهُ بَيْنَهُمَا وَلَدًا لَمْ يَضُرَّهُ الشَّيْطَانُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(١)

**ترجمه** ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي چي څوك خپلی بي بي سره کوروالی کوي نو اول دی بسم الله اووائي بيا دي دا دعا اوغواړي يا الله مونږ دواړه دشيطان نه محفوظ کړی اوکوم اولاد چي مونږ ته راکوی هغه هم دشيطان نه محفوظ کړی نو که دی کوروالي نه يی اولاد په قسمت کي وي. دشيطان دضرر نه به محفوظ وي
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي
**لغات**: جنبنا جنّب يجنب تجنيبا: معني په ډډه کيدل او مائل کيدل ، استجنب معني ناپاك شو.
**تشريح** : لم يضره: "شيطان ورته ضرر نشي ورکولی" خو ددي دپاره شرط دادی چي مسنون دعا يي ونيلي وي او هغه دعا داده اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ . وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا . په بعضي روايتونو کي راغلي دي کله چي دا دعا اولوستلی شي نو ددي په سبب انسان دشيطان دشرارت او بد اثر نه محفوظ کيږي

صحيح البخاري في الوضوء ٨ (١٤١) وبدء الخلق ١١ (٣٢٨٣) والنكاح ٦٦ (٥١٦١) والدعوات ٥٥ (٦٣٨٨) والتوحيد ١٣ (٧٣٩٦) صحيح مسلم في النكاح ١٨ (١٤٣٤). سنن ابي داود في النكاح ٤٦ (٢١٦١) سنن ابن ماجه في النكاح ٢٧ (١٩١٩). (تحفة الأشراف ٦٣٤٩). مسند احمد (١/٢٢٠، ٢٤٣، ٢٨٣، ٢٨٦) سنن الدارمي في النكاح ٣٩ (٢٢٥٨)

سوال ډير خلق دا دعا غواړي ليکن دهغوئ اولاد دشيطاني تصرفاتو نه محفوظ نه وي
جواب دضرر نه مراد کفر دی ددي دعا غوښتلو په برکت سره به يي اولاد دکفر په حالت کي نه وي بلکي ددي په برکت سره به يي حاتمه ښائسته وي
دويم جواب دضرر نه مراد سحر وغيره دی يعني ددي دعا په برکت سره به هغوئ دبلاګانو او مصيبتونو نه به محفوظ وي
دريم جواب ابن جوزي وائي مطلب دادی چي ددي دعا په برکت سره به داولاد دين او عقيدي ته نقصان نه رسيږي
څلورم جواب کله چي ماشوم پيدا کيږي نو شيطان دماشوم په تالو کي ګوته دننه کوي نو ددي دعا په برکت سره شيطان په ډير زور سره ګوته داخلولی نشي
پنځم جواب کله چي څوك جماع کوي نو شيطان هم ورسره وي که چري دا دعا اولولي نو دشيطان دشرارت نه به بچ شي

****************

## ٩_ باب مَا جَاءَ فِي الأَوْقَاتِ الَّتِي يُسْتَحَبُّ فِيهَا النِّكَاحُ

### دهغه وختونو بيان په کوموکي چي نکاح کول مستحب دي

١٠٩٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "تَزَوَّجَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي شَوَّالٍ، وَبَنَى بِي فِي شَوَّالٍ". وَكَانَتْ عَائِشَةُ تَسْتَحِبُّ أَنْ يُبْنَى بِنِسَائِهَا فِي شَوَّالٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ. [1]

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماسره په شوال کي واده اوکړو او په شوال کي يي ماسره ذفاف اوشو نو عائشه رضي الله عنها به دخپل خاندان دښخو رخصتي په شوال کي مستحب ګڼرله
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دا مونږ ته صرف دثوري په سند رارسيدلي دي او ثوري دا اسماعيل بن اميه نه نقل کړي دي

****************

[1] _ صحيح مسلم في النكاح ١١ (١٤٢٣) . سنن النسائي في النكاح ١٨ (٣٢٣٨) و ــ (٩ـ٣٣) . سنن ابن ماجه في النكاح ٥٣ (١٩٩٠) (تحفة الأشراف : ١٦٣٥٥) . مسند احمد (٦ في ٥٤ . ٢٠٦) سنن الدارمي في النكاح ٢٨ (٢٢٥٤)

## ١٠ـ باب مَا جَاءَ فِي الْوَلِيمَةِ

### دوليمې بيان

١٠٩٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى عَلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَثَرَ صُفْرَةٍ، فَقَالَ: "مَا هَذَا؟" فَقَالَ: إِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ، فَقَالَ: "بَارَكَ اللَّهُ لَكَ، أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَعَائِشَةَ، وَجَابِرٍ، وَزُهَيْرِ بْنِ عُثْمَانَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وقَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: وَزْنُ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ: وَزْنُ ثَلَاثَةِ دَرَاهِمَ وَثُلُثٍ، وقَالَ إِسْحَاق: هُوَ وَزْنُ خَمْسَةِ دَرَاهِمَ وَثُلُثٍ.[1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دعبدالرحمن بن عوف په جسم دزيړوالي نشانات اوليدل نو تپوس يي ورنه اوكړو دا څه دي؟ هغه عرض اوكړو ما ديوي ښځي سره دكجوري دزړي په مقدار سرو زرو باندي نكاح كړي ده رسول الله اوفرمائيل الله تعالي دي تاته بركت دركړي او وليمه ضرور اوكړه اګر كه په يوه چيلئ ولي نه وي

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي . او په دي باب كي دابن مسعود. عائشه. جابر. او زهير بن عثمان رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي. امام احمد بن حنبل وائي دكجوري دزړي په مقدار دسرو زرو وزن دپاؤباندي يو درهم وزن سره برابر وي. او اسحاق بن راهويه وائي پنځه درهمه او يو ثلث سره برابر دي

***************

[1] صحيح البخاري في النكاح ٦٦ (٥١٥٥)، والدعوات ٥٣ (٦٣٨٦) صحيح مسلم في النكاح ١٣ (١٤٢٧) سنن النسائي في النكاح ٧٤ (٣٣٧٤، ٣٣٧٥) سنن ابن ماجه في النكاح ٢٤ (١٩٠٧) (تحفة الأشراف ٢٨٨) سنن الدارمي في النكاح ٢٢ (٢٢٥٠)، وأخرجه صحيح البخاري في البيوع ١ (٢٠٤٩) ومناقب الأنصار ٣ (٣٧٨١) والنكاح ٤٩ (٥١٣٨) و ٥٤ (٥١٥٣) و ٦٨ (٥١٦٧) والأدب ٦٧ (٦٠٨٢) صحيح مسلم في النكاح سنن ابي داود في النكاح ٣٠ (٢١٠٩) مسند احمد ٣ في ١٦٥ ١٩٠ ٢٠٥ ٢٧١) سنن الدارمي في الأطعمة ٢٨ (٢١٠٨)

١٠٩٥ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ وَائِلِ بْنِ دَاوُدَ، عَنِ ابْنِهِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلَمَ عَلَى صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ بِسَوِيقٍ وَتَمْرٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** انس بن مالك رضي الله عنه وائي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دصفيه بنت حيي وليمه په ستوانو او كجورو باندي كړي ده.
امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي

****************

١٠٩٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ نَحْوَ هَذَا، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ وَائِلٍ، عَنِ ابْنِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَكَانَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ يُدَلِّسُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، فَرُبَّمَا لَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ وَائِلٍ، عَنِ ابْنِهِ وَرُبَّمَا ذَكَرَهُ. [2]

**ترجمه** په مذكوره سند باندي هم دماقبل روايت هم معني حديث مروي دي او بعضي راويانو داحديث په سند د ابن عيينه عن الزهري عن انس سره نقل كړي دي ليكن هغوئ په دي كي وائل بن داود او دهغه خوي دواسطو ذكر نه دي كړي امام ترمذي وائي سفيان بن عيينه په دي حديث كي تدليس كولو كله به هغه په دي كي وائل بن داود عن ابيه ذكر نه كولو او كله به يي ذكر كولو

****************

١٠٩٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "طَعَامُ أَوَّلِ يَوْمٍ حَقٌّ، وَطَعَامُ يَوْمِ الثَّانِي سُنَّةٌ، وَطَعَامُ يَوْمِ الثَّالِثِ سُمْعَةٌ، وَمَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللَّهُ بِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ زِيَادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَزِيَادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ كَثِيرُ

---

[1] ـ ابي داود في الأطعمة ٢ (٣٧٤٤)، سنن النسائي في النكاح ٧٩ (٣٣٨٤) سنن ابن ماجه في النكاح ٢٤ (١٩٠٩) (تحفة الأشراف ١٤٨٢) وأخرجه مسلم في النكاح ١٤ والجهاد ٤٣ (١٣٦٥)

[2] ابي داود في الأطعمة ٢ (٣٧٤٤) سنن النسائي في النكاح ٧٩ (٣٣٨٤) سنن ابن ماجه في النكاح ٢٤ (١٩٠٩). (تحفة الأشراف: ١٤٨٢) وأخرجه مسلم في النكاح ١٤ والجهاد ٤٣ (١٣٦٥)

الْغَرَائِبِ وَالْمَنَاكِيرِ. قَالَ: وَسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل يَذْكُرُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُقْبَةَ، قَالَ: قَالَ وَكِيعٌ: زِيَادُ بْنُ عَبْدِ اللهِ مَعَ شَرَفِهِ يَكْذِبُ فِي الْحَدِيثِ. (١)

**ترجمه** : دابن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په اوله ورځ داولي ورخي ډوډئ حق ده او د دويمي ورځي سنت ده او د دريمي ورځي ډوډئ وركول صرف رياكاري او نمائش دي او څوك چي رياكاري كوي هغه ته به الله تعالي درياكارئ سزا وركري

امام ترمذي وائي دابن مسعودرضي الله عنه داحديث مونږ ته صرف دزياد بن عبدالله په روايت مرفوع رارسيدلي دي، او زياد بن عبدالله انتهائي غريب وو او منكر احاديث به يي بيانول، ما د محمد بن اسماعيل بخاري نه اوريدلي دي چي هغه دمحمد بن عقبه نه نقل كولو چي وكيع ونيل زياد بن عبدالله ددي خبري نه ډير اوچت دي چي به حديث كي دروغ اووائي

***************

## ١١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي إِجَابَةِ الدَّاعِي

١٠٩٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ إِسْمَاعِيل بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ائْتُوا الدَّعْوَةَ إِذَا دُعِيتُمْ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَالْبَرَاءِ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: دعوت چي درته كله دركړی شي نو ضرور يي قبول كړئ

امام ترمذي وايي په دي باب كي د علي، ابو هريره، براء، انس، او ابو ايوب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**تشريح** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمسلمان په مسلمان پنځه حقونه دي، اول دسلام جواب وركول، دويم دمريض تپوس

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٩٣٢٩)

[2] ـ صحيح مسلم في النكاح ١٦ (١٤٢٩) (تحفة الأشراف ٢٩٨ـ) وأخرجه صحيح البخارى في النكاح ١ـ (٣ـ٥١) و٤٣ (٥١٤٩). صحيح مسلم في النكاح . سنن ابى داود في الأطعمة ١ (٣٦ـ٣) سنن ابن ماجه في النكاح ٢٥ (١٩١٤) موطا امام مالك في النكاح ٢١ (٢٩) سنن الدارمى في الأطعمة ٢٠ (٢١٢ـ) (٢١٢ـ) والنكاح ٢٣ (٢٢٥١)

كول، دريم دجنازې سره تلل، څلورم، نيك دعوت قبلول، پنځم دانږي (پرنجي) په جواب كې يرحمك الله ويل

۴، دعوت قبلول دامام نووي قول دی چې دامام شافعي په نزد دعوت قبلول فرض عين دي خو په دې شرط چې څه عذر نه وي ليكن داهل ظواهر په نزد واجب دي او دجمهورو فقهاؤ په نزد واجب نه دي په دعوت قبلولو سره اسلامي اخوت مستحكم كيږي اود زړونو كدورت ورسره ختميږي

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ناكاره خوراك دوليمي هغه ډوډۍ ده چې هغه خلق ترينه منع كولی شي څوك چې پخپله راځي او چې څوك نه راځي هغه رابللی شي او څوك چې ددعوت قبلولو نه انكار كوي هغه دالله او رسول نافرمانه دی (مسلم)

او دمسلم او بخاري په يو روايت كې دابوهريره رضي الله عنه نه دارنګی نقل دي چې دهغه چا دوليمي ډوډۍ ډيره خرابه ده كومی ته چې مالداران راوبللی شي او غريبان پريخودی شي

"شر الطعام طعام الوليمة" يعني بدترين طعام دهغي وليمي دی . ددي حديث مقصد دوليمي دخوراك بدي بيانول نه دي ځكه چې دوليمي دخوراك خوړلو تاكيد راغلی دی مروي دي چې څوك دوليمي دعوت نه قبلوي هغه ګنهګاريږي ليكن صرف دهغي وليمي مذمت راغلی دی په كومه كې چې صرف مالدارانو ته دعوت وركولی شي او غريبان پريخودی شي

فقد عصي الله ورسوله يعني دالله اودرسول نافرماني يې اوكړه ددي وجه داده چې دالله رسول ددعوت قبلولو حكم كړی دی لهذا څوك چې دعوت نه قبلوي هغه دالله درسول نافرماني كوي اودنبي حكم هم دالله حكم دی "من يطع الرسول فقد اطاع الله" . يعني چاچې اطاعت درسول وكړو نو دده دالله اطاعت وكړو

دپورتني حديث په بنا بعضې علماؤ دوليمي دعوت قبلول واجب ګڼلي دي اودپورتني حديث نه يې استدلال كړی دی ليكن دجمهورو په نزد مستحب دي او دا امر داستحباب دپاره دی ددي نظائر په كلام دعربو كې ډير موندی شي

## دابوهريره رضي الله عنه حالات

نوم عمرو كنيه ابوهريره او دپلار نوم يې عامر وو خانداني نوم يې عبدالشمس وو. كله چه رسول الله صلي الله عليه وسلم خيبر ته تلے وو نو په هغه وخت كې مدينې ته دوفد سره داسلام قبلولو دپاره حاضر شو بيا دا وفد خيبر ته ورسيدو او هم هلته مسلمان شو (طبقات ابن سعد)

درسول الله سره په اسلام باندې دبيعت كولو نه پس يې هيڅ كله درسول الله لمن پريخودې نه

ده عمر رضي الله عنه دبحريب عامل مقرر كړے دے ابوهريره رضي الله عنه دعلم ډير شوقي وو عموما به خلقو درسول الله نه ډيرو سوالاتو كولو نه خان ساتلو ليكن ابوهريره به په جرئت سره تپوسونه كول همداوجه ده چه په كتابونو كي دده د رواياتو شمير زيات دے . بعضي كسان دده په كثرت روايت كي په شك كي پراته و و نو په دي وجه به ده ونيل چه زما مهاجرين ورونړه په بازارونو كي كاروبارونه كوي او انصار پخپلو پټو كي مصروف وي زه يو محتاج سړے وم زما ټول وخت به درسول الله په صحبت كي تيريدو ‹طبقات ابن سعد ۲ ۵۲›

اوصاف ابوهريره رضي الله عنه په يو څو اوصافو مشهور دے ‹۱› دقيامت نه ويريدل په دومره اندازه كي چه بيهوش به شو ‹۲›په عبادت كي رياضت كول ‹۳›درسول الله سره محبت كول ‹۴›دخپلي مور سره محبت كول‹۵›او درسول الله دخاندان سره محبت كول ‹۶› سادګي‹۷› فياضي

وفات دوليد په زمانه كي په مدينه كي بيمار شو او هم دلته وفات شو وليد وربندي دجنازي مونځ اوكړو اودعثمان رضي الله عنه خامنو په خپلو اوګو ددفن كولو دپاره بقيع ته ورسولو او هلته اكابر صحابه موجود وو ‹طبقات اب سعد› دوفات كيدو په وخت كي عمر يي اته اويا كاله وو.

مرويات دده دمروياتو شمير ۵۳۷۴دے په دي كي ۳۲۵په بخاري او مسلم دواړو كي دي او صرف ۷۹ په بخاري كي دي او صرف ۹۳ په مسلم كي دي ‹تهذيب الكمال›

***************

## ١٢_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَجِيءُ إِلَى الْوَلِيمَةِ مِنْ غَيْرِ دَعْوَةٍ[١]

### د چا وليمي ته بغير دعوته د ورتلو بيان

١٠٩٩_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: أَبُو شُعَيْبٍ، إِلَى غُلَامٍ لَهُ لَحَّامٍ، فَقَالَ: اصْنَعْ لِي طَعَامًا يَكْفِي خَمْسَةً. فَإِنِّي رَأَيْتُ فِي وَجْهِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُوعَ، قَالَ: فَصَنَعَ طَعَامًا، ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَدَعَاهُ وَجُلَسَاءَهُ الَّذِينَ مَعَهُ. فَلَمَّا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّبَعَهُمْ رَجُلٌ لَمْ يَكُنْ مَعَهُمْ حِينَ دُعُوا. فَلَمَّا انْتَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْبَابِ، قَالَ لِصَاحِبِ الْمَنْزِلِ: "إِنَّهُ

اتَّبَعَنَا رَجُلٌ لَمْ يَكُنْ مَعَنَا حِينَ دَعَوْتَنَا فَإِنْ أَذِنْتَ لَهُ دَخَلَ ". قَالَ: فَقَدْ أَذِنَّا لَهُ فَلْيَدْخُلْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. ([1])

**ترجمه** دابومسعودرضي الله عنه بيان دي چي ابو شعيب نومي يوكس خپل غوښي خرڅونكي ته ورغلو او ورته يي اوونيل زما دپاره دومره خوراك جوړ كړه چي پنځه كسانو دپاره كافي شي ځكه چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم په مخ دولږي اثر ليدلي دي نو هغوی خوراك تيار كړو او درسول الله درابللودپاره يي څوك ورولیږل نو هغه رسول الله ته او څوك چي ورسره ناست وو تولو ته بلنه وركړه كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دتلو دپاره پاڅيدو نو وروسته يو بل سړي هم روان شو كوم چي درسول الله سره هغه وخت موجود نه وو كله چي ورته دعوت وركړي كيدو، رسول الله صلي الله عليه وسلم چي كله دروازي ته وررسيدو نو دكور خاوند ته يي اوونيل زمونږ سره يوداسي بل كس هم دي كوم چي هغه وخت زمونږ سره موجود نه وو چي تا مونږ ته دعوت راكولو نو كه ستا اجازه وي دي به هم دننه راشي هغه اوونيل مونږ دده ته هم اجازت وركړي دي او دي دي هم دننه راشي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي.

**تشريح**: اتباع.

د وليمي ددعوت قبلولو په سلسله كي كوم روايت وارد نه دی البته د ضيافت اود عامو دعوتونو په عموم كي داخل دی، يعني ددي ثبوت د عموماتو نه مستفاد دی، (تعليمات محمدي شرح ترمذي)

*****************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي تَزْوِيجِ الأَبْكَارِ

### دپيغلو جينكو سره د نكاح كولو بيان

١١٠٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً. فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: " أَتَزَوَّجْتَ يَا جَابِرُ؟ " فَقُلْتُ: نَعَمْ. فَقَالَ: " بِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا؟ " فَقُلْتُ: لَا بَلْ ثَيِّبًا. فَقَالَ: " هَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ ". فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ

---

[1] _ صحيح مسلم في البيوع ٢١ (٢٠٨١)، والمظالم ١٣ (٢٤٥٦)، والأطعمة ٣٤ (٥٤٣٤)، و٥٧ (٥٤٦١)، صحيح مسلم في الأشربة والأطعمة ١٩ (٢٠٣٦)، (تحفة الأشراف: ٩٩٩٠)

إِنَّ عَبْدَ اللَّهِ مَاتَ وَتَرَكَ سَبْعَ بَنَاتٍ أَوْ تِسْعًا. فَجِئْتُ بِمَنْ يَقُومُ عَلَيْهِنَّ. قَالَ: فَدَعَا لِي. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَكَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي فرماني چي ما يوي ښځي سره واده اوکړو کله چه زه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شوم نو تپوس يي رانه اوکړو اي جابر ايا واده دي کړي دي ما اووئيل هو کړي مي دي تپوس يي اوکړو چي پيغله ده او که کونډه؟ ما اووئيل نه دکونډي سره مي واده کړي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دکومي پيغلي سره دي واده ولي نه کولو؟ تا به دهغي سره لوبي کولي او هغي به تاسره لوبي کولي؟ ماعرض اوکړو اي دالله رسوله (زما پلار) عبدالله وفات شوي دي او دهغه نه اوه جينکۍ پاتي شوي دي نو ما يوه داسي ښځه راواده کړه څوك چي به ددوي خيال ساتلي، چنانچه رسول الله صلي الله عليه وسلم زما دپاره خصوصي دعا اوغوښتله.

امام ترمذي وائي دجابر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابي بن کعب، او کعب بن عجره رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح** : نکاح دپيغلو او کونډوسره يو شان حيثيت لري دکومي يوي سره دنکاح کولو کوم خاص فضيلت نشته دمصلحت چي څنګه تقاضا وي دهغي مطابق دهري يوي سره نکاح کولي شي ليکن طبعا رغبت پيغلو ته زيات وي ځکه چي په هغوئ کي دزدکړي صلاحيت موجود وي او دحکمت په تقاضو تلل او ذمه دارياني قبلول ورته اسان دي ځکه چي هغوئ دتشي تختي پشان وي او دبچو راوړلو صلاحيت پکي هم وي او کونډي تيز خوي والاوي او دبچو راوړلو طاقت يي هم کم وي هغوئ دليکلي شوي تختي پشان وي چي زاړه ليکل ورنه ورانول غواړي او زدکړه کول ورته هم اسان نه وي البته که دکورني امورو په تقاضا دچا تجربه کاري ښځي ته ضرورت وي نو بيا دهغه دپاره کونډي سره نکاح کول بهتر دي

***************

## ١٤_ بَابُ مَا جَاءَ لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ

---

[1] _ صحيح مسلم في النفقات ١٢ (٥٣٨٤) . الدعوات ٥٣ (٦٣٨٤) . صحيح مسلم في الرضاع ١٦ (٧١٥) سنن النسائي في النكاح ٦ (٣٢٢١) . (تحفة الأشراف : ٢٥١٢) وأخرجه صحيح البخاري في البيوع ٣٣ (٢٠٩٧) . والوكالة ٨ (٢٣٠٩) . والجهاد ١١٣ (٢٩٦٧) . والمغازي ١٨ (٤٠٥٢) . والنكاح ١٠ (٥٠٧٩) و١٢١ (٥٢٤٥) . و١٢٢ (٥٢٤٧) . صحيح مسلم في الرضاع . سنن ابي داود في النكاح ٣ (٢٠٤٨) . مسند احمد (٣ في ٢٩٤ ٣٠٢ ٣٢٢ ٣٦٢ ٣٧٤ ٣٧٦) . سنن الدارمي في النكاح ٣٢ (٢٢٦٢)

## دولي داجازت نه بغير د نكاح نه كيدوبيان

١١٠١ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَأَنَسٍ. [1]

**ترجمه** دابوموسى اشعري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دولي داجازت نه بغير نكاح نه كيږي امام ترمذي وائي په دي باب كي د عائشه. ابن عباس. ابوهريره. عمران بن حصين. او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دابوموسي اشعري حديث باندي مصنف په راتلونكي باب كي مفصل كلام كړي دي

***************

## ١٥ـ باب

## دولي داجازت نه بغير د نكاح نه كيدومتعلق يوبل باب

١١٠٢ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ نُكِحَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ وَلِيِّهَا، فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ، فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ، فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ، فَإِنْ دَخَلَ بِهَا فَلَهَا المَهْرُ بِمَا اسْتَحَلَّ مِنْ فَرْجِهَا، فَإِنِ اشْتَجَرُوا فَالسُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيُّ، وَيَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الحُفَّاظِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ نَحْوَ هَذَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي مُوسَى حَدِيثٌ فِيهِ اخْتِلَافٌ، رَوَاهُ إِسْرَائِيلُ، وَشَرِيكُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، وَأَبُو عَوَانَةَ، وَزُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، وَقَيْسُ بْنُ الرَّبِيعِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، وَزَيْدُ بْنُ حُبَابٍ،

---

[1] سنن ابي داود في النكاح ٢٠ (٢٠٨٥). سنن ابن ماجه في النكاح ١٥ (١٨٨٠). (تحفة الأشراف: ٩١١٥). مسند احمد (٣ في ٤١٣، ٤١٨). سنن الدارمي في النكاح ١١ (٢٢٢٨)

عَنْ يُونُسَ بنِ أَبِي إِسْحَاق، عنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى أَبُو عُبَيْدَةَ الحَدَّادُ، عنْ يُونُسَ بنِ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاق. وَقَدْ رُوِيَ عن يُونُسَ بنِ أَبِي إِسْحَاق، عنْ أَبِي إِسْحَاق، عنْ أَبِي بُرْدَةَ، عنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْضًا. وَرَوَى شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ"، وَقَدْ ذَكَرَ بَعْضُ أَصْحَابِ سُفْيَانَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى وَلَا يَصِحُّ. وَرِوَايَةُ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ رَوَوْا عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ"، عِنْدِي أَصَحُّ لِأَنَّ سَمَاعَهُمْ مِنْ أَبِي إِسْحَاق فِي أَوْقَاتٍ مُخْتَلِفَةٍ. وَإِنْ كَانَ شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ أَحْفَظَ وَأَثْبَتَ مِنْ جَمِيعِ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ رَوَوْا عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ هَذَا الحَدِيثَ. فَإِنَّ رِوَايَةَ هَؤُلَاءِ عِنْدِي أَشْبَهُ، لِأَنَّ شُعْبَةَ، وَالثَّوْرِيَّ سَمِعَا هَذَا الحَدِيثَ مِنْ أَبِي إِسْحَاق فِي مَجْلِسٍ وَاحِدٍ. وَمِمَّا يَدُلُّ عَلَى ذَلِكَ مَا حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: سَمِعْتُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيَّ يَسْأَلُ أَبَا إِسْحَاق: أَسَمِعْتَ أَبَا بُرْدَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ"؟ فَقَالَ: نَعَمْ، فَدَلَّ هَذَا الحَدِيثُ عَلَى أَنَّ سَمَاعَ شُعْبَةَ، وَالثَّوْرِيِّ هَذَا الحَدِيثَ فِي وَقْتٍ وَاحِدٍ وَإِسْرَائِيلُ هُوَ ثِقَةٌ، ثَبْتٌ فِي أَبِي إِسْحَاق. سَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ الْمُثَنَّى، يَقُولُ: سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ مَهْدِيٍّ، يَقُولُ: مَا فَاتَنِي مِنْ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق الَّذِي فَاتَنِي، إِلَّا لَمَّا اتَّكَلْتُ بِهِ عَلَى إِسْرَائِيلَ، لِأَنَّهُ كَانَ يَأْتِي بِهِ أَتَمَّ. وَحَدِيثُ عَائِشَةَ فِي هَذَا الْبَابِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ" هُوَ حَدِيثٌ عِنْدِي حَسَنٌ، رَوَاهُ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ الحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ، وَجَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرُوِيَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَصْحَابِ الحَدِيثِ فِي حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: ثُمَّ لَقِيتُ الزُّهْرِيَّ فَسَأَلْتُهُ فَأَنْكَرَهُ فَضَعَّفُوا هَذَا الحَدِيثَ مِنْ أَجْلِ هَذَا، وَذُكِرَ عَنْ يَحْيَى بْنِ مَعِينٍ، أَنَّهُ قَالَ: لَمْ يَذْكُرْ هَذَا الحَرْفَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ إِلَّا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. قَالَ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ: وَسَمَاعُ إِسْمَاعِيلَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ لَيْسَ بِذَاكَ، إِنَّمَا صَحَّحَ كُتُبَهُ عَلَى

كُتُبِ عَبْدِ الْمَجِيدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رَوَّادٍ، مَا سَمِعَ مِنَ ابْنِ جُرَيْجٍ. وَضَعَّفَ يَحْيَى رِوَايَةَ إِسْمَاعِيلَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ. عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ. وَالْعَمَلُ فِي هَذَا الْبَابِ عَلَى حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ" عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَعَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ، وَأَبُو هُرَيْرَةَ، وَغَيْرُهُمْ. وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ بَعْضِ فُقَهَاءِ التَّابِعِينَ، أَنَّهُمْ قَالُوا: لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ، مِنْهُمْ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيِّبِ، وَالْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ، وَشُرَيْحٌ، وَإِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ، وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَغَيْرُهُمْ. وَبِهَذَا يَقُولُ: سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَالْأَوْزَاعِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَمَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. [1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كومي ښځي چي دخپل ولي داجازت نه بغير نكاح اوكړه نو ددي نكاح باطل ده. ددي نكاح باطل، ددي نكاح باطل ده، او كه چري يوي ښځي پخپله نكاح اوكړه كه دخول يي ورسره وكړو نو ددي دشرمګاه دحلالولو دپاره عوض ددي دپاره مهر دي او كه په اولياؤ كي جګړه پيداشي نو دچاچي هيڅوك ولي نه وي دهغه ولي به حاكم وي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي، يحىٰ بن سعيد انصاري، يحىٰ بن ايوب، سفيان ثوري، او بعضي نورو محدثينو دا حديث په همدي سند دابن جريج نه نقل كړي دي او دابوموسي اشعري په مخكني حديث كي اختلاف دي اسرائيل دا روايت دشريك بن عبدالله نه نقل كوي او ابوعوانه دزهير بن معاويه او قيس بن ربيع نه په سند د ابي اسحاق عن ابي بردة عن ابي موسي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي، او اسباط بن محمد او زيد بن حباب په سند د يونس بن اسحاق عن ابي اسحاق عن ابي بردة عن ابي موسي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او ابو عبيده په سند د يونس بن ابي اسحاق عن ابي بردة عن ابي موسي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او دسابقه روايت هم معني روايت يي بيان كړي دي او هغوئ په دي كي دابو اسحاق واسطه نه ده ذكر كړي، دارنكي داحديث د يونس بن ابي اسحاق نه هم مروي دي هغوئ په سند د ابي اسحاق عن ابي برده عن ابي موسي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي، شعبي اوسفيان ثوري په سند د ابي اسحاق عن ابي بردة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي چي دولي نه بغير نكاح نه كيږي، دسفيان ثوري بعضي شاګردانو په سند دسفيان عن ابي اسحاق عن ابي بردة عن ابي

[1] ـ سنن ابي داود في النكاح ٢٠ (٢٠٨٣). سنن ابن ماجه في النكاح ١٥ (١٨٧٩). مسند احمد (٦ في ٦٦، ١٦٦). سنن الدارمي في النكاح ١١ (٢٢٣٠)

موسي سره نقل کړي دي ليکن دا سند درست نه دي د هغه خلقو روايت چاچي په سند دابي اسحاق عن ابي بردة عن ابي موسي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي چي د ولي نه بغير نکاح نه کيږي دا روايت زما په نزد زيات صحيح دي ځکه چي دابو اسحاق سبيعي نه دهغه خلقو سماع په مختلفو وختونو کي شوي ده اګر چي شعبي او ثوري دابواسحاق نه په ټولو روايت کونکو کي زيات ثقه او مضبوطي حافظي والا دي خو بيا هم دوئ دشعبه او ثوري نه علاوه دنورو راويانو روايت اشبه ګڼړلي دي ځکه چي شعبه او ثوري دواړو دا حديث دابو اسحاق نه په يو مجلس کي اوريدلي دي او ددوئ نه علاوه نورو راويانو په مختلفو وختونو کي اوريدلي دي ددوئ دليل دشعبه بيان دي چي ما سفيان ثوري لره دابو اسحاق نه دتپوس کولو په حال کي اوليدو چي ايا تا دابو برده نه دا اوريدلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دولي نه بغير نکاح نه کيږي هغه اوونيل هو ما اوريدلي دي دا خبره ددي دليل دي چي دمکحول نه دشعبه او ثوري ددي حديث داوريدو وخت يو دي، او دابواسحاق سبيعي نه روايت کولو کي اسرائيل ډيرزيات ثقه راوي دي، عبدالرحمن بن مهدي وائي زما نه دثوري په روايتونو کي کوم چي هغه دابواسحاق نه نقل کړي دي يو هم پاتي شوي نه دي مګر چي کوم پاتي شوي دي هغه صرف په دي وجه پاتي شوي دي چي ما په دي سلسله کي په اسرائيل اعتماد کړي دي ځکه چي هغه به دابواسحاق احاديث په اکملي طريقي بيانول، او په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها نه هم حديث مروي دي چي دولي نه بغير نکاح نه کيږي دا حديث زما په نزد حسن دي، او دا روايت ابن جريج په سند دسليمان بن موسي عن الزهري عن عروه عن عائشه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره هم نقل کړي دي او دارنګي دا حديث حجاج بن ارطاة او جعفر بن ربيعه هم په سند د زهري عن عروه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، او دارنګي زهري په سند دهشام بن عروه عن ابيه عروة عن عائشة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره دسابقه روايت هم معني بيان کړي دي ، بعضي محدثينو دزهري په روايت کي کوم چي هغه په سند دعروه عن عائشه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي هغوئ په دي روايت باندي کلام کړي دي، دابن جريج قول دي بيا مادزهري سره ملاقات اوکړو او تپوس مي ورنه اوکړو نو هغوئ ددينه انکار اوکړو نو په دي وجه هغوئ ددي حديث تضعيف کړي دي، يحیٰ بن معين وائي دابن جريج نه داخبره داسماعيل بن ابراهيم بن عليه نه علاوه بل هيچا نه ده نقل کړي ديحي بن معين قول دي اسماعيل بن ابراهيم بن عليه سماع دابن جريج نه ثابت نه ده هغوئ دخپلو کتابونو تصحيح دعبد المجيد بن عبدالعزيز بن ابي رواد دهغه کتابونو نه کړي ده کوم چي عبد المجيد دابن جريج نه اوريدلي دي، يحیٰ بن معين داسماعيل بن ابراهيم بن عليه روايت لره کوم چي هغه دابن جريج نه نقل کړي دي ضعيف ګڼړلي دي، په صحابه کرامو او اهل علمو کي بعضو په دي باب کي

دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په حديث "لانكاح الابولي" يعني دولي نه بغير نكاح نه كيږي باندي عمل كړي دي په كومو كي چي عمر، علي، عبدالله بن عباس، او ابوهريره رضي الله عنهم وغيره هم شامل دي دارنګي دتابعينو فقهاؤ نه مروي دي چي دولي داجازت نه بغير نكاح درست نه ده چي په دوئ كي سعيد بن مسيب، حسن بصري ، شريح، ابراهيم نخعي، او عمر بن عبدالعزيز وغيره هم شامل دي، او همدا دسفيان ثوري، اوزاعي، عبدالله بن مبارك، شافعي، احمد بن حنبل، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي

**تشريح : دولی درضا نه بغير د نكاح منعقد كيدل**

دحره، عاقله، بالغه، نكاح ددې په رضامندئ بغير د ولی منعقد كيږی، او كه نه منعقد كيږی؟

(١) د ظاهرالرواية مطابق د شيخينو په نزد منعقد كيږی.

(٢) اود ابويوسف (رحمه الله) نه په غير ظاهرالروايت كي يو روايت دي چي بغير د ولی نه نكاح نه منعقد كيږی.

(٣) اود امام محمد (رحمه الله) په نزد موقوف منعقد كيږی، كه ولی اجازت وركړی نو نافذ به وی، او كه اجازت ورنكړی نو منعقد به نه وی.

(۴) امام مالك او امام شافعی (رحمهما الله) فرمائی چي دښځو په الفاظو سره بنكل نه منعقد كيږی.

د امام مالك او امام شافعی (رحمهما الله) دليل دادې چي د نكاح نه د نكاح مقصد مقصود وی، دا مقاصد ښځو ته سپارل، په دې كي خلل اچول دی، ځكه چي ښځي ناقصات العقل دی، په دې وجه ښځو ته به د نكاح اختيار نشی وركولي.

امام محمد (رحمه الله) په دليل كي فرمائی چي خبره صحيح ده، خود ولی اجازت وركولو سره داخلل رفع كيږی، ځكه كه ولی مناسب اوګڼری نو اجازت به وركړی، او كه مناسب اونګڼری نو اجازت به نه وركوی، وجه د جواز داده چي دې ښځي خالص په خپل حق كي تصرف كړې دې، ځكه چي د بضع بدل هم ددې دپاره دې، اودا ښځه د تصرف اهل هم ده، ځكه چي مميز عقل لری، هم دا وجه ده چي په مال كي هم د تصرف اختيار دې ښځي ته حاصل وی.

كه څوك اعتراض اوكړی چي هركله ښځه اختيارمنده ده نو بيا د نكاح مطالبه د ولی نه ولې كيږی، د ښځو نه ولې نه كيږی؟

ددې جواب دادې چي په داسې كولوسره به د ښځو طرف ته بې حيائی منسوب كولې شی، ځكه چي ښځې د سرو مجلسونو طرف ته په وتلو كي حيا محسوسوی، كه داسې كوی نوخلق به دوی بې حياګڼری.

په ظاهرالروايه كي په كفو اوغير كفوكي هيڅ فرق نشته، يعنى كه حره،عاقله بالغه خپله نكاح پخپله اوكړه، په كفوكي يا په غيركفوكي نو نكاح جائز ده، خود غيركفو په صورت كي به ولى ته د خپل طرف نه د شرم ضرر دفع كولو دپاره، د اعتراض حق حاصل وى.

اود ابوحنيفه او ابويوسف (رحمهما الله) نه په نوادر كي يو روايت دې چي په غير كفو كي نكاح دسره جائز نه ده، ځكه چي ډير واقعات داسې شته چي د نكاح واقع كيدلو نه پس څوك ددې په دفع كولو باندې دسره قادر هم نه وى، نه خو هر ولى د مرافعه (قاضى ته د مقدمې) پيش كولو صلاحيت لرلې شي، او نه هرقاضى عادل وى نو احتياط هم په دې كي دې چي په غيركفوكي بغير د ولى نه د نكاح دروازې بندې كړې شى. او نقل شوى دى چي امام محمد (رحمه الله) د شيخينو دې قول طرف ته رجوع كړې وه. كوم چي په ظاهرالروايه كي دې، يعنى د امام محمد (رحمه الله) په نزد هم نكاح بغير د ولى منعقد كيږى، اود ولى په اجازت باندې موقوف هم نه وى.

*****************

## ١٦_ باب مَا جَاءَ لاَ نِكَاحَ إِلاَّ بِبَيِّنَةٍ

### دګواهانو نه بغير نكاح درسته نه وي

١١٠٣_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ حَمَّادٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْبَغَايَا اللاَّتِي يُنْكِحْنَ أَنْفُسَهُنَّ بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ". قَالَ يُوسُفُ بْنُ حَمَّادٍ: رَفَعَ عَبْدُ الأَعْلَى هَذَا الْحَدِيثَ فِي التَّفْسِيرِ، وَأَوْقَفَهُ فِي كِتَابِ الطَّلاَقِ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (١)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي زناكاره ده هغه ښځه چي دګواهانو نه بغير پخپله نكاح كوي، ديوسف بن حماد قول دي چي عبدالاعلي داحديث په كتاب التفسير كي مرفوعا نقل كړي دي او په كتاب الطلاق كي يي موقوفاً ذكر كړي دي او هلته يي مرفوع نه دي بيان كړي

*****************

١١٠٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ وَهَذَا أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ لاَ نَعْلَمُ أَحَدًا رَفَعَهُ، إِلاَّ مَا رُوِيَ عَنْ عَبْدِ

١ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٣٦٤)

الْأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ مَرْفُوعًا، وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ هَذَا الْحَدِيثُ مَوْقُوفًا. وَالصَّحِيحُ مَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَوْلُهُ: لَا نِكَاحَ إِلَّا بِبَيِّنَةٍ، هَكَذَا رَوَى أَصْحَابُ قَتَادَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: لَا نِكَاحَ إِلَّا بِبَيِّنَةٍ، وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ نَحْوَ هَذَا مَوْقُوفًا. وَفِي هَذَا الْبَابِ: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَأَنَسٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ وَغَيْرِهِمْ. قَالُوا: لَا نِكَاحَ إِلَّا بِشُهُودٍ. لَمْ يَخْتَلِفُوا فِي ذَلِكَ مَنْ مَضَى مِنْهُمْ. إِلَّا قَوْمًا مِنَ الْمُتَأَخِّرِينَ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَإِنَّمَا اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي هَذَا إِذَا شَهِدَ وَاحِدٌ بَعْدَ وَاحِدٍ، فَقَالَ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ وَغَيْرِهِمْ: "لَا يَجُوزُ النِّكَاحُ حَتَّى يَشْهَدَ الشَّاهِدَانِ مَعًا عِنْدَ عُقْدَةِ النِّكَاحِ" وَقَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ: "إِذَا أُشْهِدَ وَاحِدٌ بَعْدَ وَاحِدٍ، فَإِنَّهُ جَائِزٌ إِذَا أَعْلَنُوا ذَلِكَ" وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَغَيْرِهِ. هَكَذَا قَالَ إِسْحَاق فِيمَا حَكَى عَنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: "يَجُوزُ شَهَادَةُ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ فِي النِّكَاحِ" وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. (1)

**ترجمه** په همدي سند دسعيد بن عروبه نه هم دماقبل هم معنى حديث مروي دي ليكن هغوئ مرفوع نه دي بيان كړي او همدا زيات صحيح دي.

امام ترمذي وائي داحديث غير محفوظ دي او مونږ ته هيڅوك نه دي معلوم چي دا يي مرفوع بيان كړي وي علاوه د عبدالاعلي نه ځكه چي هغه دسعيد بن ابي عروبه نه او سعيد دقتاده نه مرفوعا نقل كړي دي، او دعبدالاعلي نه دسعيد بن ابي عروبه په واسطه موقوفاً هم دا مروي دي، او صحيح هغه روايت دي كوم چي دابن عباس نه مروي دي چي بغير دګواهانو نه نكاح درسته نه ده دا دابن عباس قول دي دا رنګي نورو راويانو دسعيد بن ابي عروبه نه ددي هم معني روايت موقوفاً نقل كړي دي، او په دي باب كي دعمران بن حصين، انس، ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دصحابه كرامو او تابعينو او اهل علمو په همدي باندي عمل دي دوئ وائي چي بغير دګواهانو نكاح درسته نه ده، په سلفو كي په دي سلسله كي هيڅ اختلاف نه وو ليكن په متاخرينو اهل علمو كي څه كسانو په دي كي اختلاف پيدا كړو، په اهل علمو كي په دي سلسله كي اختلاف دي چي كله يو ګواه دبل نه پس ګواهي وركړي يعني دواړه په يو وخت او يو مجلس كي په نكاح كي حاضر نه وي نو اكثر اهل كوفه وائي نكاح به هغه وخت كي درسته وي كله چي دعقد په وخت كي دواړه ګواهان په يوځاي موجود وي، او

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٣٨٤)

دبعضي اهل مدينه خيال دي چي كله يو دبل نه پس گواهان قائم شول نو دا هم جائز دي خو چي عاقد ددي اعلان اوكړي او دا دمالك بن انس وغيره قول دي او ددي پشان قول داسحاق بن راهويه هم دي، او دبعضي اهل علمو قول دي چي په باب د نكاح كي ديو سړي او دوه ښځو شهادت جائز دي او دامام احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي

**تشريح : په گواهانوكي دفسق اثر**

احناف وايي په نكاح كي شهادت شرط دې.

امام مالك (رحمه الله) فرمائي چي اعلان شرط دې شهادت شرط نه دې.

امام مالك (رحمه الله) په استدلال كي حديث"اعلنوا النكاح ولو بالدف" ذكر كړې دې. يعنى د نكاح اعلان كوئ. اگرچي په دف سره وى.

احنافو په استدلال كي حديث"لانكاح إلا بشهود" پيش كړې دې، يعنى بغير د گواهانو نه منعقد كيږى، د امام مالك (رحمه الله) د پيش كړې شوى حديث جواب دادې چي دا حديث د اعلان په وجوب دلات كوى، خود اعلان په شرط كيدلو باندې دلالت نه كوى.

علماؤ د گواهانو يوڅو صفات بيان كړى دى.

اول داچي د دواړو آزاد كيدل ضرورى دى، ځكه چي د شهادت اهل به هغه كس وى، چاته چي د ولايت حق حاصل وى، اوچونكه غلام ته په خپل ذات باندې د ولايت حق حاصل نه وى نو په غير باندې به هم ورته د ولايت حق حاصل نه وى، ولايت وائى، "تنفيذ القول على الغير" ته.

دويم دا چي دواړه گواهان عاقل بالغ وى، ځكه چي ددې دواړو ځيزونو نه بغير د ولايت حق نه حاصليږى، او چي ولايت حق ورته حاصل نه دى نود شهادت اهل به هم نه وى.

دريم داچي د مسلمانانو په نكاح كي دگواهانو مسلمان كيدل ضرورى دى، دليل دادې چي د هيڅ مسلمان خلاف د كافرشهادت معتبر نه دې، د قرآن آيت :

وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا (النساء:١٤١) په دي وجه د احنافو په نزد د گواهانو سړى كيدل ضرورى نه دى، بلكي يو سړې او دوه ښځې هم گواهان جوړيدلى شى.

مگر امام شافعى (رحمه الله) اختلاف كړى دې، دې فرمائى چي په نكاح كي د سړو سره د ښځو گواهى نشى قبليدلې، تفصيل به په كتاب الشهادات كي بيان كړو. د عدالت په شرط لگولو كي اختلاف دې.

د احنافو مذهب دادې چي د شاهدينو عدالت شرط نه دې. امام شافعى (رحمه الله) عدالت د گواهانو دپاره شرط گرځوى. د امام شافعى (رحمه الله) دليل دادې چي شهادت د باب كرامت نه دې. د نبى كريمﷺ د قول"أكرموا الشهود"په وجه.يعنى د گواهانو اكرام كوئ. ددې

حديث نه معلومه شوه چي ګواهان داكرام قابل دى. او فاسقان د اهانت لائق دى نو فاسق ګواه نه جوړولو سره ددوى اهانت كول پكار دى نو په ګواه جوړولوسره به ددوى اكرام نشى كولې.

د احنافو دليل دادې چي فاسق د اهل ولايت نه دې نود اهل شهادت نه به هم وى. او فاسق په اهل ولايت كي كيدل ځكه دى چي شريعت دې د مسلمان كيدلو په وجه په خپل حق باندې د ولايت نه نه دې محروم كړې نو په غير باندې به هم د ولايت نه نشى محروم كيدلې. ځكه چي دا غير هم د مسلمان كيدلو په وجه دده هم جنس دې.

د دويم دليل حاصل دادې چي فاسق حاكم جوړيدلې شى. اود حاكم دپاره جائز دى چي دې څوك قاضى جوړكړى. او فاسق حاكم چي هركله بل څوك قاضى جوړولي شى نو په خپله هم قاضى جوړيدلي شى. او هركله چي قاضى جوړيدلې سى نو شاهد هم جوړيدلې سى. ځكه چي شهادت او قضاء دواړه د يو باب نه دى. ځكه چي په دواړو كي د "تنفيذ الحكم عن الغير" معنى موجود ده.

كوم كس ته چي حدقذف لګولې شوې وى. هغه هم چونكه د اهل ولايت نه دې نود اهل شهادت والو نه به هم وى. خودا كس د تحمل شهادت يعنى د شهادت اوچتولو اهل دى. د شهادت اداكولو اهل نه دې. يعنى د محدود فى القذف. په موجودګى كي نكاح منعقد كيږى. ځكه چي په نكاح كي تحمل شهادت كافى دې. خو كه كله د قضاء په مجلس كي د ګواهى وركولوضرورت راپيښ شى نو دده ګواهى به نه قبليږى. د آيت "ولا تقبلوا لهم شهادة ابدا" په وجه. يعنى ددوى ګواهى كله هم مه قبلوئ.

دا بالكل داسې ده. لكه چي د دوه زندو يا د عاقدينو د دوه ځامنو په موجودګى كي نكاح منعقد كيږى. ځكه چي دوى د تحمل شهادت اهل دى. خود زندو ګواهى اود عاقدينو د ځامنو ګواهى دپلار په حق كي نه قبليږى. خوكه خلاف ګواهى وركړى نو د خوى ګواهى به هم د پلار په خلاف قبليږى.

******************

## ۱۷. باب مَا جَاءَ فِي خُطْبَةِ النِّكَاحِ

### د نكاح د خطبې بيان

۱۱۰۵ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْثَرُ بْنُ الْقَاسِمِ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: عَلَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّشَهُّدَ فِي الصَّلَاةِ وَالتَّشَهُّدَ فِي الْحَاجَةِ، قَالَ: "التَّشَهُّدُ فِي الصَّلَاةِ: التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ

وَبَرَكَاتُهُ، السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ". وَالتَّشَهُّدُ فِي الْحَاجَةِ: "إِنَّ الْحَمْدَ لِلَّهِ نَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ، وَنَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا وَسَيِّئَاتِ أَعْمَالِنَا، فَمَنْ يَهْدِهِ اللَّهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ، وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، وَيَقْرَأُ ثَلَاثَ آيَاتٍ". قَالَ عَبْثَرٌ: فَفَسَّرَهُ لَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ: اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ، وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ، إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا، اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ، رَوَاهُ الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَكِلَا الْحَدِيثَيْنِ صَحِيحٌ لِأَنَّ إِسْرَائِيلَ جَمَعَهُمَا. فَقَالَ: عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، وَأَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ قَالَ أَهْلُ الْعِلْمِ: إِنَّ النِّكَاحَ جَائِزٌ بِغَيْرِ خُطْبَةٍ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَغَيْرِهِ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ.(۱)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی فرمائي چي رسول کريم صلي الله عليه وسلم مونږ ته دمونځ دتشهد او دخطبي حاجت(نکاح) تعليم راکړو او وي فرمائيل د مونځ تشهد دادی

التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ".

يعني تمام قولي عباتونه او بدني عبادتونه او مالي عبادتونه خاص د الله تعالي دپاره دي (يعني صرف الله تعالي ددي مستحق دی) او سلام (سلامتيا) دي وي په تاباندي اي د الله نبي اوبرکتونه او رحمتونه د الله تعالي دي وي په تاباندي، اوسلام(سلامتيا) دي وي په مونږ باندي اود الله تعالي په نيکانو بندګانو باندي . زه ګواهي ورکوم ددي خبري چي د الله تعالي نه علاوه بل هيڅوک حقدار د بندګی نشته او ګواهي ورکوم ددي خبري چي محمد(صلي الله عليه وسلم) د الله تعالي بنده او دهغه رسول دی

او بيا يي وفرمائيل دحاجت (نکاح) خطبه داه

۱ سنن ابي داود في النكاح ۳۳ (۲۱۱۸) سنن النسائي في الجمعة ۲۴ (۱۴۰۵) والنكاح ۳۹ (۳۲۰۹) سنن ابن ماجه في النكاح ۱۹ (۱۸۹۲) (تحفة الأشراف ۹۵۰۶) مسند احمد (۱/ ۳۹۲) سنن الدارمي في النكاح ۲۰ (۲۲۴۸)

إِنَّ الْحَمْدَ لِلَّهِ نَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ. وَنَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا وَسَيِّئَاتِ أَعْمَالِنَا. فَمَنْ يَهْدِهِ اللَّهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ. وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ. وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ

يعني ، ټول تعريفونه خاص دالله تعالي دپاره دي ، مونږ دهغه نه مدد غواړو اودهغه نه بخښنه غواړو اوپه هغه پوري پناه غواړو دخپلو نفسونو دبدوالي نه ، چاته چي الله تعالي سمه لار وښائي نونشته دهغه دپاره څوك بې لاري كونكي اوڅوك چي هغه بي لارې كړي نونشته دغه كس ته څوك لاربنودونكى ، زه ګواهي وركوم چي دالله نه علاوه بل څوك حقدار دبندګۍ نشته اومحمد ﷺ دهغه بنده اورسول دی

او دي سره به دري ايتونه هم لولي، عبثر راوي وايي چي بيا مونږ ته سفيان ثوري هغه دري ايتونه بيان كړل چي دادي

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ( اتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا) (ال عمران:۱۰۲) (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلاَ تَمُوتُنَّ إِلاَّ وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ) (النساء:۱)( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلاً سَدِيدًا يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا (الاحزاب:۷۰)

يعني اي ايمان والاو دالله تعالي نه ويره وكړئ دچادنوم په وصيله باندي چي تاسو غوښتل كوئ اودرېشتو دماتولونه خان وساتئ يقينا الله تعالي ستاسو نګهبان دی ، اي ايماندارو خلقو دالله تعالي نه ويريږه څرنګه چي دهغه نه ديريدلو حق دی اوهيڅ كله دي تاسوته مرګ رانشي پداسي حال كي چي تاسومسلمانان نه يی اي ايمان والاخلقو دالله نه يره وكړئ په باره دانصاف كولوكي هغه به ستاسو كارونه سم كړي اوستاسو ګناهونه به اوبخښي چاچي دالله اودهغه درسول تابعداري وكړه نوهغه لويه كاميابي حاصله كړه

امام ترمذي وايي دعبدالله بن مسعودحديث حسن دي او داحديث اعمش په سند د ابي اسحاق عن ابي الاحوص عن عبدالله عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي دارنګي داروايت شعبه هم په سند د ابي اسحاق عن ابي عبيدة عن عبدالله عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او دا دواړه سندونه صحيح دي څكه چي اسرائيل دواړه جمع كړي دي يعني عن ابي اسحاق عن ابي الاحوص وابي عبيدة عن عبدالله بن مسعود عن النبي صلي الله عليه وسلم. په دي باب كي دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي داهل علمو قول دي چي نكاح بغير دخطبي لوستلو هم جائزده په اهل علموكي دسفيان ثوري وغيره هم دا قول دي

**تشريح** : د اهل علمو او فقهاؤ پدي باندي اتفاق دي چي خطبه د نکاح دپاره شرط نه ده، دخطبي نه بغير هم نکاح درسته ده ، بلکي خطبه د استحباب په درجه کي ده چي د اجرد زيادت او خير او برکت موجب ده

***************

١١٠٦ـ حَدَّثَنَا أَبُو هِشَامٍ الرِّفَاعِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په هر خطبه کي چي تشهد نه وي دا داسي ده لکه شل لاس

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح غريب دي

***************

## ١٨ـ باب مَا جَاءَ فِي اسْتِئْمَارِ الْبِكْرِ وَالثَّيِّبِ

### دپيغلي او کونډي ښځي داجازت اخستلو بيان

١١٠٧ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ تُنْكَحُ الثَّيِّبُ حَتَّى تُسْتَأْمَرَ، وَلاَ تُنْكَحُ الْبِكْرُ حَتَّى تُسْتَأْذَنَ، وَإِذْنُهَا الصُّمُوتُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، وَالْعُرْسِ بْنِ عَمِيرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنَّ الثَّيِّبَ لاَ تُزَوَّجُ حَتَّى تُسْتَأْمَرَ وَإِنْ زَوَّجَهَا الأَبُ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَسْتَأْمِرَهَا فَكَرِهَتْ ذَلِكَ فَالنِّكَاحُ مَفْسُوخٌ عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي تَزْوِيجِ الأَبْكَارِ إِذَا زَوَّجَهُنَّ الآبَاءُ، فَرَأَى أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الأَبَ إِذَا زَوَّجَ الْبِكْرَ وَهِيَ بَالِغَةٌ بِغَيْرِ أَمْرِهَا فَلَمْ تَرْضَ بِتَزْوِيجِ الأَبِ فَالنِّكَاحُ مَفْسُوخٌ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ:

---

[1] ـ سنن ابي داود في الأدب٢٢(٤٨٤١)، (تحفة الأشراف ـ١٢٩)، مسند احمد (٢ في ٣٤٣)

تَزْوِيجُ الْأَبِ عَلَى الْبِكْرِ جَائِزٌ وَإِنْ كَرِهَتْ. ذَلِكَ وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. وَالشَّافِعِيِّ. وَأَحْمَدَ. وَإِسْحَاقَ. (١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ثيبه به په نكاح هغه وخته پوري نسي وركولي ترڅو پوري چي ددي رضامندي معلومه کړي شوي نه وي او حاصله كړي شوي نه وي او پيغله جيني دي هغه وخته پوري په نكاح ورنكړي شي ترڅوپوري چي ددينه اجازت اخستلي شوي نه وي او ددي خاموش پاتي كيدل اجازت وركول دي

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعمر ، ابن عباس، عائشه، او عرس بن عميره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي چي دثيبه نكاح دهغي درضامندئ دحاصلولو نه بغير درسته نه ده او كه پلار دهغي نكاح دهغي درضامندئ نه بغير اوكړه او هغهورباندي راضي نه وه نو دتمامو اهل علمو په نزد به دانكاح ماتولي شي، او كه دپيغلو جينكو پلار دهغوئ نكاح دهغوئ داجازت نه بغير اوكړي نو داهل علمو په دي كي اختلاف دي داهل كوفه رائي داده كه پلار يوه پيغله لور دهغي داجازت نه بغير په نكاح وركړي او هغه بالغه وي او بيا هغه دپلار په مرضئ راضي نه وي نو نكاح به يي ماتولي شي، او بعضي اهل مدينه وائي دپيغلي جينئ نكاح كه پلار كړي وي نو درسته ده اګر كه دا دهغي خوښه نه وي، دا دمالك بن انس ، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه قول دي.

**تشريح: په نكاح كي دجينئ درضامندئ شرط كيدل**

(١) د احنافو په نزد به باكره بالغه په نكاح باندي نشي مجبوروليې، كه بغير ددې د رضامندئ نه نكاح اوكړې شوه نو ددې په اجازت باندې به موقوف وى، كه رد ئې كړه نو باطل به وى. او كه د ولى اجازت اخستلو په وخت كي خاموش پاتې شوه نودا به ددې د طرفه اجازت شمارلې شى.

(٢) د امام شافعى (رحمه الله) په نزد باكره بالغه په نكاح باندې مجبوروول جائز دى، د امام شافعى (رحمه الله) دليل دادې چي دې باكره بالغه په صغيره باندې قياس كوى. څكه چي صغيره كه باكره وى نو لكه څنګه چي دا په نكاح باندې مجبوروول جائزدى. دغه شان بالغه باكره مجبوروول هم جائز دى، د دوارو په مينځ كي جامع او مشترك علت،د تجربه نه

١ - صحيح مسلم في النكاح ٩ (١٤١٩) سنن ابن ماجه في النكاح ١١ (١٨٧١) (تحفة الأشراف ١٥٣٨٣) سنن الدارمي في النكاح ١٣ (٢٢٣٣)

کیدلو په وجه د نکاح د معاملاتو نه ناخبرې ده، ځکه چې ښځې ترکومه پورې د سړو سره اختلاط (ګډون) نه وی کړې نودا د نکاح د مصلحتونو، اود نکاح خرابیانو نه نشی خبریدلې. او باکره بالغه د نکاح معاملاتو نه ناخبره وی، په دې وجه ددې پلار بغیر ددې د حکم نه په مهر باندې قبضه کولې شی،

د احنافو دلیل دادې چې باکره بالغه آزاده ده، او په آزاد باندې هیڅ چاته ولایت د اجبار حاصل نه وی نو په باکره بالغه باندې به هم هیڅ چاته د اجبار ولایت نه وی، خو که څوك سوال اوکړی چې صغیره هم آزاده ده نو په دې باندې هم د اجبار ولایت نه دې پکار؟ نوددې جواب دادې چې په صغیره باندې د اجبار ولایت ددې د عقل د قصور په وجه دې، او په بالغ کیدلوسره عقل مکمل شو نو په بالغه باندې د اجبار ولایت نه وی. او په صغیره باندې به وی، او ددې دلیل چې په بلوغ باندې عقل کامل کیږی. د الله تعالی خطاب د بالغه طرف ته متوجه کیدل دی چې ترکومه پورې نابالغه وی نود شریعت د احکامو مکلفه نه وی، او هرکله چې بالغه شی نو مکلف شی، او بالغه جینئ داسې ده. لکه بالغ هلك. یعنی لکه څنګه چې په بالغ هلك باندې د اجبار ولایت نه وی. دغه شان په بالغه جینئ باندې هم د اجبار ولایت نه وی. اودا داسې ده. لکه .تصرف فی المال. یعنی لکه څنګه چې باکره بالغه په خپل مال کې تصرف کولې شی، ددې پلار ته ددې په مال کې د تصرف اجازت نشته، دغه شان باکره بالغه به په خپل نفس کې هم د تصرف اختیارمنده وی، د پلار یا دبل ولی اجازت شرط نه دې،

د امام شافعی (رحمه الله) دا قول چې پلار بغیر ددې د حکم نه په مهر باندې قبضه کولې شی مونږ په جواب کې دا وایو چې هرکله پلار په مهر باندې قبضه اوکړه نود جینئ د سکوت په وجه دلالة رضامندی موجود شوه، که جینئ په صراحت سره منع اوکړه نو پلار به په مهر باندې د قبضه کولو مالك نه وی.

## د باکرې بالغې د طرفه د رضامندئ د اظهار صورتونه

که چرې دنکاح نه مخکې ولی د باکره بالغه نه اجازت اوغوښتلو ، هغې چې واوریدل نو خاموش شوه. یا ئې اوخندل نودا خاموش پاتې کیدل.یا خندل به ددې د طرفه اجازت وی. دغه شان ضحك( تبسم او مسکئ کیدل) هم د رضامندئ دلیل دې.

ددې دلیل دا ارشاد نبوي دې چې د باکره نه به ددې د ذات په باره کې رائې اخستلې شی، که دا خاموش شوه نودا به رضامندی وی، دلیل عقلی دادې چې په چپ پاتې کیدلوکې او په خندلوکې د رضامندئ معنی غالب ده، ځکه چې باکره د رغبت په ښکاره کولو شرمیږی. خو په انکارکولو نه شرمیږی، نوکه دا ناراضه وې نو صفا صفا به ئې انکار کړې وې، خودا انکار نه کول،ددې د رضامندئ دلیل دې.

د بعض حضراتو رائې داده، که باکره د استهزاء په اندازکي اوخندل نودا خندا به د باکره رضامندی نشی شمارلې، ځکه چې دا به د ولی د خبرې تمسخر(خندا) وی. اجازت به نه وی. اوکه چرې باکره بغیر د آوازه اوژړل نودا به ددې دطرفه انکار نشی شمارلې. ځکه چې ډیرکرته د مورپلار نه دجدایۍ په خبر باندې بغیر د اختیاره اوښکې روانیږی. په دې فتوی ده. بلکې کتلې شی چې کله کله د خوشۍ په خبر باندې هم اوښکې راوځی نودا بغیرآوازه ژړا به انکار او رد نه ګڼړلې کیږی.

## خاموشي درضامندئ نه کیدویو صورت

که چرې د باکره بالغه نه غیر ولی اجازت اوغوښتلو، یاد ولی اقرب په موجودګۍ کې ولی ابعد د نکاح اجازت اوغوښتلو نو په دې دواړو صورتونوکې به ،سکوت، یا ،ضحك، د رضامندۍ دلیل نه وی، بلکې د اجازت ورکولو دپاره به په ژبه باندې خبرې کول ضروری وی، ځکه چې د اجنبی یا د ولی ابعد د خبرې په جواب کې خاموشی د توجه نه کولو په وجه ده، دې ته د رضامندۍ دلیل نشی وئیلې، که د لږ وخت دپاره اومنلې شی چې دا خاموشی هم د رضامندۍ دلیل دې نو احتمال په دې کې د عدم رضا هم شته. او په دې قسم رضامندۍ باندې اکتفاء کول.د حاجت په وجه دی، اود غیر اولیاء په حق کې هیڅ حاجت نشته، ځکه چې باکره بالغه د غیراولیاء په مخکې په کلام کولو نه شرمیږی، البته که اجازت غوښتونکې د ولی قاصد وی نودې به د ولی قائم مقام ګڼړلې شی. اود ولی په حکم کې به وی.

## دکونډې داجازت بیان

ولی د باکره بالغه نکاح اوکړه، بیا دې باکره بالغه ته خبر اورسیدلو چې واوریدل نو خاموشه شوه نو

مخبر که ولی وی. یا د ولی قاصد وی نو ددې سکوت اوضحك(خاموشی اوخندل) به اجازت وی، او بکاء(ژړل) به اجازت نه وی، اوکه چرې مخبر غیر ولی،یا ولی ابعد وی نو په ژبه باندې اجازت ورکول ضروری دی، ګنی اجازت به نه وی، دلیل دادې چې په سکوت کې د رضامندې دلالت مختلف نه وی، که د نکاح نه مخکې وی، او که روسته وی. بیا که مخبر فضولی وی چې نه ولی دې. او نه قاصد دې نود امام ابوحنیفه (رحمه الله) په نزد په دې کې د تعداد یا عدالت موجود کیدل ضروری دی، یعنی مخبر چې کم ازکم دوه وی، او که یو وی نو چې عادل وی، د صاحبینو په نزد په دې دواړوکې هیڅ شرط نشته، مخبر که یو وی، او که زیات وی، که عادل وی، اوکه چرې غیر عادل وی، او که مخبر د ولی قاصد وی نو په اتفاق سره هیڅ شرط نه دی،

كه چري د .ثيبه. بالغه نه د نكاح په باره كي اجازت اوغوښتلې شو نو ددې دطرفه به د رضامندئ اظهار په ژبه ضروري وی، دليل د نبی كريم ﷺ ارشاد "الثيب تشاور" دي. تشاور .مشاورت د مفاعلت نه دې. اود مفاعلت خاصه ده، اشتراك.او مشوره وائی. طلب د رائې بالقول ته. يعنې په ژبه باندې د رائې طلب كول نو هركله چي په.احد الجانبين.كي قول شته نو په جانب آخر كي به هم قول وی نود حديث تقاضا تكلم دې. اوهم دا اصل دې. دويم دليل عقلی دادې چي كلام كول،د ثيبه په حق كي عيب نه شمارلې كيږی. اود سړوسره د اختلاط په وجه ددې حياء هم كمه شوه نو ددې په حق كي د كلام كولو نه هيڅ مانع نشته

***************

١١٠٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْفَضْلِ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الأَيِّمُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا، وَالبِكْرُ تُسْتَأْذَنُ فِي نَفْسِهَا وَإِذْنُهَا صُمَاتُهَا". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. رَوَاهُ شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَقَدِ احْتَجَّ بَعْضُ النَّاسِ فِي إِجَازَةِ النِّكَاحِ بِغَيْرِ وَلِيٍّ بِهَذَا الحَدِيثِ. وَلَيْسَ فِي هَذَا الحَدِيثِ مَا احْتَجُّوا بِهِ، لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ" وَهَكَذَا أَفْتَى بِهِ ابْنُ عَبَّاسٍ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ، وَإِنَّمَا مَعْنَى قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الأَيِّمُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا" عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ: "أَنَّ الوَلِيَّ لَا يُزَوِّجُهَا إِلَّا بِرِضَاهَا وَأَمْرِهَا، فَإِنْ زَوَّجَهَا فَالنِّكَاحُ مَفْسُوخٌ عَلَى حَدِيثِ خَنْسَاءَ بِنْتِ خِدَامٍ، حَيْثُ زَوَّجَهَا أَبُوهَا وَهِيَ ثَيِّبٌ فَكَرِهَتْ ذَلِكَ، فَرَدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِكَاحَهُ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي ثيبه ښځه پخپل خان باندي دخپل خان باره كي دخپل ولي نه زياته مستحقه ده او دپيغلي نه به هم اجازت غوښتلي شي او دهغي اجازت خاموشي اختيارول دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، شعبه او سفيان ثوري دا روايت دمالك بن انس نه نقل كړي دي، او بعضي اهل علمو دولي نه بغير دنكاح په جواز ددي حديث نه استدلال

---

[1] ـ صحيح مسلم في النكاح ٩ (١٤٢١)، سنن ابي داود في النكاح ٢٦ (٢٠٩٨، ٢١٠٠)، سنن النسائي في النكاح ٣١ (٣٢٦٢، ٣٢٦٥) و٣٢ (٣٢٦٦)، سنن ابن ماجه في النكاح ١١ (١٨٧٠)، موطا امام مالک في النكاح ٢ (٤)، (تحفة الأشراف: ٦٥١٤)، مسند احمد (١/٢١٩، ٢٤٣، ٢٤٢، ٢٥٤، ٣٥٥، ٣٦٢)، سنن الدارمی في النكاح ١٣ (٢٢٣٤)

كري دي او حال دادي په دي حديث كي داسي كوم څيز نشته چي ددي خبري دپاره دليل جوړ شي څكه چي دابن عباس نه په نورو ډيرو سندونو مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دولي نه بغير نكاح درسته نه ده . درسول الله صلي الله عليه وسلم نه پس ابن عباس هم په دي باندي فتوي وركړي ده چي دولي نه بغير نكاح درسته نه ده او د "الايم احق بنفسها من وليها" مطلب داكثر اهل علمو په نزد دادي چي ولي دثيبه نكاح دهغي درضامندئ او مشوري نه بغير نشي كولي او كه داسي يي اوكړل نو دخنساء بنت خدام دحديث په بناء به دهغي نكاح ماتولي شي څكه چي دهغي پلار هغه په نكاح وركړي وه او دهغي دخاوند بله بنځه وه نو دخنساء دا نكاح خوښه نه وه نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم دهغي نكاح ماته كړه.

**تشريح**: د ولى اقرب په موجودګئ كښې ولى ابعد محروم وى، په هغې دا مسئله متفرع ده، كه چرې ولى اقرب، مثلاً د غيبت منقطعه په طور باندې غائب شو نو ولى ابعد مثلاً د نيكه به د تزويج ولايت ثابت وى. او كه نه؟ يعنى د ولى اقرب په غير موجودګئ كې به ولى ابعد ته د نكاح اجازت وى، او كه نه؟ زمونږ په نزد خو جائز دى، او امام زفر دې ته ناجائز وائى.

ددې دليل دادې چې د ولايت مدار په شفقت باندې دې، اود كوم كس د رائې نه چې نفع اخستل ممكن نه وى نو ده ته دنكاح امورو په سپارلوكې هيڅ شفقت نشته، څكه مونږ نكاح ولى ابعد ته اوسپارله. او ولى ابعد زمونږ په نزد په امام او حاكم باندې مقدم دې. لكه كله چې ولى اقرب مړشى.

امام شافعى (رحمه الله) فرمائى چې ولى اقرب كه مړشى نو ولايت به ولى ابعد طرف ته نه منتقل كيږى، بلكې امام وقت طرف ته به منتقل كيږى، دغه شان كه ولى اقرب غائب شى، بيا به هم ددوى په نزد امام وقت ته ولايت حاصل وى، ولى ابعد ته به حاصل نه وى، خو زمونږ په نزد ولى ابعد په امام وقت باندې مقدم دې،

***************

## ۱۹_ بَاب مَا جَاءَ فِي إِكْرَاهِ الْيَتِيمَةِ عَلَى التَّزْوِيجِ

### ديتيمي جينئ په زبردستئ سره په نكاح مجبورولو بيان

۱۱۰۹_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْيَتِيمَةُ تُسْتَأْمَرُ فِي نَفْسِهَا. فَإِنْ صَمَتَتْ فَهُوَ إِذْنُهَا، وَإِنْ أَبَتْ فَلَا جَوَازَ عَلَيْهَا " . يَعْنِي: إِذَا أَدْرَكَتْ فَرَدَّتْ. قَالَ: وَفِي الْبَاب. عَنْ أَبِي مُوسَى، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي تَزْوِيجِ

الْيَتِيمَةِ. فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ الْيَتِيمَةَ إِذَا زُوِّجَتْ فَالنِّكَاحُ مَوْقُوفٌ حَتَّى تَبْلُغَ. فَإِذَا بَلَغَتْ فَلَهَا الْخِيَارُ فِي إِجَازَةِ النِّكَاحِ أَوْ فَسْخِهِ. وَهُوَ قَوْلُ: بَعْضِ التَّابِعِينَ وَغَيْرِهِمْ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا يَجُوزُ نِكَاحُ الْيَتِيمَةِ حَتَّى تَبْلُغَ. وَلَا يَجُوزُ الْخِيَارُ فِي النِّكَاحِ. وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَغَيْرِهِمَا مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: إِذَا بَلَغَتِ الْيَتِيمَةُ تِسْعَ سِنِينَ فَزُوِّجَتْ فَرَضِيَتْ فَالنِّكَاحُ جَائِزٌ، وَلَا خِيَارَ لَهَا إِذَا أَدْرَكَتْ. وَاحْتَجَّا بِحَدِيثِ عَائِشَةَ "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَنَى بِهَا وَهِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِينَ". وَقَدْ قَالَتْ عَائِشَةُ: إِذَا بَلَغَتِ الْجَارِيَةُ تِسْعَ سِنِينَ فَهِيَ امْرَأَةٌ. (1)

**ترجمه** . دابوهریره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي دیتیمي جینۍ نه دي دهغي رضا حاصله کړي که هغه خاموش پاتي شوه نو هم دا دهغي رضامندي ده او که انکار اوکړي نو په هغي باندي دزبردستۍ کولو هیڅ جواز نشته .

امام ترمذي وائي دابوهریره حدیث حسن صحیح دي او په دي باب کي دابو موسی، ابن عمر، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احادیث مروي دي، دیتیمي جینۍ دنکاح په سلسله کي داهل علمو اختلاف دي بعضي فقهاء وائي یتیمه جینۍ چي کله په نکاح ورکولي شي نو نکاح به یي هغه وخته پوري موقوف وي چي څو پوري بالغه شوي نه وي او کله چي بالغه شي هغي ته به ددي نکاح دبرحال پریخودلو او ددي دماتولو دواړه اختیارونه حاصل وي او همدا دبعضي تابعینو او فقهاؤ قول دي، بعضي علماء وائي یتیمه جینۍ چي څو پوري بالغه شوي نه وي په نکاح یي ورکول درست نه دي او په نکاح کي اختیارورکول جائز نه دي په اهل علمو کي دسفیان ثوري اوشافعي وغیره هم دا قول دي، مګر امام احمد اواسحاق وائي کله چي یتیمه جینۍ دنهو کالو شي او دا په نکاح ورکړي شي او هغه په دي باندي راضي وي نو نکاح یي درسته ده او دبالغ کیدو نه پس به دي سره اختیار نه وي شافعي او امام احمد دواړو دعائشه رضي الله عنها ددي حدیث نه استدلال کړي دي او هغه داسي نبي کریم صلي الله علیه وسلم چي کله دهغي سره خلوت اوکړو نو هغه دنهو کالو وه، او دعائشه رضي الله عنها قول دي جینۍ چي کله نهه کالو ته ورسیږي نو دا به ښځه شمیرلي کیږي

**تشریح** : یتیم هغه چاته ونیلي شي چي پلار یي مړ وي او دیتیم اطلاق په صغیره اوکبیره دواړو باندي کیږي، درسول الله په نومونو کي یو نوم یتیم هم دي، ددي حدیث مطلب دادي کله چي دیوي جینۍ پلار مړ شوي وي او کوم رشته دار ددي پرورش اوکړي هغه ته به دا اختیار

---

1 ـ (تحفة الأشراف: ١٥٠٣٥) وأخرجه سنن ابي داود في النكاح ٢٢ (٢٠٩٣)، سنن النسائي في النكاح ٣٦ (٣٢٤٠) مسند احمد (٢/في ٢٥٩، ٤٧٥)

حاصل نه وي چي چرته يي خوښه وي هلته دي دا په نکاح ورکړي، چرته چي څوك ديتيم
پرورش کوي په عام طور سره ذهنيت دا وي چي ما ددي پرورش کړي دي نو زما چي څه خوښه
وي هغه به کوم نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي کار نه منع اوفرمائيله ځکه چي په دې
کي ديتيمي جينۍ حق تلفي کيږي او ددي دخواهش احترام کول او ددي رضامندي لتهول
ضروري دي نو که سرپرست چاله دا په نکاح ورکول غواړي او جينۍ انکار اوکړي نو سرپرست
ته به ددي په زبردستۍ سره په نکاح ورکولو حق حاصل نه وي

## ديتيم دکفالت د فضيلت بيان

د يتيم د کفالت اوخير خواهۍ فضائل په نصوص متواتره کي په کثرت سره وارد دي امام
بخاري هم په دي سلسله کي د سهل بن سعد نه روايت نقل کوي فرمائي : عن سهل بن سعد
ﷺ ، قَالَ : قَالَ رَسُول الله ﷺ : ((أَنَا وَكَافِلُ اليَتِيمِ فِي الجَنَّةِ هَكَذا)) وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَالوُسْطَى ،
وَفَرَّجَ بَيْنَهُمَا . رواه البخاري. قال النووي : و(( كَافِلُ اليَتِيم )) : القَائِمُ بِأُمُوره .

دسهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه نه روايت دی چه رسول الله صلي الله عليه وسلم
اوفرمائيل څه اوديتيم کفالت کونکی به په جنت کي دارنګی برابر يو. او رسول الله صلي الله
عليه وسلم مسواکی او مينځنۍ ګوتی سره اشاره اوکړه او په مينځ د دواړو کي يې لږ
فراخوالی اوساته، (بخاري).

"کافل اليتيم" ديتيم دکارونو نګران او انتظام کونکی.

**لغات**: کافل: پرورش او کفالت کونکي. کفل کفلا دنصر نه کفالة دنان نفقي ذمه وار کيدل
فرج: جدا کيدل فرج فرجا دضرب نه پرانشتل.

تشريح . "انا وکافل اليتيم" يعني زه او ديتيم پرورش کونکے، په يو بل روايت کي راغلي
دي "کافل اليتيم له اوليغيره" يعني چه دا يتيم دده رشته دار وي او که غير رشته دار وي په
دواړه حالتونو کي به دا فضيلت ده ته حاصل وي

"اشاره بالسبابة والوسطي" يعني رسول الله د شهادت او مينځنۍ ګوته اشاره اوکړه په دي کي
دي خبري ته اشاره ده چه په جنت کي به زما او ديتيم دپرورش کونکي په مينځ کي دومره
نزدي علاقه وي څومره چه ددي دوه ګوتو په مينځ کي ده

دبعضي محدثينو قول دے رسول الله چه ددوه ګوتو په مينځ کي فاصله اوکړه په دي کي يې
ديته اشاره کوله چه دنبوت کومه درجه ده هغه سقاوت کولو ته نزدي ده او سخاوت کونکي
خلق دالله تعالي ډير خوښ وي

په پورتني حديث کي تمامو مسلمانانو ته ترغيب ورکولے شي چه پردے يتيم به هم دخپل يتيم پشان فالي ددي په سبب به په معاشره کي هيڅ يو يتيم داسي پاتي نشي چه دهغه څوک پالونکے نه وي په همدي وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم بهترين کور هغه ګرځولے دے په کوم کي چه يتيم وي او ښه سلوك هم ورسره کيږي ددي په مقابل کي بدترين کور هغه دے چه يتيم پکي موجود وي خو بد سلوك ورسره کيږي همدارنګي په يو بل روايت کي راغلي دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چه کوم يتيم لره پخپل کور کي اوساتي او خوراك څښاك ورته ورکړي نو الله تعالي به ده لره ضرور جنت ته داخل دي خو په دي شرط چه کومه داسي ګناه يي نه وي کړي کومه چه دمعاف کيدو لائق نه وي.

***************

## ٢٠ـ باب مَا جَاءَ فِي الْوَلِيَّيْنِ يُزَوِّجَانِ

**بيان دهغي جيني دچا چي دوه وليان وي اوهغوئ يي په جدا جدا ځاي کي په نکاح ورکوي**

١١١٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَيُّمَا امْرَأَةٍ زَوَّجَهَا وَلِيَّانِ فَهِيَ لِلأَوَّلِ مِنْهُمَا، وَمَنْ بَاعَ بَيْعًا مِنْ رَجُلَيْنِ فَهُوَ لِلأَوَّلِ مِنْهُمَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ لَا نَعْلَمُ بَيْنَهُمْ فِي ذَلِكَ اخْتِلَافًا. إِذَا زَوَّجَ أَحَدُ الوَلِيَّيْنِ قَبْلَ الآخَرِ فَنِكَاحُ الأَوَّلِ جَائِزٌ وَنِكَاحُ الآخَرِ مَفْسُوخٌ، وَإِذَا زَوَّجَا جَمِيعًا فَنِكَاحُهُمَا جَمِيعًا مَفْسُوخٌ، وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. ([1])

**ترجمه** دسمره بن جندب رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کومه ښځه چي دوه وليان جدا جدا ځايونو کي په نکاح ورکړي نو چي اول چاته ورکړي شوي وي حق به دهغه جوړيږي او کله چي يو کس يو څيز په دوه کسانو خرڅ کړي په دي صورت کي به هم دا څيز داولني اخستونکي رسيږي

امام ترمذي وائي داحديث حسن دي او داهل علمو عمل هم په دي باندي دي په دي سلسله کي مونږ ته په علماؤ کي اختلاف معلوم نه دي په دوه وليانو کي چي کله يو دبل نه مخکي کومه جينئ په نکاح ورکړي وي نو داولني نکاح به جائز وي او ددويم نکاح به باطل وي او که دواړو

[1] ـ سنن ابي داود في النکاح ٢٢ (٢٠٨٨) . سنن النسائي في البيوع ٩٦ (٤٦٨٦) . سنن ابن ماجه في التجارات ٢١ (٢١٩) .
(تحفة الأشراف: ٤٥٨٢) . مسند احمد (٥ في ٨ . ١١) . سنن الدارمي في النکاح ١٥ (٢٢٢٩)

په يوځاي او په يو مجلس كي جداجدا كسانوته وركړي وي نو ددواړو نكاح به باطل وي او همدا[1] دسفيان ثوري او احمد او اسحاق رحمهم الله قول دي

***************

## ٢١_ باب مَا جَاءَ فِي نِكَاحِ الْعَبْدِ بِغَيْرِ إِذْنِ سَيِّدِهِ

### دمالك داجازت نه بغير د نكاح كولو بيان

١١١١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ زُهَيْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ سَيِّدِهِ فَهُوَ عَاهِرٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يَصِحُّ، وَالصَّحِيحُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ جَابِرٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ نِكَاحَ الْعَبْدِ بِغَيْرِ إِذْنِ سَيِّدِهِ لَا يَجُوزُ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَغَيْرِهِمَا بِلَا اخْتِلَافٍ.[1]

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر غلام چي دمالك داجازت نه بغير نكاح اوكړي دا زناكار دي

امام ترمذي وائي دجابرحديث حسن دي بعضي راويانو داحديث په سند د عبدالله بن محمد بن عقيل عن ابن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي اودا سند درست نه دي صحيح هغه سند دي كوم چي عبدالله بن محمد بن عقيل دجابر رضي الله عنه نه نقل كړي دي، او په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي په صحابه كرامو اهل علمو كي داكثرو په دي باندي عمل دي چي دمالك داجازت نه بغير دغلام نكاح كول جائز نه دي اوهمدا دامام احمد او اسحاق وغيره قول دي او په دي كي دهيچا اختلاف نشته.

***************

[1] _ سنن ابي داود في النكاح ١٧(٢٠٧٨)، (تحفة الأشراف: ٢٢٢٦)، مسند احمد (٣ في ٣٠١، ٣٧٧، ٣٨٢)، سنن الدارمي في النكاح ٣٠(٢٢٧٩)

١١١٢ـ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأُمَوِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ سَيِّدِهِ فَهُوَ عَاهِرٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** به همدي سند سره دجابررضي الله عنه نه هم ددي يو هم معني روايت مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي هر غلام چي دمالك داجازت نه بغير نكاح اوكړي دا زناكاردي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٢٢ـ باب مَا جَاءَ فِي مُهُورِ النِّسَاءِ

### دښځو دمهرونو بيان

١١١٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ امْرَأَةً مِنْ بَنِي فَزَارَةَ تَزَوَّجَتْ عَلَى نَعْلَيْنِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرَضِيتِ مِنْ نَفْسِكِ وَمَالِكِ بِنَعْلَيْنِ؟" قَالَتْ: نَعَمْ. قَالَ: "فَأَجَازَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَنَسٍ، وَعَائِشَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي حَدْرَدٍ الأَسْلَمِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْمَهْرِ. فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: الْمَهْرُ عَلَى مَا تَرَاضَوْا عَلَيْهِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ: لاَ يَكُونُ الْمَهْرُ أَقَلَّ مِنْ رُبْعِ دِينَارٍ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْكُوفَةِ: لاَ يَكُونُ الْمَهْرُ أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ. ([2])

**ترجمه** دعامر بن ربيعه رضي الله عنه بيان دي چي دبني فزاره قبيلي يوي ښځي په يو جوړه پيزار مهر باندي نكاح اوكړله رسول الله صلي الله عليه وسلم ورنه تپوس اوكړو ايا ته په دي پ

---

[1] ـ سنن ابي داود في النكاح ١٧(٢٠٧٨)، (تحفة الأشراف: ٢٢٢٦) مسند احمد (٣في٣٠١، ٣٧٧، ٣٨٢) سنن الدارمي في النكاح ٣٠(٢٢٠٩)

[2] ـ سنن ابن ماجه في النكاح ١٧(١٨٨٨)، (تحفة الأشراف) مسند احمد (٣في ٣٣٥)

جوړه پیزار مهر باندي راضي يې؟ هغې عرض اوکړوهو زه په دي راضي يم راوي وائي چي بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دهغې نكاح برقرار پريخودله
امام ترمذي وائي دعامر بن ربيعه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعمر، ابوهريره، سهل بن سعد، ابوسعيدخدري، انس، عائشه، جابر، او ابوحدرد اسلمي رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، او داهل علمو په دي سلسله كي اختلاف دي بعضي فقهاء وائي مهر دومره پكاردي په كوم چي ښځه او خاوند دواړه راضي شي دا دسفيان ثوري، شافعي، احمد، او اسحاق رحمهم الله قول دي، مگر امام مالك وائي چي مهر ديوديناړ دڅلورمي حصي نه كمول پكارنه دي، او بعضي اهل كوفه وائي چي مهر دلسو درهمو نه كمول پكار نه دي

**تشريح** : د مهر د نومونو بيان
کاکی (رحمه الله) فرمائی چي په قرآن اوحديث كي د مهر اوه نومونه دی:
(۱) صداق.
(۲)نحلة: په قرآن كي دواړه نومونه ذكر دی: واتوا النساء صدقاتهن نحلة.
(۳) اجورت: همدارنگي داهم په قرآن كي ذكر دي، "واتوهن اجورهن"
(۴) فريضه،دا نوم هم په كلام پاك كي موجود دي، "وقد فرضتم لهن فريضة"
(۵) مهر ،ددې نوم ذكر په حديث كي دي، "فان لمسها فلها المهر بما استحل"
(۶) عليقة، نبی کريم ﷺ فرمائی، "أدوا العلايق قيل يارسول اللهﷺ ما العلايق قال ماترضی الاهلون" په حديث كي د عليقة نه مراد مهر دې.
(۷) العقر،نبی کريم ﷺ اوفرمائيل، "عقر نسائها" دلته كي د عقر نه مراد مهر دې، په دي اوه نومونوكي څلور په قرآن كي او درې په احاديثوكي ذكر دی،
دلته په دي مقام كي د يوي اختلافي مسئلي وضاحت كوو چي په وخت د عقد كي مهر مسمي كول او معين كول د نكاح دپاره شرط دي او كنه ؟
احناف فقهاء فرمائی چي نكاح صحيح كيږی، اگرچي په دې كي مهر ذكر نه وی.
دليل دادې چي نكاح عقد انضمام او عقد ازدواج ته وائی، اودا معنی زوجين سره پوره كيږی نود نكاح د صحت دپاره دمهر ذكر كول ضروری نه دی.
دويم دليل دادې چي په قرآن كي دی، "فانكحوا ما طاب لكم من النساء .إلخ"
اوس كه مونږ دمهر ذكركولو شرط اولگولو نو په نص باندې به زياتوالي لازم شی، اودا صحيح نه دې.

خو سوال دادې چي هركله مهر شرعاً واجب دې نو بغير د مهرنه بد نكاح ځنګه درست وی؟

جواب دادې چي وجوب دمهر د نكاح د صحت دپار شرط نه دې، بلكي مهر واجب شوې دې، د محل د شرافت، يعنى عظمت اوشرافت ښكاره كولو دپاره نود نكاح د صحت دپاره د مهر ذكركولوكي هيڅ ضرورت نشته.

كه څوك اعتراض اوكړی چي په دې كي څه دليل دې چي د نكاح د صحت دپاره د مهرذكركولو څه ضرورت نشته؟

جواب قرآن په دې باندې شاهد دې، فرمائيلی شوی دی:

"لا جناح عليكم ان طلقتم النساء مالم تمسوهن او تفرضوا لهن فريضة ومتعوهن علي الموسع قدره وعلي المقتر قدره"

هيڅ ګناه نشته، په تاسو، كه طلاق وركړئ تاسو ښځو ته، هغه وخت چي لاس هم نه وی لګولې تاسو په هغوئ،او مهر هم نه وی مقرركړې،او دوی ته خرچي وركوئ په مالداره باندې دده د وس مطابق،او په غريب باندې دده د وس مطابق"

په دې آيت كي بغيرد تسميه(مهرمقرر كولو)نه د صحت طلاق حكم لګولې شوې دې، او طلاق كيږی په صحيح نكاح كي نو معلومه شوه چي د مهرذكر پريخودل،د نكاح د صحت د پاره مانع نه دې، فرمائی چي دغه شان به نكاح هغه وخت هم درست وی چي كله د مهرنه كيدلوشرط اولګولې شی.

مګر امام مالك (رحمه الله) فرمائی چي د مهرد نفی په شرط سره نكاح درست نه وی.

او دليل دا پيش كوی چي نكاح عقد معاوضه ده نو څنګه چي په بيع كښې كه د ثمن نه كيدلو شرط اولګوی نو بيع به باطل وی، دغه شان د عدم مهرشرط سره به نكاح هم درست نه وی.

مونږ جواب وركوو چي په دې باندې د ټولو اجماع ده، كه د مهر ذكر ترك كړې شی، او صراحتاً نفی اونكړې شی نو نكاح به درست وی نو دغه شان كه د مهر نفی اوكړې شی. بيا به هم صحيح وی. ځكه چي په ترك ذكر او په نفی ذكر سره حكم نه مختلف كيږی. مثلاً په بيع كي د ثمن نفی اوكړې شی، يا د ثمن ذكر ترك كړې شی. په دواړو صورتونوكي به عقد بيع باطل وی.

## د مهر مقدار

د مهر دپاره د زيات مقدار هيڅ حد نشته، البته د مهر په اقل مقدار كي اختلاف دې:

۱) د احنافو په نزد لس درهمه دی.

(۲) امام مالك (رحمه الله) فرمائی چي د مهر اقل مقدار، ربع دينار يا درې درهمه دی.
(۳) ابن شبرمه (رحمه الله) فرمائی چي کم ازکم پنځه درهمه دی.
(۴) او ابراهيم نخعی (رحمه الله) فرمائی چي د مهر اقل مقدار څلويښت درهمه دی.
(۵) اود سعيد ابن جبير (رحمه الله) په نزد کم از کم پنځوس درهمه ضروری دی.
(۶) امام شافعی (رحمه الله) فرمائی چي کوم څيز په عقد بيع کي ثمن جوړيدلې شی. هغه په عقد نکاح کي مهر هم جوړيدلې شی.
د امام شافعی (رحمه الله) دليل دادې چي مهر د ښځې حق دې، ځکه په وصول کولو او په ساقطولو کي ښځه اختيارمنده ده، معلومه شوه چي مهر د ښځې حق دې نو ددې مقدار مقرر کولو حق به هم ښځې ته وی.
زمونږ دليل د نبی کريم ﷺ حديث دې، چه، د لسو درهمو نه کم مهر نشته دې.
دويم عقلی دليل دادې چي مهر د بضع شرافت ښکاره کولو دپاره د شريعت حق دې نو دومره مقدار به مقررکولې شی چي په هغې سره د محل شرافت،او شرافت د بضع ښکاره شی. مونږ اوکتل چي نصاب د ،سرقه،لس درهمه دی نو ګويا د لسو درهمو په غلاکولو باندې لاس کټ کولې شی نو معلومه شوه چي د انسان دپاره د يو اندام يعنی د لاس کم ازکم قيمت لس درهمه دی نو هم په دې به قياس کولې شی، اوپه نکاح کي به هم د ملك بضع قيمت کم ازکم لس درهمه مقرر کولې شی.

***************

## ۲۳_ باب مِنْهُ

### دمهر متعلق يوبل باب

١١١٤_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ عِيسَى، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ الصَّائِغُ، قَالَا: أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي حَازِمِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ، فَقَالَتْ: إِنِّي وَهَبْتُ نَفْسِي لَكَ. فَقَامَتْ طَوِيلًا. فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فَزَوِّجْنِيهَا إِنْ لَمْ تَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ. فَقَالَ: "هَلْ عِنْدَكَ مِنْ شَيْءٍ تُصْدِقُهَا؟" فَقَالَ: مَا عِنْدِي إِلَّا إِزَارِي هَذَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِزَارُكَ إِنْ أَعْطَيْتَهَا جَلَسْتَ، وَلَا إِزَارَ لَكَ فَالْتَمِسْ شَيْئًا". قَالَ: مَا أَجِدُ، قَالَ: "فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ". قَالَ: فَالْتَمَسَ فَلَمْ يَجِدْ شَيْئًا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْءٌ؟" قَالَ: نَعَمْ. سُورَةُ كَذَا،

وَسُورَةُ كَذَا لِسُوَرٍ سَمَّاهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ ذَهَبَ الشَّافِعِيُّ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ. فَقَالَ: إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ شَيْءٌ يُصْدِقُهَا فَتَزَوَّجَهَا عَلَى سُورَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ، فَالنِّكَاحُ جَائِزٌ وَيُعَلِّمُهَا سُورَةً مِنَ الْقُرْآنِ. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: النِّكَاحُ جَائِزٌ وَيَجْعَلُ لَهَا صَدَاقَ مِثْلِهَا. وَهُوَ قَوْلُ: أَهْلِ الْكُوفَةِ. وَأَحْمَدَ. وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** دسهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه بيان دي چي يوه ښځه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضره شوه او عرض يي اوكړو چي ما تاته خپل خان بخلي دي او بيا هغه ډيرساعته پوري ناسته وه (اورسول الله ورته هيڅ جواب ورنكړو) دي وخت كي يو كس عرض اوكړو اي دالله رسوله كه چري ستا ورته حاجت نه وي نو زما نكاح ورسره اوكړه رسول الله اوفرمائيل ايا دمهر وركولو دپاره تاسره څه شته؟ هغه عرض اوكړو ماسره ددي يو لنگ نه علاوه نور هيڅ نشته رسول الله اوفرمائيل كه چري ته خپل لنگ ديته په مهر كي وركړي نو ته به پخپله بربنډ پاتي شي او بيا به كوم بل څيز دخان دپاره لټوي هغه عرض اوكړو ماسره خو نور هيڅ نشته دي رسول الله ورته اوفرمائيل لټون اوكړه كه داوسپني گوتمه ولي نه وي خو ضرور يي پيداكړه هغه تلاش اوكړو ليكن هيڅ يي پيدا نكړل، رسول الله ورته اوفرمائيل ايا قران درته ياد دي هغه اووئيل فلاني فلاني سورتونه مي ياد دي او بيا يي ديو څو سورتونو نومونه واخستل رسول الله اوفرمائيل ما ستا نكاح ددي ښځي سره دهغه سورتونو په بدل كي اوكړه كوم چي تاته ياد دي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او امام شافعي ددينه استدلال كړي دي او دا قول يي كړي دي كه دچا سره په مهر كي دوركولو دپاره هيڅ نه وي او هغه دقران كوم سورت لره مهر اوگرځوي او دكومي ښځي سره نكاح اوكړي نو نكاح يي درسته ده او دي به هغي ته دقران دا سورة ښايي. بعضي اهل علم وائي نكاح به يي جائز نه وي مگرهله به جائز وي چي ديته مهر مثل وركړي او داداهل كوفه او احمد او اسحاق رحمهم الله قول دي

---

1. صحيح البخاري في الوكالة ۹ (۲۳۱۰) والنكاح ۴۰ (۵۱۳۵) والتوحيد ۲۱، ۲۱-۴۰ سنن ابي داود في النكاح ۳۱ (۲۱۱۱) و النسائي في النكاح ۶۹ (۳۳۶۱) . (تحفة الأشراف . ۴۷۴۲) . موطا امام مالك في النكاح ۳ (۸) مسند احمد (۵ في ۳۳۶) وأخرجه صحيح البخاري في فضائل القرآن ۲۱ (۵۰۲۹) . والنكاح ۱۳ (۵۰۸۷) و ۳۲ (۵۱۲۱) . و۳۵ (۵۱۲۶) . و۳۷ (۵۱۳۲) و ۴۴ (۵۱۴۱) و۵۰ (۵۱۴۹) . و۵۱ (۵۱۵۰) . واللباس ۴۹ (۵۸۷۱) . ومسلم في النكاح ۱۳ (۱۴۲۵) والنسائي في النكاح ۱ (۳۲۰۲) و۴۱ (۳۲۸۲) . و۶۲ (۳۳۴۱) وابن ماجه في النكاح ۱۷ (۱۸۸۹) . سنن الدارمي في النكاح ۱۹ (۲۲۴۷)

**تشريح** : د ماقبل مسئلي مزيد تحقيق:

**مسئله:** كه چري دعدم مهر په شرط ئي نكاح كړي وي نود امام مالك په نزد به نكاح بلكل صحيح نه وي ځكه چي دبيع پشان نكاح هم عقد دمعاوضي دي پس لكه چي ځنګه بيع په شرط دعدم قيمت اجماعا درست نه ده نوهمدارنګي نكاح هم بغير دشرط كولو دمهر نه درست نده

احناف وايي نكاح دبيع پشان عقد دمعاوضي نه دي بلكي دمهر وجوب په حكم دشريعت دي (نكاح په حقيقت كي عقد داقرار دي اودمحض تراضي نوم دي دكومي دپاره چي شريعت مهر واجب كړي دي) ددي دپاره چي دمحل عظمت ته اشاره اوشي ، كه چري دبيع په شان عقد معاوضه وي نوبغير دذكركولو دمهر نه به نكاح صحيح نه وه لكه چي دقيمت دذكر كونه بغير چي بيع درست نه ده ، پس دمهر نه كيدو شرط به لغوه اوفاسد وي اونكاح به صحيح پاتي شي ، البته په بيع كي چونكه قيمت ركن دي نوځكه بيع بغير دذكر دقيمت يا دعدم قيمت په شرط كولو سره به درست نه وي.

**مسئله:** كه چري دنكاح په وخت كي دا شرط اولګولي شي چي خاوند به ديوكال پورې دخپلي ښځي خدمت كوي اودا پوكلن خدمت به دنكاح مهر وي نو ددي په حكم كي د فقهاؤ اختلاف دی

دامام محمد په نزد باندي به په ده باندي ديوكال دخدمت قيمت واجب وي ځكه چي دخاوند خدمت كول مهر مقررول خپلي ښځي لره دنكاح د مقتضا خلاف وي دنكاح تقاضا دخاوند ملكيت دي اوخدمت مقتضا دمملوكيت د. مګر چونكه خدمت يي مهر ګرځولي دي اومقرر شوي ځيز ادا كولو تقاضا عقددي مګر ددي د ادا كولو نه قاصر دي نوپه دي وجه به په ده باندي ددي قيمت ادا كول لازم و

، دامام صاحب او دامام ابو يوسف رحمهما الله په نزد به مهر مثل واجب وي ځكه چي منافع لره به دمال قائم مقام ګرځول په هغه وخت كي صحيح وو كله چي منافع ادا كول ممكن وو اوكله چي اداكول دمنافع دعقد دمخالفت تقاضاكوي اوددي سپارل ممكن نه دي نوپه دي بنابه منافع لره دمال قائم مقام نه شي ګرځولي او مهر مثل به واجب وي .

كه چري دنكاح په وخت يي دا شرط اولګولو چي كوم بل ازاد نوكر به ديو كال پوري ددي خدمت كوي اوهمدا به دنكاح مهر وي نونكاح به صحيح وي اودخاوند په ذمه به دخدمت قيمت اداكول اتفاقا واجب وي خوپه دي شرط چي مقرر كړي ملازم دخدمت كولو راضي نه وي ياپه خدمت كولو سره دېره‌ي سري دښځي سره تعلقات پيداكيدل لازميږي .

**مسئله**  که چرې څوك ديوې ښځې خاروې يو کال اوڅروې يادې زمکه اوکړي او بيا دې لره مهر اوګرځوي نوپه بعضي رواياتوکې راغلي دي چې داسې کول جائز نه دي داهم يو قسم دښځې خدمت کول دي

(١) احناف فقهاء وايي په صحيح رواياتوکې ددې جواز وارد دې ځکه چې دا دښځې خالص خدمت نه دې په عام طور سره ښځه او خاوند په شريکه دمالي امورو نګراني کولې شي اوددې تائيد دموسي عليه السلام اودشعيب عليه السلام دقصې نه کيږي اوزمونږ په شريعت کې ددې په خلاف کوم حکم راغلي نه دي

(٢) امام احمد او ابن ماجه دعتبه بن منذررضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چې مونږ درسول کريم صلي الله عليه وسلم خواته حاضر وو چې د" طسم " تلاوت يې اوکړو کله چې دموسي عليه السلام قيصې ته اورسيدو نو ويې فرمائيل چې موسي عليه السلام دځپل شرمګاه دپاك ساتلو (يعني دشعيب عليه السلام دلور سره نکاح کول) اودخپلې خيټې دروټې په شرط باندې اته يالس کاله ځپل ځان دشعيب عليه الصلاة السلام نوکر کړو

داقصه په دليل کې په هغه وخت کې پيش کيدې شي کله چې هغه چيلې دکومو څرولو چې موسي عليه السلام وعده کړې وه دشعيب عليه الصلاة السلام دلور ملکيت ثابت شي مګر ظاهرا داسې نه ده (بلکې دقيصې نه معلوميږي چې ددې ګډو مالك شعيب عليه السلام وو . يادلور دمهر په عوض کې پخپله دچيلو څرولو خدمت دموسي عليه السلام نه ځنګه اخستلې شو) .

که چرې دقران دکوم سورت تعليم لره مهر اوګرځولې شي(١) نودامام شافعي اودامام مالك په نزد جائز دي اوپه يو روايت کې دامام احمد هم دا قول دې (٢) ، امام ابو حنيفه رحمة الله عليهما اوپه صحيح روايت کې (٣)دامام احمد په نزد باندې هم ناجائز دي او مهر مثل ورکول واجب دي ددې اختلاف بنياد په يوې بلې اختلافي مسئلې باندې دې سوال دا دې چې حج، اذان ، تعليم دقران اونورو عبادتونو باندې اجرت اخستل جائز دي اوکه نه؟

څوك چې دا جائز ګڼړي هغوئ تعليم قران لره دمهر دګرځولو دجواز هم قائل دي ځکه چې ددې عباداتو اجرت (قيمت) کيدې شي نوبيا دا يو قسم مال ګڼړل کيدل ممکن کيږي اوڅوك چې په دې عباداتوباندې اجرت لره ناجائز ګڼړي نوهغوئ تعليم لره دمهر ګرځولو نه هم مخالف دي دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه دقول دثابتولو دپاره دوه طريقې اختيار شوې دي ، عموما په عبادت اجرت اخستل جائز نه دي ، په خصوصيت سره تعليم مهر نشي ګرځيدلې ، اولنې قول د يوڅو احاديثو نه ثابت دي دعباده بن الصامت رضي الله عنه بيان دې چې ماپه اصحاب صفه کې يوڅو کسانو ته ليکل وخودل اوقران کريم تعليم مې ورته ورکړو نوپه دوئ کې يو کس ماته يوه لينده په تحفه کې راکړه ما دا ګمان وکړو چې په جهاد کې به ورباندې غشې ولم نو

درسول الله نه ئي تپوس هم وكړو رسول كريم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل كه چرې داور طوق اغوستل دي خوښ وي نو قبوله ئي كړه (رواه احمد وابوداود).
كه چرې مونږ په نورو عباداتو باندي اجرت اخستل جائز تسليم كړو نوبياهم په قران باندي اجرت اخستل نشي جائز كيدي ځكه چي داجاري په شرائطو كي يوشرط داهم دي چي كار دي معلوم وي اووخت دعمل هم معلوم وي اوتعليم كله په لږ عمل سره مكمل كيږي اوكله په ډېر سره ، اوبياتعليم دمتعلم په استعداد اوصلاحيت پوري موقوف دي اودصلاحيت دتخليق نه معلم قاصر دي كله چي په قران باندي اجرت اخستل جائز نه دي نو دي منلو ته به ضرورت پيښ شي چي شريعت ددي كوم مالي قيمت نه دي تسليم كړي اوتعليم قران ئي داموالو په فهرست كي نه دي شامل كړي لهذا دي مهر نشي ګرځولي ځكه چي طلب دنساء دمال په عوض كي ضروري دي ، پاتي شو حديث دسهل بن سعد نو دا خبر واحد دي دقران دصراحت (ان تبتغوا باموالكم) سره معارض دي ، لهذا دقران په مقابله په دي باندي عمل كول ممكن ندي.

## دسهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه حالات:

نوم سهل كنيه ابو العباس ، ابو مالك، ابو يحيي، دهجرت نبوي نه پنځه كاله مخكي پيدا شوي وه پلار ورنه هزن نوم ايخودلى وو ليكن رسول الله صلي الله عليه وسلمورباندي نوم بدل كړو او سهل نوم يي ورباندي كيخودو، دده پلارغزوه بدر ته دتلو اراده كړي وه ليكن دتلو نه مخكي وفات شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دتمامو مجاهدينو پشان دده دپاره هم حصه مقرره كړه سهل داكابرو صحابه كرامو دوفات كيدو نه پس دخلقو مرجع اوګرځيدو دلري لري علاقو خلق به دده د درس حلقي ته راتلل سهل يو خل دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دپاره دمديني دمشهور كوهي بير بضاعه نه دځكلو دپاره اوبه هم راويستلي وي (مسند احمد).
وفات: دهجرت په ۹۱كي دشپږ نوي كالو په عمر كي وفات شو او دده دمروياتو شمير ۱۸۸دى چي ۲۸متفق عليه دي.

***************

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي الْعَجْفَاءِ السُّلَمِيِّ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: أَلَا لَا تُغَالُوا صَدُقَةَ النِّسَاءِ، فَإِنَّهَا لَوْ كَانَتْ مَكْرُمَةً فِي الدُّنْيَا أَوْ تَقْوَى عِنْدَ اللهِ، لَكَانَ أَوْلَاكُمْ بِهَا نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "مَا عَلِمْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَكَحَ شَيْئًا مِنْ نِسَائِهِ وَلَا أَنْكَحَ شَيْئًا مِنْ بَنَاتِهِ عَلَى أَكْثَرَ مِنْ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ أُوقِيَّةً". قَالَ أَبُو

عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو الْعَجْفَاءِ السُّلَمِيُّ اسْمُهُ: هَرِمٌ، وَالأُوقِيَّةُ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا، وَثِنْتَا عَشْرَةَ أُوقِيَّةً أَرْبَعُ مِائَةٍ وَثَمَانُونَ دِرْهَمًا. (١)

**ترجمه** دابو العجفاء سلمي نه روايت دي فرمائي چي اميرالمؤمنين عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل خبردار دښځو سره په مهرونو كي تګي مه كوئ خكه چي ديته په دنيا كي عزت وركړي شوي دي او په دي كي دالله نه اووريږئ او كه دا كار جائز وي نو ستاسو نه به مخكي دالله رسول كړي وي ماته درسول الله صلي الله عليه وسلم په باره كي معلوم نه دي چي پخپلو ښځو كي يي دچا سره نكاح كړي وي او يايي پخپلو لونړو كي كومه يوه چاته په نكاح وركړي وي د دوه سوه اوقيو زرو نه په زيات مهر باندي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او د ابو الجعفاء نوم هرم دي او داوقيه مقدار داهل علمو په نزد څلويښت درهمه دي او ددولس اوقيو نه څلور سوه اتيا درهمه جوړيږي

**تشريح** : مهر كم ازكم څومره وي ددي متعلق په علماؤ كي اختلاف دي ؟ امام شافعي او امام احمد په نزد باندي مهر كم از كم څه حد نشته هريوخيز چي په هر څومره مقدار كي وي داسي مقدار چي په بيع كي قيمت جوړيدي شي نو دغه په نكاح كي مهر هم كيدي شي خكه چي ايت ، ان تبتغوا باموالكم، مطلق دي (په دي كي دمهر كوم خاص حد نه دكثرت په جانب كي مقرر دي اونه دقلت په جانب كي)

امام ابوحنيفه او امام مالك فرمائيلي دي دمهر كم ازكم مقدار شرعا مقرر دي په څومره مقدار غلا چي دغل لاس كټ كولي شي هم دومره مقدار دمهر كمه اندازه ده ، دامام ابوحنيفه په نزد دا مقدار يودرهم يالس ديناره دي اودمام مالك په نزد پاو د دينار يا دري درهمه دي ، په جانب قلت كي دمقدار مقرركيدو دليل دالله تعالي داقول

قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِي أَزْوَاجِهِمْ .دي ، فرض په معني داندازي مقررولو دي ددي ايت نه دوه خبري معلومي شوي يوشرعاد مهر مقدار معلوم شو لهذا څوك چي دمهركم مقدار معين نه ګڼري هغه دايت مفهوم باطل ګڼري دويم دمهر دمقدار تعين كونكي پخپله الله تعالي دي څوك چي دمهر دتعين حد بنده ته سپاري نوهغه دفرضنا په ضمير باندي عمل نه كوي ، ددي په جواب كي مونږ وايو چي دا ايت دمهر متعلق نه دي بلكي دښځو دنفقي متعلق دي خكه چي پوره ايت داسي دي: قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِي أَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ ، اوس كه

[1] ـ ابي داود في النكاح ٢٩ (٢١٠٦) . و النسائي في النكاح ٦٦ (٣٣٥١) . سنن ابن ماجه في النكاح ١٧ (١٨٨٧) (تحفة الأشراف : ١٠٦٥٥) . مسند احمد (١/ ٤١، ٤٨) . سنن الدارمي في النكاح ١٨ (٢٢٤٦)

چري په ايت كي مهر متعين كيدل مراد كړي شي نودوينځو دپاره مهر مقررول هم لازم شول اوحال دادي چي ددي هيڅوك قائل ندي.
امام شافعي دخپل مسلك په تائيد كي يوڅو احاديث پيش كوي يوروايت دهغوئ نه روايت دسهل بن سعد دي چي رسول كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي وو دڅه څيز تلاش وكړه اګركه داوسپني ګوته وي اوداحديث صحيح دي
دويم حديث روايت دعامر بن ربيعه دي چي ديوي ښځي ديوجوړ پيزار په بدل كي يي نكاح كړي وه رسول كريم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ته په خوشحالئ سره په دي باندي راضي ئي هغي ووئيل هو نورسول كريم صلي الله عليه وسلم ورته اجازت وركړو، داحديث دترمذي په نزد صحيح دي مګر ابن جوزي وئيلي دي چي صحيح نه دي ددي په سند كي يو راوي عاصم بن عبيدالله دي دچاتضعيف چي يحىٰ بن معين كړي دي اوابن حبان ده لره فاحش خطاء كار اومتروك ګرځولي دي.
دريم روايت دجابر بن عبدالله دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي : چاچي په مهركي ښځي ته يوډك موټي خوراكي څيز وركړو نودغه ښځه دده دپاره حلاله شوه ، كه چري چا دنكاح په باره كي يوموټي وره ياغله يا ستوان وركړل نوده دغه ښځه دځان دپاره حلاله كړه(رواه الدارقطني) دابوداود په روايت كي يوه ډكه لپه ستوان ياكهجوري راغلي دي.
ددي حديث په تمامو سندونو كي يو راوي صالح بن مسلم بن رمان دي اويحي ده لره ضعيف ګنړلي دي ، په بعضي سندونوكي په ځاي دصالح بن مسلم باندي موسي بن مسلم راغلي دي اوهغه مجهول دي.
دارقطني دعبدالله بن مومل نه په روايت دابو الزبير سره دجابر رضي الله عنه نه دا الفاظ نقل كړي دي چي مونږ به په يوه لپه اودوه لپوباندي دښځو سره نكاح ګاني كولي ، امام احمد وئيلي دي دابن مومل احاديث منكر دي او يحىٰ وائي چي ضعيف دي.
په يويل حديث كي دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دپيغلو سره نكاح كوئ او علائق اداكوئ عرض وكړي شو چي علائق څه شي دي وئي فرمائيل په څه باندي ددواړو طرفو سرپرستان راضي شي اګركه دكيكر يوه لخته وي. داحديث دارقطني داسماعيل بن عياش په سند سره بيان كړي دي اوده لره علماؤ ضعيف ګنړلي دي ابن حبان وئيلي دي قابل داحتجاج نه دي شعبه وئيلي دي كه چري دي راشي اوزما څټ ووهي دا ماته ددينه خوښه ده چي داسي راته ووائي چي زمانه احاديث بيان كړه،سعدي وائي چي سخت دروغژن اوكذاب وو
دارقطني اوبيهقي همدا حديث دمحمد بن عبد الرحمن سلماني نه عن ابيه عن ابن عباس يا ابن عمر په سند سره بيان كړي، مؤخر الذكر لره دارقطني اوطبراني نقل كړي دي يحىٰ بن

معين وئيلي دي محمد بن عبد الرحمٰن ليس بشئ دي ابن حبان وئيلي دي چي ده به دخپل پلار نه روايات ليکل او مشتبه به ئي بيانول اوټول موضوعي دي. بيهقي دا حديث په يوسند سره دعمر رضي الله عنه په روايت سره بيان کړي دي ليکن ددي سند هم ضعيف دي ابوداود دعبد الملك بن مغيره طائفي په واسطي سره دعبد الرحمٰن سلماني داحديث مرسلا په مراسيلو کي بيان کړي دي ، عبد الحق وئيلي دي چي داحديث په نورو طريقو سره زيات صحيح دي اوبيهقي ديحي بن عبد الرحمٰن اوهغه دخپل پلار نه اودهغه دده دنيکه نه نقل کړي دي چي چا په يو درهم(مهر)باندي ښځه دځان دپاره حلاله کړه نوهغه دده دپاره حلاله شوه. دابن شاهين دروايت الفاظ دادي: چي دوه درهمه يا ددوه درهمو نه په زيات باندي حلاله کړه

امام ابوحنيفه رحمة الله عليه دخپل مسلك دپاره دجابر رضي الله عنه دحديث نه استدلال کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي. ښه واورئ چي ښځو لره دهغوئ اولياء (سرپرست) په نکاح ورکوي اوصرف دکفو سره دي ددوئ نکاح وکړي شي اومهر دي دلسو درهمو نه کم نه وي(رواه البيهقي والدارقطني)

بيهقي ليکلي دي چي دا حديث په مختلفو طريقو سره راغلي دي ليکن ددي تمامو طريقو مدار په مبشر بن عبيد سره دي دچا متعلق چي امام احمد بن حنبل ليس بشئ وئيلي دي، دده احاديث موضوعي دي اوداحديث ئي په دروغه دځان نه جوړ کړي دي دارقطني وئيلي دي چي دده به دروغ وئيل ، ابن حبان وئيلي دي دموضوعي رواياتو نسبت به ئي ثقاتو راويانو ته کولو ، ابن همام وئيلي دي داحديث اګرکه ضعيف دي خوشاهد ئي شته کوم چي دده تائيد کوي اودکوم روايت چي موقوفاً دعلي رضي الله عنه نه راغلي دي چي دلسو درهمونه کمه غلا باندي قطع ديد نشته اومهر به دلسو درهمونه کم نه وي.

امام محمد وئيلي دي چي مونږ ته دعلي، ابن عمر، عامر، اوابراهيم نخعي قول رار سيدلي دي، (په کومو کي چي دلسو درهمو تعين دي)اوپه شرح طحاوي کي دجابر رضي الله عنه په سند سره دا درسول الله قول ګنړلي شوي دي مګردعلي رضي الله عنه داثر کيدو سند کي يوراوي داود ازدي دی چاچي داقول په روايت دشعبي سره دعلي رضي الله عنه نه بيان کړي دي يحيٰ بن معين وئيلي دي چي دداود حديث هيڅ شي ندي، ابن حبان وئيلي دي داود درجعت قائل وو، اوبيا دشعبي سماع دعلي رضي الله عنه نه ده ثابته ، اوپه بعضي سندونو کي ئي غياث بن ابراهيم راغلي دي چاره چي امام احمد اوبخاري اودارقطني متروك ګرځولي دي اويحي کذاب ګنړلي دي او ابن حبان وئيلي دي خان نه به ئي احاديث جوړول.

دعلي رضي الله عنه نه يوبل قول مروي دي چي دپنځه درهمو نه کم مهر نشته ددي په سند کي يوبل راوي حسن بن دينار دي دده متعلق امام احمد وئيلي دي چي ده به احاديث نه ليکل اويحي وئيلي دي غير معتبر دي او ابوحاتم ورته دکذاب نسبت کړي دي

زه وايم چي ددي تفصيل نه ظاهره شوه چي دلسو درهمو دتعين دپاره هيڅ صحيح حديث نشته بلکي ددي په خلاف کي دسهل بن سعد حديث دي اوبالفرض که چري دمهرپه تعين کي کوم حديث صحيح هم شي په هغي سره په کتاب الله زيادت جائز نه دي ، دکتاب تصريح مطلقه ده که چري دا توجيه وکړي شي چي شريعت دتمتع دشرف اوعظمت داظهار دپاره دمهر قانون جاري کړي دي نوپه دي وجه هغه ځيز مهر نشي ګرځيدلي دکوم چي څه قيمت نه وي لکه دغنم يوه دانه يا دوړوړ يوبوټي په دي کي دتمتع دعظمت اظهار نشته. لهذا کوم کم ازکم دمقدارتعين دشريعت دطرف نه کيدل پکار دي ، مونږ وايو چي داخودساخته توجيه ده په کومي سره چي دکتاب مطلق حکم باطليږي نوځکه واجب الرد ده.

والله اعلم وعنده حسن الثواب واليه المرجع والمآب.

***************

## ٢٤ـ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَعْتِقُ الأَمَةَ ثُمَّ يَتَزَوَّجُهَا

### وينځي لره ازادول اودهغي سره د نکاح کولو بيان

١١١٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، " أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْتَقَ صَفِيَّةَ وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ صَفِيَّةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَكَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يُجْعَلَ عِتْقُهَا صَدَاقَهَا، حَتَّى يَجْعَلَ لَهَا مَهْرًا سِوَى الْعِتْقِ، وَالْقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ.[1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم صفيه رضي الله عنها ازاده کړه او دهغي ازادي يي دهغي مهر مقرر کړو.

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دصفيه رضي الله عنها نه هم حديث وارد دي دصحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو په دي باندي عمل دي او همدا

[1] ـ صحيح مسلم في النكاح ١٤ (١٣٦٥) . سنن ابي داود في النكاح ٦ (٢٠٥٤) . سنن النسائي في النكاح ٦٤ (٣٣٤٤) . سنن الدارمي في النكاح ٤٥ (٢٢٤٨) . (تحفة الأشراف : ١٠٦٤ و ١٣٤٩) وأخرجه صحيح البخاري في الصلاة ١٢ (٣٧١) . وصلاة الخوف ٦ (٩٤٧) . والجهاد والمغازي ٣٨ (٤٢٠٠) . والنكاح ١٣ (٥٠٨٦) و٦٨ (٥١٦٩) . صحيح مسلم في النكاح سنن ابن ماجه في النكاح ٤٢ (١٩٥٧) . مسند احمد (٣ في ٩٩ . ١٣٨ . ١٦٥ . ١٧٠ . ١٨١ . ١٨٦ . ٢٠٣ . ٢٣٩ . ٢٤٢)

دشافعي او اسحاق او احمد رحمهم الله قول هم دي، مګر بعضي اهل علمو د وينځي ازادولو لره مهر مقررول مکروه ګڼړلي دي تردي پوري چي ددي دازادئ نه علاوه به کوم بل څيز په مهر کي ورکوي ليکن اولني قول زيات صحيح دي

## په دي شرط د وينځي ازادولو بيان چي ستا ازادي به ستا مهر وي

که چري چا وينځه ازاده کړه اوددي ازادول ني ددي مهر وګرځولو ، اوياني داسي وونيل چي تا په دي شرط سره ازادوم چي نکاح راسره وکړي اودا ازادول به خپل مهر تسليم کړي نودا ازاديدل بالاجماع صحيح دي .

امام احمد وائي که چري داسي ني ددوه ګواهانو په وړاندي وونيل نونکاح به هم صحيح وي دصفيه رضي الله عنها دنکاح قصه ددي تائيد کوي.

په بل روايت کي دامام احمد قول دجمهورو دقول موافق دي دجمهورو قول دادي چي ازادي خوبه واقع شي مګربنځي ته په نکاح قبلولو کي اختيار دي چي نکاح په شرط دعتق وکړي اوکه نه نوکه وئي کړله نوددي دپاره به مهرمثل وي .

دامام ابويوسف اوسفيان ثوري رحمهما الله قول دجمهورو دقول خلاف دي دوئ دواړه ښځي ته داختيارورکولو قائل ندي؛ يوخو دصفيه رضي الله عنها دنکاح قصه ددي تائيد کوي ، دويم دجويريه رضي الله عنها واقعه هم ددي دپاره مونيده ده ، کله چي هغه دبني المصطلق په قيديانو کي ګرفتار کړي شوي راوستلي شوه اودثابت بن قيس اودخپل يوتره په حصه کي راغله نوثابت دي لره مکاتبه کړه نوجويريه درسول کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضره شوه اودمکاتبت دزرو دپاره ني درخواست وکړو نو ورته ني اوفرمائيل دمکاتبت زر به زه ستا دطرف نه اداکړم مګرپه دي شرط چي ته به زما سره نکاح کوي ، جويريه رضي الله عنها وونيل خوښه مي ده نو رسول کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بيا ما داسي وکړل (يعني نکاح) رواه احمد وابوداود من حديث عائشه رضي الله عنها

مونږ وايو چي دانکاح بغير دمهرنه وه ځکه هيڅاته دخپل خان ملکيت حاصل نه وي(چي کله ني خوښه وي خپل خان دي خرڅ کړي) لهذا ددي نکاح حکم دبلامهر نکاح دي اومهر مثل به واجب وي، پاتي شوحديث نوهغه ناقابل استدلال دي ځکه چي بغير دمهر مثل نه نکاح بغير دمهر نه درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره خاص وو الله تعالي فرمائيلي دي

وَامْرَأَةً مُّؤْمِنَةً إِنْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ أَنْ يَسْتَنْكِحَهَا خَالِصَةً لَكَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ.

امام ابوحنيفه اوصاحبين او امام شافعي وايي که چري وينځه په مذکوره صورت کي دنکاح نه انکار اوکړي نودمزدوری په کولوسره دخپل قيمت په اندازه مال ازادونکي ته ورکول په دي باندي لازم دي .

او امام مالك او امام زفر رحمهما الله ونيلي دي چي په وينځه باندي قيمت ادا كول لازمي نه دي ، داولني قول وجه دا ده چي مالك ازادولولره مهر گرځولي دي او وينځي دنكاح نه انكار كړي دي نوپه دي وجه باندي ازاديدل بغير دعوضهٔ پاتي شول او مالك په دي باندي راضي نه دي لهذا په كوشش كولوسره به په دي باندي خپل قيمت اداكول لازمي وي لكه چاچي په دي شرط سره ازادول كړي وي چي ازاد شوي غلام به يو كال خدمت كوي اود ازادولو نه پس مالك مړ شي (اوغلام ته دخدمت كولو موقعه پاتي نه شي.

دامام ابو حنيفه او ابويوسف په نزد باندي په غلام لازم دي چي هغه خپل قيمت دمالك وارثانوته ادا كړي )

اودامام محمد په نزد باندي دخدمت دمعاوضي برابر قيمت به ادا كوي ، دامام مالك او زفر دقول دليل دا دي كله چي ازادول مهر نه شي گرځيدلي نودا ازادي بغير دعوض نه شوه لهذا وينځه كه چري دنكاح نه انكار اوكړي نه په دي باندي خپل قيمت ادا كول لازمي نه دي لكه چي په دي صورت كي درباندي قيمت ادا كول نه دي كله چي هغه دنكاح اقرار اوكړي.

(بهرحال اقرار وي اوكه انكار په هر صورت كي به ازادي بغيرد قيمت نه وي) اوهمدا قول زيات ظاهر دي (تفسير مظهري).

***************

## ٢٥ــ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْفَضْلِ فِي ذَلِكَ

### دوينځي دازادولو اوبيا دهغي سره د نكاح كولو دفضيلت بيان

١١١٦ــ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ثَلَاثَةٌ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُمْ مَرَّتَيْنِ: عَبْدٌ أَدَّى حَقَّ اللَّهِ وَحَقَّ مَوَالِيهِ فَذَاكَ يُؤْتَى أَجْرَهُ مَرَّتَيْنِ، وَرَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهُ جَارِيَةٌ وَضِيئَةٌ فَأَدَّبَهَا فَأَحْسَنَ أَدَبَهَا ثُمَّ أَعْتَقَهَا ثُمَّ تَزَوَّجَهَا يَبْتَغِي بِذَلِكَ وَجْهَ اللَّهِ فَذَلِكَ يُؤْتَى أَجْرَهُ مَرَّتَيْنِ، وَرَجُلٌ آمَنَ بِالْكِتَابِ الْأَوَّلِ ثُمَّ جَاءَ الْكِتَابُ الْآخَرُ فَآمَنَ بِهِ فَذَلِكَ يُؤْتَى أَجْرَهُ مَرَّتَيْنِ ". حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ صَالِحِ بْنِ صَالِحٍ وَهُوَ ابْنُ حَيٍّ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي مُوسَى حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو بُرْدَةَ بْنُ أَبِي مُوسَى اسْمُهُ: عَامِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسٍ، وَرَوَى شُعْبَةُ، وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ هَذَا

الحَدِيثَ، عَنْ صَالِحِ بْنِ صَالِحِ بْنِ حَيٍّ، وَصَالِحُ بْنُ صَالِحِ بْنِ حَيٍّ هُوَ: وَالِدُ الحَسَنِ بْنِ صَالِحِ بْنِ حَيٍّ.

([1])

**ترجمه** دابو موسي عبدالله بن قيس اشعري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دري قسمه خلق داسي دي چاته چي به ډبل اجر ملاويږي يو هغه غلام دي څوك چي دالله تعالي حق اداء كوي اود الله تعالي حق هم ادا كړي، ده ته به دوچند اجر ملاويږي، دويم هغه كس دي دچا په ملكيت كي چي ښكلي وينځه وي او هغه ددي تربيت اوكړي او ښه تربيت ورته وركړي او بيا دي لره ازاده كړي او بيا ورسره نكاح اوكړي او داټول كارونه دالله تعالي درضادپاره اوكړي نو ده ته به دوچنده اجر ملاويږي، دريم هغه كس دي دچا چي په سابقه كتاب (تورات او انجيل) باندي ايمان وي او بيا چي كله وروستي كتاب (قران) نازل شو نو په دي باندي يي هم ايمان راوړو دده دپاره به هم دوچند اجر وي.

امام ترمذي وائي دابو موسي اشعري رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي

***************

## ٢٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَتَزَوَّجُ الْمَرْأَةَ ثُمَّ يُطَلِّقُهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا هَلْ يَتَزَوَّجُ ابْنَتَهَا أَمْ لاَ

### څوك چي دخپلي كومي ښځي سره نكاح اوكړي او بيا ورته ددخول نه مخكي طلاق وركړي نو ايا بيا دهغي ښځي دلور سره نكاح كولي شي؟

١١١٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَيُّمَا رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةً، فَدَخَلَ بِهَا فَلاَ يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُ ابْنَتِهَا، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ دَخَلَ بِهَا فَلْيَنْكِحْ ابْنَتَهَا، وَأَيُّمَا رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةً فَدَخَلَ بِهَا أَوْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا فَلاَ يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُ أُمِّهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لاَ يَصِحُّ مِنْ قِبَلِ إِسْنَادِهِ، وَإِنَّمَا رَوَاهُ ابْنُ لَهِيعَةَ، وَالْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، وَالْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ، وَابْنُ لَهِيعَةَ يضعفان في الحديث، والعمل على هذا عند أكثر أهل العلم، قَالُوا: إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ امْرَأَةً ثُمَّ طَلَّقَهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا حَلَّ لَهُ أَنْ يَنْكِحَ

---

[1] ـ صحيح البخاري في العلم ٣١ (٩٧)، والجهاد ١٣ (٣٠١١)، و أحاديث الأنبياء ٤٧ (٣٤٤٦)، والنكاح ١٣ (١٣) (٥٠٨٣)، صحيح مسلم في الإيمان ٧٠ (١٥٤)، سنن النسائي في النكاح ٦٥ (٣٣٤٦)، سنن ابن ماجه في النكاح ٤٢ (١٩٥٦)، (تحفة الأشراف: ٩١٠٧)، مسند احمد (٤ في ٣٩٥، ٤١٤)، سنن الدارمي في النكاح ٤٦ (٢٢٩٠)

ابْنَتَهَا، وَإِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ الابْنَةَ فَطَلَّقَهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا لَمْ يَحِلَّ لَهُ نِكَاحُ أُمِّهَا، لِقَوْلِ اللهِ تَعَالَى: وَأُمَّهَاتُ نِسَائِكُمْ (النساء) وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** . دابن عمررضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرما ئيلي دي چاچي دكومي ښځي سره نكاح اوكړه او هغي سره يي دخول اوكړو نو دده دپاره دهغي ښځي دلور سره نكاح كول جائز نه دي او كه دخول يي ورسره نه وي كړي نو بيا ددي دلور سره نكاح كولي شي، او چاچي دكومي ښځي سره نكاح اوكړه نو كه دي سره يي دخول كړي وي او كنه وي خو ددي دمور سره به يي نكاح كول جائز نه وي.

امام ترمذي وائي دا حديث دسند په اعتبار صحيح نه دي دا روايت صرف ابن لهيعه او مثني بن صالح دعمرو بن شعيب نه نقل كړي دي او مثني بن صالح او ابن لهيعه دحديث په سلسله كي ضعيف دي، او دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي دوئ وائي كله چي څوك دكومي ښځي دمور سره نكاح اوكړي او بيا ورته د دخول نه مخكي طلاق وركړي نو دده دپاره ددي ښځي دلور سره نكاح كول جائز دي او كله چي څوك دكومي ښځي دلور سره نكاح اوكړي او بيا ورته د دخول نه مخكي طلاق وركړي نو ددي دمور سره يي نكاح جائز نه ده څكه چي ارشاد الهي دي "وامهات نسائكم" (النساء ٢٣) او همدا دامام شافعي اواحمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي.

***************

## ٢٧ـ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يُطَلِّقُ امْرَأَتَهُ ثَلاَثًا فَيَتَزَوَّجُهَا آخَرُ فَيُطَلِّقُهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا

### كه څوك خپلي ښځي ته دري طلاق وركړي او ښځه بيا دبل چا سره نكاح اوكړي او د دخول نه مخكي ورته طلاق وركړي لو ددي څه حكم دي

١١١٨ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، وَإِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالاَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: جَاءَتِ امْرَأَةُ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: إِنِّي كُنْتُ عِنْدَ رِفَاعَةَ فَطَلَّقَنِي فَبَتَّ طَلاَقِي، فَتَزَوَّجْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الزَّبِيرِ وَمَا مَعَهُ إِلاَّ مِثْلُ هُدْبَةِ الثَّوْبِ. فَقَالَ: " أَتُرِيدِينَ أَنْ تَرْجِعِي إِلَى رِفَاعَةَ لاَ حَتَّى تَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ وَيَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٤٣٢)

. قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَالرُّمَيْصَاءِ، أَوْ الْغُمَيْصَاءِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا فَتَزَوَّجَتْ زَوْجًا غَيْرَهُ فَطَلَّقَهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، أَنَّهَا لَا تَحِلُّ لِلزَّوْجِ الْأَوَّلِ إِذَا لَمْ يَكُنْ جَامَعَ الزَّوْجُ الْآخَرُ. [1]

**ترجمه** عائشه رضي الله عنها فرمائي يوه ورځ درفاعه قرظي ښځه رسول الله صلي عليه وسلم ته راغله او ويې ونيل چي رفاعه ماته مغلظ (دري) طلاق راکړي دي نو عبدالرحمن بن زبير زماسره نکاح وکړه اودده سره نه وو (ذکر) مګرپشان دچيرړي اوپيسکي دځادر پشان اودخپلي لوپټي پلو ئی ونیولو رسول کريم صلي الله عليه وسلم مسکي شو اووئي فرمائيل چي ګني ته رفاعه ته واپس تلل غواړي؟ خودا دهغه وخته پوري نشي کيدي ترڅوچي ته دهغه مزه اوهغه ستا مزه ونه څکي.

امام ترمذي دعائشه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عمر، انس، رميضاء يا غميصاء، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو په دي باندي عمل دي چي يوکس کله خپلي ښځي ته دري طلاق ورکړي او بيا هغه دبل چا سره نکاح اوکړي او دويم خاوند ورته ددخول نه مخکي طلاق ورکړي نو ددي ښځي دپاره به داولني خاوند سره نکاح کول درست نه وي ترڅو پوري چي دويم خاوند ددي سره جماع نه وي کړي.

**تشريح** : د طلاق ثلاثه اود حلالي د مسئلي تفصيلي وضاحت قاضي ثناء الله د سورة بقري د ايت حتي تنكح زوجا غيره په تشريح ذکر کړی چي په لاندينو کرښو کي يي کتلی شئ
د سورت بقري د ايت حتي تنكح زوجا غيره د ظاهري معني په وجه سعيد بن المسيب او داود فرمائي چي ددويم خاوند دصحبت نه بغير دمخکني خاوند سره نکاح کول درست دي . ليکن په دي باندي اجماع منعقد شوي ده چي ددويم خاوند سره صحبت کول داولني خاوند سره ددوباره نکاح د درست کيدودپاره شرط دي اوهم ددي وجي نه بعضي اهل علمو وئيلي دي

---

[1] ـ صحيح البخاري في الشهادات ٣ (٢٦٣٩) . صحيح مسلم في النكاح ١٧ (١٤٣٣) . سنن النسائي في النكاح ٤٣ (٣٢٨٥) . والطلاق ١٢ (٣٤٤٠) . (تحفة الأشراف : ١٦٤٣٦) . مسند احمد ٦ في ٣٧) . سنن الدارمي في الطلاق ٤ (٢٣١٣) وأخرجه صحيح البخاري في الطلاق ٣ (٥٢٦) . و٧ (٥٢٦٥) . و٣٧ (٥٣١٧) واللباس ٦ (٥٧٩٢) . والأدب ٦٨ (٦٠٨٤) . صحيح مسلم في النكاح سنن النسائي في الطلاق ٩ (٣٤٣٧) . و ١٠ (٣٤٣٨)

چي په ايت کي دنکاح نه مراد صحبت ذي خکه چي په لغت کي دنکاح معني صحبت ده دي
واقعي پس منظر دادي
عائشه رضي الله عنها فرمائي چي زه او ابوبکر رضي الله عنه درسول کريم صلي الله عليه وسلم سره موجود وو چي په دي وخت کي درفاعه قرظي ښځه راغله او ويي وئيل چي رفاعه ماته مغلظ (دري) طلاق راکړي دي او عبدالرحمن بن زبير زما سره نکاح کړي وه او دده سره نه وو(ذکر)مګرپشان دچيرړي اوبيـکي دڅادر اودخپلي لوپتي پلو نې ونيولو رسول کريم صلي الله عليه وسلم مسکي شو اووئي فرمائيل چي ګني ته رفاعه ته تلل غواړي خودا دهغه وخت پوري نشي کيدي ترڅوچي ته دهغه مزه اوهغه ستا مزه ونه څکي.
دا حديث دمحدثينو يوجماعت نقل کړي دي ، اوپه صحيحينو کي مروي دي چي دا ښځه درفاعه په نکاح کي وه اوبيائي ورته دري طلاق ورکړل
په مؤطاء کي امام مالك دمسور بن رفاعه قرظي نه اوهغه دزبير بن عبد الرحمن بن زبير نه روايت بيان کړي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي رفاعه بن سموال خپلي ښځي تميمه بنت وهب ته دري طلاق ورکړي وو ، بيا دتميمي سره عبدالرحمن بن زبير رضي الله عنه نکاح وکړه ليکن هغه (دنامردئ په وجه) نه وه مسح کړي اودده نه ئي جدا والي اختيار کړو. ددينه پس ورسره رفاعه دوباره نکاح کول اوغوښتل نو رسول کريم صلي الله عليه وسلم منع کړو او وئي فرمائيل ترڅوچي عبد الرحمن ددي مزه نوي څکلي ترهغي پوري ستادپاره نه حلاليږي.
ډيرو محدثينو دعائشه رضي الله عنها حديث داسي نقل کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه تپوس وکړي شو چي يوکس خپلي ښځي ته دري طلاق ورکړي دي بيا هغي دوباره نکاح وکړله او ددويم خاوند سره ئي خلوت هم اوشو ليکن دصحبت کولو نه مخکي ئي ورته طلاق ورکړل نو اوس دابنځه دمخکني خاوند دپاره حلاله ده اوکه نه؟ نو وئي فرمائيل چي نه ترڅوچي دويم خاوند ورسره صحبت نه وي کړي لکه څنګ چي ورسره مخکني خاوند کړي دي.
ابن منذر دمقاتل بن حيان نه روايت نقل کړي دي چي حتي تنکح زوجا غيره ايت د عائشه بنت عبد الرحمن عتيك په حق کي نازل شوي دي اوهغه درفاعه بن وهب بن عتيك په نکاح کي وه اورفاعه دهغه دتره څوي وو هغه ورته بائن طلاق ورکړل اودعبد الرحمن قرظي سره ئي نکاح وشوه بيا ورته هغه هم طلاق ورکړل اوبياد ام المؤمنين عائشي په خدمت کي حاضره شوه اوعرض ئي وکړوچي ماته خاوند دصحبت کولو نه مخکي طلاق راکړي دي نو ايا اوس زه مخکني خاوند ته واپس تلي شم؟ نو ورته ئي وفرمائيل چي نه ترڅوپوري چي ده درسره صحبت

نه وي کړي اوېدغه وخت کي دا ايت: "فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنۢ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ"
"فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ أَن يَتَرَاجَعَآ" نازل شو.
علامه بغوي ذکرکړي دي چي (ددي قصي نه پس) عائشي څه موده صبر وکړو اوبيا درسول کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضره شوه اوعرض ئی وکړوچي اي دالله رسوله اوس زما خاوند (دويم) زما سره صحبت کړي دي ، رسول الله ورته اوفرمائيل چي تخپل اولني قول دروغ ثابت کړولهذا پدي دويم قول کي دي مونږ تصديق نه کوونوخاموش پاتي شوه تردي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم وفات شو ، بياد ابوبکر رضي الله عنه په خدمت کي حاضره شوه اوعرض ئی وکړوچي زما خاوند (دويم) زما سره صحبت کړي دي اوماته ئي طلاق راکړي دي ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل ته خو رسول کريم صلي الله عليه وسلم ته هم راغلي وي اوستا په باره کي چي رسول کريم صلي الله عليه وسلم څه فرمائيلي وو هغه هرچاته معلوم دي پس ته اولني خاوند ته نشي واپس کيدی ، بيا ابوبکر رضي الله عنه هم وفات شو نو عمر رضي الله عنه ته راغله اوهمدارنګي ئي هغه ته هم ووئيل عمرفاروق رضي الله عنه ورته اوفرمائيل که چري ته خپل مخکني خاوند ته واپس ورغلي نو زه به دي سنګسار کړم .
: نکاح نه عقد مراد کول ددي حديث په وجه به په کتاب الله باندي زيادت لازميږي اوپه خبر واحد سره په کتاب الله باندي زيادت کول دامام شافعي په نزد باندي جائز دي ليکن دامام ابوحنيفه په نزد باندي مشکل دي ځکه چي دده په نزد جائز ندي ، بعض علماؤ د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په مذهب کي داتوجيه کړي ده چي دا حديث مشهور دي پدي سره په کتاب الله باندي زيادت جائز دي ليکن داسي وئيل درست ندي ځکه چي داحديث داحادو دجملي نه دي، مګر دومره وئيلي شي، هر کله چي ددي حديث په موافقت باندي اجماع شوي ده اوجمهورودي لره قبول کړي دي نوپدي وجه دمشهور په حکم کي شو نوځکه پدي سره په کتاب الله باندي زيادت کول جائز شو
**مسئله** پدي مسئله دټولو اتفاق دي چي ددويم خاوند سره صحبت کول داولني خاوند دري طلاقونولره ختموي پس که چري دغه ښځه بيرته دوباره مخکني خاوند ته لاړه شي نوهغه په اجماع سره دوباره د دري طلاقو ورکولو مالك جوړيږي.
مګر په دي کي اختلاف دي چي ددري طلاقونه کم هم ختموي اوکه نه يعني که چري اولني خاوند يو يا دوه طلاقونه ورکړي وي اوددينه پس عدت هم پوره شوي وي اوبيادي سره دويم خاوند په نکاح صحيحه سره نکاح کړي وي او بيا ورته دويم خاوند هم دصحبت کولو نه پس طلاق ورکړي وي اودعدت پوره کيدو نه پس دا خپل مخکني خاوند ته لاړه شي نو اوس به

مخکني خاوند د دري طلاقو مالك جوړيږي او کنه؟، ديو يا دوه طلاقونو نه پس ددي باقي طلاقونو مالك جوړيږي ؟
دامام ابوحنيفه او امام ابو يوسف رحمهما الله قول دا دي چي ددويم خاوندسره صحبت کول د دري طلاقونونه کم طلاقونه هم ختموي اواولني خاوند د ابتداء نه د پوره دري طلاقو مالك جوړيږي
امام محمد فرماني چي د دري طلاقونه کم لره نه شي ختمولي
**مسئلهُ:** پدي کي دائمه کرامو اختلاف دي چي اولني خاوند که چري ښځه په دري طلاقو طلاقيدونه پس دبل چا سره پدي شرط سره نکاح وکړي چي ماته به طلاق راکوي اوهغه ورسره دصحبت کولونه پس طلاق ورکړل نودعدت پوره کولو نه پس
(۱) د امام ابوحنيفه په نزد باندي په نکاح صحيحه کي دصحبت کولو په وجه دابنځه دخپل ړومبني خاوند دپاره حلاله شوه اوپه شرطونوسره نکاح نه باطليږي
(۲) دامام محمد نه مروي دي چي نکاح خوبه ئي (ددويم خاوند سره)صحيح وي ليکن دړومبني خاوند دپاره حلاله نشوه ځکه چي ده په هغه معامله کي جلتي وکړه کومه چي شروع موخر کړي وه پس دخپل مقصود دنه پوره کولو دسزا په وجه به داحلاله نه وي لکه څنګه چي دمورث دقتل کولو په صورت کي وي (چي قاتل ته ميراث نه ملاويږي)
(۳) امام احمد او امام مالك او امام ابويوسف رحمهم الله دري واړو ونيلي دي چي دغه (دويمه) نکاح به صحيح بالکل نه وي .
(۴) اود امام شافعي نه پدي باره کي دوه قولونه دي صحيح قول ئي دادي چي نکاح درست نده، ځکه چي داد موقوف نکاح په حکم کي ده اوکله چي نکاح صحيح نه وي نوبيا خو دړومبني خاوند دپاره نده حلاله شوي، پدي وجه چي دحلاليدو شرط پکي ونه موندلي شواوهغه شرط صحيح نکاح ده اوددي نکاح په نه صحيح کيدو باندي ائمه کرامو دابن مسعود رضي الله عنه دحديث نه استدلال کړي دي فرمائيل ئي چي په محلل او محلل له باندي رسول الله صلي الله عليه وسلم لعنت فرمائيلي دي دا حديث دارمي نقل کړي دي اوترمذي صحيح ګڼلي دي، ابن ماجه دعلي، ابن عباس، عقبه بن عامر رضي الله عنهم نه روايت نقل کړي دي
بهر حال داحديث زمونږ دپاره دليل دي نه چي په مونږ باندي دليل دي ځکه چي رسول کريم صلي الله عليه وسلم دويم خاوند محلل ګڼلي دي پس لفظ دحلت په ثبوت باندي دلالت کوي اوپدي دنکاح صحيح کيدل لازميږي مګر دا جدا خبره ده چي ددي دويم خاوند دحرام کار په ارتکاب باندي دلالت کوي اوددي مونږ هم قائل يو پس که چري ددښځي سره چانکاح وکړه اوداشرط ني مقررهم نکړو مګرپه زړه کي ئي داخبره وه چي دي لره به طلاق ورکوم نود امام

ابوحنيفه اوصاحبينو اوشافعي په نزد باندي به نكاح صحيح وي . دامام مالك او احمد قول دادي چي اوس به هم صحيح نه وي اووددي په مكروه كيدوكي دهيڅا اختلاف نشته امام بغوي ونيلي دي چي نافع فرمائيلي دي چي يوكس ابن عمر رضي الله عنهما ته راغي اوعرض ئي وكړو چي يوسړي خپلي ښځي ته دري طلاق وركړي وو نو دده ورور بغير دتپوس كولونه دده نه ئي نكاح ددي ښځي سره وكړه ددي دپاره چي دمخكني دپاره حلاله شي ،نو ستاسو پدي باره كي څه حكم دي،نو ونې فرمائيل چي نه حلاليږي دښځي سره نكاح دخان سره دساتلو دپاره وي؛ نه چي دطلاقولو دپاره، دنبي كريم صلي الله په زمانه كي به مونږ داسي كس زناكار شميرلو ، او الله تعالي په محلل او محلل له باندي لعنت فرمائيلي دي والله اعلم بالصواب

***************

## ٢٨_ باب مَا جَاءَ فِي الْمُحِلِّ وَالْمُحَلَّلِ لَهُ

### دحلاله كونكي اودڅا دپاره چي حلاله كيږي ددوئ دپاره دوعيد بيان

١١١٩_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا أَشْعَثُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زُبَيْدٍ الأَيَامِيُّ، حَدَّثَنَا مُجَالِدٌ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالاَ: "إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ الْمُحِلَّ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ، وَجَابِرٍ حَدِيثٌ مَعْلُولٌ، وَهَكَذَا رَوَى أَشْعَثُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنْ عَامِرٍ هُوَ: الشَّعْبِيُّ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَعَامِرٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَائِمِ، لِأَنَّ مُجَالِدَ بْنَ سَعِيدٍ قَدْ ضَعَّفَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْهُمْ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَرَوَى عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَهَذَا قَدْ وَهِمَ فِيهِ ابْنُ نُمَيْرٍ، وَالْحَدِيثُ الأَوَّلُ أَصَحُّ، وَقَدْ رَوَاهُ مُغِيرَةُ، وَابْنُ أَبِي خَالِدٍ، وغير واحد، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ. [1]

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله علبه وسلم په حلاله كونكي اودڅا دپاره چي حلاله كيږي په دواړو لعنت ونيلي دي

---

[1] ـ تفرد به المؤلف سنن ابي داود في النكاح ١٦ (٢٠٧٦) . سنن ابن ماجه في النكاح ٣٣ (١٩٣٤) (تحفة الأشراف ١٠٠٣٣و٣٢٤٨) . مسند احمد (١في ٨٧)

امام ترمذي وائي دعلي او جابر رضي الله عنهما حديث معلول دي، دا رنگي ددي پشان روايت اشعث بن عبدالرحمن په سند د مجالد عن عامر هو الشعبي عن الحارث عن علي سره هم نقل کړي دي. او عامر شعبي په سند دجابر بن عبدالله عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، ددي حديث سند صحيح نه دي خکه چي مجالد بن سعيد دبعضي اهل علمو په نزد ضعيف دي او احمد بن حنبل دده تضعيف کړي دي، دارنگي عبدالله بن نمير دا حديث په سند د مجالد عن عامر عن جابر بن عبدالله عن علي رضي الله عنه سره نقل کړي دي او په دي سند کي ابن نمير ته وهم واقع شوي دي مګر ددي په نسبت اولني حديث زيات صحيح دي او دا حديث مغيره بن ابي خالد او بعضي نورو راويانو په سند د الشعبي عن الحارث عن علي سره نقل کړي دي، او په دي باب کي دابن مسعود ، ابوهريره، عقبه بن عامر، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

****************

١١٢٠ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ هُزَيْلِ بْنِ شُرَحْبِيلَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: " لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُحِلَّ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو قَيْسٍ الْأَوْدِيُّ اسْمُهُ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ ثَرْوَانَ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو وَغَيْرُهُمْ، وَهُوَ قَوْلُ: الْفُقَهَاءِ مِنَ التَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ: سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، قَالَ: وسَمِعْت الْجَارُودَ بْنَ مُعَاذٍ يَذْكُرُ، عَنْ وَكِيعٍ، أَنَّهُ قَالَ بِهَذَا، وقَالَ: يَنْبَغِي أَنْ يُرْمَى بِهَذَا الْبَابِ مِنْ قَوْلِ أَصْحَابِ الرَّأْيِ، قَالَ جَارُودٌ: قَالَ وَكِيعٌ: وَقَالَ سُفْيَانُ: إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ الْمَرْأَةَ لِيُحَلِّلَهَا ثُمَّ بَدَا لَهُ أَنْ يُمْسِكَهَا فَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يُمْسِكَهَا حَتَّى يَتَزَوَّجَهَا بِنِكَاحٍ جَدِيدٍ.[1]

[1] صحيح البخاري في المغازي ٣١ (٤٢١٦)، والنكاح ٣١ (٥١١٥)، والذبائح ٢٦ (٥٥٢٣)، والحيل ٤ (٦٩٦١) صحيح مسلم في النكاح ٣ (١٤٠٧) الصيد والذبائح ٥ (١٤٠٧) سنن النسائي في النكاح ٧١ (٣٣٦٦) والصيد ٣١ (٤٣٣٩) سنن ابن ماجه في النكاح ٤٤ (١٩٦١) موطا امام مالک في النكاح ١٨ (٤١) مسند احمد (١/٧٩) سنن الدارمي في النكاح ١٦ (٢٢٤٣) ويأتي عند المؤلف في الأطعمة ٦ (١٧٩٤)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په حلاله كونكي او دچاد پاره چي حلاله كولي شي په دواړو لعنت وئيلي دي
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي، او دا حديث درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په يو څو نورو سندونو هم مروي دي دصحابه كرامو او ددوى نه پس داهل علمو په دي باندي عمل دي چي عمر بن الخطاب ، عثمان بن عفان، او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم وغيره هم په دوى كي شامل دي او همدا په تابعينو كي دفقهاؤ قول هم دي او سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد ، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم په دي باندي قول كړي دي او وكيع دا هم وئيلي دي چي داصحاب الرائي قول غورځول پكاردي، سفيان ثوري وائي يو سړي چي كله ديوي ښځي سره په دي نيت نكاح كوي چي دي به دي لره داولني خاوند دپاره حلالوي او بيا ورته مناسب ښكاره شي چي دا دځان سره حصاره كړي او پري يي نږدي نو دده دپاره جائز نه دي چي دا دځان سره اوساتي تردي پوري چي په نوي نكاح يي نكاح كړي نه وي

**تخريج** سنن النسائي في الطلاق ١٣ (٣٤٤٥) ، (في سياق طويل) (تحفة الأشراف : ٩٥٩٥) . مسند احمد (١/ في ٤٤٨، ٤٥٠، ٤٥١، ٤٦٢) . سنن الدارمي في النكاح ٥٣ (٢٣٠٢)

***************

## ٢٩_ باب مَا جَاءَ فِي تَحْرِيمِ نِكَاحِ الْمُتْعَةِ
## د نكاح متعه دحرمت بيان

١١٢١_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ . حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَالْحَسَنِ ابني محمد بن علي، عَنْ أَبِيهِمَا، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ زَمَنَ خَيْبَرَ" . قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَبْرَةَ الْجُهَنِيِّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ . وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ . وَإِنَّمَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ شَيْءٌ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي الْمُتْعَةِ. ثُمَّ رَجَعَ عَنْ قَوْلِهِ حَيْثُ أُخْبِرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . وَأَمْرُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ عَلَى تَحْرِيمِ الْمُتْعَةِ. وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (١)

**ترجمه** علي رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دخيبر دفتح په ورځ د ښځو سره دمتعي كولو نه او دكورنو خرو دغوښي خوړلو نه ممانعت فرمائيلي دي

١ قلت تفرد به المؤلف رحمه الله تعالي

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د سبره جهني، او ابوهريره رضي الله عنه نه هم احاديث مروي دي دصحابه كرامو او اهل علمو وغيره هم په دي باندي عمل دي البته دابن عباس نه څه قدري اجازت دمتعي مروي دي مګر بيا هغوئ دخپل قول نه رجوع كړي ده چي كله ورته دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په دي باره كي خبر وركړي شو اكثر اهل علمو دمتعي په حرمت قول كړي دي اوهمدا دسفيان ثوري او ابن مبارك او شافعي او احمد اواسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي

**تشريح** : متعه داسي عقد دي په كوم كي چي دمهرتعين وي اودمودي تعين هم وي مقرري مودي نه پس ښځه بائنه كيږي مګر داستقرار حمل نه درحم دپاكيدو دپاره ديوحيض تيريدو ته انتظار كول وي . كه چري په موده كي دننه په زوجينو كي كوم يو مړشو نو يوته دبل ميراث هم نه ملاويږي ، پداسي عقد كونكو باندي نه دزوج اطلاق كيږي او نه دزوجي (يعني دوئ پخپلو كي ښځه اوخاوند نه وي).

عبد الرزاق په مصنف كي دابن جريج په روايت سره دعطاء قول نقل كړي دي چي ابن عباس رضي الله عنهما به متعه حلاله ګڼړله اوددي دثبوت دپاره به ئي دا ايت كريمه فما استمتعتم به منهن لوستلو. ابن عباس رضي الله عنهما داهم فرمائيلي دي چي د أبيّ بن كعب په قراءت كي په دي ايت كي الي اجل مسمي لفظ هم ذكرشوي دي اوفرمائيل به ئي په عمر رضي الله عنه دي الله تعالي رحم وكړي داد الله تعالي په بندګانو دالله يورحمت دي كه چري هغه ممانعت نه وي كړي نو زنا ته ضرورت بلكل نه پاتي كيدو.

دابن عبد البر بيان دي چي ابن عباس رضي الله عنهما نه دمتعي په باره تپوس وكړي شو چي دا نكاح ده اوكه زنا؟ نو وئي فرمائيل دا داسي ده لكه چي الله تعالي فرمائيلي دي ، نوبيا ورنه تپوس وكړي شو چي ايا ددي دعدت دپاره حيض راتلو ته ضرورت شته اوكه نه نو وئي فرمائيل چي هو ما بيا ورنه تپوس وكړو متعه كونكي نارينه اوزنانه پخپل مينځ كي وارثان جوړيږي اوكه نه نو وئي فرمائيل چي نه ، دمتعي دحِلت قول دصحابه كرامو يوجماعت ته منسوب دي.

نسائي اوطحاوي ليكلي دي چي اسماء بنت الصديق فرمائيلي دي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كي داسي كړي وو ، مسلم دجابر رضي الله عنه نه روايت بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم او ابوبكر اوعمر دخلافت په ابتدائي زمانه كي متعه كړي وه نوعمر فاروق رضي الله عنه مونږ په اخري دور خلافت كي منع كړونوبيا مونږ دهغه دحكم نه تجاوز ونكړو

طحاوي دجابر رضي الله عنه اوسلمه بن الاكوع په روايت سره بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دصحابه كرامو سره تشريف راوړو اودمتعي اجازت ئي وركړو

په صحيحينو كي دابن مسعود رضي الله عنه قول منقول دي چي مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم اجازت راكړي وو چي دښخو سره دمقرري مودي پوري نكاح كيدي شي بياابن مسعودرضي الله عنه دا ايت كريمه يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ تلاوت كړو.

دصحابه كرامو ددي اثارونه دمتعي جواز خو معلوم شو ليكن نه منسوخ كيدل ورنه نه معلوميږي صرف دابن عباس رضي الله عنهما اثر اودابن مسعود په قراءت سره غيرمنسوخ كيدل معلوميږي.

عبدالرزاق په مصنف كي ليكلي دي چي معاويه رضي الله عنه په طائف كي ديوي ښخي سره متعه كړي وه

عمرو بن شيبه په اخبارالمدينه كي پخپل سند سره ليكلي دي چي سلمه بن اميه ديوي ښخي سره متعه كړي وه كله چي عمر رضي الله عنه ته ددي خبراورسيدو نوده ته يي دهمكي وركړه ، عبدالرزاق په مصنف كي ليكلي دي چي معبد بن اميه دمتعي دحلت قائل وو ، حافظ ابن حجر ليكلي دي چي دمتعي دحلت فتوي دتابعينو يو جماعت وركړي ده په كومو كي چي ابن جريج، طاوس ، عطاء اودابن عباس رضي الله عنهما شاګرد اوسعيد بن جبير او فقهاء دمكي هم وو په دي بنا باندي حاكم په علوم الحديث كي داوزاعي قول نقل كړي دي چي داهل حجاز پنځه اقوال متروك دي په دوئ كي داهل مكي حلت دمتعي قول اوداهل مدينه قول چي دخپلي بي بي سره دلواطت د حلت قول.

**مسئله:** دمتعي په ناجائز اوحرام كيدو باندي اجماع شوي ده علاوه دشيعه فرقي نه بل څوك ددي دحلت قائل نه دي دمتعي دحرمت ثبوت په دي ايت كريمه كي دي الله تعالي فرمائيلي دي. وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ . إِلَّا عَلَىٰ أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ. متعي والا زنانو ته ښځي نه شي ويلي اونه هغه مملوكه ده نوپه دي وجه باندي متعه كونكي سړي اوښځه كي دتوارث سلسله قائمه نه وي

كه څوك ددي ايت تفسير دابن عباس رضي الله عنهما دمسلك متعلق اوكړي نوبيا ددي منسوخ منل لازميږي ،اوحالانكه دا ايت دټولو په نزد باندي محكم دي منسوخ نه دي، مسلم ليكلي دي چي دربيع بن صبره بن معبد جهني بيان دي چي ماته زما پلار اووئيل زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په مجلس كي موجود وم چي ويي فرمائيل اي خلقو ما دښځوسره دمتعي كولو اجازت دركړي وو خو اوس الله تعالي دقيامته پوري متع حرامه كړي ده لهذا كه څوك دچا سره كومه داسي ښځه وي نوهغه دي ازاده كړي اوڅه چي ورته تاسو دركړي وي په هغي كي به ورنه واپس څه نه اخلئ

مسلم دمذكوره راوي دا بيان هم نقل كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته دمتعي اجازت راکړي وو نو په دي وجه باندي زه او يو بل سړي يوي عامريه ښځي ته لاړو چي خوانه او اوږدي غړئ والا وه مونږ دواړو ورته درخواست اوکړو هغي راته وونيل ماته به څه راکوي ما ورته وونيل خپل څادر به درکړم اوزما ملګري ورته هم خپل څادر پيش کړوليکن دهغه څادر زما دڅادر نه بهتر وو مګرزه دهغه نه ښکلي خوان وم نوښځي دهغه څادر لره خوښ کړو اوچي زه ئي وليدم نوزه ئي خوښ کړم او وئي وئيل ستا څادر زما دپاره کافي دي ته زما خوښ ئي ، چنانچه زه ورسره دري شپي پاتي شوم ، ددينه پس رسول الله اوفرمائيل دهرچا سره چي دمتعي والا ښځه وي هغه دي دي لره پريږدي.

ابن ماجه په صحيح سند سره روايت بيان کړي دي چي اميرالمومنين عمر رضي الله عنه خطبه ورکړه او ويي فرمائيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته ددري ورځو پوري دمتعي اجازت راکړي وو خو بيا يي حرامه کړه نواوس که چري زه چالره اووينم چي متعه يي کړي ده نو په الله مي دي قسم وي په کاڼړو به يي اوولم او هلاك به يي کړم خو په دي شرط چي هغه شادي شده وي ، په بل روايت کي راغلي دي اميرالمؤمنين عمر رضي الله عنه خطبه ورکړه او ويي فرمائيل خلق متعه ولي کوي حالانکه رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي نه ممانعت فرمائيلي دي که چري چا متعه کړي وي او ماته راوستلي شو نوزه به يي ضرور سنګسار کړم دابن عمر رضي الله عنه نه دمتعي دحکم په باره کي تپوس اوکړي شو نو ويي فرمائيل چي حرامه ده اوچي دابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوکړي شو نودجواز فتوي يي ورکړه نوده ته اوونيلي شول چي دعمر رضي الله عنه په زمانه کي دي داسي ولي نه وئيل

دسلمه بن اکوع رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوطاس والاسره د دري ورځودپاره مونږ ته دمتعي اجازت راکړي وو خو بيا يي ممانعت اوفرمائيلو (مسلم)

دا هم دمسلم روايت دي چي صبره بن معبد رضي الله عنه اوفرمائيل دمکي دفتح کيدو په کال کله چي مونږ مکي ته داخل شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته د متعي اجازت راکړي وو خو بيا يي دمکي نه دوتو نه مخکي ممانعت اوفرمائيلو

حازمي په خپل سند سره دجابر رضي الله عنه بيان نقل کړي دي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم په ملګرتيا کي دتبوك جهاد ته تلي وو کله چي عقبه (په شام کي ديوي علاقي نوم دي) ته ورسيدو نودهغه علاقي بعضي ښځي راغلي مونږ ورسره متعه اوکړه په دي خيال چي دوئ به زمونږ په اوښانو باندي سوري شي ليکن بيا چي رسول الله صلي الله عليه وسلم راغي او ښځي يي اوليدلي نو ويي فرمائيل چي دا څوك دي مونږ عرض اوکړو اي دالله رسوله دا هغه ښځي دي چي مونږ ورسره متعه کړي ده ددي په اوريدو سره نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته دومره غصه ورغله چي مخ مبارك يي سور شو او رنګ يي بدل شو او پاڅيدو او يوه خطبه يي

ارشاد اوفرمائیلو او دحمد اوثنا نه پس یي دمتعي ممانعت اوفرمائیلو دحکم په اوریدو سره مونږ دوئ لره رخصت کړي او بیا موداسي حرکت نه دي کړي اونه به په اینده کي چرته داسي اوکړو
طحاوي نقل کړي دي چي ابوهریره رضي الله عنه فرمائیلي دي مونږ درسول الله په ملګرتیا کي دتبوك جهاد ته اووتلو اورسول الله په ثنیة الوداع کي پړاؤ اچولي وو هلته یي ربړا ګاني اولیدي او څه ښځي یي په ژړا اولیدي نو ویي فرمائیل دا څه خبره ده نو ورته اوونیلي شول دا هغه ښځي دي چي خاوندانو یي ورسره متعه کړي وه او اوس ورنه جدا کیږي نورسول کریم صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل دطلاق اونکاح او عدت اومیراث په قانون سره الله تعالي متعي لره حرامه اوباطله کړي ده . د دار قطني دروایت الفاظ دا دي چي الله تعالي د طلاق اوعدت او میراث په حکم سره د متعي جواز ختم کړي دي .
حسن اوعبدالله چي دمحمد بن حنفیه خامن دي روایت کوي چي محمد بن علي اوریدلي چي ابن عباس رضي الله عنهما دمتعي په باره کي نرم وونو وئي فرمائیل اي ابن عباس داسي خبري پریږده ځکه چي دخیبر په ورځ رسول الله دمتعي نه اودکورنو خرو دغوښي نه ممانعت فرمائیلي وو . په بل روایت کي راغلي دي چي ابن حنفیه وونیل اي ابن عباس پته کي څه ګمراهي دي(بخاري ومسلم)
مسلم په سند دعروه بن الزبیر رضي الله عنه سره بیان کړي دي چي دعبدالله بن زبیر رضي الله عنه په مکه کي اودریدو او ویي فرمائیل چي الله تعالي دبعضي خلقو زړونه داسي ړانده کړي دي لکه څرنګه چي یي ددوئ سترګي ړندي کړي دي هغوئ دمتعي په جواز باندي فتوي ورکوي او ابن عباس رضي الله عنهما ته یي تعریض کولو ځکه چي په اخري عمر کي دابن عباس رضي الله عنهما نظر ختم شوي وو ابن عباس ابن زبیر ته په چغه اوونیل یقین نه احمق یي په الله قسم دامام المتقین یعني درسول الله صلي الله علیه وسلم په زمانه کي متعه کیدله ابن زبیر په جواب کي اوونیل ته پخپله تجربه اوکړه او اوګوره په الله قسم که چري تا داسي اوکړل نوزه به دي سنګسار کړم
ابن ابي عمره انصاري اوفرمائیل په شروع داسلام کي دمجبوره کس دپاره دمتعي اجازت وو لکه دمرداري اود خنزیر دغوښي خوړل لیکن بیا الله تعالي دین محکم کړو او دمتعي نه یي ممانعت اوفرمائیلو
بیهقي دزهري قول نقل کړي دي چي ابن عباس رضي الله عنهما دوفات کیدو نه مخکي دمتعي دحلت دفتوي نه رجوع کړي وه . ابو عوانه پخپل صحیح کي هم داسي ذکر کړي دي ابوداود په ناسخ کي او ابن المنذر او نحاذ دعطاء په روایت سره بیان کړي دي چي دا ایت دي ایاتونو

: يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ. اوهمدا رنګي. وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ. او ايت وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ. منسوخ کړي دي، بيهقي وغيره دابن مسعود او ابوداود او بيهقي دسعيد بن المسيب قول نقل کړي دي چي متعه په ايت دميراث سره منسوخ شوي ده.

ترمذي دابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړي دي چي متعه په شروع داسلام کي جائز وه کله چي به څوك داسي علاقي ته لاړو چي هلته به يي شناخت نه وو نو ترڅومره مودي چي به هلته اوسيدلو ددغه هومره مودي دپاره به يي دکومي ښځي سره نکاح اوکړه ښځي به دده دسامانونو حفاظت کولو اودده ضروريات به يي برابرول تردي چي ايت کريمه الاعلي ازواجهم اوماملکت ايمانهم ، نازل شو ، ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل دخپلي ښځي اووينځي نه علاوه اوس هره شرمګاه حرامه ده.

غرض دا چي شايد دابن زبير اونورو علماؤ سره دمناظري کولو نه پس ابن عباس دخپلي مخکني فتوي نه رجوع کړي وي اودمتعي منسوخ کيدل ورته ظاهر شوي دي. داهم په رواياتوکي راغلي دي چي ابن عباس به دمتعي فتوي صرف په هغه حالت کي ورکوله کله چي به څوك په سفر کي مجبور او مضطر وو ، حازمي دسعيد بن جبير قول نقل کړي دي چي ويي فرمائيل ما ابن عباس ته عرض اوکړو ستا فتوي قافلو څلورو طرفونو ته اوړيدلي ده اوشاعرانو هم ددي فتوي متعلق شاعري کړي ده، ابن عباس اوفرمائيل شاعرانو څه ويلي دي ما اوونيل دا شعريي ويلي دي.

قد قلت للشيخ لما طال محبسه يا صاحبي هل لك فى فتوى ابن عباس

هـل لك فى رخصة الأطراف أنسة يكون مثواك حتى يصـدر الناس.

کله چي دشيخ قيام طويل شو نو ماورته اوونيل زما دوسته ايا دابن عباس په فتوي باندي دتلو خواهش لري . ايا دنازکو اونرمو ګوتووالا ښځي ته دي ضرورت شته چي دواپسي پوري ستاد قيام مرکزوي.

ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل سبحان الله ما خوددي فتوي نه ده ورکړي متعه خو داسي ده لکه دمرداري او دويني اودخنزير دغوښي پشان چي دمجبوري دحالت نه علاوه دچاد پاره جائز نه ده، ابن منذر پخپل تفسير کي او بيهقي هم په سنن کي دا روايت بيان کړي دي ليکن دهغه په روايت کي دا الفاظ هم دي انا لله وانا اليه راجعون. په الله قسم ما خوددي فتوي نه ده ورکړي اونه دا زما مراد دي او نه دمجبوري نه علاوه دبل چادپاره ما متعه حلاله ګرځولي ده .

ابن جريج هم دخپلي فتوي نه رجوع کړي وه ابوعوانه پخپل صحيح کي ليکلي دي چي ابن جريج په بصره کي اوفرمائيل تاسو گواه شئ چي ما ددينه رجوع وکړله ، يعني دمتعي دحلت دفتوي نه مخکي دمتعي دجواز په تائيد کي ابن جريج اتلس احاديث بيان کړي وو

يوه شبه دمسلم په بعضي رواياتوکي راغلي دي چي دمتعي دحلت اوحرمت دواړو کيدل داوطاس په کال کي ذکر شوي دي ، اوپه بعضي رواياتوکي راغلي دي چي دفتح مکي په کال متعه حرامه شوي وه اودصحيحينو په روايت کي راغلي دي چي د غزوه خيبر په ورځ متعه حرامه شوي وه اوبه بعضي رواياتو کي دممانعت صدور ذکر په غزوه تبوك کي شوي دي ، په رواياتوکي دتعارض دفع کولو څه صورت دي؟

ازاله: داوطاس جهاد دفتح مکي سره نزدي په يوکال کي شوي وو پاتي شوه دخيبر په ورځ دحرمت کيدو معامله نو داپيژندل ضروري دي چي دمتعي اجازت دوه خله ورکړي شوي وو اوهرځل اجازت منسوخ کړي شوي وو اخر داچي ددائمي حرمت فيصله وکړي شوه

بغوي دربيع بن سليمان په واسطي سره نقل کړي دي چي امام شافعي وايي چي دمتعي نه علاوه ماته کوم بل داسي څيز په اسلام کي معلوم نه دي چي دحلاليدو نه پس حرام شوي وي او ياحلال شوي وي اوبيا حرام شوي وي ، بعضي علماؤ وئيلي دي چي متعه دري پيري منسوخ شوي ده اودبعضو په نزد باندي د دري پيرونه هم زياته منسوخ شوي ده.

باقي داچي عزوه تبوك کي دممانعت ذکر نوددينه دا مراد نه دي چي دتبوك نه مخکي اجازت وو او په تبوك کي ممانعت راغي بلکي مطلب دا دي په تبوك کي چي چا متعه کړي وه هغوئ ته دا معلومه نه وه چي متعه په دائمي طور حرامه شوي ده نوځکه دمتعي دخبرپه اوريدو سره رسول الله صلي الله عليه وسلم دومره غصه شو چي دمخ مبارك رنگ يي بدل شو او په خطبه کي يي ددي دممانعت ياداشت اوکړو، دحازمي بيان دي چي په وطن کي اوپه کور کي داوسيدو په حالت کي خو دمتعي اجازت هيڅ کله نه وو ورکړي شوي ليکن په بعضي اوقاتو کي دضرورت په بنا اجازت ورکړي شوي وو او په حجة الوداع کي ددي حرمت هم راغي او دائمي حرمت صادر شو .

**مسئله** دذکر شوي تفسير په بنا باندي ظاهرا دجماع نه بغير بنځه دمهر مستحقه نه وي لهذا دامام مالك قول په دي ايت سره ثابتيږي ځکه چي دهغه مسلك دا دي چي صرف په نکاح سره بنځه دپوره مهر مستحقه نه جوړيږي دنيم مهر مستحقه جوړيږي مگر دجماع يا په مرگ سره دپوره مهر مستحقه جوړيږي

دجمهورو په نزد باندي صرف په نکاح سره دکامل مهر مستحقه کيږي مگر بغير دجماع نه په طلاق ورکولو سره نيم مهر ساقطيږي ځکه چي په ايت ان تبتغوا باموالکم کي باء دالصاق دپاره ده لهذا په عقد کولوسره مهر واجبيږي دجماع کولو پوري وجوب دمال مؤخر کول دايت

دمدلول نه خلاف دي ، ددي ايت نه صرف دومره معلوميږي چي په قربت كولوسره مهر واجبيږي اودقربت نه پس دمهر دسقوط احتمال هم باقي نه پاتي كيږي اودا نه معلوميږي چي صرف دنكاح نه پس بغير دجماع نه مهر واجب نه وي ددي مفهوم دطرف نه ايت خاموش دي لهذا دامام مالك استدلال غلط دي او په دواړه اياتونو كي څه تضاد نشته خكه چي ښځه په محض عقد كولوسره دمهر مالكه كيږي نوپه دي وجه باندي دمهر دوصول كولونه بغير خاوند لره دقربت نه منع كول او دهغه سره په سفر كي دتلو نه انكار كولو ديته حق حاصل دي . اوكه چري په مهر كي دكوم غلام نوم ياد شوي وي نو ښځه يي ازادولي شي اوخاوند يي نه شي ازادولي .

* * * * * * * * * * * * * * *

١١٢٢ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُقْبَةَ أَخُو قَبِيصَةَ بْنِ عُقْبَةَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " إِنَّمَا كَانَتِ الْمُتْعَةُ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ كَانَ الرَّجُلُ يَقْدَمُ الْبَلْدَةَ لَيْسَ لَهُ بِهَا مَعْرِفَةٌ فَيَتَزَوَّجُ الْمَرْأَةَ بِقَدْرِ مَا يَرَى أَنَّهُ يُقِيمُ، فَتَحْفَظُ لَهُ مَتَاعَهُ وَتُصْلِحُ لَهُ شَيْئَهُ حَتَّى إِذَا نَزَلَتِ الْآيَةُ إِلا عَلَى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ سورة المؤمنون آية ٦ ". قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: " فَكُلُّ فَرْجٍ سِوَى هَذَيْنِ فَهُوَ حَرَامٌ ".[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي متعه په ابتداء داسلام كي جائز وه څوك چي به كله كوم داسي ښار ته لاړو چرته چي به دهغه پيژندګلي نه وه نو هغه به دخپل قيام دمودي پوري دكومي ښځي سره نكاح كوله او هغي به دده دسامان حفاظت كولو تردي پوري چي كله ايت كريمه "الا علي ازواجهم او ماملكت ايمانهم" نازل شو نو ابن عباس رضي الله عنهما وائي چي ددي دواړو نه علاوه باقي تمام شرمګاهونه حرام شول

* * * * * * * * * * * * * * *

## ٣٠ـ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنْ نِكَاحِ الشِّغَارِ

### دشغار(يوه ښځي دبلي په عوض كي په نكاح وركولو) دحرمت بيان

١١٢٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ. حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ. حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ وَهُوَ الطَّوِيلُ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ وَلَا شِغَارَ فِي الْإِسْلَامِ، وَمَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً فَلَيْسَ مِنَّا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦٤٢٩)

حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ أَنَسٍ، وَأَبِي رَيْحَانَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَمُعَاوِيَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ. ([1])

**ترجمه** دعمران بن حصين رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په اسلام كي نه جلب شته او نه جنب او نه شغار او څوك چي دچا كوم څيز لره اوتختوي هغه زمونږ نه نه دي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دانس، ابوريحانه، ابن عمر، جابر، معاويه، ابوهريره، او وائل بن حجر رضي الله عنه نه هم احاديث مروي دي

***************

١١٢٤ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الشِّغَارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ العِلْمِ لَا يَرَوْنَ نِكَاحَ الشِّغَارِ، وَالشِّغَارُ أَنْ يُزَوِّجَ الرَّجُلُ ابْنَتَهُ عَلَى أَنْ يُزَوِّجَهُ الآخَرُ ابْنَتَهُ أَوْ أُخْتَهُ، وَلَا صَدَاقَ بَيْنَهُمَا، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: نِكَاحُ الشِّغَارِ مَفْسُوخٌ، وَلَا يَحِلُّ وَإِنْ جُعِلَ لَهُمَا صَدَاقًا، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَرُوِيَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، أَنَّهُ قَالَ: يُقَرَّانِ عَلَى نِكَاحِهِمَا وَيُجْعَلُ لَهُمَا صَدَاقُ الْمِثْلِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَهْلِ الكُوفَةِ. ([2])

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دشغار دنكاح نه منع فرمائيلي ده

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي، داكثرو اهل علمو عمل هم په دي باندي دي او دوئ نكاح دشغار درست نه ګنړي، او شغار ديته وائي چي يو كس دخپلي لور نكاح دچا سره په دي شرط اوكړي چي هغه به دخپلي لور يا خور نكاح دده سره كوي او ددواړو په مينځ كي

---

[1] ـ سنن ابي داود في الجهاد ٧٠ (٢٥٨١) . مقتصرا على قوله " لا جلب ولا جنب " سنن ابي داود في النكاح ٦٠ (٣٣٣٤) . والخيل ١٥ (٣٦٢٠) . و١٦ (٣٦٢١) . سنن ابن ماجه في الفتن ٣ (٣٩٣٥) . (تحفة الأشراف . ١٠٤٩٣) مسند احمد (٣ في ٤٢٩. ٤٣٩)

[2] ـ صحيح البخاري في النكاح ٢٨ (٥١١٢) . صحيح مسلم في النكاح ـ (١٤١٥) سنن ابي داود في النكاح ١٥ (٢٠٧٤) . سنن النسائي في النكاح ٦١ (٣٣٣٤) . سنن ابن ماجه في النكاح ١٦ (١٨٨٣) . (تحفة الأشراف : ٨٣٢٣) موطا امام مالك في النكاح ١١ (٢٤) مسند احمد (٢ في ٦٢) سنن الدارمي في النكاح ٩ (٢٢٢٦) وأخرجه صحيح البخاري في الحيل ٣ (٦٩٦٠) صحيح مسلم في النكاح . سنن النسائي في النكاح ٦٠ (٣٣٣٦) . مسند احمد (٢ في ١٩)

مهر مقرر نکړي. بعضي اهل علم وائي شغار والانکاح به ماتولي شي او داحلاله نه ده اګر که بیاروسته ددوئ په مینځ کي مهر هم مقرر کړي شي. دا دامام شافعي، احمد، او اسحاق بن راهویه رحمهم الله قول دي، لیکن عطاء بن ابي رباح وائي چي دي به پخپله نکاح باندي قائم وي البته ددوئ په مینځ کي به مهرمثل مقررولي شي او همدا داهل کوفه قول هم دي

**تشریح:** **د شغار نکاح معني او حکم**

که چا د خپلې لور نکاح د یو کس سره په دې شرط اوکړه چي ماجد به د خپلې لور نکاح د حامد سره کوی چي ،احد البضعین، د آخر دپاره مهر شی، یعنی د حامد د لور مهر به د ماجد د لور ملك بضع وی، اود ماجد د لور مهر به د حامد د لور ملك بضع وی، دې نکاح ته نکاح شغار وائی.

شغار د ،شغور، نه ماخوذ دې، اود شغور معنی ده رفع او اخلاء، یعنی اوچتول او خالی کول چي د رفع معنی واخستلې شی نو وجه د تسمیه به دا وی چي زوجینو چونکه مهر د عقد نه اوچت کړو، په دې وجه دا نکاح په شغار مسـي شوه، او که ددې معنی اخلاء وی، یعنی خالی کول نو وجه د تسمیه به داوی چي دا نکاح چونکه د مهر نه خالی ده، په دې وجه دې نکاح ته نکاح شغار وئیلې شی.

اود بعضو رائې داده چي د شغار معنی ده، بُعد، یعنی لرې والې، په دې صورت کي به وجه د تسمیه داوی چي ګویا زوجینو د مهر نفی اوکړه نود حق نه لرې شوی دی، په دې وجه ددې نوم نکاح شغار ایخودلې دې،

**شغار متعلق مذاهب دفقهاؤ**

(۱) نکاح شغار د احنافو په نزد نافذ ده، خود دواړوښځو دپاره به مهر مثل واجب وی.
(۲) امام شافعی (رحمه الله) فرمائی چي دواړه عقدونه باطل دی.

صاحب دهدایه د امام شافعی (رحمه الله) د لیل عقلی خوبیان کړې دې، خو ددوې په تائید کي چي کوم حدیثونه دی، هغه ئې نه دی ذکر کړی، حالانکه دوه حدیثونه ددوی مستدل جوړیدلې شی، ړومبې د ابن عمر (رضي الله عنه) حدیث "لا شغار فی الإسلام" یعنی په اسلام کي د نکاح شغار هیڅ ګنجائش نشته، ترمذی (رحمه الله) هم دا حدیث د عمران بن حصین ﷺ نه روایت کړې دې.

او دویم حدیث د جابر ﷺ دې، کوم چي مسلم روایت کړې دې:

"نهی رسول الله ﷺ عن الشغار" یعنی نبی کریم ﷺ د نکاح شغار نه منع فرمائیلې ده، دا دواړه حدیثونه د نکاح شغار په عدم جواز باندي شاهد عدل دی.

د امام شافعي (رحمه الله) عقلي دليل دادې چي كوم كس دخپلې لور د بل سړي سره نكاح اوكړه، په دې شرط چي دې به د خپلې لور نكاح زما سره كوي نوګويا په دې دواړه جينكو كي د هر يوې نصف بضع مهر اونصف آخر(د بضع) منكوح جوړشو. حاصل داچي د هريوې بضع د خاوند او دده د لور په مينځ كي شريكه شوې ده. نصف بضع به د نكاح په وجه د خاوند دپاره وي، او نصف بضع به دمهر په وجه دده د لور دپاره وي نو اشتراك لازميږي، او منافع د بضع مشترك نشي كيدلې. لكه څنګه چي يوه ښځه د دوه سړو سره نكاح اوكړي، اودا صحيح نه وي نو هركله چي اشتراك صحيح نه دې نو ايجاب باطل شو، او هركله چي ايجاب باطل شو نو عقد هم باطل شو. په دې وجه د امام شافعي (رحمه الله) په نزد دواړه عقدونه باطل دي. او زمونږ دليل دادې چي په دې دواړه عقدونوكي داسې څيز مهر جوړشوې دې، كوم چي د مهر جوړولو صلاحيت نه لري، او قاعده ده چي كوم څيز د مهر صلاحيت نه لري. كه دا مهرجوړ كړې شي نو عقد د نكاح به صحيح وي، او مهر مثل به واجب وي، مثلاً خمر اوخنزير مهر جوړ كړې شي نو نكاح به صحيح وي، او مهر مثل به واجب وي، دغه شان دلته كي هم وي، د امام شافعي (رحمه الله) د عقلي دليل جواب دادې چي هركله بضع د مهرجوړولو صلاحيت نه لري نو اشتراك به هم نه متحقق كيږي، څكه چي د يوې ښځې د بضع منافع د بلې ښځې مملوك نشي جوړيدلې نو هركله چي شركت ثابت نشو نو بضع د مهر جوړولو شرط به شرط فاسد وي، او نكاح په شرط فاسد سره نه باطليږي، بلكي پخپله شروط فاسده باطليږي نو په دې نكاح شغار كي به هم د بضع د مهر جوړولو شرط به باطل وي، او نكاح به درست وي، او په خاوند به مهرمثل واجب وي،

د امام شافعي (رحمه الله) د طرفه د پيش كړې حديث جواب دادې چي نهي عين د نكاح دپاره نه ده، بلكي په حديث كي نهي وارد شوې ده، دنكاح د مهرمسمى كولو نه د خالي كولو په وجه، مطلب دادې چي د نبي كريم ﷺ مقصد عين نكاح نه منع كول نه دي، بلكي ددې ممانعت ئې فرمائيلې دې چي نكاح د مهر مسمى كولو نه خالي اوساتلې شي، اود مهرمسمى كولو نه كه نكاح خالي اوساتلې شوه نو په دې سره نكاح نه باطليږي. لكه څنګه چي د جمعة د اذان نه پس د بيع نه منع راغلي ده نو دلته كي نفس بيع ممنوع نه ده، بلكي د جمعة د اذان نه پس ممنوع ده.(العنايه)

***************

## ٣١_ باب مَا جَاءَ لاَ تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا وَلاَ عَلَى خَالَتِهَا

## دپلار دطرفه ترور په نكاح كې دموجودګۍ په صورت كې دهغې دوريرې سره او دمور دطرفه تروپه نكاح كې دموجودګۍ په صورت كې دهغې دخوريې سره د نكاح كولو دحرمت بيان

۱۱۲۵_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ أَبِي حَرِيزٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ تُزَوَّجَ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا أَوْ عَلَى خَالَتِهَا". وَأَبُو حَرِيزٍ اسْمُهُ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حُسَيْنٍ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دې نبي كريم صلي الله عليه وسلم ددېنه منع فرمائيلې ده چې ديوې ښځې سره نكاح اوكړې شي او حال دادې چې دهغې ترور دمخكې نه په نكاح كې موجود وي
امام ترمذي وائي د ابو حريز نوم عبدالله بن حصين دې.

**تخريج**

*****************

حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهِ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَجَابِرٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي مُوسَى، وَسَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ. ([2])

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په دې سند دمابقه روايت هم معني حديث بيان كړې دې.
امام ترمذي وائي په دې باب كې دعلي، او ابن عمر. او عبدالله بن عمرو. او ابوسعيد خدري او ابو امامه. او جابر، او عائشه. او ابوموسي اشعري. او سمره بن جندب رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

*****************

---

[1] _ حديث ابن عباس: سنن ابي داود في النكاح ۱۳ (۲۰٦۷) (تحفة الأشراف ۶۰۰۰) مسند احمد (۱/ ۲۱۰، ۳۰۲)

[2] _ صحيح البخاري في النكاح ۲۷ تعليقا عقب حديث جابر (۵۱۰۸). صحيح مسلم في النكاح ۴ (۱۴۰۸ في ۳۹) سنن ابي داود في النكاح ۱۳ (۲۰٦۵) سنن النسائي في النكاح ۴۷ (۳۲۸۸) وأخرجه صحيح البخاري في النكاح ۲۷ (۵۱۰۹، ۵۱۱۰) صحيح مسلم في النكاح ۴ (۱۴۰۸). سنن ابي داود في النكاح ۱۳ (۲۰٦٦) سنن النسائي في النكاح ۴۸ (۳۲۹۶، ۳۲۹۹) و ۴۹ (۳۲۹۷). سنن ابن ماجه في النكاح ۳۱ (۱۹۲۹) موطا امام مالك في النكاح ۸ (۲۰). مسند احمد (۲/ ۴۲۶)

١١٢٦_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَنْبَأَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، حَدَّثَنَا عَامِرٌ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ تُنْكَحَ المَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا أَوِ العَمَّةُ عَلَى ابْنَةِ أَخِيهَا، أَوِ المَرْأَةُ عَلَى خَالَتِهَا أَوِ الخَالَةُ عَلَى بِنْتِ أُخْتِهَا، وَلَا تُنْكَحُ الصُّغْرَى عَلَى الكُبْرَى وَلَا الكُبْرَى عَلَى الصُّغْرَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ العِلْمِ لَا نَعْلَمُ بَيْنَهُمُ اخْتِلَافًا، أَنَّهُ لَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ أَنْ يَجْمَعَ بَيْنَ المَرْأَةِ وَعَمَّتِهَا أَوْ خَالَتِهَا، فَإِنْ نَكَحَ امْرَأَةً عَلَى عَمَّتِهَا أَوْ خَالَتِهَا أَوِ العَمَّةَ عَلَى بِنْتِ أَخِيهَا فَنِكَاحُ الأُخْرَى مِنْهُمَا مَفْسُوخٌ، وَبِهِ يَقُولُ: عَامَّةُ أَهْلِ العِلْمِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: أَدْرَكَ الشَّعْبِيُّ أَبَا هُرَيْرَةَ، وَرَوَى عَنْهُ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا، فَقَالَ: صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى الشَّعْبِيُّ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. (١)

**ترجمه** دابو هريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددينه منع فرمائيلي ده چي ديوي ښځي سره نکاح اوکړي شي او حال دادي چي دهغي ترور په نکاح کي موجود وي او يايي دترور سره نکاح کوي او دهغي وريره يا خورزه دمخکي نه دده په نکاح کي موجود وي، او که داسي اوشول نو د اولنۍ نکاح به باقي وي او دوروستنۍ نکاح به باطل وي او په دي باندي عامو فقهاؤ اواهل علمو قول کړي دي امام ترمذي وائي دشعبي ملاقات دابوهريره رضي الله عنه سره ثابت دي اودهغه نه يي نقل دروايت هم کړي دي ما په دي باره کي دامام بخاري نه تپوس اوکړو نو ويي فرمائيل دا روايت صحيح دي امام ترمذي وائي دارنګي داحديث شعبي ديو سړي نه نقل کړي او هغه دابوهريره رضي الله عنه نه

**************

**تشريح** ددي عبارت حاصل دادې چي دپلار او نيکونو(د مور پلار.اود پلار پلار) منکوحه سره هم نکاح حلال نه ده. په دليل کي ئې آيت پيش کړې دې. دغه شان د خوى اود نمسى سره هم نکاح جائز نه ده. دلته کي هم په دليل کي آيت ذکر دې. خو په دې باندې ښځې اشکال کيږى چي په آيت کي د .اصلاب. د قيد نه معلوميږى چي د رضاعى خوى د ښځې

1 صحيح البخاري في النكاح ٢٧ تعليقا عقب حديث جابر (٥١٠٨). صحيح مسلم في النكاح ٤ (٢٠٨ في ٣٩) سنن ابي داود في النكاح ١٣ (٢٠٦٥) سنن النسائي في النكاح ٤٨ (٣٢٩٦) وأخرجه صحيح البخاري في النكاح ٢٤ (٥١٠٩، ٥١١٠) صحيح مسلم في النكاح ٤ (١٤٠٨) سنن ابي داود في النكاح ١٣ (٢٠٦٦). سنن النسائي في النكاح ٤٧، ٤٨ (٣٢٨٩ـ٣٢٩٠ و ٣٢٩٤ـ٣٢٩٧). سنن ابن ماجه في النكاح ٣١ (١٩٢٩). موطا امام مالك في النكاح ٨ (٢٠) مسند احمد (٢ في ٢٢٦)

سره نكاح حلال ده. حالانكه داسې نه ده، صاحب د هدايه په جواب كې فرمائي چې د ،اصلاب، قيد د متبنى معنى (په خوئى توب نيولې) اعتبار ساقطولو دپاره دى، د رضاعى خوى ښځې حلالولو دپ ره نه دی. حاصل داچې د كوموخامنو ښځې ستاسو دپاره حرام دى چې هغه ستاسو د شانه پيدا سوى وى، اوكوم چې ستاسو د شانه پيدا شوې نه دى، هغه دوه قسمه دى. يو رضاعى،دويم متبنى خو د حديث نه معلوميږى چې رضاعى خوې د نسبى خوى پشان دې، ددې نه معلومه شوه چې د ،اصلاب، په قيدسره صرف متبنى خارج شوې دې، لهذا د متبنى ښځه حلاله ده.

مصنف په دې عبارت كې رضاعى محرمات بيان كړى دى، رضاعى مور چې يو ځاځكې پې ئې هم ځكولى وى، د رضاعى خور سره نكاح حرام ده، په دليل كې ئې د قرآن پاك آيت او حديث پيش كړې دې. (الكفايه ، فتح القدير).

## ٣٢_ باب مَا جَاءَ فِي الشَّرْطِ عِنْدَ عُقْدَةِ النِّكَاحِ

## په نكاح كې د عقد په وخت كې د كوم شرط مقررولو بيان

**١١٢٧_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْيَزَنِيِّ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَحَقَّ الشُّرُوطِ أَنْ يُوفَى بِهَا مَا اسْتَحْلَلْتُمْ بِهِ الْفُرُوجَ". حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، قَالَ: إِذَا تَزَوَّجَ رَجُلٌ امْرَأَةً وَشَرَطَ لَهَا أَنْ لَا يُخْرِجَهَا مِنْ مِصْرِهَا فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُخْرِجَهَا، وَهُوَ قَوْلُ: بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ: الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ، وَرُوِيَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّهُ قَالَ: شَرْطُ اللَّهِ قَبْلَ شَرْطِهَا كَأَنَّهُ رَأَى لِلزَّوْجِ أَنْ يُخْرِجَهَا وَإِنْ كَانَتِ اشْتَرَطَتْ عَلَى زَوْجِهَا أَنْ لَا يُخْرِجَهَا، وَذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَبَعْضِ أَهْلِ الْكُوفَةِ.** [1]

---

[1] _ صحيح البخارى في الشروط ٦ (٢٧٢١) . والنكاح ٥٣ (٥١٥١) . صحيح مسلم في النكاح ٨ (١٤١٨) . سنن ابى داود في النكاح ٣٠ (٢١٣٩) . سنن النسائى في النكاح ٤٢ (٣٢٨١) . سنن ابن ماجه في النكاح ٤١ (١٩٥٤) . (تحفة الأشراف : ٩٩٥٣) . مسند احمد (٤ في ١٤٤، ١٥٠، ١٥٢) . سنن الدارمى في النكاح ٢١ (٢٢٤٩)

**ترجمه** دعقبه بن عامر جهني بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تولو شرطونو کي زيات دپوره کيدو حقدار دوه شرطونه دي دکوم په ذريعه چي تاسو شرمگاهونه حلال کړي دي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو په دي باندي عمل دي چي يو په هغوئ کي عمر بن خطاب رضي الله عنه هم دي، دي وائي کله چي څا ديوي ښځي سره نکاح اوکړه او دا شرط يي مقرر کړو چي دا ښځه به ددي ښار نه بل ځاي ته نه بوځئ نو دده دپاره به دا جائز نه وي چي ددي ښارنه يي بهر بل ځاي ته بوځي او همدا دبعضي اهل علمو قول هم دي امام شافعي او احمد او اسحاق رحمهم الله هم ددي قائل دي، البته دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي فرمائيل يي دالله تعالي شرط يعني حکم دالله تعالي دښځي په شرط باندي مقدم دي گويا کي دهغه په نظر کي دخاوند دپاره دښار نه بهر دښځي بوتلل جائز دي اگر که ښځي وړباندي دا شرط مقرر کړي وي چي دښار نه به يي بهر نه بوځي بعضي اهل علمو دا قول اختيار کړي دي او همدا دامام ثوري او بعضي اهل کوفه قول هم دي.

**تشريح :** **د مشروطي نکاح حکم:**

يوکس د يوې ښځې سره نکاح اوکړه، او زر روپئ مهر ئې مقرر کړو، په دې شرط چي دا به د ښار نه نه اوباسي، يا داچي ددې په موجودگئ کي به دويمې ښځې سره نکاح نه کوی نو دا نکاح صحيح ده، اگرچي دسفر نه کولو،اود دويم واده نه کولوشرط،شرط فاسد دې، اوشرط فاسد ځکه دې چي په دې کي د امرمشروع نه منع لازميږي نوکه خاوند شرط پوره کړو نود ښځې دپاره به مسمی يعنی زر روپئ وی، ځکه چي مسمی يعنی زر روپئ د مهر جوړيدلو صلاحيت هم لری، اود ښځې په زر روپو باندې رضامندی هم پوره شوه، ځکه چي په دې شرط کي د ښځې نفع ده، اوکه چري خاوند شرط پوره نکړو نو اوس به دا کتلې شی چي مهرمثل د مسمی نه کم دې، او که زيات يا برابر دې، که مهرمثل زيات وی، دمهرمسمی يعنی د زر روپو نه نود ښځې دپاره به مهرمثل وی، دليل دادې چي خاوند داسې څيز ذکر کړې دې چي په هغې کي د ښځې فائده ده، اوهم ددې نفع په وجه ښځه مهرمسمی د مهر مثل نه په کموالی راضی شوه نوگويا د مهر نقصان ددې نفع په مقابله کي دې نو ددې نفع د فوت کيدلو په صورت کي په زرو باندې د ښځې رضامندی معدوم شوي ده نو ددې مهرمثل به مکمل کولې شی، او دا داسې شوه، لکه چي داسې ئې وئيلی وی چي په زر روپو به زه ستا اکرام هم کوم. ياد زر روپو سره به څه هديه هم درکوم نوکه دا د کرامت اوهديه شرط ئې پوره نکړو نو مهرمثل به واجب وی، دغه شان دلته کي هم ده، اوکه چري مهرمثل د مسمی

يعنی د زر روپو نه کم دې، يا برابر دې نود شرط نه پوره کولو په صورت کې به هم مسمی يعنی زر روپۍ واجب وی، اودا شرط به د خاوند دطرفه تبرع(احسان) وی.

***************

## ٣٣ــ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُسْلِمُ وَعِنْدَهُ عَشْرُ نِسْوَةٍ

## كه څوك مسلمان شي او دده په نكاح لس ښځي وي نو څه به كوي

١١٢٨ــ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ غَيْلَانَ بْنَ سَلَمَةَ الثَّقَفِيَّ أَسْلَمَ، وَلَهُ عَشْرُ نِسْوَةٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَأَسْلَمْنَ مَعَهُ، "فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَخَيَّرَ أَرْبَعًا مِنْهُنَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَاهُ مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: وسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، يَقُولُ: هَذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ وَغَيْرُهُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: حُدِّثْتُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوَيْدٍ الثَّقَفِيِّ، أَنَّ غَيْلَانَ بْنَ سَلَمَةَ أَسْلَمَ، وَعِنْدَهُ عَشْرُ نِسْوَةٍ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَإِنَّمَا حَدِيثُ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ ثَقِيفٍ طَلَّقَ نِسَاءَهُ، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: لَتُرَاجِعَنَّ نِسَاءَكَ أَوْ لَأَرْجُمَنَّ قَبْرَكَ كَمَا رُجِمَ قَبْرُ أَبِي رِغَالٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالْعَمَلُ عَلَى حَدِيثِ غَيْلَانَ بْنِ سَلَمَةَ عِنْدَ أَصْحَابِنَا، مِنْهُمْ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي غيلان بن سلمه ثقفي دي اسلام قبول كړو او دجاهليت په وخت كي دهغه لس ښځي وي اوهغوئ ټولو ورسره هم اسلام قبول كړو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته حكم اوكړو چي ته په دوئ كي دخان دپاره څلور منتخب كړه

امام ترمذي وائي ددي يو هم معني حديث معمرو په سند دزهري عن سالم بن عبدالله عن ابن عمر سره نقل كړي دي. او ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه اوريدلي دي چي دا حديث غير محفوظ دي او صحيح هغه روايت دي كوم چي شعيب بن ابي حمزه وغيره په سند دزهري عن محمد بن سويد الزهري نقل كړي دي چي غيلان بن سلمه اسلام قبول كړو او دهغه سره لس ښځي وي. امام بخاري وائي چي صحيح دزهري حديث دي كوم چي هغه دسالم بن عبدالله نه او سالم دخپل پلار عبدالله بن عمر نه نقل كړي دي چي دثقيفه قبيلي يو كس خپلو ښځو ته طلاق وركړو نو عمر رضي الله عنه ورته اووئيل ته خپلو ښځو ته رجوع اوكړه او كه داسې

[1] ــ سنن ابن ماجه في النكاح ٤٠ (١٩٥٣) . (تحفة الأشراف ٦٩٤٩)

اونکړي نو زه به دي قبر په کانړو اولم لکه چي دابو رغال قبر په کانړو ويشتلي شوي دي، زمونږ دفقهاؤ چي امام شافعي او احمد او اسحاق هم پکي شامل دي په دي حديث باندي عمل دي

**تشريح** : مسئله دائمه اربعه اوجمهور اهل اسلام اتفاق دي چي دڅلورو ښځو نه زياتي په نکاح کي ساتل جائز نه دي ، بعضي خلق وائي چي دحلت دنکاح کوم مقرر تعداد نشته څومره ښځي چي څوك غواړي په نکاح کي يې ساتلي شي ځکه چي ايت کريمه فانکحوا ماطاب لکم ، مفيد دعموم دي او مثني وثلث وربع قيد نه دي بلکي دعرفي تعداد اظهار دي لکه چي ونيلي شي ددي درياب نه چي څومره اوبه غواړئ واخلئ يو مشك دوه مشك . که چري دا تعداد قيد هم اومنلي شي نو بيا هم دڅلورو جواز ثابتيږي اودڅلورو نه دزيات په عدم جواز کوم لفظ دلالت نه کوي مګر په ذکر دعدد سره دا خيال کيدي شي چي ددي عدد نه زائد جائز نه دي مګر مفهوم لره اعتبار نشته

بغوي ليکلي دي چي دقيس بن حارث نهه ښځي وي ددي ايت دنزول نه پس ده ته رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څلورو ته طلاق ورکړه او څلور دخان سره پريږده ، دقيس رضي الله عنه بيان دي چي ما په هغه نهه ښځو کي هغه ښځو ته اوونيل دچاچي اولاد نه وو شوي تاسو لاړي شئ اودکومو چي اولاد شوي وو هغوئ ته مي اوونيل تاسو راشئ پس درسول الله دا فرمان ددي ايت دپاره بيان شو او هم هغه دالله تعالي په مراد باندي ډيرښه پوهيدو

دڅلورو نه دزياتو ښځو سره په يووخت کي نکاح ناجائز کيدل دابن عمر رضي الله عنهما دحديث نه هم ثابت دي چي غيلان بن سلمه ثقفي مسلمان شو نودده سره دده هغه لس ښځي هم مسلماني شوي کومي چي دجاهليت په وخت کي دده په نکاح کي وي نبي کريم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل څلور دخان سره اوساته اوباقي پريږده (رواه الشافعي واحمد والترمذي وابن ماجه)

دنوفل بن معاويه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي کله زه مسلمان شوم نوپدي وخت کي زما سره پنځه ښځي وي مادرسول کريم صلي الله عليه وسلم نه پدي باره حکم طلب کړو نو وئي فرمائيل يوه پريږده اوڅلور اوساته نوماهغه ښځه پريخودله کومه چي دټولو نه مخکي دشپيته کالونه زما سره ملګري وه مګر شنډه وه (رواه الشافعي والبغوي في شرح السنة)

صرف دڅلورښځو په نکاح کي په ساتلو باندي اجماع شوي ده داجماع په مقابله کي دبعضي خلقو قول باطل دي په غير محدود تعداد سره دنکاح دجواز قائل خو څوك بدعتي هم نشته . دخوارجو اوروافضو په نزد باندي هم تعداد معين دي چي اتلس اونهه دي

**مسئله** که چرې چا اسلام راوړو اووده په نکاح کې دڅلورو نه زياتې ښځې وي يا دوه خويندې وي . يانې مور اولور دواړه په نکاح کې وي او داښځې هم ورسره مسلمانانې شوي اويا اهل کتابې وي نود امام مالك او شافعي او امام احمد او امام محمد رحمهم الله په نزد باندې چې دده کومې څلور خوښې وي هغه دې دځان سره وساتي اوزياتې دې پرېږدي اوپه دوه خويندو کې چې ئې کومه يوه زياته خوښه وي هغه دې دځان سره وساتي اوبله دې پرېږدي اوپه مور اولور کې چې ئې کومه خوښه وه هغه دې وساتي

امام ابوحنيفه رحمة الله عليه فرمائيلي دي که چرې په يوعقد سره ئې دټولو سره نکاح کړې وي (نوبيا چاته په چاباندې دترجيح وجه نشته)ټولي به پرېږدي اوکه چرې ديوي نه پس ئې دبلې سره عقد کړې وي نود کومې ښځې په نکاح کې چې تقديم وي دهغې نکاح دې قائم وساتلې شي اود وروستنۍ منکوحې نکاح به ختم کړې شي ، مگرکه چرې مور اولور دچا په نکاح کې وي نود اسلام نه پس دواړو نکاح ختمېږي خوپدې شرط چې ددواړو سره ئې قربت صنفي کړې وي ځکه چې پدې وخت کې په دواړو کې ديوې سره هم نکاح درست نده ، په احاديث مذکوره کې په کوموکې چې رسول الله صلي الله عليه وسلم دزياتو ښځو والايادوه خويندو جمع کونکې په نکاح کې لرونکو خاوندانوته دانتخاب اختيار ورکړې شوې ، اومندرجه ذيل حديث دامام ابوحنيفه په خلاف داخبره ثابتوي ، ضحاك بن فيروز ديلمي دخپل نيکه نه نقل کوي چې فرمائيل ئې ما عرض وکړو اې دالله رسوله زه مسلمان شوي يم اوزما په نکاح کې دوه خويندې دي رسول کريم صلي الله عليه وسلم راته اوفرمائيل په دواړو کې دخپلې خوښې يوه اختيار کړه.

**مسئله**: روافضو په يو وخت کې دنهه ښځو سره دنکاح کولو دجواز قول کړې دې اوددې ايت نه يې استدلال کړې دې نخعي او ابن ابي ليلي ته يې هم ددې قول نسبت کړې دې اوددې دپاره يې دليل دا بيان کړې دې چې واو دمطلق جمعيت په معنې دلالت کوي.

خوارج داتلس ښځو سره په يو وخت کې دنکاح کولو دجواز قائل دي اودا ځکه اگر چې لفظ مفرد دې ليکن په معنې کې تکرار دې نوپه دې وجه باندې نهه او نهه اتلس شو دا دواړه قولونه غلط دي.

دخوارجو قول ځکه غلط دې چې دا الفاظ د ادا مکرره نه معدول دي مگر دتکرار دعدد دپاره څه خاص حد نشته ، دتکرار معنې صرف دوه ځل يا د دوو عدد نه وي بلکې دوه ، دوه ، دوه ، دوه، غرض دا چې لامحدود الفاظو ته تکرار شامل دې ، پس څوك چې کوم جماعت ته اووائي ددې دراهمو نه دوه دوه واخلئ نوددې مطلب دا وي چې هر يو کس دې دوه درهمه واخلي ليکن دا مقصد نه وي چې هر يوکس دې څلور درهمه واخلي ايت کې.

دروافضو قول په دي وجه غلط دي چي اهل بلاغت دنهو دعدد بيانولو دپاره دوه او دري او څلور نه وائي بلكي مطلب دا دي چي هر يو دپاره د دوو سره هم نكاح جائز ده او دهر يودپاره د دريو سره هم نكاح جائز ده اودهر يو دپاره دڅلورو سره هم نكاح جائز ده. (بيضاوي)

**مسئله** ددري امامانو په نزد غلام لره صرف ددوه ښځو په نكاح كي دساتلو اجازت شته ، اود امام مالك په نزد باندي غلام هم په نكاح كي څلور ښځي ساتلي شي خكه چي ايت مذكوره عام دي ازاد اوغلام ټول ددي په حكم كي داخل دي، اودداود ظاهري اوربيعه هم داقول دي

**مسئله** د جمهور فقهاؤ په نزد دنكاح پيغام ليږونكي دپاره دنكاح نه مخكي دجينۍ مخ او دواړه لاسونه ليدل بالاجماع مسنون دي .

داود ظاهري دمخطوبي تمام بدن بغير دعورت غليظه نه كتل دنكاح نه مخكي جائز ګڼري.

دجابر رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه چري پتاسو كي څوك كومي ښځي ته دنكاح پيغام وليږي كه چري دداسي ځايونو ليدل ئي ممكن وي چي نكاح ته رغبت پيدا كوي نوداسي دي وكړي شي( رواه ابوداود)

دمغيره بن شعبه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما يوي ښځي ته دنكاح پيغام وليږلو رسول كريم صلي الله عليه وسلم راته اوفرمائيل ايا تاليدلي ده؟ ما عرض وكړو چي نه نو وئي فرمائيل دي لره ووينه ، داليدل په تاسو دواړو كي داتفاق دپاره زيات مناسب عمل دي (رواه احمد والترمذي والنسائي وابن ماجه والدارمي).

***************

## ٣٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُسْلِمُ وَعِنْدَهُ أُخْتَانِ

### څوك چي اسلام قبول كړي او دهغه په زوجيت كي دوه خويندي وي نو څه به كوي

١١٢٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجَيْشَانِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ فَيْرُوزَ الدَّيْلَمِيِّ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ: قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَسْلَمْتُ وَتَحْتِي أُخْتَانِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اخْتَرْ أَيَّتَهُمَا شِئْتَ".[1]

**ترجمه** دفيروز ديلمي رضي الله عنه بيان دي چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او عرض مي اوكړو اي دالله رسوله ما اسلام قبول كړي دي او زما په نكاح كي دوه خويندي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ستا چي په دوۍ دواړو كي كومه يوه خوښه وي هغه دځان دپاره منتخب كړه

[1] ـ سنن ابي داود في الطلاق ٢٥ (٢٢٤٣)، سنن ابن ماجه في النكاح ٣٩ (١٩٥١). (تحفة الأشراف: ١١٠٦١)

*****************

۱۱۳۰ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ أَيُّوبَ يُحَدِّثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجَيْشَانِيِّ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ فَيْرُوزَ الدَّيْلَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَسْلَمْتُ وَتَحْتِي أُخْتَانِ، قَالَ: "اخْتَرْ أَيَّتَهُمَا شِئْتَ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو وَهْبٍ الْجَيْشَانِيُّ اسْمُهُ: الدَّيْلَمُ بْنُ هَوْشَعَ. (1)

**ترجمه** دفيروز ديلمي رضي الله عنه بيان دي چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او عرض مي اوكړو اي دالله رسوله ما اسلام قبول كړي دي او زما په نكاح كي دوه خويندي دي نو رسول الله راته اوفرمائيل په دوئ دواړه كي چي دي كومه يوه زياته خوښه وي هغه دخان دپاره منتخب كړه (او دويمي ته طلاق وركړه)
امام ترمذي وائي داحديث حسن دي.اود ابو وهب الجيشاني نوم الديلم بن هوشع دى

*****************

## ۳۵ـ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَشْتَرِي الْجَارِيَةَ وَهِيَ حَامِلٌ

### كه څوك يوه وينځه واخلي اوهغه حامله وي نوحكم به څه وي

۱۱۳۱ـ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ الشَّيْبَانِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلَا يَسْقِ مَاءَهُ وَلَدَ غَيْرِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، لَا يَرَوْنَ لِلرَّجُلِ إِذَا اشْتَرَى جَارِيَةً وَهِيَ حَامِلٌ أَنْ يَطَأَهَا حَتَّى تَضَعَ. وَفِي الْبَابِ: عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَالْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ. (2)

**ترجمه** درويفع بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي په الله او په ورځ داخرت ايمان لري هغه دي خپلي اوبه د بل چا په بچي نه تويوي.

[1] ـ سنن ابي داود في الطلاق ۲۵ (۲۲۴۳) . سنن ابن ماجه في النكاح ۳۹ (۱۹۵۱) . (تحفة الأشراف : ۱۱۰۶۱)

[2] ـ سنن ابي داود في النكاح ۴۵ (۲۱۵۸) . (تحفة الأشراف : ۳۶۱۵) . مسند احمد (۴ في ۱۰۸) . سنن الدارمي في السير ۳۷

او امام ترمذي وائي داحديث حسن دي او دا په نورو سندونو هم درويفع بن ثابت نه مروي دي داهل علمو عمل هم په دي باندي دي دوئ دهيڅادپاره دا جائز نه ګڼړي چي کله څوك حامله وينځه واخلي هغه دي ددي سره صحبت اوکړي چي څو پوري وضع دحمل نه وي شوي. په دي باب کي دابو الدرداء ، ابن عباس، عرباض بن ساريه او ابوسعيدخدري رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

****************

## باب ماجاء في الرجل يسبي الامة ولها زوج هل يحل له ان يطأها

## که څوك دجهاد نه کومه وينځه دقيد په حالت کي راولي اوهغه شادي شده وي نو ددي سره دده دپاره مجامعت جائز دي

١١٣٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ الْبَتِّيُّ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "أَصَبْنَا سَبَايَا يَوْمَ أَوْطَاسٍ وَلَهُنَّ أَزْوَاجٌ فِي قَوْمِهِنَّ، فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَزَلَتْ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ (النساء: ٢٤). قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَهَكَذَا رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عُثْمَانَ الْبَتِّيِّ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبُو الْخَلِيلِ اسْمُهُ: صَالِحُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، وَرَوَى هَمَّامٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ صَالِحٍ أَبِي الْخَلِيلِ عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ الْهَاشِمِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.
حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ. [1]

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ په غزوه اوطاس کي څه قيدياني ښځي راوستلي او دهغوئ په قوم کي دهغوئ خاوندان موجود وو نو خلقو ددي ذکر رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اوکړو نو دي وخت کي دا ايت کريمه "والمحصنات من النساء الاماملکت ايمانکم" نازل شو

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي اودا قسم روايت دسفيان ثوري نه په سند دعثمان البتي عن ابي الخليل عن ابي سعيد سره روايت مروي دي

****************

[1] ـ صحيح مسلم في الرضاع ٩ (١٣٥٦) ، والمؤلف في تفسير النساء (٣٠١٧) صحيح مسلم في النكاح سنن ابي داود في النكاح ٤٥ (٢١٥٥) ، سنن النسائي في النكاح ٥٩ (٣٣٣٥) ، (تحفة الأشراف : ٤١٣٢) ، مسند احمد (٣ في ٩٣) والمؤلف في تفسير النساء (٣٠١٦)

## ٣٧_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ مَهْرِ الْبَغِيِّ

### دزناكاري ښځي دامد ني دحرمت بيان

١١٣٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَمَهْرِ الْبَغِيِّ وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابومسعود انصاري رضي الله عنه بيان دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسپي دقيمت اخستلو يعني ددي دخرڅولو نه او دزناكاري ښځي دامدنئ نه او دكاهن دخوړونه منع فرمانيلي ده.

امام ترمذي وائي دابومسعود انصاري حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي درافع بن خديج، ابو جحيفه، ابوهريره، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**لغات**: الثمن: معني دمبيعي مالي بدل ، قيمت، الثمانة او الثمين قيمتي څيز.

البغي معني ظلم، خيانت، گناه، جنايت، ډير باران.

**تشريح**: په ښځو امدن حاصلولوباندي اود نجوميانو په اجرت باندي اود سپو په ساتلو باندي په دي حديث كي بحث شوي دی.

**مهر البغي**: ديته ويلي شي چي زناكاره ښځه په زنا باندي اجرت واخلي پدي دتمامو علماؤ اتفاق دي چي داقسم اجرت حرام قطعي دي

**حلوان الكاهن**، يعني دكاهن شيريني، كاهنانو ته چي به كوم خلق راتلل او هغئ به ورته راتلونكي خبرونه بيانول نو خلقو به ورته دشيرينئ په نوم اجرت وركولو ، داهم حرام دي

بعضي علماؤ دحديث مذكوره ظاهر ته په كتو سره د هر قسم سپي قيمت او خريدو فروخت حرام گرځولي دي ، مگر امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله او بعضي نورو علماؤ دا حديث په دي حمل كړي دي چي ددينه غير معلم اوغير ښكاري سپي مراد دي، او كه چا په

---

[1] _ صحيح البخارى في البيوع ١١٣ (٢٢٣٧) ، والاجارة ٢٠ (٢٢٨٢) ، والطلاق ٥١ (٥٣٤٦) ، والطب ٤٦ (٥٧٦١) . صحيح مسلم في المساقاة ٩ (البيوع ٣٠) ، (١٥٦٧) . سنن ابي داود في البيوع ٤١ (٣٤٢٨) ، و ٦٥ (٣٤٨١) . سنن النسائي في الصيد والذبائح ١٥ (٤٢٩٧) . البيوع ٩١ (٤٦٧٠) . سنن ابن ماجه في التجارات ٩ (٢١٥٩) . (تحفة الأشراف : ١٠٠١٠ و موطا امام مالك في البيوع ٢٩ (٦٨) . مسند احمد (٤ في ١١٨، ١٢٠، ١٤٠، ١٤١) ويأتي عند المؤلف في البيوع ٤٦ (١٢٧٦) . والطب ٢٣ (٢٠٧١)

سپي محنت وکړو اوښکار يې ورته وخودلو. يا ددي حديث تعلق دهغه وخت سره دي کله چي رسول الله دسپو دوژلو حکم کړي وو او بيا وروسته ددي حکم منسوخ شو

## فرشتي داسي کورته نه ورځي چي سپي يا تصوير پکي وي

دابوطلحه رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کوم کور کي چي تصوير ياسپی وي درحمت فرشتي نه ورننوزي.(بخاري مسلم)

داسي کورونو ته فرشتي نه ورځي په کومو کي چي سپی يا تصوير موجود وي، دا حکم د هغه سپي دی دکوم چي ساتل حرام دي او دکومو سپو دساتلو چي اجازت شته هغه په دي کي داخل نه دي، مثلا ښکاري سپی يا دځاروو دحفاظت دپاره دداسي سپو ساتل دفرشتو دپاره رکاوټ نه جوړيږي

او دتصوير نه مراد هغه تصوير دی دکوم ساتل او استعمالول چي حرام دي او که داسي تصوير وي چي بالکل وړوکی وي يا دغير ذي روح څيز تصوير وي نو دداسي تصوير موجودګي هم دفرشتو دپاره رکاوټ نه دی، ليکن بعضي علماء وائي چي دا حکم عام دی هر قسم سپي او تصوير ته شامل دی برابره خبره ده چي په کورکي يي دساتلو اجازت وي او که نه

دفرشتونه هغه فرشتي مراد دي کومي چي دانسانانو داعمالو ليکونکي او حفاظت کونکي نه وي ځکه چي عمل ليکونکي فرشتي خو په هر حال کي دانسان سره موجودي دي

داسي کورونو ته فرشتي نه ورځي په کومو کي چي سپی يا تصوير موجود وي، دا حکم د هغه سپي دی دکوم چي ساتل حرام دي او دکومو سپو دساتلو چي اجازت شته هغه په دي کي داخل نه دي، مثلا ښکاري سپی يا دځاروو دحفاظت دپاره دداسي سپو ساتل دفرشتو دپاره رکاوټ نه جوړيږي

## دسپي په وجه جبريل نه راتلو

دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چي جبرائيل عليه السلام رسول الله صلي الله عليه وسلم سره دراتلو وعده کړی وه بيايي راتلو کي دومره تاخير اوکړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته انتظار مشکل شو بهر ته اووتو نو جبرائيل عليه السلام ورسره ملاقات اوکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته دتاخير ګيله اوکړه نو هغه اووئيل مونږ داسی کور ته نه ورځو کوم کي چي سپي يا تصوير وي.

ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دښکار يا فصل دحفاظت نه علاوه سپی اوساتلو هره ورځ به يی دنيکو دثواب نه دوه قيراطه اجر کميږي او په يو روايت يو قيراط راغلی دی.

## دقيراط تحقيق

قیراط یو وزن دی کوم چي یو دانګ شپږ رتی او دبعضو په نزد دیو دینار ۲/۴ حصه ده او دبعضو په قول ددینار لسمه حصي دنیمي برابر وي او یو دانګ دشپږ رتو برابر وي یا دیو درهم دشپږمي حصي برابر وي او په بعضو روایتونو کي دقیراط وزن داحد دغر برابر خودلی شوی دی خلاصه داده چي دضرورت نه بغیر سپي ساتلو په وجه انسان دخپلو نیکو عملونو دیوي ډیري لویي حصي نه محرومیږي.

## په بعضي وجوهاتو سپي ساتل جائز دي

ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي چاچي سپی اوساتلو دهغه نیك عمل داجر نه به هره ورځ دوه قیراطه کمیږي لیکن که دپټي یا څاروو دحفاظت دپاره وي نو خیر دی.

او دامام مسلم یو روایت په دی الفاظو دی چاچي سپی اوساتلو که دښکار سپی یا دپټي او یا دڅاروو دحفاظت سپی نه وي نو دهغه داجر نه هره ورځ دوه قیراطه کمیږي.

یو سوال څلور جوابونه

سوال دسپي ساتلو په وجه په یو روایت کي دیو قیراط ثواب دکمیدو ذکر دی او په بل روایت کي د دوه قیراطه نیکۍ کمیدو ذکر دی په دواړو روایتونو کي تعارض دی.

جواب بعضي علماء وائي بعضي سپي ډیرخطرناك په تکلیف رسونکي وي نو دهغي په ساتلو سره دوه قیراطه ثواب کمیږي او کوم سپي چي کم ضرر والا وي دهغوی په ساتلو یو قیراط ثواب کمیږي.

دویم جواب مقدس مقام مثلا مکه ، مدینه، وغیره ښارونو کي بغیر دضرورته سپي ساتلو په وجه دوه قیراطه ثواب کمیږي او ددینه په علاوه ښارونو کي یو قیراط ثواب کمیږي.

دریم جواب په ښار کي دوه قیراطه کمیږي او په کلو کي یو قیراط کمیږي.

څلورم په ابتداء کي دیو قیراط وعید وو لیکن کله چي خلقوسپي ساتل زیات کړل نو په زجر کي زیادت راغی او ددوه قیراطه ثواب کمیدو حکم جاري شو اوس به په دوه قیراطه ثواب کمیدو والاحدیث باندي عمل وي

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي درحمت فرشتی داسی قافلی سره نه ملګري کیږي کومه کي چي سپی وي یا جرس وي

"لاتصحب الملائکة" یعني فرشتي ملګرتیا نه کوي، ددینه هغه فرشتي مراد دي کومي چي داعمالو لیکونکو او حفاظت کونکو نه علاوه وي

"جرس" یعني تلی ددي په وجه هم فرشتي لري تختي څکه چي دا د ناقوس سره مشابه دی کوم چي دغیرمسلمو علامه ده یا داچي ددي اواز په شریعت کي بد ګڼړلی شوی دی، په یو

روايت کي راځي چي يو هلك عائشه رضي الله عنها ته راغلو او داسي څيز ورسره وو چي شرنګا يي کوله ام المومنين ورته اوفرمائيل داسي څيز زما خواته مه راوړه کوم چي فرشتو لره لري شرونکی وي

**د ابو مسعود عبدالله بن بسر رضي الله عنه حالات:**

نوم عبدالله دپلار نوم بسر او د ماذن قبيلي سره يي تعلق وو او کنيه يي ابو مسعود دد. او انصاري يي لقب دی، دده مور او پلار او ورور چي علي دی او دده خور صحما، ټولو ته رسول الله صلي الله عليه وسلم دملاقات شرف حاصل شوی دی رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوی دپاره دعمر د اوږدوالي دعا غوښتلي ده ۵۰ روايات ورنه منقول دي چي په بخاري او مسلم کي يو يو ذکر شوي دي

اصحاب سير ليکلي دي چي دده مرګ ناڅاپي داودس په وخت کي واقع شو دده دپاره نبي کريم صلي الله عليه وسلم دعمر داوږدوالي دپاره دعا غوښتلي وه نو ځکه يي عمر ډير اوږد وو چي په شام ياحمص کښ په ۸۸هجري کي وفات شو او عمر يي ۹۴ کلونو ته رسيدو او دبعضو په نزد دده عمر سل کاله وو (تهذيب التهذيب).

***************

## ٣٨_ بَاب مَا جَاءَ أَنْ لَا يَخْطُبَ الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ

**يومسلمان دي دخپل بل مسلمان ورور د نکاح په پيغام دخپلي نکاح پيغام نه ورکوي**

١١٢٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَقُتَيْبَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ قُتَيْبَةُ: يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ أَحْمَدُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَبِيعُ الرَّجُلُ عَلَى بَيْعِ أَخِيهِ وَلَا يَخْطُبُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَمُرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ: إِنَّمَا مَعْنَى كَرَاهِيَةِ أَنْ يَخْطُبَ الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ: إِذَا خَطَبَ الرَّجُلُ الْمَرْأَةَ فَرَضِيَتْ بِهِ فَلَيْسَ لِأَحَدٍ أَنْ يَخْطُبَ عَلَى خِطْبَتِهِ. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ لَا يَخْطُبُ الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ: هَذَا عِنْدَنَا إِذَا خَطَبَ الرَّجُلُ الْمَرْأَةَ فَرَضِيَتْ بِهِ وَرَكَنَتْ إِلَيْهِ، فَلَيْسَ لِأَحَدٍ أَنْ يَخْطُبَ عَلَى خِطْبَتِهِ. فَأَمَّا قَبْلَ أَنْ يَعْلَمَ رِضَاهَا أَوْ رُكُونَهَا إِلَيْهِ فَلَا بَأْسَ أَنْ يَخْطُبَهَا، وَالْحُجَّةُ فِي ذَلِكَ حَدِيثُ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، حَيْثُ جَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ لَهُ: أَنَّ أَبَا جَهْمِ بْنَ حُذَيْفَةَ، وَمُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ خَطَبَاهَا، فَقَالَ: أَمَّا أَبُو جَهْمٍ فَرَجُلٌ لَا يَرْفَعُ عَصَاهُ عَنِ النِّسَاءِ،

وَأَمَّا مُعَاوِيَةُ فَصُعْلُوكٌ لَا مَالَ لَهُ، وَلَكِنِ انْكِحِي أُسَامَةَ فَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَنَا وَاللهُ أَعْلَمُ أَنَّ فَاطِمَةَ لَمْ تُخْبِرْهُ بِرِضَاهَا بِوَاحِدٍ مِنْهُمَا، وَلَوْ أَخْبَرَتْهُ لَمْ يُشِرْ عَلَيْهَا بِغَيْرِ الَّذِي ذَكَرَتْ.([1])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هيڅوك دي دخپل مسلمان ورور په سودا دپاسه سودا نه كوي او نه دي څوك دخپل يو ورور دپيغام دپاسه چاته دنكاح دپاره خپل پيغام ورليږي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي . او په دي باب كي دسمره او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، دمالك بن انس بيان دي چي ديو كس دپاره خپل ورور دپيغام دپاسه دپيغام ليږلو مطلب دادي چي يو سړي چاته دنكاح پيغام ورکړي وي او ښځه په دي باندي راضي شوي وي په داسي وخت كي دهيچا دپاره جائز نه دي چي دخپل يو ورور دپيغام دپاسه خپل پيغام وروليږي، امام شافعي وائي ددي حديث مطلب زمونږ په نزد دادي چي كله يو سړي يوي ښځي ته پيغام ليږلي وي او ښځه دهغه نه راضي شوي وي او دده طرف ته مائل شوي وي نو په داسي صورت كي دهيچادپاره پيغام ليږل درست نه دي چي هغه دده د پيغام دپاسه خپل پيغام وروليږي مگر ددي درضامندئ او د ميلان ښكاره كيدو نه مخكي كه څوك خپل پيغام ورليږي نو په دي كي څه حرج نشته او ددي دليل حديث دفاطمه بنت قيس رضي الله عنها دي چي د نبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضره شوه او عرض يي اوكړو چي ابوجهم او معاويه بن ابي سفيان ماته دنكاح پيغام راکړي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل دابوجهم معامله خو داده چي هغه هيڅ كله خپل لوړ داوړي نه نه كوزوي (يعني ښځي ډيري وهي) او پاتي شو معاويه نو هغه خو انتهائي نيس مند دي هيڅ مال ورسره نشته ستا دپاره بهتره داده چي ته داسامه بن زيد سره نكاح اوكړي، زمونږ په نزد ددي حديث مفهوم دادي چي فاطمه په دوئ كي ديو سره هم دخپلي رضامندئ اظهار نه وو كړي او كه چري هغي اظهار كړي وي نو د هغه په پريخودو سره به رسول الله هغي ته داسامه سره دنكاح كولو مشوره نه وي وركړي

**تشريح** : مسلم هم د عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت نقل كړى دى چي رسول الله صلي

---

[1] ـ البخارى في البيوع ٥٨ (٢١٤٠) . مسلم في النكاح ٦ (١٤١٣) . سنن ابي داود في النكاح ١٨ (٢٠٨٠) . سنن النسائي في النكاح ٢٠ (٣٢٤١) . سنن ابن ماجه في النكاح ١٠ (١٨٦٧) . والتجارات ١٣ (٢١٧٢) . (تحفة الأشراف : ١٣١٢٣) . مسند احمد (٢ في ٢٣٨) وأخرجه صحيح البخارى في الشروط ٨ (٢٧٢٣) . والنكاح ٣٥ (٥١٤٢) . صحيح مسلم في النكاح . سنن النسائي في البيوع ١٦ (٤٤٩٦) . و ٢١ (٤٥١٠) . مسند احمد (٢ في ٢٧٤ . ٣١١ . ٣١٨ . ٣٩٤ . ٤١١ . ٤٢٧ . ٤٥٧ . ٤٨٧ . ٤٨٩ . ٥٠٨ . ٥١٦ . ٥٢٩) . سنن الدارمي في النكاح ٧ (٢٢٢١) . (وانظر ايضا الارقام : ١١٩٠ و ١٢٢٢ و ١٣٠٤)

الله عليه وسلم فرمائيلي دي ـ "يو كس به دبل كس په سودا سودا نه كوي"
أخرجه: مسلم كتاب النكاح باب تحريم الخطبة على خطبة اخيه ٤/١٣٩ (١٤١٤) (٥٦).
ددي حديث مطلب دادى كله چي دوه كسانو مينځ كي سودا روانه وي نو د دريم كس دپاره جائز نه دي چي هغه هم ددي څيز داخستلو خبره شروع كړي او داسي اوواني چي زه دا څيز په دومره اخلم ده لره پكار دي چي انتظار اوكړي كه چري ددوى په مينځ كي معامله اونه شوه نو بيا دى معامله كولى شي
ددي وجه داده چي دداسي كار په وجه په خلقو كي بغض او عداوت پيدا كيږي او محبت او اسلامي اخوت ددي په سبب ختميږي او په حديث كي خو راغلي دي چي يو مومن دبل مومن ورور دى

***************

١١٣٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي الجَهْمِ، قَالَ: دَخَلْتُ أَنَا، وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَلَى فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، فَحَدَّثَتْنَا أَنَّ زَوْجَهَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا وَلَمْ يَجْعَلْ لَهَا سُكْنَى وَلَا نَفَقَةً، قَالَتْ: وَوَضَعَ لِي عَشَرَةَ أَقْفِزَةٍ عِنْدَ ابْنِ عَمٍّ لَهُ خَمْسَةً شَعِيرًا وَخَمْسَةً بُرًّا، قَالَتْ: فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ، قَالَتْ: فَقَالَ: "صَدَقَ"، قَالَتْ: فَأَمَرَنِي أَنْ أَعْتَدَّ فِي بَيْتِ أُمِّ شَرِيكٍ، ثُمَّ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ بَيْتَ أُمِّ شَرِيكٍ بَيْتٌ يَغْشَاهُ المُهَاجِرُونَ، وَلَكِنْ اعْتَدِّي فِي بَيْتِ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ فَعَسَى أَنْ تُلْقِي ثِيَابَكِ وَلَا يَرَاكِ، فَإِذَا انْقَضَتْ عِدَّتُكِ فَجَاءَ أَحَدٌ يَخْطُبُكِ فَآذِنِينِي"، فَلَمَّا انْقَضَتْ عِدَّتِي خَطَبَنِي أَبُو جَهْمٍ، وَمُعَاوِيَةُ، قَالَتْ: فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: "أَمَّا مُعَاوِيَةُ فَرَجُلٌ لَا مَالَ لَهُ، وَأَمَّا أَبُو جَهْمٍ فَرَجُلٌ شَدِيدٌ عَلَى النِّسَاءِ"، قَالَتْ: فَخَطَبَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ فَتَزَوَّجَنِي، فَبَارَكَ اللَّهُ لِي فِي أُسَامَةَ. هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي الجَهْمِ نَحْوَ هَذَا الحَدِيثِ، وَزَادَ فِيهِ، فَقَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "انْكِحِي أُسَامَةَ".
حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي الجَهْمِ بِهَذَا. [1]

---

[1] ـ مسلم في الطلاق ٦ (١٤٨٠). سنن النسائي في الطلاق ١٥ (٣٢٤٧) و ٧٢ (٣٥٨١). سنن ابن ماجه في الطلاق ١٠ (٢٠٣٥). (تحفة الأشراف ـ ١٨٠٣٤) و أخرجه كل من: صحيح مسلم في النكاح (المصدر المذكور). سنن ابي داود في الطلاق ٣٩ (٢٢٨٤). سنن النسائي في النكاح ٨ (٣٢٢٤)، و٢١ (٣٢٤٦)، والطلاق ٣ (٢٠٢٣)، و٩ (٢٠٢٣). موطا امام مالك في الطلاق ٢٣ (٦٧). مسند احمد (٦ في ٤١٣، ٤١٥) سنن الدارمي في النكاح ٧ (٢٢٢٣)، والطلاق ١٠ (٢٢٤٠) عند المؤلف برقم: ١١٨٠

**ترجمه** دابوبکر بن ابي جهم بيان دي فرماني چي زه او ابوسلمه بن عبدالرحمن دواړه فاطمه بنت قيس رضي الله عنها ته ورغلو او هغي مونږ ته اووئيل چي ماته زما خاوند طلاق راکړي دي او نه يي زما دپاره داوسيدو انتظام کړي دي او نه دخوړلو څکلو او هغه زما دپاره لس بورئ غله او پنځه بورئ وربشي او پنځه بورئ غنم دخپل تره خوي سره ايخودلي وو نو زه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلم او دخپلو دي حالاتو ذکر مي ورته وکړو رسول الله اوفرمائيل هغه ډير درست کار کړي دي او ماته يي بيا حکم اوکړو چي زه دام شريك په کور کي عدت تير کړم او بيا ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دام شريك کور ته مهاجرين تلل راتلل کوي (هغه هم مناسب نه دي) لهذا ته دابن ام مکتوم په کور کي عدت تير کړه هلته به ستا دپاره دا سهولت وي چي که څه وخت ستا دسر نه لوپټه وغيره پريوځي نو هيڅوك به دي نه ويني او بيا چي کله ستا عدت پوره شي او څوك درته دنکاح پيغام درکړي نو ما خبر کړه کله چي زما عدت پوره شو نو ما ته ابوجهم او معاويه دنکاح پيغام راکړو زه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلم او ددي خبري ذکر مي ورته اوکړو نو رسول الله اوفرمائيل معاويه خو يو داسي سړي دي چي هيڅ قسم مال ورسره نشته او ابوجهم دښځو سره ډيره اخلاقي سختي کوي. بيا ماته اسامه بن زيد دنکاح پيغام راوليږلو او زما سره يي واده اوکړو او الله تعالي په اسامه کي زما دپاره خير او برکت واچولو، امام ترمذي وائي دا حديث صحيح دي او دا روايت سفيان ثوري هم دابوبکر بن ابي جهم نه ددي حديث دمفهوم مطابق نقل کړي دي مګر په دي کي دومره اضافه ده چي ماته نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ته دا سامه سره نکاح اوکړه

*****************

## ٣٩_ باب مَا جَاءَ فِي الْعَزْلِ

### دعزل کولو بيان

١١٣٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ. حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ. حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ. عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا كُنَّا نَعْزِلُ فَزَعَمَتْ الْيَهُودُ أَنَّهَا الْمَوْءُودَةُ الصُّغْرَى. فَقَالَ: "كَذَبَتْ الْيَهُودُ إِنَّ اللهَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْلُقَهُ فَلَمْ يَمْنَعْهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَالْبَرَاءِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ. (١)

---

١ سنن النسائي في عشرة النساء (في الكبرى) (تحفة الأشراف _ ٢٥١٠)

**ترجمه** دجابررضي الله عنه بيان دي چي مونږعرض اوكړو اي دالله رسوله مونږ به عزل كولو او يهوديانو به ونيل دا خو په قبر كي دژوندي خوښولو يو وړوكي صورت دي رسول الله اوفرمائيل يهوديان دروغژن دي الله تعالي چي كله دي لره پيدا كول غواړي نو هيڅوك يي حصارولني نشي

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعمر، براء، ابوهريره، او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

***************

١١٣٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَابْنُ أَبِي عُمَرَ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "كُنَّا نَعْزِلُ وَالقُرْآنُ يَنْزِلُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ فِي الْعَزْلِ، وقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ: تُسْتَأْمَرُ الْحُرَّةُ فِي الْعَزْلِ وَلَا تُسْتَأْمَرُ الأَمَةُ. [1]

**ترجمه** : دجابررضي الله عنه بيان دي چي مونږ به عزل كولو او قران به نازليدلو

امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي، او دا حديث په يو څو نورو سندونو هم مروي دي په صحابه كرامو وغيره خلقو كي داهل علمو يو جماعت دعزل اجازت وركړي دي. دمالك بن انس قول دي دازادي ښځي نه به دعزل اجازت غوښتلي شي او دوينځي نه اجازت غوښتلو ته ضرورت نشته

***************

## ٤٠_ بابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْعَزْلِ

### دعزل دكراهت بيان

١١٣٨_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، وَقُتَيْبَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ قَزَعَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: ذُكِرَ العَزْلُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "لِمَ يَفْعَلُ ذَلِكَ أَحَدُكُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: زَادَ ابْنُ أَبِي عُمَرَ فِي حَدِيثِهِ وَلَمْ يَقُلْ: "لَا يَفْعَلْ

---

[1] صحيح البخارى في النكاح ٩٦ (٥٢٠٨، ٥٢٠٩)، صحيح مسلم في النكاح ٢٢ (١٤٤٠) سنن ابن ماجه في النكاح ٣٠ (١٩٢٥) (تحفة الأشراف، ٢٤٦٨) وأخرجه صحيح البخارى في النكاح ٩٦(٥٢٠٧) صحيح مسلم في النكاح

ذَاكَ أَحَدُكُمْ". قَالَا فِي حَدِيثِهِمَا: فَإِنَّهَا لَيْسَتْ نَفْسٌ مَخْلُوقَةٌ إِلَّا اللهُ خَالِقُهَا. قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَقَدْ كَرِهَ العَزْلَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ.[1]

**ترجمه**: دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي چي يو ځل درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي دعزل ذکر اوکړي شو نو وېي فرمائيل تاسو داسي ولي کوئ، ابن ابي عمر پخپل حديث کي دا اضافه کړي ده چي رسول الله اوفرمائيل په تاسو کي دي هيڅوک داسي نه کوي او دوئ دواړو پخپل خپل حديث کي دا هم وئيلي دي چي کوم نفس لره الله تعالي پيداکول غواړي هغه لره هيڅوک نشي حصارولي.

امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري حديث حسن صحيح دي او دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم دابوسعيد خدري نه مروي دي، او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي او په صحابه کرامو او اهل علمو کي يو جماعت دعزل په کراهت قول کړي دي.

***************

## ٤١ـ باب مَا جَاءَ فِي الْقِسْمَةِ لِلْبِكْرِ وَالثَّيِّبِ

### دکونډي او پيغلي ښځي په مينځ کي دتقسيم کولو بيان

١١٣٩ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ خَالِدٍ الحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: لَوْ شِئْتُ أَنْ أَقُولَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَكِنَّهُ قَالَ: "السُّنَّةُ إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ البِكْرَ عَلَى امْرَأَتِهِ أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا، وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ عَلَى امْرَأَتِهِ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَفَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ وَلَمْ يَرْفَعْهُ بَعْضُهُمْ. قَالَ: وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ. قَالُوا: إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ امْرَأَةً بِكْرًا عَلَى امْرَأَتِهِ أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا، ثُمَّ قَسَمَ بَيْنَهُمَا بَعْدُ بِالعَدْلِ، وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ عَلَى امْرَأَتِهِ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا. وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكٍ،

[1] ـ صحيح البخارى في التوحيد ١٨ (تعليقا عقب الحديث رقم: ٧٤٠٩). صحيح مسلم في النكاح ٢٢ (١٤٣٨). سنن ابى داود في النكاح ٤٩ (٢١٧٠) وأخرجه صحيح البخارى في البيوع ١٠٩ (٢٢٢٩). و العتق ١٣ (٢٥٤٢). والمغازي ٣٢ (٤١٣٨). والنكاح ٩٦ (٥٢١٠). والقدر ٦ (٦٦٠٣). والتوحيد ١٨ (٧٤٠٩). صحيح مسلم في النكاح. موطا امام مالک في الطلاق ٣٤ (٩٥). مسند احمد (٣ في ٢٢، ٢٦، ٤٧، ٤٩، ٥١، ٥٣، ٥٩، ٨٦). سنن الدارمى في النكاح ٣٦ (٢٢٦٩)

وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. قَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ: إِذَا تَزَوَّجَ البِكْرَ عَلَى امْرَأَتِهِ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا، وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبَ أَقَامَ عِنْدَهَا لَيْلَتَيْنِ. وَالقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ. (1)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائيل يي چي كه زه اوغواړم نو ونيلي شم چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ليكن هغوئ صرف دومره ونيلي دي چي سنت دادي چي كله څوك دخپلي ښځي په موجودګئ كي دكومي پيغلي جينئ سره واده اوكړي نو دهغي سره به اوه شپي بغير دتقسيم نه پاتي كيږي او چي كله څوك دكونډي سره واده اوكړي نو دهغي سره دتقسيم نه غير د دري شپو تيرولو اجازت دي (اوددينه پس به بيا تقسيم كيږي).

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي او دا محمد بن اسحاق مرفوع بيان كړي دي هغوئ په سند د ايوب عن ابي قلابة عن انس ذكر كړي دي او بعضو مرفوع نه دي ذكر كړي، او په دي باب كي دام سلمه رضي الله عنها نه هم روايت وارد دي او دبعضي اهل علمو عمل هم په دي باندي دي چي كله څوك ديوي ښځي په موجودګئ كي دكومي پيغلي سره واده اوكړي نو هغي سره به دتقسيم نه علاوه اوه شپي پاتي كيږي او بيا به ددوئ مينځ كي تقسيم كوي او دوميئ ښځي په موجودګئ كي چي كله دكونډي يا مطلقي سره واده اوكړي نو دهغي سره دري شپي تيرولي شي امام مالك ، شافعي، او احمد او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول كړي دي، په تابعينو كي بعضي اهل علم وائي چي كله څوك دخپلي ښځي په موجودګئ كي دكومي پيغلي سره واده اوكړي نو هغي سره به دري شپي تيروي او چي كله دكونډي يا مطلقي سره واده اوكړي دهغي سره به دوه شپي تيروي (او بيا به تقسيم كوي) ليكن اولني قول زيات صحيح دي.

## دښځو سره دشپي په تقسيم كي انصاف كول

كه چري ديوكس دوه يا زياتې آزادې ببيانې وى، كه دواړه باكري وى، او كه دواړه ثيبي وى، يا يود باكره وى، او بله ثيبه وئ نو په دوى كي په انصاف سره تقسيم كول واجب دى.

احناف فقهاء وايي لكه څنګه چي د باكره اوثيبه په مينځ كي په تقسيم كي عدل واجب دې، دغه شان زمونږ په نزد د نوې او زړي مينځ كي هم برابرى ساتل ضروري دى.

---

1 ـ صحيح البخاري في النكاح ١٠٠ (٥٢١٣)، و١٠١ (٥٢١٤). صحيح مسلم في الرضاع ١٢ (١٤٦١) سنن ابي داود في النكاح ٣٥ (٢١٢٤)، سنن ابن ماجه في النكاح ٢٦ (١٩١٦). سنن الدارمي في النكاح ٢٧ (٢٢٥٥). (تحفة الأشراف: ٩٤٣)

امام شافعی امام مالك او امام احمد رحمهم الله فرمائی، که نوي گ شگحگه باکره وی نود نکاح عقد سره به ددې سره اوه ورځې قیام اوکړی، او که ثیبه وی نودې سره دې درې ورځې قیام اوکړی.

## د فريق مقابل دليل دا نس ﷺ حديث دې

"عن أنس ﷺ أن النبي ﷺ جعل للبكر سبعاً وللثيب ثلاثاً"

د انس ﷺ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ د باکرې دپاره اوه ورځې اود ثیبې دپاره درې ورځې مقرر کړې دی.

"وعنه قال من السنة إذا تزوج البكر علي الثيب أقام عندها سبعاً ثم قسم وإذا تزوج الثيب أقام عندها ثلاثاً ثم قسم"

فرمائی، سنت دی چې کله په ثیبه باندې د باکره سره نکاح اوکړی نودې سره دې اوه ورځې قیام اوکړی، بیا دې نمبر مقرر کړی، او کله چې ثیبه سره نکاح اوکړی نودې سره دې درې ورځې قیام اوکړی، بیادې نمبرمقرر کړی، (صحيحين)

**د احنافو دليل** دَ نبی رسول پاك صلي الله عليه وسلم دا ارشاد دې دَ چا چې دوه ښځې وی او هغه په دوی کې یوې طرف ته مائل شی نو دَ قیامت په ورځ به په داسې حال کې راځی چې دده نیمه حصه به مفلوجه وی او دَ عائشې نه روایت دې چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم به دَ خپلو بیبیانو په مینځ کې په وار کې برابرې کولو او فرمائیل به یې یا الله داځما تقسیم دې په هغې کار کې چې زۀ ئې مالك یم نو ځما مؤاخذه مه کوې په هغې کې چې زۀ یې مالك نه یم یعنی دِ زیاتئ محبت او په مارویناکې څه تفصیل نشته، یعني: زړه او نورې ښځه برابري دذې حديث دَ اطلاق په وجه سره کوم چې مونږ روایت کړو.

اوځکه چې نمبر مقررول دَ حقوقو دَ نکاح نه دې او په دې حق کې دَ ښځو په مینځ کې څه تفاوت نشته او اختیار دَ چکر په مقدار کې خاوند لره دې ځکه چې واجب برابری دې نه چې دَ دې طریقه.

د نمبر په مقررکولو کې خاوند ته اختیار دې، که زړه ئې غواړی نو یوه یوه ورځ نمبر دې مقرر کړی، او که خوښه ئې وی، دوه دوه، یا درې درې یا څلور څلور ورځې دې مقررکړی، او چونکه ددې تقسیم وجوب د تـلـئ جوړولو دپاره،اود وحشت لرې کولودپاره دې، په دې وجه ضروری دی چې د نزدې مودې اعتبار اوکړې شی، او زما په خیال د یوې هفتې نه زیات نمبر مقررکول د تکلیف باعث دې نود یوې هفتې نه زیات مقررکولو نه احتراز کول مناسب دی، خو که دا ښځې په زیاتوباندې راضی شی نو په

زياتوكي هيڅ باك نشته، خومناسب دادی چي دا مقدار د ايلاءمودې(څلور مياشتو) ته اونه رسي، خاوند ته د اختيار وركولو وجه داده چي په خاوند باندې برابری واجب ده، خود برابرئ طريقه واجب نه ده، او برابری صرف په شپه تيرولو كي دي، په جماع كولوكي نه ده، يعنی تولوښځوسره به برابرشپې تيره وی، په دې شپوكي جماع كول شرط نه دی، ځكه چي جماع د طبعيت په ښه والی اوخوشحالئ باندې موقوف دي، اودا دده په اختياركي نه دی، والله اعلم بالصواب.

****************

## ٤٢_ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْوِيَةِ بَيْنَ الضَّرَائِرِ

### دښنوپه مينځ كي د نمبر په تقسيم كي دبرابرئ او مساوات بيان

١١٤٠_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ السَّرِيِّ. حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. عَنْ أَيُّوبَ. عَنْ أَبِي قِلَابَةَ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ. عَنْ عَائِشَةَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْسِمُ بَيْنَ نِسَائِهِ فَيَعْدِلُ. وَيَقُولُ: "اللَّهُمَّ هَذِهِ قِسْمَتِي فِيمَا أَمْلِكُ فَلَا تَلُمْنِي فِيمَا تَمْلِكُ وَلَا أَمْلِكُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ هَكَذَا رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ. عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. عَنْ أَيُّوبَ. عَنْ أَبِي قِلَابَةَ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ. عَنْ عَائِشَةَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يَقْسِمُ". وَرَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ. وَغَيْرُ وَاحِدٍ. عَنْ أَيُّوبَ. عَنْ أَبِي قِلَابَةَ مُرْسَلًا. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يَقْسِمُ". وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. وَمَعْنَى قَوْلِهِ: لَا تَلُمْنِي فِيمَا تَمْلِكُ. وَلَا أَمْلِكُ إِنَّمَا يَعْنِي بِهِ الْحُبَّ. وَالْمَوَدَّةَ كَذَا فَسَّرَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ. [1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دخپلو بيبيانو په مينځ كي دشپې تيرولو دنمبر تقسيم كولو او فرمائيل به يي اي الله دا زما تقسيم دي په كوم چي زه قادر يم ليكن په كوم كار چي ته قادر يي او زه په هغي قادر نه يم نو په هغي ما ملامت نكړې.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث په نورو سندونو هم دحماد بن سلمه عن ايوب عن ابي قلابه عن عبدالله بن يزيد عن عائشه رضي الله عنها سره منقول دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دنمبر تقسيم كولو، مګر دا حديث حماد بن زيد او بعضي نورو ثقاتو په سند

---

[1] ـ سنن ابي داود في النكاح ٣٩ (٢١٣٤). سنن النسائي في عشرة النساء ٢ (٣٩٥٣). سنن ابن ماجه في النكاح ٤٧ (١٩٧١).
(تحفة الأشراف: ١٦٢٩٠). سنن الدارمي في النكاح ٢٥ (٢٢٥٣)

دايوب عن ابي قلابه نقل كړي دي چي رسول الله به د نمبر تقسيم كولو ليكن دا حديث دحمادبن سلمه دحديث نه زيات صحيح دي او په څه چي ته قدرت لري او زه ورباندي قدرت نه لرم ددينه مراد محبت او مودت دي بعضي علماؤ ددي دا تفسير كړي دي.

**************

١١٤١ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا كَانَ عِنْدَ الرَّجُلِ امْرَأَتَانِ، فَلَمْ يَعْدِلْ بَيْنَهُمَا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ سَاقِطٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا أَسْنَدَ هَذَا الْحَدِيثَ هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى، عَنْ قَتَادَةَ، وَرَوَاهُ هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: كَانَ يُقَالُ، وَلَا نَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ هَمَّامٍ وهمام ثقة حافظ. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي دكوم كس دوه ښځي وي او دهغوئ مينځ كي دانصاف نه كار وانخلي نو دي به دقيامت په ورځ په داسي حال كي راځي چي يو طرف به يي كوږ وي.

امام ترمذي وائي داحديث همام بن يحيىٰ دقتاده نه مسند نقل كړي دي، او هشام دستوائي هم دقتاده نه نقل كړي دي ليكن دهغه په روايت كي داسي (داسي به وئيلي كيدل)، داحديث مونږ ته صرف دهمام په سند مرفوع رارسيدلي دي او همام ثقه او حافظ دي.

**تشريح**: ددي روايت نه دامعلومه شوه كه چري دچاښځي ګنړي وي نودهغوي په مينځ كي انصاف كول اوبرابري كول ضروري دي البته دنوي ښځي داخصوصيت دى كه چري هغه پيغله وي نودهغي سره دي اوه ورځي تيري كړي اوكه چري طلاقه شوي ياكونډه وي نودهغي سره دري ورځي تيرول دتقسيم نه علاوه ضروري دي، ددي حديث نه امام مالك، امام شافعي او امام احمد بن حنبل دخپل مسلك دپاره استدلال كړى دى كوم صورت چي مونږ ذكر كړو هغه ددوي مسلك دى.

مګر امام ابوحنيفه رحمة الله عليه پدي باب كي دقراني اياتونونه استدلال كړى دى اوحديث الباب مطلب دادى چي دشپي تقسيم خوپه هر حال كي واجب دى ليكن دپيغلي سره دنكاح په وخت كي په ابتدائي ورځو كي دتقسيم طريقه بدل كړى شوي ده اوديوي ورځي په ځايي باندي

---

[1] ـ سنن ابي داود في النكاح ٣٩ (٢١٣٣)، سنن النسائي في عشرة النساء ٢ (٣٩٥٢)، سنن ابن ماجه في النكاح ٤٧ (١٩٦٩) (تحفة الأشراف: ١٢٢١٣)، مسند احمد (٢ في ٣٤٧، ٤٧١)، سنن الدارمي في النكاح ٢٤ (٢٢٥٢)

اوه ورځي اوكونډي دپاره دري ورځی مقرر کړی شوي دي ددي توجيه تانيد دام سلمه رضي الله عنها دروايت نه هم كيږي

***************

## ٤٣_ باب مَا جَاءَ فِي الزَّوْجَيْنِ الْمُشْرِكَيْنِ يُسْلِمُ أَحَدُهُمَا

## په مشرک ښځه او خاوند کي چي کله يوتن اسلام قبول کړي نو ددي څه حکم دي

١١٤٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَدَّ ابْنَتَهُ زَيْنَبَ عَلَى أَبِي الْعَاصِ بْنِ الرَّبِيعِ، بِمَهْرٍ جَدِيدٍ وَنِكَاحٍ جَدِيدٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ فِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ: وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا أَسْلَمَتْ قَبْلَ زَوْجِهَا، ثُمَّ أَسْلَمَ زَوْجُهَا، وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ، أَنَّ زَوْجَهَا أَحَقُّ بِهَا مَا كَانَتْ فِي الْعِدَّةِ، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالْأَوْزَاعِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم خپله لور زينب ابوالعاص بن ربيع ته په نوي مهر او نوي نكاح واپس كړه.

امام ترمذي وائي ددي حديث په سند محدثينو كلام كړي دي او په دويم حديث باندي هم كلام شوي دي داهل علمو عمل هم په دي باندي دي چي ښځه كله دخپل خاوند نه مخكي اسلام قبول كړي او بيا ددي خاوند دعدت په دوران كي اسلام قبول كړي نو ددي خپل خاوند ددي زيات حقداردي چي كله دا په عدت كي وي، امام مالك اوزاعي، شافعي، احمد. او اسحاق هم په دي باندي قول كړي دي.

***************

١١٤٣_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي دَاوُدُ بْنُ الْحُصَيْنِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "رَدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْنَتَهُ زَيْنَبَ عَلَى أَبِي الْعَاصِ بْنِ الرَّبِيعِ، بَعْدَ سِتِّ سِنِينَ بِالنِّكَاحِ الْأَوَّلِ وَلَمْ يُحْدِثْ نِكَاحًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

[1] _ سنن ابن ماجه في النكاح ٦٠ (٢٠١٠). (تحفة الأشراف: ٨٦٤٢). مسند احمد (٢/ ٢٠٧)

لَيْسَ بِإِسْنَادِهِ بَأْسٌ وَلَكِنْ لَا نَعْرِفُ وَجْهَ هَذَا الحَدِيثِ، وَلَعَلَّهُ قَدْ جَاءَ هَذَا مِنْ قِبَلِ دَاوُدَ بْنِ حُصَيْنٍ، مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. (1)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم خپله لور زينب ابو العاص رضي الله عنه ته شپږ كاله پس په اولنئ نكاح باندي واپس اوليږله او دوباره نكاح يي اونكړه.

امام ترمذي وائي ددي حديث په سند كي هيڅ اشكال نشته ليكن مونږ ته دا په قوي سند نه دي رارسيدلي شايد چي دا څيز دَ داود بن حصين دجانبه دهغه دحفظ په لحاظ واقع شوي دي

****************

١١٤٤ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَجُلًا جَاءَ مُسْلِمًا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ جَاءَتِ امْرَأَتُهُ مُسْلِمَةً، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّهَا كَانَتْ أَسْلَمَتْ مَعِي فَرُدَّهَا عَلَيَّ، "فَرَدَّهَا عَلَيْهِ". هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، سَمِعْت عَبْدَ بْنَ حُمَيْدٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ يَزِيدَ بْنَ هَارُونَ يَذْكُرُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ هَذَا الحَدِيثَ، وَحَدِيثُ الحَجَّاجِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "رَدَّ ابْنَتَهُ زَيْنَبَ عَلَى أَبِي العَاصِ بِمَهْرٍ جَدِيدٍ، وَنِكَاحٍ جَدِيدٍ". قَالَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَجْوَدُ إِسْنَادًا وَالعَمَلُ عَلَى حَدِيثِ، عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ. (2)

**ترجمه** دابن عباس بيان دي چي يو كس دنبئ كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كي مسلمان شو (او مديني ته يي هجرت اوكړو) او بيا دده ښځه هم مسلمانه شوه او راغله ده عرض اوكړو اي دالله رسوله دي خو ما سره يو ځاي اسلام قبول كړي وو دا ماته واپس راكړه نو هغه ورته رسول الله صلي الله عليه وسلم واپس وركړه

امام ترمذي وائي داحديث صحيح دي، حجاج دا حديث په سند دعمرو بن شعيب عن ابيه عن جده سره نقل كړي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم خپله لور زينب ابو العاص ته په نوي مهر او نوي نكاح ليږلي وه، يزيد بن هارون وائي چي دابن عباس حديث دسند په اعتبار سره دټولو نه بهتر دي ليكن معمول بها دعمرو بن شعيب عن ابيه عن جده والاحديث دي

---

1 ـ سنن ابي داود في الطلاق ٢٢ (٢٢٤٠)، سنن ابن ماجه في النكاح ٦٠ (٢٠٠٩)، (تحفة الأشراف: ٦٠٤٣)

2 ـ سنن ابي داود في الطلاق ٢٢ (٢٢٣٨)، سنن ابن ماجه في النكاح ٦٠ (٢٠٠٨)، (تحفة الأشراف: ٦١٠٦)

***************

## ٤٤_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَتَزَوَّجُ الْمَرْأَةَ فَيَمُوتُ عَنْهَا قَبْلَ أَنْ يَفْرِضَ لَهَا

**بيان دهغه چا چي ديوي ښځي سره نكاح اوكړي او دمهر مقررولو نه مخكي وفات شي**

١١٤٥_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةً وَلَمْ يَفْرِضْ لَهَا صَدَاقًا، وَلَمْ يَدْخُلْ بِهَا حَتَّى مَاتَ، فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ: لَهَا مِثْلُ صَدَاقِ نِسَائِهَا لَا وَكْسَ وَلَا شَطَطَ وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ وَلَهَا الْمِيرَاثُ، فَقَامَ مَعْقِلُ بْنُ سِنَانٍ الْأَشْجَعِيُّ، فَقَالَ: " قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بِرْوَعَ بِنْتِ وَاشِقٍ امْرَأَةٍ مِنَّا مِثْلَ الَّذِي قَضَيْتَ ". فَفَرِحَ بِهَا ابْنُ مَسْعُودٍ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ الْجَرَّاحِ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ كلاهما، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَبِهِ يَقُولُ الثَّوْرِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وقَالَ: بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ، وَابْنُ عَبَّاسٍ، وَابْنُ عُمَرَ، إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ الْمَرْأَةَ وَلَمْ يَدْخُلْ بِهَا، وَلَمْ يَفْرِضْ لَهَا صَدَاقًا حَتَّى مَاتَ، قَالُوا: لَهَا الْمِيرَاثُ وَلَا صَدَاقَ لَهَا، وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، قَالَ: لَوْ ثَبَتَ حَدِيثُ بِرْوَعَ بِنْتِ وَاشِقٍ، لَكَانَتِ الْحُجَّةُ فِيمَا رُوِيَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرُوِي، عَنِ الشَّافِعِيِّ، أَنَّهُ رَجَعَ، بِمِصْرَ، بَعْدُ عَنْ هَذَا الْقَوْلِ، وَقَالَ بِحَدِيثِ بِرْوَعَ بِنْتِ وَاشِقٍ. [1]

**ترجمه** . دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي يو كس زانه دهغه چا باره كي تپوس اوكړو چاچي ديوي ښځي سره نكاح كړي وه ليكن نه يي دهغي دپاره مهر مقرر كړي وو او نه يي ورسره صحبت شوي وو تردي چي په دي دوران كي مړ شو، ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمانيل ددي ښځي دپاره به ددي دخاندان دنورو ښځو دمهر پشان مهر وي نه به ددينه كم وي او نه به ددينه زيات وي او دا به عدت هم تيروي او په ميراث كي به يي هم حق

[1] ـ سنن ابي داود في النكاح ٣٢ (٢١١٥) . سنن النسائي في النكاح ٦٨ (٣٣٥٦، ٣٣٥٩) . والطلاق ٥٧ (٣٥٥٣) . سنن ابن ماجه في النكاح ١٨ (١٨٩١) . سنن الدارمي في النكاح ٤٧ (٢٢٩٢) . (تحفة الأشراف . ١١٣٦١) وأخرجه سنن النسائي في النكاح ٦٧ (٣٣٦٠) . و مسند احمد (١ في ٤٤٧)

وي دي وخت کي معقل بن سنان اشجعي رضي الله عنه اودريدو او ويي فرمائيل بروع بنت واشق چي زمونږ دقبيلي يوه ښځه وه دهغي په باره کي هم رسول الله صلي الله عليه وسلم داسي فيصله کړي وه څنګه چي تا اوس اوکړله ددي په اوريدو ابن مسعود رضي الله عنه ډير زيات خوشحاله شو

امام ترمذي وائي دابن مسعود حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجراح نه هم روايت وارد دي، يزيد بن هارون او عبدالرزاق په سند دسفيان عن منصور هم ددي هم معني روايت نقل کړي دي، او دا روايت دابن مسعود رضي الله عنه نه دنورو سندونو هم منقول دي، په صحابه کرامو کي دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي، سفيان ثوري، احمد، اسحق هم په دي باندي قول کړي دي، مګر په صحابه کرامو کي دبعضي اهل علمو قول دي په کومو کي چي علي بن ابي طالب، زيد بن ثابت، ابن عباس، او ابن عمر رضي الله عنهم هم شامل دي دوئ وائي کله چي يو کس دکومي ښځي سره نکاح اوکړي او نه يي دخول کړي وي او نه يي مهر مقرر کړي وي او دي وخت کي مړ شي نو ددوئ په نزد دي ښځي ته په ميراث کي حق ملاويږي ليکن مهر يي نه رسيږي او عدت به هم تيروي او همدادامام شافعي قول دي، امام شافعي دا هم وائي که دبروع بنت واشق حديث صحيح وي نو دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دمروي کيدو په وجه به حجت وي او دشافعي نه مروي دي چي هغوئ وروسته په مصر کي ددي قول نه رجوع کړي ده او دبروع بنت واشق دحديث مطابق فتوي يي ورکړي ده.

**تشريح: دمهر غير مسمى په صورت کښ داحد الزوجين د وفات کيدو صورت**

که چري د ښځې اوخاوند دواړو انتقال شويدې، اوس به دا کتلې شی چي دښځې دپاره مهرمسمی وو، او که نه وو، که د ښځې دپاره مهرمسمی وو نو په اتفاق به د ښځې وارثان د خاوند د متروکه مال نه مهرمثل وصول کوی، او که د ښځې دپاره مهرمسمی نه وو نو په دې صورت کي به د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نزد د ښځې وارثانو دپاره هيڅ نه وی، اود صاحبينو په نزد به په دې صورت کي مهرمثل وی، حاصل داچي د صاحبينو په نزد دواړه صورتونوکي مهر دې، د تسميه په صورت کي به مسمی وی، اود عدم تسميه په صورت کي به مهرمثل وی، په متفق عليه مسئله باندې دليل دادې چي مسمی د خاوند په ذمه باندې دين دې، ددې دين ثبوت به په بينه سره شوې وی، يا به د زوجينو پخپل مينځ کي په اتفاق سره شوې وی، بهرحال مسمی د خاوند په ذمه دين دې، اود مرګ په وجه مسمی مؤکد کيږی خکه چي دمرګ نه وړاندې دا احتمال وو چي خاوند ،طلاق قبل الدخول، ورکړی، او ددې په وجه مهرنصف پاتې شی، خود مرګ نه پس دا احتمال باقی نه پاتې کيږی نو هرکله چي د مرګ په وجه مهرمسمی مؤکد شو نود خاوند د ترکه(مال موروث) نه به ددې فيصله کولې شی،

خو كه دا معلومه شي چي دښځې مرګ د خاوند نه مخکي شويدې نو په دې صورت کي به د خاوند حصه په دې مسمی کي ساقطيږي، اود خاوند حصه داده، كه ښځه د اولاد والا وي نوخاوند ته به د مال متروكه نه ربع ملاويږي، او كه ښځه د اولاد والا نه وي نوخاوند ته به نصف ملاويږي، په حقيقت كي ددې څلور صورتونه دي، يو داچي زوجين يوځائې وفات شي، او ددې علم هم وي، دويم داچي ددې علم نه وي چي مخكي څوك وفات شويدی، دريم داچي ددې علم وي چي د خاوند وفات مخكي شويدې، په دې درې واړه صورتونوكي به د ښځې وارثانو ته د خاوند د تركه نه ټوله مسمی وركولې شي، څلورم دا چي دامعلومه وي چي د ښځې وفات مخكي شويدې نو په دې صورت كي به ددې مسمی نه دخاوند حصه ميراث اوښكلې شي، او باقي به دښځې وارثانو ته وركولې شي،

په مختلف فيه صورت كي د صاحبينو دليل دادې چي لكه څنګه مهرمسمی د خاوند په ذمه باندې دين دې، دغه شان مهرمثل هم د خاوند په ذمه باندې دين دې نو لكه څنګه چي مهرمسمی د مرګ په وجه نه ساقطيږي، دغه شان مهرمثل هم د مرګ په وجه نه ساقطيږي، صاحبينو دويم قول د ،احدالزوجين، په مرګ باندې قياس كړيدې چي لكه څنګه د ،احد الزوجين، په مرګ سره د مهرمثل اعتبار نه ساقطيږي، دغه شان د دواړو په مرګ سره هم مهرمثل نه ساقطيږي،

د امام صاحب دليل دادې چي د زوجينو وفات ددې دواړو دعمروالا خلقو په ختميدلو باندې دلالت كوي، او قاضي ددې ښځې د مهرمثل اندازه ددې دعمروالاښځو د مهرنه لګوي نو هركله چي قاضي ددې د زمانې والاښځې بيانه مومي نو ددې د مهرمثل اندازه به څنګه لګولې شي، او هركله چي د مهرمثل اندازه نشي لګيدلې نوددې وجوب به هم نشي كيدلې، خوكه زمانه زړه(پخوانۍ) شوې نه ده، او زيات وخت نه دې تيرشوې نو ددې ښځې د مهرمثل فيصله به كولې شي،

بعض مشائخو د امام صاحب دطرفه يوه ښه نكته بيان كړيده، فرمائي چي مهرمثل چونكه د بضعې قيمت دې، او په دې وجه دا د مهرمسمی مشابه دې، څكه چي مسمی هم د بضعې قيمت دې، او چونكه مهرمثل د غيرمال (منافع دبضع)په مقابله كي دې، په دې وجه د صله مشابه دې، مثلاً نفقه د خاوند دطرفه صله ده، اومسمی نه د زوجينوپه مرګ سره ساقطيږي، اونه د ،احد الزوجين، په مرګ سره ساقطيږي، او صله (نفقه) د زوجينو په مرګ سره هم ساقطيږي، اود احد الزوجين په مرګ سره هم ساقطيږي، اوس كه په مهرمثل كي صرف د مسمی دمشابهت لحاظ اوساتلې شي نو مهرمثل په دواړه صورتونوكي ساقطيدل نه دي پكار، نه د زوجينو په مرګ سره، اونه

د، احد الزوجين، په مرګ سره، او كه صرف د نفقه د مشابهت لحاظ اوساتلې شي نو مهرمثل په دواړو صورتونوكي ساقطيدل پكار دي، د زوجينو په مرګ سره هم، او د ،احد الزوجين، په مرګ سره هم، خومونږ د دواړو مشابهتونو لحاظ اوساتلو. چونكه مهرمثل د مسمى سره مشابهت لري، خكه به د ،احد الزوجين، په مرګ سره نه ساقطيږي، اوچونكه صله يعنى د نفقه سره مشابهت لري، په دې وجه د زوجينو په مرګ سره مهرمثل نه ساقطيږي، والله اعلم بالصواب (فتح القدير)

***************

# كتاب الرضاع

## درضاعت احكام او مسائل

### ١ ـ باب مَا جَاءَ يُحَرَّمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يُحَرَّمُ مِنَ النَّسَبِ

**په رضاعت سره هم هغه رشتې حراميږي كومې چې په نكاح سره حراميږي**

١١٤٦ ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ. حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ زَيْدٍ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ مِنَ الرَّضَاعِ مَا حَرَّمَ مِنَ النَّسَبِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. وَأُمِّ حَبِيبَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په رضاعت سره هم هغه رشتې حراميږي كومې چې په نسب سره حرامي شوي دي

امام ترمذي وائي دعلي حديث حسن صحيح دي، او په دې باب كي د عائشه. ابن عباس. او ام حبيبه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. په صحابه كرامو او ددوئ نه پس په اهل علمو كي داكثرو په دې باندې عمل دي او په دې سلسله كې مونږ دفقهاؤ په مينځ كې هيڅ قسم اختلاف نه دي موندلې

***************

١١٤٧ ـ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ. حَدَّثَنَا مَالِكٌ. ح وحَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ. قَالَ: حَدَّثَنَا مَعْنٌ. قَالَ: حَدَّثَنَا مَالِكٌ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ. عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠١١٨)

عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا حَرَّمَ مِنَ الوِلَادَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ لَا نَعْلَمُ بَيْنَهُمْ فِي ذَلِكَ اخْتِلَافًا.[1]

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي په رضاعت سره هم هغه رشتي حرامي کړي دي کومي چي يي په ولادت باندي حرامي کړي دي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په صحابه کرامو کي داهل علمو په همدي باندي عمل دي او مونږ ته دا نه ده معلومه چي په علماؤ کي په دي مسئله کي چا اختلاف کړي وي (يعني دا اجماعي مسئله ده).

## په رضاعت سره د حرمت ثبوت

ديپه مقدارکي چي په هغې حرمت رضاعت ثابتيږی، اختلاف دې.

احناف فرمائی چي په مطلق پئ ورکولو يا رودلوسره حرمت رضاعت ثابتيږی، که کم وی اوکه زيات وی، خوپه دې شرط چي د رضاعت په موده کي وی.

حسن بصری، سعيدبن المسيب، وکيع، عبدالله بن مبارك او زيات جمهورفقهاء ددې قائلين دی.

امام شافعی فرمائی چي په پنځه ځله پئ رودلوسره رضاعت ثابتيږی، په دې طريقه چي ماشوم په دې کي په هريوباندې موړشی.

اوپه ظاهرروايت کي امام احمد(رحمه الله) هم ددې قائل دې.

اودامام احمد(رحمه الله) نه دويم روايت ددرې ځله پيو څکلو منقول دې،

زمونږدليل دالله تعالی ارشاد دې: وامهاتکم التي يعنی اوحرام کړې شوی دی په تاسو ستاسوميندې چاچي تاسوته پئ درکړی وی.

اود نبی ﷺ حديث چي "يحرم من الرضاع مايحرم من النسب" يعنی په رضاعت هغه څه حراميږی، څه چي په نسب حراميږی، آيت اوحديث دواړه مطلق دی. د قليل اوکثيرڅه تفصيل په کي نشته نوپه مطلق رضاع سره به حرمت ثابتيږی

---

[1] ـ سنن ابي داود في النكاح ٤ (٢٠٥٥). سنن النسائي في النكاح ٤٩ (٣٣٠٢). (تحفة الأشراف ١٦٣٤٤). سنن الدارمی في النكاح ٤٨ (٢٢٩٥) وأخرجه صحيح البخاری في الشهادات ٧ وفرض الخمس ٤ (٣١٠٥). والنكاح ٢٠ (٥٠٩٩) و ـ ٢ (٥١١١). صحيح مسلم في الرضاع ٢ (١٤٤٤). سنن النسائي في النكاح ٤٩ (٣٣٠٣، ٣٣٠٢، ٣٣٠٥). سنن ابن ماجه في النكاح ٣٢ (١٩٣٧) .موطاامام مالک في الرضاع ا (٣). مسند احمد (٦ في ٦٦، ٧٢، ١٠٢) سنن الدارمی في النكاح ٤٨ (٢٢٩١، ٢٢٩٢)

د امام شافعي دليل دا حديث دی:

{ لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَلَا الْمَصَّتَانِ وَلَا الْإِمْلَاجَةُ وَلَا الْإِمْلَاجَتَانِ

امام شافعي چي کوم حديث په استدلال کي پيش کړی دی نودهغي نه جواب دا دی چي دا حديث به خالی نه وی، يا به د کتاب الله نه روستو وی اويا به مخکي وی، که د کتاب الله نه روستوی نودا به مردود وی، ځکه چي کتاب الله دحديث په مقابله کي اقوی دی، اوعمل به په اقوی کولی شی، اوکه چري د کتاب الله نه مخکي وی نودا به په کتاب الله سره منسوخ وی، د عائشه رضی الله عنها دحديث په باره کي امام ابن بطال (رحمه الله) فرمائيلی دی چي دا حديث مضطرب دی نود کتاب الله په مقابله کي ددی پريخودل اوکتاب الله ته رجوع کول واجب شو.

*****************

## ٢ـ باب مَا جَاءَ فِي لَبَنِ الْفَحْلِ

### دپيو نسبت به سړي ته کيږي

١١٤٨ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: جَاءَ عَمِّي مِنَ الرَّضَاعَةِ يَسْتَأْذِنُ عَلَيَّ، فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ حَتَّى أَسْتَأْمِرَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ فَإِنَّهُ عَمُّكِ ". قَالَتْ: إِنَّمَا أَرْضَعَتْنِي الْمَرْأَةُ، وَلَمْ يُرْضِعْنِي الرَّجُلُ، قَالَ: " فَإِنَّهُ عَمُّكِ فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ كَرِهُوا لَبَنَ الْفَحْلِ، وَالْأَصْلُ فِي هَذَا حَدِيثُ عَائِشَةَ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي لَبَنِ الْفَحْلِ وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ. [1]

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي يو خل زما رضاعي تره راغي او هغه زما نه دننه دراتلو دپاره اجازت اوغوښتلو مګر ما ورته اجازت ورنکړو او دده باره کي مي دننه دراتلو نه انکار اوکړو تردي پوري چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ددي خبري اجازت واخلم رسول الله صلي الله عليه وسلم راته اوفرمائيل هغه خو ستا خواته راتلي شي ځکه چي

---

[1] ـ صحيح مسلم في الرضاع ٢ (١٤٤٥) . (تحفة الأشراف : ١٦٨٢) .صحيح البخاری في الشهادات ٧ (٢٦٤٤)وتفسير سورة السجدة ٩ (٤٧٩٦) ، و النكاح ٢٢ (٥١٠٣)، و١١١٧ (٥٢٣٩)، والأدب ٩٣ (٦١٥٦)، صحيح مسلم في الرضاع سنن النسائی في النكاح ٣٩ (٣٣٠٣)، سنن الدارمی في النكاح ٣٨ (٢٢٩٣)

هغه خو ستا تره دي ددي خبري په اوريدو ما عرض اوكړو ماته خو ښځي يې راكړي دي سړي خو نه وو؟ رسول الله اوفرمائيل هغه په هر حال كي ستا تره دي او ستا خواته راتلي شي
امام ترمذي وائي دا حديث صحيح دي په صحابه كرامو كي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او هغوئ لبن الفهم حرام ګڼړلي دي په دي باب كي اصل حديث دعائشه دي او بعضي اهل علمو دلبن الفحل باره كي اجازت وركړي دي ليكن اولني قول زيات صحيح دي

***************

١١٤٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ. ح وحَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ سُئِلَ، عَنْ رَجُلٍ لَهُ جَارِيَتَانِ: أَرْضَعَتْ إِحْدَاهُمَا جَارِيَةً، وَالأُخْرَى غُلاَمًا، أَيَحِلُّ لِلْغُلاَمِ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِالْجَارِيَةِ؟ فَقَالَ: "لاَ اللِّقَاحُ وَاحِدٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا تَفْسِيرُ لَبَنِ الْفَحْلِ وَهَذَا الأَصْلُ فِي هَذَا الْبَابِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي يو كس رانه دداسي كس باره كي تپوس اوكړو دچا سره چي دوه وينځي وي او په هغوئ كي يوي جينئ ته يې وركړي وو او دويم يې يو هلك ته وركړي وو نو ايا ددي هلك دپاره دا جائز دي چي ددي جينئ سره نكاح اوكړي ابن عباس اوفرمائيل هرګز جائز نه دي ځكه چي لقاح يو دي، امام ترمذي وائي همدا روايت په دي باب كي اصل دي امام احمد او اسحاق بن راهويه هم ددي قائل دي.

**تشريح**: لبن الفحل يو اصطلاحي كلمه ده ددينه مراد حرمت درضاعت دي كوم چي درضاعي پلار په وجه ثابت وي لكه رضاعي تروريانې، رضاعي تره، او رضاعي نيكه وغيره.

***************

## ٣_ باب مَا جَاءَ لاَ تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَلاَ الْمَصَّتَانِ

### په يو ځل دوه ځله يې خوړلو باندي حرمت نه ثابتيږي

١١٥٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَيُّوبَ يُحَدِّثُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَلاَ الْمَصَّتَانِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أُمِّ الْفَضْلِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَالزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ، وَابْنِ الزُّبَيْرِ، وَرَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَلاَ

[1] - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٣١١)

الْمَصَّتَانِ". وَرَوَى مُحَمَّدُ بْنُ دِينَارٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَزَادَ فِيهِ مُحَمَّدُ بْنُ دِينَارٍ الْبَصْرِيُّ، عَنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَهُوَ غَيْرُ مَحْفُوظٍ وَالصَّحِيحُ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، حَدِيثُ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا فَقَالَ: الصَّحِيحُ، عَنِ ابْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَحَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ دِينَارٍ وَزَادَ فِيهِ، عَنِ الزُّبَيْرِ، وَإِنَّمَا هُوَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الزُّبَيْرِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. (حديث موقوف) وَقَالَتْ عَائِشَةُ: أُنْزِلَ فِي الْقُرْآنِ "عَشْرُ رَضَعَاتٍ مَعْلُومَاتٍ"، فَنُسِخَ مِنْ ذَلِكَ خَمْسٌ، وَصَارَ إِلَى خَمْسِ رَضَعَاتٍ مَعْلُومَاتٍ، فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالْأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ بِهَذَا، وَبِهَذَا كَانَتْ عَائِشَةُ تُفْتِي، وَبَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَإِسْحَاقَ. وَقَالَ أَحْمَدُ بِحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَلَا الْمَصَّتَانِ". وَقَالَ: إِنْ ذَهَبَ ذَاهِبٌ إِلَى قَوْلِ عَائِشَةَ فِي خَمْسِ رَضَعَاتٍ، فَهُوَ مَذْهَبٌ قَوِيٌّ وَجَبُنَ عَنْهُ، أَنْ يَقُولَ فِيهِ شَيْئًا، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: يُحَرِّمُ قَلِيلُ الرَّضَاعِ، وَكَثِيرُهُ إِذَا وَصَلَ إِلَى الْجَوْفِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالْأَوْزَاعِيِّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، وَوَكِيعٍ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ هُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ وَيُكْنَى أَبَا مُحَمَّدٍ، وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ، قَدِ اسْتَقْضَاهُ عَلَى الطَّائِفِ، وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، قَالَ: أَدْرَكْتُ ثَلَاثِينَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په يو خل دوه خله يې خوړلو سره حرمت درضاعت نه ثابتيږي.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دام فضل، ابوهريره، زبير بن عوام، او عبدالله بن زبير رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي، او دا حديث نورو راويانو په سند دهشام بن عروه عن ابيه عن عبدالله بن الزبير عن النبي صلي

---

[1] ـ صحيح مسلم في الرضاع ٥ (١٤٥٠)، سنن ابي داود في النكاح ١١ (٢٠٦٣)، سنن النسائي في النكاح ٥١ (٣٣١٠)، سنن ابن ماجه في النكاح ٣٥ (١٩٤١)، (تحفة الأشراف: ١٦١٨٩)، مسند احمد (٦ في ٢٤٧)، وسنن الدارمي في النكاح ٤٩ (٢٢٩٧)

الله عليه وسلم سره نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په يو ځل دوه خله يئ خوړلو باندي حرمت درضاعت نه ثابتيږي، او محمد بن دينار هم دا روايت په سند دهشام بن عروه عن ابيه عن عبدالله بن الزبير عن الزبير عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي او په دي کي محمد بن دينار دزبير دواسطي اضافه کړي ده ليکن دا سند غير محفوظ دي، د محدثينو په نزد صحيح روايت دابن ابي مليکه دي کوم چي هغه په سند دعبدالله بن زبير عن عائشه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي. امام ترمذي وائي ما دامام بخاري نه ددي حديث باره کي تپوس اوکړو نو هغه اووئيل صحيح روايت دابن زبير دي کوم چي هغه دعائشي نه نقل کړي دي او دمحمد بن دينار هغه روايت په کوم کي چي دزبير دواسطي اضافه ده هغه په اصل کي دهشام بن عروه نه مروي دي کوم چي هغه دخپل پلار عروه نه نقل کړي دي او عروه دزبير نه نقل کړي دي په صحابه کرامو کي داهل علمو په همدي باندي عمل دي، دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي په قران کي اولني لس رضعات والا ايتونه نازل شوي وو بيا ورنه پنځه منسوخ شو نو باقي پاتي شول او چي کله رسول الله صلي الله عليه وسلم وفات شو نو معامله په هم هغه پنځو باقي پاتي شوه او عائشه رضي الله عنها او نورو ازواج مطهراتو ته په همدي باندي فتوي ورکوله او همدا دامام شافعي او اسحٰق قول دي، امام احمد دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په حديث "په يو ځل دوه خله څکلو سره حرمت نه ثابتيږي" دعمل کولو قائل دي. امام احمد دا هم وئيلي دي که څوك دعائشه رضي الله عنها دپنځه رضعاتو والاقول اختيار کړي نو دا قوي مذهب دي ليکن هغه پخپله په دي باندي فتوي نه ده ورکړي، په صحابه کرامو کي بعضي اهل علم وائي رضاعت لږ وي او که ډير وي خو چي کله خيټي ته ورسيږي حرمت ورسره ثابتيږي همدا دسفيان ثوري، مالك بن انس، اوزاعي ، عبدالله بن مبارك، وکيع او اهل کوفه قول دي

***************

## ٤ـ باب مَا جَاءَ فِي شَهَادَةِ الْمَرْأَةِ الْوَاحِدَةِ فِي الرَّضَاعِ

### درضاعت په سلسله کي ديوي ښځي دګواهئ بيان

١١٥١ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ، قَالَ: وَسَمِعْتُهُ مِنْ عُقْبَةَ وَلَكِنِّي لِحَدِيثِ عُبَيْدٍ أَحْفَظُ قَالَ: تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً، فَجَاءَتْنَا امْرَأَةٌ سَوْدَاءُ. فَقَالَتْ: إِنِّي قَدْ أَرْضَعْتُكُمَا. فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقُلْتُ: تَزَوَّجْتُ فُلَانَةَ بِنْتَ فُلَانٍ، فَجَاءَتْنَا امْرَأَةٌ سَوْدَاءُ. فَقَالَتْ: إِنِّي قَدْ أَرْضَعْتُكُمَا وَهِيَ كَاذِبَةٌ، قَالَ: فَأَعْرَضَ عَنِّي، قَالَ: فَأَتَيْتُهُ مِنْ قِبَلِ وَجْهِهِ، فَأَعْرَضَ عَنِّي بِوَجْهِهِ،

فَقُلْتُ: إِنَّهَا كَاذِبَةٌ. قَالَ: "وَكَيْفَ بِهَا وَقَدْ زَعَمَتْ أَنَّهَا قَدْ أَرْضَعَتْكُمَا؟ دَعْهَا عَنْكَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ، دَعْهَا عَنْكَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَجَازُوا شَهَادَةَ الْمَرْأَةِ الْوَاحِدَةِ فِي الرَّضَاعِ، وقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: تَجُوزُ شَهَادَةُ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ فِي الرَّضَاعِ، وَيُؤْخَذُ يَمِينُهَا، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ الْمَرْأَةِ الْوَاحِدَةِ، حَتَّى يَكُونَ أَكْثَرَ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ: سَمِعْت الْجَارُودَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا، يَقُولُ: لَا تَجُوزُ شَهَادَةُ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ فِي الْحُكْمِ، وَيُفَارِقُهَا فِي الْوَرَعِ".[1]

**ترجمه** : دعقبه بن حارث رضي الله عنه بيان دي چي ما ديوي ښځي سره نكاح اوكړه نو يوه تكه توره ښځه راغله او مونږ ته يي اووئيل ماتاسو دواړو ته پئ دركړي دي چنانچه زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او عرض مي اوكړو چي ما دفلاني دلور سره نكاح كړي ده او اوس يوه توره ښځه راغله او مونږ ته يي وئيل ما تاسو دواړو ته پئ دركړي دي ليكن هغه دروغژنه ده ددي په اوريدو رسول الله صلي الله عليه وسلم خپل مخ زما نه ستون كړو نو زه ورته دبل طرف نه رامخامخ شوم نورسول الله بيا خپل مخ ستون كړو ما عرض اوكړو هغه دروغژنه ده رسول الله اوفرمائيل دا څنګه كيدي شي كله چي هغي دا خبره كړي وي چي تاسو دواړو ته يي پئ دركړي وي خپله ښځه دي دځان نه جدا كړه.

امام ترمذي وائي دعقبه بن حارث حديث حسن صحيح دي دا حديث نورو راويانو هم دابن ابي مليكه نه نقل كړي دي او ابن ابي مليكه دعقبه بن حارث نه نقل كړي دي او هغوئ په دي كي دعبيد بن ابي مريم واسطه نه ده ذكر كړي همدارنګي ددوئ په روايت كي د "دعها عنك" كلماتو ذكر نشته په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي، په صحابه كرامو كي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي، هغوئ درضاعت په سلسله كي ديوي ښځي شهادت درست ګڼړي، دابن عباس قول دي درضاعت په سلسله كي ديوي ښځي شهادت جائز دي ليكن هغي ته به قسم وركولي شي، امام احمد او اسحاق بن راهويه ددي

---

[1] ـ صحيح البخارى في العلم ٢٦ (٨٨) . والبيوع ٣ (٢٠٥٢) . والشهادات ٤ (٢٦٤٠) . و ١٣ (٢٦٥٩) . و ١٣ (٢٦٦٠) . والنكاح ٢٣ (٥١٠٣) . سنن ابى داود في الأقضيه ١٨ (٣٦٠٣) . سنن النسائي في النكاح ٥٧ (٣٣٣٢) . (تحفة الأشراف : ٩٩٠٥) . مسند احمد (٣ في ٧، ٨، ٣٨٤) . سنن الدارمى في النكاح ٥١ (٢٣٠١)

قائل دي او ديوي ښځي په ګواهئ فيصله کول درست نه دي او که يو سړي ديوي ښځي دګواهئ په اوريدو سره دخپلي ښځي سره جدائي اختيار کړي نو دا به عين تقوي وي
د احنافو په نزد رضاعت د ثبوت دپاره صرف د ښځوګواهی نه کافی کيږی، يا به دوه سړی اويا يو سړې اودوه ښځې وی.
اوامام شافعی (رحمه الله) فرمائی چي د څلورو ښځوپه ګواهئ هم رضاعت ثابتيږی، اوامام مالك(رحمه الله) په نزد ددې ښځې په ګواهئ رضاعت ثابتيږی، خوپه دي شرط چي د عدالت په صفت موصوف وی،
دامام شافعی(رحمه الله) دليل ددي قول دا دې چي د رضاعت تعلق د ښځود سينوسره دې، اود ښځو سينوته کتل د سړی دپاره حرام دی نوپه دې کي به دڅلوروښځوګواهی معتبروی، دوه ښځې به ديوسړی قائم مقام شی، ځکه چي په کوموځيزونوسړی نه خبريږی، دشوافو(رحمه الله) په نزدپه هغې کي صرف د ښځوګواهی معتبرده،
دامام شافعی(رحمه الله)د دليل نه جواب دا دې چي رضاعت په هغه ځيزونوکي نه دې چي د سړوخبريدل پرې ممکن نه دی، بلکي حقيقت دا دې چي په رضاعت باندې سړی خبريدې شی، مثلاً د ذوی الارحامو دپاره سينوته کتل حلال دی نودا دليل قابل قبول نه دې،
زمونږ دليل ددي قول دا دې چي د نکاح په باب کي ثبوت د حرمت د ملك د زوال نه جدا کيږی نه، يعنی دا نشی کيدې چي د رضاعت په وجه حرمت نکاح ثابته شی، اوملك نکاح باقی وی، ځکه چي د حرمت مؤبده سره بقاء ممکن نه ده نوهرکله چي د رضاعت په سبب حرمت ثابت شی نونکاح به هم باطليږی، اودنکاح د بطلان دپاره شهادت کامله يعنی د دووګواهانوشهادت ضروری دې نوځکه مونږوايو چي دوه سړی به ګواهی ورکوی، اويا يو سړې اودوه ښځې،
پاتې شوه د غوښې خبره نود يوځيزحرمت د زوال ملك نه جدا کيدې شی، يعنی دا کيدې شی چي يود يو ځيزخوراك دې حرام وی، اوبيا دې هم په ملکيت کښې وی، حاصل دا چي خوراك ئې حرام وی نوهم په ملك کي پاتې کيدې شی، مثلاً يوکافروی، دهغه سره شراب وی، اودې مسلمان شی نود مسلمانيدو نه پس هم په دغه شرابودده ملکيت باقی دې، دغه شان يوکس باندې خاوره حرامه ده، خوددې باوجود هغه دده په ملك کي باقی وی نودغه شان غوښه د مشتری دپاره حرامه دد، خوپه ملك کښې ئې باقی ده نوپه دې صورت کي د يوکس ګواهی سره د غوښې په حرمت باندې شو، د ملکيت په زوال باندې نشو، اوحرمت يودينی امردې، اووراندې معلومه شوې ده چي په دينی امورو کي د يوکس ګواهی معتبرده نوځکه د يوکس په خبر ورکولوسره دا غوښه حرامه شوه،

*****************

## ٥_ باب مَا جَاءَ مَا ذُكِرَ أَنَّ الرَّضَاعَةَ لاَ تُحَرِّمُ إِلاَّ فِي الصِّغَرِ دُونَ الْحَوْلَيْنِ

### حرمت درضاعت د دوه کالو نه په کم عمر کي په پيو خوړلو ثابتيږي

١١٥٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ. عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا يُحَرِّمُ مِنَ الرِّضَاعَةِ إِلَّا مَا فَتَقَ الْأَمْعَاءَ فِي الثَّدْيِ، وَكَانَ قَبْلَ الْفِطَامِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَنَّ الرَّضَاعَةَ لَا تُحَرِّمُ إِلَّا مَا كَانَ دُونَ الْحَوْلَيْنِ، وَمَا كَانَ بَعْدَ الْحَوْلَيْنِ الْكَامِلَيْنِ، فَإِنَّهُ لَا يُحَرِّمُ شَيْئًا. وَفَاطِمَةُ بِنْتُ الْمُنْذِرِ بْنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ وَهِيَ امْرَأَةُ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. ([1])

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنهابيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په رضاعت حرمت هغه وخت ثابتيږي کله چي دي کلمو لره وشلوي او دا دپيو نه دجدا کيدو نه مخکي وي.

امام ترمذي واني داحديث حسن صحيح دي او په صحابه کرامو او اهل علمو کي په اکثرو په دي باندي عمل دي درضاعت حرمت هغه وخت ثابتيږي کله چي دماشوم عمر د دوه کالو نه کم وي او کوم خوړل چي د دوه کالو دعمرنه پس، وي نو په هغي باندي هيڅ يوشي نه حراميږي.

### د رضاعت د مودي په تعين کي دفقهاؤ مذاهب

د رضاعت په مودۀ کي اختلاف دي:

(١) امام ابوحنيفه(رحمه الله) په نزدمودۀ د رضاعت دوه نيم کاله ده.

(٢) اودجمهور فقهاو او مذاهب ثلاثه او صاحبينو په نزددوه کاله دی.

(٣)اوامام زفرفرمائی چي مودۀ د رضاعت دري کاله ده.

(۴)اودامام مالك(رحمه الله) نه د دووکالو او يوه مياشت قول هم منقول دي.

(۵)اود دووکالواو دوو مياشتو روايت ترې هم مروی دي.

دلائل دصاحبينو : اول دليل د الله تعالی دا ارشاد دي: حمله وفصاله دي، په دي کي د حمل اوپيـوٓ نـه پريکولومـوده ديرش مياشـتي خـودلې شـوی دی، اوادنـی مـوده د حمل شپږمياشتې ده نود پې: ورکولوموده دوه کاله پاتي شوه، لهذا د رضاعت مودۀ دوه کاله شول.

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٨٢٨٥)

دويم دليل د نبیﷺ حديث دې چې د دوو کالونه پس رضاعت نشته.
اوپه یوبل روايت کي دی "لارضاع إلا في الحولين" رضاعت نشته مګرپه دوو کالو کې،
اودابن عدیؓ په روايت کي دی چې "لايحرم من الرضاع إلا ما كان في الحولين" يعنى نه ثابتيږی، مګرپه هغه پئ ورکولوچي په دووکالوکي دننه وی.
دامام ابوحنيفه (رحمه الله) دليل هغه آيت دې، کوم چې صاحبينو بيان کړو، وجه د استدلال دا ده چې الله تعالى د حمل اوفصال دواړو دپاره يوه موده ذکرکړې ده نودا موده به په دواړوکي د هريودپاره وی، دا چې په دواړو به تقسيمولې شي (فتح القدير،الكفايه)
دويم عقلی دليل ددي قول دا دې چې د پيو د مودې پوره کيدو نه پس د ماشوم دپاره دومره مودهٔ ضروری ده چې دې په کي د پيو نه علاوه دبل څيز په خوراك عادت شی، اود پيو په ځائې هغه دده د بدن د غټولوکار شروع کړی نوامام ابوحنيفه (رحمه الله) دغه موده د حمل د ادنی مودې نه اخستې ده، ځکه چې دا مودهٔ د خوراك بدلونكي ده، ځکه چې د رضيع خوراك د جنين د خوراك نه جدا وی، ځکه چې د جنين خوراك هغه څه وو، کوم چې دده د مور خوراك وو، بيا د پيدا کيدو نه پس د ده خوراك خالص پئ شو، دغه شان د رضيع خوراك د فطيم د خوراك نه جدا وی، ځکه چې د رضيع خوراك صرف پئ وی، اود فطيم خوراك کله پئ اوکله نور څيزونه، حاصل دا چې د خوراك بدلول ضروری دی، اودخوراك بدلولودپاره کمه موده شپږ مياشتې دی نوماشوم چې هم په نور خوراك بلدولې شی، دې دپاره زياتې شپږ مياشتې ضروری دی،
د صاحبينو د استدلال جواب دادی چې په: "لا رضاع بعد حولين" کي د رضاعت نفی نه ده، بلکي د اجرت نفی ده، مطلب دا که مطلقه ښځه خپل ماشوم ته پئ ورکوی نودا تر دوو کالوپورې د اجرت مستحقه ده چې د ماشوم د پلار يعنی خپل سابقه خاوند نه اجرت واخلی، اوپه اتفاق سره مطلقه د دووکالونه پس د اجرت اخستلومستحقه نه ده، اوهم په دې استحقاق اجرت باندې هغه نص محمول دې، کوم چې د حولين په قيد سره مقيد دې، يعنی والوالدات يرضعن ، دليل ددي قول دا دې چې د دې نه پس الله تعالى فرمائيلی دی:فان ارادوا فصالا عن تراض منهما يعنى که دواړه غواړی نوپئ په خپل مينځ کي په رضا سره پرې کولې شی، په دې آيت کي د پيو پريکول په خپل مينځ کي په رضا مندئ پورې تړلې دی نوکه د دووکالونه پس د پيو ورکول حرام وو نو په خپل مينځ کي په رضامندئ پورې به نې ولې معلق کولو نوثابته شوه چې په آيت کي د رضاعت د مودې بيان نه دې، بلکي په پلارباندې د بچی د پئ ورکولود استحقاق اجرت بيان دې

نور صاحبينو دا آيت اوحديث د خپلې مدعى په تائيد كي پيش كول صحيح نه دي.
(فتح القدير، الكفايه)

***************

## ٦ـ باب مَا جَاءَ مَا يُذْهِبُ مَذَمَّةَ الرَّضَاعِ

### حق درضاعت په څه ځيز اداكيږي

١١٥٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيل، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ حَجَّاجِ بْنِ حَجَّاجٍ الأَسْلَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ. أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ. مَا يُذْهِبُ عَنِّي مَذَمَّةَ الرَّضَاعِ. فَقَالَ: "غُرَّةٌ عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَمَعْنَى قَوْلِهِ: مَا يُذْهِبُ عَنِّي مَذَمَّةَ الرَّضَاعِ. يَقُولُ: إِنَّمَا يَعْنِي بِهِ ذِمَامَ الرَّضَاعَةِ، وَحَقَّهَا. يَقُولُ: إِذَا أَعْطَيْتَ الْمُرْضِعَةَ. عَبْدًا أَوْ أَمَةً. فَقَدْ قَضَيْتَ ذِمَامَهَا. وَيُرْوَى عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ. قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ فَبَسَطَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِدَاءَهُ حَتَّى قَعَدَتْ عَلَيْهِ. فَلَمَّا ذَهَبَتْ قِيلَ: هِيَ كَانَتْ أَرْضَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. هَكَذَا رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ. وَحَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيل. وَغَيْرُ وَاحِدٍ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ حَجَّاجِ بْنِ حَجَّاجٍ. عَنْ أَبِيهِ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ حَجَّاجِ بْنِ أَبِي حَجَّاجٍ. عَنْ أَبِيهِ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَحَدِيثُ ابْنِ عُيَيْنَةَ غَيْرُ مَحْفُوظٍ وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى هَؤُلَاءِ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. وَهِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ يُكْنَى أَبَا الْمُنْذِرِ. وَقَدْ أَدْرَكَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ. وَابْنَ عُمَرَ.[1]

**ترجمه**: دحجاج اسلمي رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو اي دالله رسوله زما نه به حق درضاعت په څه اداء كيږي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي غلام وي او يا وينځه وي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او دا رنګي دا روايت ديحي بن سعيد قطان، حاتم بن اسماعيل، او بعضي نورو راويانو په سند دهشام بن عروه عن ابيه عن حجاج بن حجاج عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي. او سفيان بن عيينه په سند د

[1] ـ سنن ابي داود في النكاح ١٢ (٢٠٦٣). سنن النسائي في النكاح ٥٦ (٣٣٣١). (تحفة الأشراف: ٣٢٩٥). مسند احمد (٣/ ٤٥٠). سنن الدارمي في النكاح ٥٠ (٢٣٠٠)

هشام بن عروه عن ابيه عن حجاج بن ابي حجاج عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او دابن عيينه وغيره حديث محفوظ نه دي صحيح هغه دي كوم چي راويانو دهشام بن عروه نه او هغه دخپل پلار نه نقل كړي دي ،يعني حجاج بن حجاج والانه چي دحجاج بن ابي حجاج او د "مايذهب عني ذمة الرضاعه" نه مراد حق درضاعت او ددي ذمه واري ده فرمائي چي كله تاسو پئ وركونكي ته يو غلام وركړي او يا مو ورته يوه وينځه وركړه نو تاسو دهغي حق اداء كړو، دابو الطفيل رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره ناست وم چي په دي وخت كي يوه ښځه راغله دنبي كريم صلي الله عليه وسلم خپل څادر اوغوړلو تردي چي هغه ورباندي كيناستله كله چي هغه لاړه نو اوونيلي شول شايد دا هغه ښځه وه چاچي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته خپل پئ وركړي وو

***************

## ٧_ باب مَا جَاءَ فِي الْمَرْأَةِ تُعْتَقُ وَلَهَا زَوْجٌ

### بيان دهغي ښځي كومه چي ازاده كړي شي او دهغي خاوند موجود وي

١١٥٤_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ زَوْجُ بَرِيرَةَ عَبْدًا، فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا وَلَوْ كَانَ حُرًّا لَمْ يُخَيِّرْهَا".(1)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرماي چي دبريري خاوند غلام وو رسول الله صلي الله عليه وسلم بريري ته اختيار وركړو نو هغي خپل خان واختلو (عروه وائي) كه چري دبريري خاوند ازاد وي نو رسول الله به بريري ته اختيار نه وو وركړي

***************

١١٥٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ زَوْجُ بَرِيرَةَ حُرًّا، فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ هَكَذَا، رَوَى هِشَامٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ زَوْجُ بَرِيرَةَ عَبْدًا". وَرَوَى عِكْرِمَةُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: رَأَيْتُ زَوْجَ بَرِيرَةَ، وَكَانَ عَبْدًا، يُقَالُ لَهُ: مُغِيثٌ،

---

[1] _ مسلم في العتق ٢ (١٥٠٤ في ٩) سنن ابي داود في الطلاق ١٩ (٢٢٣٣) سنن النسائي في الطلاق ٣١ (٣٤٦١) (تحفة الأشراف : ١٦٧٤٠) وأخرجه مطولا ومختصرا صحيح البخاري في العتق ١٠ (٢٥٣٦) ، والفرائض ٢٢ (٦٧٥٨) صحيح مسلم في العتق (١٥٠٤ في ١٠). مسند احمد (٦ في ٤٦، ١٧٨) سنن الدارمي في الطلاق ١٥ (٢٣٣٣)، وبرقم ١٢٥٦ و ٢١٢٣ و ٢١٢٥

وَهَكَذَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، وَقَالُوا: إِذَا كَانَتِ الأَمَةُ تَحْتَ الحُرِّ، فَأُعْتِقَتْ فَلَا خِيَارَ لَهَا، وَإِنَّمَا يَكُونُ لَهَا الخِيَارُ إِذَا أُعْتِقَتْ، وَكَانَتْ تَحْتَ عَبْدٍ وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَرَوَى الأَعْمَشُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ زَوْجُ بَرِيرَةَ حُرًّا، فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَوَى أَبُو عَوَانَةَ هَذَا الحَدِيثَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ فِي قِصَّةِ بَرِيرَةَ. قَالَ الأَسْوَدُ: وَكَانَ زَوْجُهَا حُرًّا، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الكُوفَةِ. (1)

**ترجمه** . دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي دبريري خاوند ازاد وو او بيا هم ديته رسول الله صلي الله عليه وسلم اختيار ورکړو.

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي دا رنګي هشام د خپل پلار عروه نه او عروه دعائشي نه روايت نقل کړي دي چي ام المؤمنين فرمائيل دبريري خاوند غلام وو، دعکرمه نه روايت دي چي ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيل ما دبريري خاوند ليدلي وو هغه غلام وو او نوم يي مغيث وو، دارنګي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم مروي دي دبعضي اهل علمو عمل هم په دي باندي دي دوئ وائي کله چي يوه وينځه د ازاد سړي په نکاح کي وي او دا ازاده کړي شي نو ديته به اختيار نه وي اختيار به ورسره صرف په هغه صورت کي وي کله چي دا ازاده کړي شي او دا دکوم غلام په نکاح کي وي همدا دامام شافعي، او احمد، او اسحاق بن راهويه قول دي، ليکن اعمش دا حديث په سند دابراهيم عن الاسود عن عائشه سره نقل کړي دي چي دبريري خاوند ازاد وو او رسول الله ديته اختيار ورکړو او ابو عوانه هم دا حديث په سند داعمش عن ابراهيم عن الاسود عن عائشه سره نقل کړي دي او دبريري د قصي په سلسله کي يي نقل کړي دي، اسود وائي دبريري خاوند ازاد وو دتابعينو او ددوئ نه پس په نورو خلقو کي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او همدا د سفيان ثوري او اهل کوفه قول هم دي

***************

[1] ـ سنن النسائي في الزكاة ۹۹ (۲٦١٥)، والطلاق ۳۰ (۳۴٤۹)، سنن ابن ماجه في الطلاق ۲۹ (۲۰۷۳) (تحفة الأشراف: ۱۵۹۵۱)، مسند احمد (٦ في ۴۲)

١١٥٦ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، وَقَتَادَةُ عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، " أَنَّ زَوْجَ بَرِيرَةَ كَانَ عَبْدًا أَسْوَدَ، لِبَنِي الْمُغِيرَةِ يَوْمَ أُعْتِقَتْ بَرِيرَةُ وَاللَّهِ لَكَأَنِّي بِهِ فِي طُرُقِ الْمَدِينَةِ وَنَوَاحِيهَا، وَإِنَّ دُمُوعَهُ لَتَسِيلُ عَلَى لِحْيَتِهِ يَتَرَضَّاهَا، لِتَخْتَارَهُ فَلَمْ تَفْعَلْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَسَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ هُوَ سَعِيدُ بْنُ مِهْرَانَ وَيُكْنَى أَبَا النَّضْرِ. ([1]).

**ترجمه** دعبدالله بن عباس بيان دي چي دبريري خاوند دبني مغيره يو تور غلام وو په کومه ورځ چي بريره ازاده کړي شوه په الله قسم ما هغه دمديني په کوڅو کي او په کنارو کي خپل خان ته مخامخ ليدلو چي په ږيره يي اوښکي بهيدلي او هغه يي پوخلا کوله چي ده لره دخان سره دپاتي کولو دپاره راضي شي ليکن هغوئ داسي اونکړل

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ٨ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ الْوَلَدَ لِلْفِرَاشِ

### بچي به د خاوند يا دمالک حق وي

١١٥٧ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ، وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عُمَرَ، وَعُثْمَانَ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَعَمْرِو بْنِ خَارِجَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَالْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، وَزَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([2])

---

[1] ـ صحيح البخاري في الطلاق ١٥ (٥٢٨٢) . ١٦ (٥٢٨٣) . سنن ابى داود في الطلاق ١٩ (٢٢٣٢) . (تحفة الأشراف : ٥٩٩٨) و٦١٨٩) وأخرجه سنن ابى داود في الطلاق (٢٢٣١) . و مسند احمد (١ في ٢١٥) . وسنن الدارمي في الطلاق ١٥ (٢٣٣٨)

[2] ـ صحيح مسلم في الرضاع ١٠ (١٤٥٨) . سنن النسائي في الطلاق ٤٨ (٣٥١٢) . سنن ابن ماجه في النكاح ٥٩ (٢٠٠٦) مسند احمد (٢ في ٢٣٩) (تحفة الأشراف : ١٣١٣٤) وأخرجه صحيح البخاري في الفرائض ١٧ (٦٧٥٠) . والحدود ٢٣ (٦٨١٨) . مسند احمد (٢ في ٢٨٠ . ٢٨٦ . ٣٠٩ . ٤٩٢)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بچي دصاحب فراش (يعني خاوند يا دمالك) حق دي او دزناكار دپاره به كاڼړي وي
امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعمر، عثمان، عائشه، ابو امامه، عمرو بن خارجه، عبدالله بن عمرو، براء بن عازب او زيد بن ارقم رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي داكثرو په دي باندي عمل دي
**تشريح** : دا حديث د حجة الوداع په موقع رسول الله پخپله خصوصي او مشهوره خطبه كي ارشاد فرمائيلي دی. او دلته امام ترمذي مختصر نقل كړی دی نورو محدثينو تفصيل سره ذكر كړي دی او پس منظر يي داسي دی:
په حجة الوداع كي د رسول الله د خطبي په موقع يو كس اودريدو او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله مادجاهليت په زمانه كي د معاهره عقد كړي وو (يعني يوه ښځه مي بغير دنكاح نه دځان سره ساتلي وه اودهغي نه بچي پيدا شوي دي) نو ددي څه حكم دي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چاچي دكومي ازادي ښځي يا وينځي سره معاهره كړي وي او بيا ددي بچي پدي زناكار پوري خپل نسب پيوست كړي نو دا جائز نه دي نه دي ددوئ وارث ګرځي او نه دوئ دده وارثان ګرځي، زما خيال دي چي تاسو به پوهه شوي يئ ، زه خپله خبره كوم (كومه چي مي اوكړه) او ستاسو دپاره دالله تعالي نه معافي غواړم

***************

## ٩ـ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَرَى الْمَرْأَةَ تُعْجِبُهُ

### كله چي څوك يوه ښځه ويني اوخوښه يي شي نو څه كول پكار دي

١١٥٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ هُوَ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى امْرَأَةً فَدَخَلَ عَلَى زَيْنَبَ، فَقَضَى حَاجَتَهُ، وَخَرَجَ وَقَالَ: "إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا أَقْبَلَتْ أَقْبَلَتْ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ، فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمُ امْرَأَةً فَأَعْجَبَتْهُ، فَلْيَأْتِ أَهْلَهُ فَإِنَّ مَعَهَا مِثْلَ الَّذِي مَعَهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ، حَدِيثٌ صَحِيحٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَهِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ هُوَ هِشَامُ بْنُ سَنْبَرٍ. (١)

---

[1] ـ صحيح مسلم في النكاح ٢ (١٤٠٣). سنن ابي داود في النكاح ٣٣ (٢١٥١). مسند احمد (٣ في ٣٣٠) (تحفة الأشراف: ٢٩٧٥). وأخرجه: مسند احمد (٣ في ٣٣٠، ٣٤١، ٣٤٨، ٣٩٥)

**ترجمه** د جابر رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله (ص) يوه ښځه وليدله نو خپل كور ته د زينب كمري ته ورغلو او خپل حاجت يې ورنه پوره كړو او بيا راووتلو او وني فرمائيل ښځه چي هركله چا ته مخامخ كيږي نو د شيطان په شكل كي ورته مخامخ كيږي كله چي په تاسو كي يو كس يوه ښځه ووينې(اوخوښه يې شي) نو خپلې ښځي ته دي ورشي پس يقينا چي ددې سره هم هغه شي دى كوم چي دهغې سره وو

امام ترمذي وايي په دې باب كي د ابن مسعود نه هم روايت وارد دى، او حديث د جابر حسن صحيح غريب دى، اود هشام دستوايي نوم هشام بن سنبر دى

***************

## ١٠ـ باب مَا جَاءَ فِي حَقِّ الزَّوْجِ عَلَى الْمَرْأَةِ

### باب دي په بيان دحق دخاوند كي په ښځه باندي

١١٥٩ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ، لَأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، وَسُرَاقَةَ بْنِ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، وَطَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. ([1])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه چري ما چالره بل چاته دسجدي كولو اجازت وركولي نو ښځو ته به مي حكم كړي وي چي دوئ خپلو خاوندانو ته سجده اوكړي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن غريب دي، او په دي باب كي دمعاذ بن جبل، سراقه بن مالك بن جعشم، عائشه، ابن عباس، عبدالله بن ابي اوفي، طلق بن علي، ام سلمه، انس، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**لغات** : يسجد. سجد دنصر نه سجودا خاكسارئ او عاجزئ كولو ته وئيلي شي او همدارنګي تندي لره په زمكه ايخودلو ته وئيلي شي.

**تشريح** : لامرت المراة ان تسجد لزوجها. يعني ښځو ته به مي حكم كړى وو چي خپلو خاوندانو

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٥١٠٣)

ته سجدي اوکړي.

په پورتني حديث کي تير شول چي دخاوند په ښځه باندي دومره حقوق واجب دي که چري دغيرالله دپاره سجده کول جائز وی نو دخاوند دزيات حقدار کيدو په وجه دا به هم جائز کړی شوي وو ليکن محمدي شريعت غيرالله ته سجده کول مطلقا حرام کړي دي نو په دي وجه به زنانه هيڅاته سجده نه کوي مګر دخاوند اطاعت به ضرور کوي يعني اسلام ورته اهم سبق خودلی دی.

****************

١١٦٠ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَدْرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ، عَنْ أَبِيهِ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا الرَّجُلُ دَعَا زَوْجَتَهُ لِحَاجَتِهِ فَلْتَأْتِهِ، وَإِنْ كَانَتْ عَلَى التَّنُّورِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه**: دطلق بن علي رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي يو کس خپله ښځه دخواهش پوره کولو دپاره راوغواړي نو هغي لره فورا راتلل پکار دي اګر که دا په تنور باندي وي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي.

**لغات**: دعا: چا لره رابلل، رغبت کول، مدد غوښتل.

**تشريح**: وان کانت علي التنور. يعني اګر که ښځه په تنور باندي وي، مطلب دادي اګر که کوم څيز ته نقصان رسيږي يايي دضائع کيدو خطره وي. ددي مطلب دادي چي دخاوند په اشاري اوغوښتلو سره دي فورا راشي

**دطلق بن علي رضي الله عنه حالات**

نوم طلق دپلار نوم علي کنيه ابو علي حنفي يمامي طلق بن ثمامه ورته وئيلی شي دمسلمانيدو دپاره ديمامي دوفد سره راغلی وو څوارلس روايات ورنه منقول دي چي په دوی کي يو هم په صحيحينو کي نشته.

****************

[1] تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف ٥٠٢٦)

١١٦١_ حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَبِي نَصْرٍ، عَنْ مُسَاوِرٍ الحِمْيَرِيِّ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَيُّمَا امْرَأَةٍ مَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَنْهَا رَاضٍ، دَخَلَتِ الجَنَّةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي کومه ښځه چي مړه شي او ددي خاوند ددینه راضي وي نو دا به په جنت کي داخلیږي

امام ترمذي وائي دا حدیث حسن غریب دي

**لغات** : ماتت مات یموت موتا دنصر نه معني مړ کیدل، دکیړو زړیدل . او مضبوط خوب باندي اوده کیدل.

**تشریح** : زوجها عنها راض ، یعني چي خاوند ورنه راضي وي.

په پورتني حدیث کي د داسي زنانوو دپاره زیری دی څوك چي داسلام داحکامو فرائضو پابندي کوي او دخپل خاوند جائزي خبري هم مني او دهغه دخوشحالیدو خیال ساتي اګر چي په دي کي بعضي کارونه خوښ ولي نه وي .

علماء وائي په دي حدیث کي دخاوند هغه خبري کومي چي دشریعت خلاف وي او ددي په کولو خوشحالیږي مراد نه دي.

**************

## ١١_ باب مَا جَاءَ فِي حَقِّ الْمَرْأَةِ عَلَى زَوْجِهَا

### په خاوند باندي دښځي دحقوقو بیان

١١٦٢_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا، وَخِيَارُكُمْ خِيَارُكُمْ لِنِسَائِهِمْ خُلُقًا ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه** دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي په ایمان کي دټولو نه کامل مومن هغه دي دچاچي دهر چانه اخلاق زیات بهتر وي او په تاسو

---

[1] _ . سنن ابن ماجه في النكاح ۴ (١٨٥٤) . (تحفة الأشراف : ١٨٢٩٤)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٥٠٥٩)

کي دتولو نه بهتر هغه کس دي ځوك چي داخلاقو په لحاظ دخپلو ښځو په حق کي دټولو نه بهتر وي

دابوهريره دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعائشه او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**لغات** : خيارکم الخير معني نيکي ، خيګړه او د کوم څيز خپل کمال ته رسيدل دي ، جمع يي خيوز او اخيار راځي دباب ضرب او سمع نه.

**تشريح** :احسنهم خلقا ، کوم چي ښو اخلاقو والاوي، دحسن بصري او عبدالله بن مبارك قول دی ښه اخلاق دیته وائي چي ته دخلقو سره په روڼ تندي مخامخ شي او ښه سلوك ورسره اوکړي او دتکليف ورکونکي څيزونو نه يي بچ کړي.

کنز العمال ، دابن عمر رضي الله عنهما قول نقل کړی دی چي مکارم اخلاق ديته وئيلی شي ځوك چي دالله درضا دپاره دبل چا ملاقات اوکړي او چاته چي ورغلی وي هغه دراتلونکي اکرام اوکړي او ورتلونکي کس ته چي هر څه ملاؤ شي اګر که داوبو ګوټ وي خو په هغي باندي خوشحاله شي

ابو العباس احمد وائي چاچي لوړه مرتبه موندلي وه نو هغه يي دښو اخلاقو په وجه موندلي وه خيارکم لنسائهم، علماء وايي چي دښځو سره نيك سلوك کول ، غلطياني ورته معاف کول د انبياء عليهم السلام شان دي.

******************

١١٦٣ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ شَبِيبِ بْنِ غَرْقَدَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَمْرِو بْنِ الأَحْوَصِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، أَنَّهُ شَهِدَ حَجَّةَ الْوَدَاعِ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَحَمِدَ اللَّهَ، وَأَثْنَى عَلَيْهِ، وَذَكَّرَ وَوَعَظَ، فَذَكَرَ فِي الْحَدِيثِ قِصَّةً، فَقَالَ: " أَلَا وَاسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا، فَإِنَّمَا هُنَّ عَوَانٌ عِنْدَكُمْ لَيْسَ تَمْلِكُونَ مِنْهُنَّ شَيْئًا، غَيْرَ ذَلِكَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ، فَإِنْ فَعَلْنَ فَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ، وَاضْرِبُوهُنَّ ضَرْبًا غَيْرَ مُبَرِّحٍ، فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا، أَلَا إِنَّ لَكُمْ عَلَى نِسَائِكُمْ حَقًّا، وَلِنِسَائِكُمْ عَلَيْكُمْ حَقًّا، فَأَمَّا حَقُّكُمْ عَلَى نِسَائِكُمْ، فَلَا يُوطِئْنَ فُرُشَكُمْ مَنْ تَكْرَهُونَ، وَلَا يَأْذَنَّ فِي بُيُوتِكُمْ لِمَنْ تَكْرَهُونَ، أَلَا

وَحَقُّهُنَّ عَلَيْكُمْ، أَنْ تُحْسِنُوا إِلَيْهِنَّ فِي كِسْوَتِهِنَّ وَطَعَامِهِنَّ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَمَعْنَى قَوْلِهِ: عَوَانٌ عِنْدَكُمْ يَعْنِي: أَسْرَى فِي أَيْدِيكُمْ. (١)

**ترجمه** دسليمان بن عمرو بن احوص بيان دي فرمائي چي ماته زما پلار بيان كړه چي زه په حجة الوداع كي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره شريك وم هغوئ دالله تعالي حمد او ثنا بيان كړه او خلقو ته يي نصيحت اوكړو او دوئ يي پوهه كړل او بيا راوي په دي حديث كي يوه قصه ذكر كړه په كومه كي چي دا مضمون دي چي رسول الله اوفرمائيل واورئ دښځو سره خيرخواهي كوئ ځكه چي دوئ ستاسو سره قيد دي او تاسو ددي نه علاوه نور هيڅ اختيار نه لرئ (او كله چي هغوئ ښكاره بي حيايئ ارتكاب اوكړي (نو بيا تاسو لره دوئ ته دسزا وركولو حق شته) او كه دوئ بيا داسي اوكړي نو ددوئ نه خپلي بستري جدا كړئ او ويي وهئ ليكن دضرر والا وهل مه كوئ بيا ددينه پس كه چري دوئ ستاسو فرمانبرداري شي نو بيا دوئ ته دنوري سزا وركولو دپاره بهاني مه لټوئ ، واورئ لكه څنګه چي په ښځو باندي ستاسو حق دي دارنګي په تاسو باندي هم ستاسو د بيبيانو حق دي، ستاسو حق په دوئ باندي دادي چي هغوئ ستاسو بستره په بل چا باندي پامال نه كړي چالره چي تاسو نه خوښوئ او داسي خلقو لره ستاسو كور ته دراتلو اجازت نه وركوئ څوك چي په تاسو باندي ښه نه لګي واورئ او په تاسو باندي ددوئ حق دادي چي لباس ورته داغوستلو دپاره وركړئ او ښه سلوك ورسره اوكړئ

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او د ''عوان عندكم'' معني داده چي دوئ ستاسو قيديان دي

***************

**لغات** : لا يوطي باب افعال اوطأ يوطئ ايطاء معني پائمالول لكه چي په محاوره كي وئيلي شي وطئ الشي برجله يعني دخپو لاندي يي كړو

**تشريح** : "واضربوهن ضرباً غير مبرح" يعني داسي وهل مه وركوئ چي هډوكي يي مات شي اسلام اګر چي په بعضي حالاتو كي دښځي درټلو او وهلو اجازت وركړى دى ليكن په قران كريم په پورتني حديث كي دا حكيمانه نصيحت شوى دى چي دهر څه نه مخكي ورته نصيحت اوكړئ نوكه په دي باندي كار اونكړى شي نو په دويم نمبر كي ددوئ دپاره وهل دي او كه په دي هم كار اونه شي نو بيا ورنه بستره جدا كول پكار دي

١ ـ سنن ابن ماجه في النكاح ٣ (١٨٥١) . والمؤلف في تفسير التوبة (٣٠٨٧) (تحفة الأشراف : ١٠٦٩١)

"لايوطئن فرشكم من تكرهون" مطلب دادى چي دخاوند په عدم موجودګئ کي دښځي ذمه واري داده چي دخپل عصمت او دخاوند دمال حفاظت وکړي او کورته داسي څوك رايري نږدي کوم چي يي دخاوند خوښ نه وي اګر که هغه رشته دار ولي نه وي

دمعاويه بن حيده رضي الله عنه نه روايت دى چي ما عرض اوکړو يا رسول الله · دښځی په مونږ باندي څه حق دى ؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. داچي ته خپله څه خوری نوهغي ته هم ورکړی او چي خان ته جامی جوړوی چي هغه ته هم جوړی کړی ، په مخ يی مه وهه او بد رد ورته مه وايه او جدا کوه يی مه، مګر په کور کي دننه .يعني دکوره يی مه شړه. او که خفه يی تری نو په کور کي دننه تري خپله بستره جدا کړه» دا حديث حسن دى «ابو داود.

لاتقبح معني ده قبحك الله يعني خدايى دى وشرموه، ورته مه وايه

"حق زوجه" يعني په خاوند باندي حق دادى چي دطاقت مطابق لباس او ښه خوراك او دژوند نور ضروريات ورته فراهم کړي "ولا تضرب الوجه" او په مخ دي ګذار نه ورکوي. نافرماني ښځي ته دلاز خودلو دپاره شريعت اجازت ورکړى دى او داعتدال حکم يي کړى دى خو دمخ دوهلو نه يي ممانعت فرمائيلى دى لکه چي دا په تمامو اعضاؤ کي اشرف دى

فتاوي قاضي خان ليکلي دي شريعت خاوند ته په څلورو وجو دښځي دوهلو اجازت ورکړى دى يو دادي چي دخاوند دخواهش باوجود هغه زينت ترك کړي ، دويم دا چي اسلامي فرائض نه ادا کوي، دريم دا چي دخاوند داجازت نه بغير بهر لاره شي، څلورم دا چي دصحبت نه انکار اوکړي.

"ولا تهجروا الا في البيت" او جدائي ورنه مه اختياروئ مګر په کور کي، مطلب دادى که ښځي ته دتنبيه ورکولو دپاره دهغي نه جدائي اختياروئ نو په کور کي ورنه جدا شئ يعني بهر تلو ته ضرورت نشته.

### عمرو بن احوص الجشمي رضي الله عنه حالات

نوم عمرو دپلار نوم احوص دبني کلاب قبيلي سره يي تعلق وو په دي وجه ورته کلابي وئيلى شي خو دلته قبيله جشمي ته منصوب دى علامه ابن السير وائي مونږ ته نه ده معلومه چي بني کلاب ته دجشمي نسبت درست دى او که نه څکه چي ددي دواړو قبيلو په مينځ کي څه نسبت نشته دده نه صرف دوه احاديث مروي دي.

## ١٢ــ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ إِتْيَانِ النِّسَاءِ فِي أَدْبَارِهِنَّ

١١٦٤ــ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ عِيسَى بْنِ حِطَّانَ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ سَلَّامٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ، قَالَ: أَتَى أَعْرَابِيٌّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ:

يَا رَسُولَ اللهِ، الرَّجُلُ مِنَّا يَكُونُ فِي الفَلاَةِ فَتَكُونُ مِنْهُ الرُّوَيْحَةُ، وَيَكُونُ فِي المَاءِ قِلَّةٌ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ، وَلَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَعْجَازِهِنَّ، فَإِنَّ اللهَ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الحَقِّ". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ عُمَرَ، وَخُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وسَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: لَا أَعْرِفُ لِعَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، غَيْرَ هَذَا الحَدِيثِ الوَاحِدِ، وَلَا أَعْرِفُ هَذَا الحَدِيثَ، مِنْ حَدِيثِ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ السُّحَيْمِيِّ، وَكَأَنَّهُ رَأَى أَنَّ هَذَا رَجُلٌ آخَرُ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** د علي بن طلق نه روايت دى فرمائي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته يو بانډچي راغلو او عرض يې وكړو اي د الله رسوله مونږ كله كله يو بيابان ته لاړ شو او هلته اكثر د اوبو كمي وى نو كه هلته زمونږ نه څه باد وغيره لاړ شي نو څه به كوو؟ نبي كريم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل كله چې په تاسو كي د چا نه هوا خارج شي نو اودس دي وكړي او ښخو سره د شاه د طرفه جماع مه كوئ ځكه چې الله تعالي دحق بيانولو سلسله كي شرم نه كوي.

امام ترمذي وايي په دي باب كي د عمر،خزيمه بن ثابت ، ابن عباس او ابو هريره رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي، او حديث د علي بن طلق حسن دى، امام بخاري به ونيل ددي روايت نه علاوه ماته د علي بن طلق بل روايت معلوم نه دي چي د رسول الله نه يي نقل كړى وي، او دارروايت ماته د طلق بن علي السحيمي په سند هم معلوم نه دى ګويا كي دهغه په خيال دا بل څوك دى د صحابه كرامو نه.

**************

١١٦٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَنْظُرُ اللهُ إِلَى رَجُلٍ، أَتَى رَجُلًا أَوِ امْرَأَةً فِي الدُّبُرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَرَوَى وَكِيعٌ هَذَا الحَدِيثَ. (2)

1 ـ ابي داود في الطهارة ٨٢ (٢٠٥) . والصلاة ١٩٣ (١٠٠٥) . سنن الدارمي في الطهارة ١١٣ (١١٨١)

2 ـ تفرد به المؤلف (وأخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف ٦٣٦٣٠)

**ترجمه** : دا بن عباس رضي الله عنه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، الله تعالي هغه کس ته د رحمت په نظر نه ګوري څوك چي يو نارينه ته او يا يوي ښځي ته د شاه طرفه راتلل وکړي
امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دی، او وکيع هم دا حديث نقل کړي دی

*****************

١١٦٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مُسْلِمٍ وَهُوَ ابْنُ سَلَّامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ، وَلَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَعْجَازِهِنَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَعَلِيٌّ هَذَا هُوَ عَلِيُّ بْنُ طَلْقٍ. (١)

**ترجمه** : د علي بن طلق رضي الله عنه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، کله چي په تاسو کي د چا نه هوا خارج شي نو اودس دي وکړي او ښځو سره د شاه دطرفه جماع مه کوئ
امام ترمذي وايي د علي نه مراد علي بن طلق دی

*****************

## ١٣ـ باب مَا جَاءَ فِى كَرَاهِيَةِ خُرُوجِ النِّسَاءِ فِي الزِّينَةِ

### دسنګار په حالت کي دښځو دپاره بهر وتلو دکراهت بيان

١١٦٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ بِنْتِ سَعْدٍ وَكَانَتْ خَادِمًا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَثَلُ الرَّافِلَةِ فِي الزِّينَةِ فِي غَيْرِ أَهْلِهَا كَمَثَلِ ظُلْمَةِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا نُورَ لَهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ، وَمُوسَى بْنُ عُبَيْدَةَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ وَهُوَ صَدُوقٌ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ، وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (٢)

**ترجمه** . دميمونه بنت سعد (چي درسول الله صلي الله عليه وسلم خادمه وه) نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دخپل خاوند نه علاوه دنورو خلقو په

---

1 _ ابي داود في الطهارة ٨٢ (٢٠٥) ، والصلاة ١٩٣ (١٠٠٥) ، سنن الدارمي في الطهارة ١١٣ (١١٨١)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٠٨٩)

وړاندي زينت ښکاره کولو والا ښځي مثال دقيامت په ورځ دتياري پشان دي چي ددي سره به هيڅ قسم نور نه وي.
امام ترمذي وائي داحديث مونږ صرف دموسي بن عبيده په سند رارسيدلي دي او موسي بن عبيده دحفظ په اعتبار ضعيف ګڼړلي شوي دي مګر ربنتوني دي دده نه شعبه اوثوري هم نقل دروايت کړي دي او بعضي راويانو داحديث دموسي بن عبيده نه نقل کړي دي او مرفوع يي نه دي ذکر کړي

**تشريح**: قاضي ثناء الله د سورة النورد ايت ولايبدين زينتهن په تفسير کي د زينت د احکامو شاندار مدلل تحقيق کړی دی چي تاسو ته يي د مقام د مناسبت په وجه پيش کوو
دزينت نه مراد کپړي، زيورات، سنګار، وغيره دي ـ يعني سنګار لره مه ظاهروئ اودسنګار اعضاؤ لره نه ظاهرول په درجه اولي ضروري دي.
دبعضي مفسرينو په نزد دزينت نه مراد اعضاء دزينت دي . اويادزينت نه مراد فطري محاسن دي . دڅلورو واړو امامانو په نزد ددينه مراد مخ دواړه لاسونه اودلاسونو خپو ورغوي دي دعطاء په سند سره عائشه رضي الله عنها ته ددي قول نسبت شوي دي . او په دويم روايت کي مخ او ورغوو سره دخپو استثناء هم شوي ده .
دامام شافعي مشهور قول دادي چي صرف مخ مستثنى دي بهر حال دڅلورو واړو امامانو په نزد په اتفاق سره مخ دستر نه مستثنى دي ، دامام ابو حنيفه او مالك او احمد په نزد ديو روايت په بنا کفين هم مستثنى دي، په قاضي خان کي راغلي دي چي دورغوي بهرنۍ حصه او داخلي حصه دپنجي پوري مستثنى ده او په ظاهر الروايت کي راغلي دي چي دورغوو ستر نشته مګر بهرنۍ حصه يي قابل دستر ده (کذا قال ابن الهمام)
دواړه خپي په عورت کي داخلي دي ليکن په يو روايت کي دامام ابو حنيفه قول ددي په خلاف راغلي دي
دحنفي فقهي په کتابونو کي مخ دسترنه مستثنى کړي شوي دي او دا استثناء صرف دمونځ سره مخصوص نه ده په هدايه کي دي چي د سرِي دپاره دکومي ښځي دبدن دکومي حصي ليدل علاوه دمخ او دورغوو نه جائز نه دي ځکه چي الله تعالي فرمانيلي دي "وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا" ددينه علاوه دمخ او ورغوو په پټ ساتلو کي ډير تکليف هم دي دضرورت په وخت کي ددوئ ښکاره ساتل ضروري دي دسړو سره په لين دين کي ددي ښکاره کيدل لازمي دي
مونږ وايو همدا دامام ابو حنيفه مسلك دي او ددي تائيد دهغه روايت نه کيږي کوم چي ابو داود مرسل بيان کړي دي چي جينۍ کله بالغه شي نو ددي دمخ او دلاسواودپنجو نه علاوه بل

خاي ته يي كتل درست نه دي، مونږ دا هم وايو كومو سړو ته چي دښځو حاجت نه وي (يعني دډير بوډاوالي په وجه يي ښځو ته ميلان نه وي) دهغوئ په وړاندي ښځو لره خپل زينت ښکاره كول په اجماع دعلماؤ جائز دي او په قراني صراحت سره هم ثابت دي ځكه چي په دي صورت كي دفتني خوف نه وي ، پس كله چي دزينت اظهار جائز شو نو بياخو دبي كاره سړو په وړاندي دخپل زينت ښكاره په درجه اولي څه حرج نه لري مګر كه د اجنبياتو په ليدو سره نقصان انديخنه وي برابره خبره ده چي دا انديخنه صرف دشبهي په حد كي دننه وي نوبياهم ددي مخ ته كتل ناجائز دي همدامطلب صاحب دهدايه بيان كړي دي ابن همام ليكلي دي كه چري داجنبيه ښځي يا امرد مخ ته په كتو سره دشهوانيت خطره وي نوديته هم كتل جائز نه دي. په كومو صورتونو كي چي داجنبيه مخ ته دكتلو نه ممانعت راغلي دي په هم هغه صورتونو كي دښځي دپاره خپل مخ اجنبي خلقو ته خودل ناجائز دي ځكه چي دا دفتني سبب جوړيږي.

رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ښځه سرترپايه عورت دي كله چي بهر وځي نو شيطان ورسره كيږي (رواه الترمذي عن ابن مسعود).

ددي حديث نه معلوميږي چي ښځه سرترپايه عورت دي او ضرورتونه ددي حكم نه په اجماع دامت سره مستثني دي ، كه چري ښځي ته دبازار نه دسودا راوړو دپاره څوك نه ملاويږي نو دا هم يو قسم ضرورت دي دضرورت پوره كولو دپاره په پرده كي تلي شي او دلاري دليدودپاره يوه سترګه ښكاره ساتلي شي او كه دسر نه خپو پوري پټونكي كپړه نه موندي نو څومره چي ممكن وي خان دي پټ ساتي ، كله كله دعلاج معالجي دپاره طبيبانو ته دتلو ضرورت پيښيږي او كله كله عدالتونو ته دحاكم ... وړاندي ګواهئ كولو ته ضرورت پيښيږي پدي ټولو صورتونو كي دضرورت په مقدار انكشاف دپردي درست دي ، مونږ دزينت مرادي معني دوه قسمه بيان كړي ده ، اول جامي، زيورات ، او دسينګار څيزونه اودبيضاوي په نزد دلته همدا معني مراد ده ، ابن مسعود رضي الله عنه به هم دزينت نه جامي مراد كولي او په دليل كي به يي ايت "خذوا زينتكم عند كل مسجد" تلاوت كولو.

پدي صورت كي دزينت يعني لباس او زيور لره دظاهرولو دممانعت صراحت شوي دي او مواضع دزينت يعني داعضاؤ دظاهرولو حرمت په دلالة النص سره په درجه اولي ثابت دي پدي وخت كي به ده الاماظهر مطلب بلكل واضح وي چي كومي كپړي بيروني دي او پاسني لباس وي هغه ددي حكم نه مستثني دي

او كه دزينت نه مراد مواضع دزينت يعني اعضاء وي نو داستثني مطلب به دا وي چي كله دضروري كار دپاره يا دګواه فراهم كولو دپاره يا دشهادت ادا كولو دپاره مواضعو دزينت يعني اعضاؤ ښكاره كولو ته ضرورت پيښ شي او ددي دښكاره كولو اراده يي نه وي نو

بداسي ضرورت كي ددي اعضاؤ بي پردي كول جائز دي ، بهر حال دمخ او دلاسونو استثني صرف په مونځ كي نه ده بلكه عامه ده لكه څنګه چي دبيضاوي خيال دي

دمخ دښكاره كولو عدم جواز ددي ايت نه هم ثابتيږي الله تعالي فرمائيلي دي "يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَنْ يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا" دابن عباس او ابو عبيده قول دي مسلمانانو ښځو ته حكم شوي دي چي خپل مخونه او سرونه پخپلو څادرونو كي پټ ساتئ ددي دپاره چي خلقو ته معلومه شي چي دا ازادي ښځي دي او صرف يوه سترګه ښكاره كولي شئ ، هر چي دقبيله خثعم ديوي ښځي واقعه ده چاچي دخپل بوډا پلار دحج په عوض كي پخپله دحج كولو تپوس كړي وو او فضل بن عباس هغي ته كتل ،نو ددينه په عامو حالاتو كي په جواز باندي استدلال نشي كيدي، دا ښكاره كول خو دمسئلي معلومولو دضرورت په وجه وو او دمجبورئ په وخت كي دمخ پرده نه پاتي كيږي پدي حديث كي چي رسول الله دفضل مخ دښځي نه ګرځولي دي پخپله ورنه معلوميږي چي نامحرم مخ ته كتل جائز نه دي

***************

## ١٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْغَيْرَةِ

### دغيرت بيان

١١٦٨_ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حَبِيبٍ. عَنِ الحَجَّاجِ الصَّوَّافِ. عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ أَبِي سَلَمَةَ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ يَغَارُ وَالْمُؤْمِنُ يَغَارُ وَغَيْرَةُ اللَّهِ أَنْ يَأْتِيَ الْمُؤْمِنُ مَا حَرَّمَ عَلَيْهِ". قَالَ: وَفِي البَابِ. عَنْ عَائِشَةَ. وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ أَبِي سَلَمَةَ. عَنْ عُرْوَةَ. عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. هَذَا الحَدِيثُ وَكِلَا الحَدِيثَيْنِ صَحِيحٌ. وَالحَجَّاجُ الصَّوَّافُ هُوَ الحَجَّاجُ بْنُ أَبِي عُثْمَانَ. وَأَبُو عُثْمَانَ اسْمُهُ مَيْسَرَةُ. وَالحَجَّاجُ يُكْنَى أَبَا الصَّلْتِ وَثَّقَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ القَطَّانُ. حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ العَطَّارُ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ المَدِينِيِّ. قَالَ: سَأَلْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ القَطَّانَ عَنْ حَجَّاجٍ الصَّوَّافِ فَقَالَ: ثِقَةٌ فَطِنٌ كَيِّسٌ. (١)

[1] ـ صحيح مسلم في التوبة ٦ (٢٧٦١) (تحفة الأشراف: ١٥٣٦٣)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي غيرتي دي او ميمون هم غيرتي وي الله تعالي غيرت په دي خبره كوي چي مومن كوم داسي كار اوكړي كوم چي الله تعالي په هغه باندي حرام كړي وي
امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن غريب دي او داحديث يحىٰ بن ابي كثير په همدي سند ذكر كړي دي عن ابي سلمة عن عروة عن اسماء بنت ابي بكر عن النبي صلي الله عليه وسلم دا دواړه سندونه صحيح دي او دحجاج بن صواف نوم حجاج بن ابي عثمان دي او دابوعثمان نوم ميسره دي او دده كنيه ابو صلت ده يحىٰ بن سعيد دده توثيق كړي دي يحىٰ بن سعيد القطان دحجاج په باره كي وائي دا ثقه دي او هوښيار دي او په دي باب كي عائشه او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.
**لغات** يغار غار يغار غيرة په معني دغيرت كولو دي، حرم تحريما دباب تفعيل نه په معني د حرامولو دكوم څيز دي

**تشريح** : "ان الله يغار" غيرت لفظ په دوه معنو استعمال شوى دى اول داچي يو انسان دا گمان اوكړي چي ماله څوك نه ويني او په دي وجه كوم بد كار اوكړي، ياكوم داسي كار اوكړي چي پخپله اگر چي بد نه وي مگر نورو خلقو ته بد ښكاري او په دي حالت كي يي څوك اووينې ياڅوك راشي نو فورا يي پريږدي او يايي دپټولو كوشش اوشي.
دويمه معني دغيرت داده چي څوك دپلار يادبل مشر په خوله دكوم كار نه په سختئ سره منع شي او بيا دا كار دمنع كيدو باوجود دخپل مشر په وړاندي اوكړي
دلته زياته مناسبه دويمه معني ده چي دكائناتو خالق پخپل مخلوق بعضي كارونه حرام كړي دي او دا ددوئ دفائدي دپاره ، نو دا به دمخلوق بي غيرتي وي چي اجتناب ورنه نه كوي نوكه اوس څوك دا كار كوي نو الله به ورته غصه كيږي او په مقرر وخت كي به سزا وركوي ليكن الله دخپل شفقت په وجه فوري سزا نه وركوي ، ددي دپاره مهلت وركوي چي مخلوق توبه اوباسي او الله ورباندي مهربانه شي.

****************

## ١٥ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ تُسَافِرَ الْمَرْأَةُ وَحْدَهَا بِغَيْرِ مَحْرَمٍ

**ديوي ښځي دپاره يواځي دسفر كولو دحرمت بيان**

١١٦٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ. عَنِ الأَعْمَشِ. عَنْ أَبِي صَالِحٍ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ. أَنْ تُسَافِرَ سَفَرًا يَكُونُ ثَلاَثَةَ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا إِلَّا وَمَعَهَا أَبُوهَا. أَوْ أَخُوهَا. أَوْ زَوْجُهَا. أَوِ ابْنُهَا. أَوْ ذُو مَحْرَمٍ

مِنْهَا ". وَفِي الْبَاب: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرُوِي عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "لَا تُسَافِرُ الْمَرْأَةُ مَسِيرَةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ إِلَّا مَعَ ذِي مَحْرَمٍ ". وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. يَكْرَهُونَ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تُسَافِرَ إِلَّا مَعَ ذِي مَحْرَمٍ وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْمَرْأَةِ، إِذَا كَانَتْ مُوسِرَةً، وَلَمْ يَكُنْ لَهَا مَحْرَمٌ هَلْ تَحُجُّ؟. فَقَالَ: بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا يَجِبُ عَلَيْهَا الْحَجُّ، لِأَنَّ الْمَحْرَمَ مِنَ السَّبِيلِ لِقَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلا سورة آل عمران آية ٩٧. فَقَالُوا: إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا مَحْرَمٌ. فَلَا تَسْتَطِيعُ إِلَيْهِ سَبِيلًا. وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا كَانَ الطَّرِيقُ آمِنًا فَإِنَّهَا تَخْرُجُ مَعَ النَّاسِ فِي الْحَجِّ، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهيڅ يوي داسي ښځي دپاره جائز نه دي چي په الله او په ورځ داخرت ايمان لري چي هغه دري ورځي يا ددينه زيات سفر اوكړي او ددي سره ددي پلار يا ورور يا خاوند او يا خوي او يا بل كوم محرم نه وي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابوهريره او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي، درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي فرمائيل يي چي يوه ښځه ديوي ورځي او يوي شپي په مسافه سفر دغير محرم سره نشي كولي داهل علمو په همدي باندي عمل دي چي دوئ دښځي دپاره سفر كول درست نه ګڼړي چي محرم ورسره نه وي، داهل علمو په دي باره كي اختلاف دي چي څوك دحج طاقت لري ليكن محرم ورسره نه وي نو حج كولي شي او كنه بعضي علماء وائي حج ورباندي لازم نه دي ځكه چي محرم هم دالله تعالي په ارشاد "من استطاع اليه سبيلا" كي شامل دي دوئ وائي كله چي ددي سره محرم نه وي نو دي سره استطاعت دسبيل نشته دا دسفيان ثوري او اهل كوفه قول دي دبعضي علماؤ قول دي كله چي په لاره كي امن وي نو يوه ښځه دعامو خلقو سره حج ته تلي شي او دا دامام شافعي او امام مالك قول هم دي

**تشريح** يعني هيڅ يو سړى به دكومي ښځي سره بغير دمحرم دموجودګۍ نه خلوت نه كوي په يو بل حديث كي راغلي دي كله چي څوك سړى داجنبي ښځي سره په تنهائي كي ناست وي

---

1 ـ صحيح مسلم في الحج ٧٤ (١٣٤٠) . سنن ابي داود في المناسك ٢ (١٧٢٦) سنن ابن ماجه في المناسك ٢ (١٠٢٣) مسند احمد (٣ في ٣٤٠. ٣٩٣) (تحفة الأشراف : ١٣٢١٦) سنن الدارمي في الاستئذان ٤٦ (٢٧٤٠) وأخرجه: صحيح البخاري في فضل الصلاة في مسجد مكة والمدينة ٢ (١١٩٧) وجزاء الصيد ٢٦ (١٨٦٤) . والصوم ٦٧ (١٩٩٥)

نو دريم ددوئ سره شيطان وي.

***************

۱۱۷۰ــ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُسَافِرُ امْرَأَةٌ مَسِيرَةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ إِلَّا وَمَعَهَا ذُو مَحْرَمٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هيڅ يوه ښځه دي ديوي ورځي او يوي شپي په مسافه سفر دمحرم نه بغير نه کوي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**لغات**: ميسرة مصدر دي مسافي ته وئيلي شي بينهما مسيرة يوم ، سار سيرا وتسيارا وصيرا ومسيرة وسيرورة ، تلل. سفرکول. الدابة سورلئ

**تشريح**: دښځي دپاره بغير دمحرم نه څومره سفر کول جائز دي؟

په پورتني حديث کي ديوي شپي او يوي ورځي دمزل مصافي ذکر دی او په نورو روايتونو کي د دوو ورځو ذکر دی او په بعضو روايتونو کي د دريو ورځو ذکر دی ظاهرا خو دا روايتونه متضاد او متعارض ښکاري نو په دي وجه علماؤ ددي جوابونه کړي دي اول جواب دادی چي د دريو ورځو نه زيات سفر خو به ښځه بغير دمحرم نه بالکل نه کوي ددينه کم سفر که مجبوري وي نو کولی يي شي ليکن که دفتني اوفساد زمانه زياته وي نو بيا ديوي شپي او ورځي سفر هم ناجائز دي دمحرم تلل ورسره ضروري دي او که فتنه اوفساد کم وي نو بيا د دوو ورځو اجازت شته او که بالکل دامن زمانه وي نو بيابه د دريو ورځو نه کم سفر يواځي کولی شي او زيات نه په دي شان سره به په تمامو احاديثو عمل راشي

دويم جواب شيخ عبد الحق کړي دي چي پدي چي تمامو رواياتو کي دسفر حد بيانول مقصود ندي بلکه دا مقصد دي چي ښځه بغير دخاوند يا محرم نه مطلقا سفر نشي کولي برابره خبره ده چي مسافه ديوي ورځي په مقدار وي او که زياته وي.

په پورتني حديث کي ديوي شپي او يوي ورځي دمزل مسافي ذکر دی او په نورو روايتونو کي د دوو ورځو ذکر دی او په بعضو روايتونو کي د دريو ورځو ذکر دی ظاهرا خو دا روايتونه

[1] ــ صحيح مسلم في الحج (۱۳۳۹) . سنن ابی داود في المناسک ۲ (۱۷۲۳) مسند احمد (۲ في ۳۴۰ . (تحفة الأشراف ۱۳۳۱۲) وأخرجه صحيح البخاری في تقصير الصلاة ۴ (۱۰۸۸) . سنن ابن ماجه في المناسک ۷ (۲۸۹۹) . موطا امام مالک في الاستئذان ۱۴ (۳۷) . مسند احمد ۲ في ۲۳۶ . ۳۴۷ . ۴۲۳ . ۴۴۵)

متضاد او متعارض ښكاري نو په دي وجه علماؤ ددي جوابونه كړي دي اول جواب دادى چي د دريو ورځو نه زيات سفر خو به ښځه بغير دمحرم نه بالكل نه كوي ددينه كم سفر كه مجبوري وي نو كولى يي شي ليكن كه دفتني اوفساد زمانه زياته وي نو بيا ديوي شپي او ورځي سفر هم ناجائز دي دمحرم تلل ورسره ضروري دي او كه فتنه اوفساد كم وي نو بيا د دوو ورځو اجازت شته او كه بالكل دامن زمانه وي نو بيابه د دريو ورځو نه كم سفر يواځي كولى شي او زيات نه په دي شان سره به په تمامو احاديثو عمل راشي

**دمحرم تعريف:** محرم هغه چاته ونيلى شي دچا سره چي شريعت دهميشه دپاره نكاح حرامه كړي وي برابره خبره ده چي درشته دارئ په وجه وي او كه دشودو خوړلو په وجه وي او كه دسخرګنئ په وجه وي ، دمحرم دپاره عاقل او بالغ كيدل هم شرط دي ليونيان محرمان نشي جوړيدى

شيطان ددي سړي او ښځي جنسي جذبات هر وخت راپاروي تردي چي په دوئ غالب شي تردي چي بيا غلط كار وكړي نو پدي وجه شريعت حكم وكړو چي ښځي به يواځي سفر نه كوي اوهيڅ چرته به دغير محرم سره خلوت نه كوي.

***************

## ١٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ

### دغير محرم سره د خلوت او يواځي كيناستلو د حرمت بيان

١١٧١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ". فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ؟، قَالَ: "الْحَمْوُ الْمَوْتُ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَعَمْرِو بْنِ الْعَاصِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَإِنَّمَا مَعْنَى كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى النِّسَاءِ عَلَى نَحْوِ مَا رُوِيَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا كَانَ ثَالِثَهُمَا الشَّيْطَانُ". وَمَعْنَى قَوْلِهِ الْحَمْوُ يُقَالُ: هُوَ أَخُو الزَّوْجِ كَأَنَّهُ كَرِهَ لَهُ أَنْ يَخْلُوَ بِهَا. ([1])

---

[1] _ البخاري في النكاح ١١١ (٥٢٣٢). صحيح مسلم في السلام ٨ (٢١٧٢) (تحفة الأشراف ٩٩٥٨) مسند احمد (٤ في ١٤٩، ١٥٣). سنن الدارمي في الاستئذان ١٤ (٢٦٨٣)

**ترجمه** دعقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دښځو سره په خلوت (يعني په تنهائي کي) دکيناستلو نه ځان اوساتئ دي وخت کي دانصارو يو کس عرض اوکړو اي دالله رسوله دخاوند د ورور(ليور) باره کي ستاسو څه خيال دي ؟ نو ويي فرمائيل ليور خو مرګ دي (يعني دده نه خو ډير ځان ساتل پکار دي)

امام ترمذي وائي دعقبه بن عامر حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعمر، جابر، او عمرو بن العاص رضي الله عنه نه هم احاديث مروي دي او ښځو سره په خلوت او تنهائي کي دکيناستلو دحرمت مطلب هم هغه دي کوم چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي فرمائيل يي چي کوم کس چي ديوي ښځي سره په تنهائي کي ناست وي نو دوئ سره دريم شيطان دي "حمو" دخاوند ورور يعني ليور ته وئيلي شي ګويا کي رسول الله دورندار سره دليور په تنهاي کي کيناستل حرام ګرځولي دي.

**لغات** الموت: مات يموت موتا معني مړ کيدل جمع يي اموات او ميتون راځي.

**تشريح** : ددي جملي "الحمو الموت" مطلب دادي لکه څنګه چي مرګ دانسان ظاهري او باطني زندګي ختموي نو دارنګي داجنبي سړي او ليور اختلاط هم دښځو دپاره هلاکونکي دي، ليور يي په خصوصيت سره ځکه ذکر کړي دي چي خلق يي اختلاط بد نه ګڼړي نوبه دي وجه عموما دښځو خواته ددوئ تلل راتلل دنورو سړو نه زيات وي علماء وائي چي ليور ته دمرګ وئيلو وجه داده چي عرب په عام طور سره دخطرناک څيز نه ديرولو دپاره مرګ لفظ استعمالوي مثلا اسد الموت، مطلب دادي چي شرمح ته نژدي ورتلل مرګ ته دعوت ورکول دي نو همدارنګي د ليور خواته نژدي کيدل هم تباهئ او بربادئ ته دعوت ورکول دي

**دعقبه بن عامر رضي الله عنه حالات**

نوم عقبه کنيه ابوعمرو دپلار نوم عامر رسول الله صلي الله عليه وسلم چي کله مديني ته راغی نو عقبه په اسلام مشرف شو علامه ذهبي ليکلي دي چي عقبه فقيه او دکتاب الله قاري وو او دفرائضو ماهر او فصيح اللسان شاعر وو (تذكرة الحفاظ)

دقران کريم سره يي خصوصي مينه وه يوه نسخه دقران کريم يي پخپل لاس هم ليکلي وه (تهذيب التهذيب)

دنبي کريم صلي الله عليه وسلم ښه خدمت يي کړی دی په سفر کي به درسول الله سورلئ رابښکل دده متعلق وو لکه چي په روايتونو کي راځي كان صاحب بغلة رسول الله صلي الله عليه وسلم الشهباء.

دده دوفات دتاريخ باره کي مختلف اقوال مروي دي صحيح قول دادی چي په ۵۸هجري کي وفات شوی دی، او دده دمروياتو شمير ۵۵ دی چي يو په دي کي متفق عليه دی او يو په

بخاري كي دى او اوه په مسلم كي دي (تهذيب الكمال)
داكابرو صحابه كرامو نه نقل درروايت كوي ترددي چي صرف ديو حديث اوريدو دپاره مصر ته دابوايوب انصاري سره دملاويدو دپاره تلى وو خو چي هغه يي واوريدو نو فوراً واپس لاړو
***************

## ۱۸_ باب
## دغير محرمو سره دخلوت دحرمت متعلق يوبل باب

۱۱۷۲_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ تَلِجُوا عَلَى الْمُغِيبَاتِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنْ أَحَدِكُمْ مَجْرَى الدَّمِ". قُلْنَا: وَمِنْكَ، قَالَ: "وَمِنِّي وَلَكِنَّ اللَّهَ أَعَانَنِي عَلَيْهِ، فَأَسْلَمُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُهُمْ فِي مُجَالِدِ بْنِ سَعِيدٍ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، وَسَمِعْتُ عَلِيَّ بْنَ خَشْرَمٍ، يَقُولُ: قَالَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ فِي تَفْسِيرِ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَلَكِنَّ اللَّهَ أَعَانَنِي عَلَيْهِ، فَأَسْلَمُ، يَعْنِي أَسْلَمُ أَنَا مِنْهُ، قَالَ سُفْيَانُ: وَالشَّيْطَانُ لاَ يُسْلِمُ، وَلاَ تَلِجُوا عَلَى الْمُغِيبَاتِ، وَالْمُغِيبَةُ الْمَرْأَةُ الَّتِي يَكُونُ زَوْجُهَا غَائِبًا، وَالْمُغِيبَاتُ: جَمَاعَةُ الْمُغِيبَةِ.[1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو دداسي ښځو كورونو ته مه داخليږئ دكومو خاوندان چي په كورونو كي نه وي ځكه چي شيطان ستاسو په هر يو كس كي دننه داسي منډي وهي لكه وينه چي په جسم كي منډي وهي مونږ عرض اوكړو ايا ستاسودپاره هم دا حكم دي ؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هو زما دپاره هم داحكم دي ليكن الله تعالي دشيطان په مقابل كي زما مدد كړي دي او په همدي وجه زه دشيطان دشر نه محفوظ يم

امام ترمذي واني دا حديث په دي سند غريب دي بعضي محدثينو په مجالد بن سعيد دحفظ په اعتبار كلام كړي دي، سفيان بن عيينه دارشاد نبوي ,,ولكن الله اعانني عليه فاسلم " دا مطلب بيان كړي دي چي ددي مراد دادي چي زه دشيطان دشر نه محفوظ يم دا مطلب يي نه دي چي شيطان مسلمان شوي دي ځكه چي شيطان خو نه مسلمانيږي او په "ولاتلجوا علي المغيبات" كي د مغيبة نه مراد هغه ښځه ده چي خاوند يي په كور كي نه وي او مغيبات دمغيبة جمع ده

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ۲۲۳۹)

**تشريح** : خلاصه داده چي هيڅوك به دكومي ښځي سره يواځي ملاقات نه كوي او داسي يواځي خلوت او ملاويدل علماؤ حرام ګڼرلي دي ځكه چي دا په ګناه او بي حيايۍ كي د مبتلا كيدلو ذريعه او سبب ګرځيدى شي.
ذي رحم محرم، يعني چي محرم وي علماء وائي دمحرم نه هغه محرم مراد دى دچا سره چي هميشه نكاح كول په ابدي طور ناجائز او حرام وي مثلا ورور خوي زوم وغيره
***************

## ١٨_ باب
## دښځو متعلق يو بل باب

١١٧٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ مُوَرِّقٍ، عَنْ أَبِي الأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتِ اسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ښځه سراسر پرده ده كله چي دا بهر اوځي نو شيطان وريسي كيږي.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي

**تشريح** يعني هيڅ يو سړى به دكومي ښځي سره بغير دمحرم دموجودګۍ نه خلوت نه كوي په يو بل حديث كي راغلي دي كله چي څوك سړى داجنبي ښځي سره په تنهائي كي ناست وي نو دريم ددوئ سره شيطان وي.
***************

## ١٩_ باب
## دسابقه باب متعلق يو بل باب

١١٧٤_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَرَفَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا تُؤْذِي امْرَأَةٌ زَوْجَهَا فِي الدُّنْيَا إِلَّا قَالَتْ زَوْجَتُهُ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ: لَا تُؤْذِيهِ قَاتَلَكِ اللَّهُ، فَإِنَّمَا هُوَ عِنْدَكَ دَخِيلٌ يُوشِكُ أَنْ يُفَارِقَكِ إِلَيْنَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا

---
[1] _ تفرد المؤلف بهذا الشق بهذا السند. وأخرج أبوداود الصلاة (٥٢ في ٥٧٠)

الْوَجْهِ. وَرِوَايَةُ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنِ الشَّامِيِّينَ أَصْلَحُ وَلَهُ عَنْ أَهْلِ الحِجَازِ، وَأَهْلِ العِرَاقِ مَنَاكِيرُ.(١)

**ترجمه** دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي . هر کله چي يوه ښځه خپل خاوند په دنيا کي خفه کړي نو په جنت کي دهغه ښائسته حوره دی ښځی ته وائي ، خدايی دی تباه کړه مه يی تنګوه دی خو تاسره (څو ورځی) ميلمه دی ډير زر به درنه مونږ ته راشي

دا حديث ترمذي نقل کړی دی او حديث حسن غريب يی ورته وئيلی دی.او دا مونږ ته ددي سند نه علاوه په بل سند ندي معلوم. اود شاميانو نه د اسماعيل بن عياش روايت اصلح دی اوده د اهل حجاز او اهل عراق نه ډير منکر روايات نقل کړي دي

**لغات** : دخيل معني خپل خان پردي قوم ته منسوب کولو ته وئيلي شي . جمع يي دخلاء راخي. دخل دخولا ومدخلا دنصر نه مستعمل دي

**تشريح** : الا قالت زوجته من الحور العين. يعني اوبه وائي دده هغه بي بي کومه چي دحور عين نه دده

هر يو نارينه ته به په جنت کي ډيري بيبياني ملاويږي نو ددنيا ښځه چي کله خپل خاوند ناراضه کوي نودجنت بي بي ورنه خفه شي او پورتنئ جمله اووائي چي الله تعالي دي تا هلاکه کړي تکليف ورته مه ورکوه لکه څرنګه چي دا ستا خاوند دی نو داسي زمونږ هم دی

په يو بل روايت کي راخي لعن الملائکة لعاصية الزوج . يعني فرشتي په هغه ښځه لعنت وائي څوک چي دخپل خاوند نافرماني کوي.

سوال دا خبري به دجنت حورو ته څنګه معلوميږي چي په دنيا کي ورته خپله ښځه تکليف ورکوي

جواب محدثينو ددي دا جواب کړی دی کله چي يو انسان دنيا ته راشي نو ملاء الاعلي داسمان والا په علم کي موجود شي

دويم جواب دادی چي دالله تعالي دطرف نه ورته خبر ورکولی کيږي

***************

# كتاب الطلاق واللعان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

---

١ _ اخرجه ابن ماجة في السنن

# دطلاق او لعان د احکامو بیان

## ۱_ بَاب مَا جَاءَ فِي طَلاَقِ السُّنَّةِ

### د مسنون طلاق بيان

**د جاهليت د زماني دطلاقو بيان:** بغوي وائي چي عروه بن زبير رضي الله عنه به فرمانيل چي په شروع داسلام كي دخلقوداحالت وو چي بي انتها طلاقونه به يي ښځو ته وركول اوبعضو به داسي كول چي طلاق به يي وركړل اوچي عدت به تيريدو ته نزدي شو نورجعت به يي اوكړو اوبيابه يي ورته بيا طلاق وركړل ديته دتكليف وركولو دپاره. اوبيا به يي بيا رجعت اوكړو نوپه دي باره كي ايت الطلاق مرتان نازل شو.

چي كله به چا دريم طلاق هم وركړو نوبيا به ښځه دبل چاسره دنكاح كولو نه بغير حلاله نه وه اودالله تعالي په دي قول مرتان فرمائيلوسره او په ثنتان نه فرمائيلو كي په دي خبره باندي دليل دي چي په يوځاي باندي دوه طلاقونه وركول مكروه دي ځكه چي مرتان لفظ دعبارت په لحاظ سره خو په تفريق باندي دلالت كوي او اشارةً په عدد باندي دلالت كوي.

### د طلاق د مذمت بيان

الله تعالي دجادو په مذمت كي فرمائيلي دي فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُونَ بِهِ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهِ.
ددينه معلومه شوه چي په ښځي اوخاوند كي جدائي راوستل ناجائزدي

دجابر رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي ابليس خپل تخت په اوبو اوغوروي اوكيني اوخپلي لښكري دفسادخورولو دپاره وليږي اوپدوئ تولوكي دده ته زيات مقرب هغه وي چاچي فساد زيات خوركړي وي ، يو يو راځي او وائي چي ما داسي داسي فساد خوركړي دي ابليس ورته ووائي چي تاخو هيڅ ندي كړي تردي چي بل كس راشي او ووائي چي ماپه ښځي اوخاوند كي جدائي راوستلي ده نو ابليس دده نه خوشحاله شي او ووائي چي تاډير ښه كار كړي دي

اعمش وائي چي زما ګمان دي چي جابر رضي الله عنه داهم فرمائيلي ووچي ابليس ده لره غاړه وركړي (مسلم) .

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي حلالو ځيزونو كي دالله تعالي په نزد په ټولوكي زيات بدځيزطلاق دي(ابوداود)

١١٧٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ، عَنْ رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، فَقَالَ: هَلْ تَعْرِفُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ

عُمَرَ، فَإِنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، فَسَأَلَ عُمَرُ، النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَأَمَرَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا"، قَالَ: قُلْتُ فَيُعْتَدُّ بِتِلْكَ التَّطْلِيقَةِ، قَالَ: فَمَهْ أَرَأَيْتَ إِنْ عَجَزَ وَاسْتَحْمَقَ. ([1])

**ترجمه** ديونس بن جبيربيان د چي ما دابن عمر رضي الله عنهما نه يو داسي كس باره كي تپوس اوكړو چاچي خپلي ښځي ته د حيض په حالت كي طلاق وركړي وو نو هغوئ اوونيل ته عبدالله بن عمر پيژني؟ هغه هم خپلي ښځي ته دحيض په حالت كي طلاق وركړي وو نو عمر رضي الله عنه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو نو رسول الله ورته حكم اوكړو چي دي دي ورته رجوع اوكړي. يونس بن جبير وائي مابيا تپوس اوكړو چي ايا دا طلاق به شميرلي كيږي هغه اوونيل چي نه شميرلي كيږي نو نور به څه كيږي (ولي نه شميرلي كيږي) نو ستا څه خيال دي كه چري هغه عاجز شوي وي نو ليوني شوي به وو نو ايا دا واقع كيږي او كنه

**************

١١٧٦_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ مَوْلَى آلِ طَلْحَةَ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ فِي الْحَيْضِ، فَسَأَلَ عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُطَلِّقْهَا طَاهِرًا أَوْ حَامِلًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَكَذَلِكَ حَدِيثُ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا، عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ طَلَاقَ السُّنَّةِ أَنْ يُطَلِّقَهَا طَاهِرًا مِنْ غَيْرِ جِمَاعٍ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا، وَهِيَ طَاهِرٌ فَإِنَّهُ يَكُونُ لِلسُّنَّةِ أَيْضًا، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا تَكُونُ ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ، إِلَّا أَنْ يُطَلِّقَهَا وَاحِدَةً وَاحِدَةً، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَإِسْحَاق، وَقَالُوا فِي طَلَاقِ الْحَامِلِ: يُطَلِّقُهَا مَتَى شَاءَ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُهُمْ: يُطَلِّقُهَا عِنْدَ كُلِّ شَهْرٍ تَطْلِيقَةً. ([2])

---

[1] ـ البخاري في الطلاق ٢ (٥٢٥٢)، و ٤٥ (٥٣٣٣) صحيح مسلم في الطلاق ١ (١٤٧١). سنن ابي داود في الطلاق ٢ (٢١٨٣، ٢١٨٤). سنن النسائي في الطلاق ١ (٣٤١٨)، و ٧٦ (٣٥٨٥). سنن ابن ماجه في الطلاق ٢ (٢١٠٩). (تحفة الأشراف: ٨٥٧٣) مسند احمد (٢ في ٤٣، ٥١، ٧٩) وأخرجه صحيح البخاري في تفسير سورة الطلاق ١ (٤٩٠٨) والطلاق ١ (٥٢٥١) و ٤٤ (٥٣٣٢). والأحكام ١٣ (٧١٦٠). صحيح مسلم في الطلاق سنن ابي داود في الطلاق ٢ (٢١٨٢، ٢١٧٩) موطا امام مالك في الطلاق ٢١ (٥٣). سنن الدارمي في الطلاق ١ (٢٣٠٨)

[2] ـ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ٦٧٩٤)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چې هغوئ خپلې ښځې ته په حالت دحيض كې طلاق وركړو او دهغه پلا عمر رضي الله عنه درسول الله صلى الله عليه وسلم نه ددې مسئلې باره كې تپوس اوكړو رسول الله ورته اوفرمائيل هغه ته حكم اوكړه چې رجوع ورته اوكړي او بيايې دطهر يا دحمل په حالت كې طلاق وركړي

امام ترمذي وائي ديونس بن جبير هغه روايت كوم چې دابن عمر نه نقل كوي حسن صحيح دي او دارنګې سالم بن عبدالله هم چې كوم روايت دابن عمر نه نقل كوي دا هم صحيح دي. دا حديث په نورو يو څو سندونو هم دابن عمر نه مروي دي او هغه دنبي كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي، په صحابه كرامو او اهل علمو كې بعضو په دې باندې قول كړي دي چې سني طلاق ديته وائي چې يو سړي په حالت دطهر كې دجماع كولو نه بغير طلاق وركړي. دبعضې علماؤ قول دي كه چا دطهر په حالت كې درې طلاقونه وركړل نو دا به هم سني طلاق وي دا قول دامام شافعي او احمد بن حنبل دي لو بعضې علماء وائي چې درې طلاقونه وركول سني طلاق نه دي علاوه ددينه چې دي ورته يو يو طلاق جدا جدا وركړي دا قول دسفيان ثوري او اسحاق بن راهويه دي، او دوئ دحامله ښځې په باره كې وائي چې ددې خاوند كله هم اوغواړي طلاق ورته وركولې شي همدا قول دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه دي او بعضې وائي چې ديته به هم په هره مياشت كې يو يو طلاق وركوي

**تشريح** : دحيض په حالت كې طلاق وركول په اتفاق سره واقع كيږي ليكن اماميه ددينه مخالف دي هغوئ وائي چې طلاق بالكل نه واقع كيږي اوزمونږ په نزد واقع كيږي مګرحرام دي ، اوددينه پس رجعت كول واجب دي

**مسئله**: پدې كې دائمه كرامو اختلاف دي كه چرې كوم كس درجعت كولو نه پس دسنت موافق طلاق وركول غواړي نوكله وركول پكار دي؟

دامام ابوحنيفه رحمه الله قول دادي كله چې دادهغه حيض نه پاكه شي په كوم كې چې ئې ورته طلاق وركړي وي اوبيا حيض راشي اودهغې نه هم پاكه شي نوپدې وخت كې دي ورته طلاق وركړي اوداقول امام محمد هم په مبسوط كې ذكركړي دي اود امام ابوحنيفه اودصاحبينو خلاف ئې ندې ذكركړي. اوهمداد امام مالك اوامام احمد قول دي. اود امام شافعي هم مشهور قول دي.

**مسئله** ددوه طلاقونه پس امساك په قران ثابت دي خوهله چې ښځه اوخاوند دواړه ازاد وي، او كه ازاد نه وي او غلامان وي نوبيا ددوه طلاقونه پس بالاتفاق رجعت نشي كيدې

كه چرې وينځه دازادسړي په نكاح كې وي يا ازاده ښځه دغلام په نكاح كې وي نوپدې كې اختلاف دي.

,۱, امام مالك او شافعي او احمد وئيلي دي كه چري خاوند اصيل وي نودده طلاقونه دري دي اگركه په نكاح كي ني وينخه وي ، اوكه چري غلام وي نودده طلاقونه دوه دي اگركه په نكاح كي ني وينخه وي ، اودا قول دعثمان، اوزيد بن ثابت رضي الله عنهما دي

,۲, امام ابوحنيفه ددي په عكس قول كړي دي يعني هغه دطلاقو اعتبار بنځولره وركوي اودا قول دعلي او ابن مسعود رضي الله عنه دي د فريقينو دلائل مظهري په ډير بسط او تفصيل سره ذكر كړي دي

**************

## ٢ــ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُطَلِّقُ امْرَأَتَهُ الْبَتَّةَ

### كله چي يو سړي خپلي ښځي ته بته (قطعي) طلاق وركړي

١١٧٧ــ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، عَنْ جَرِيرِ بْنِ حَازِمٍ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ رُكَانَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي طَلَّقْتُ امْرَأَتِيَ الْبَتَّةَ، فَقَالَ: " مَا أَرَدْتَ بِهَا ؟ " قُلْتُ: وَاحِدَةً، قَالَ: " وَاللَّهِ ؟ " قُلْتُ: وَاللَّهِ، قَالَ: " فَهُوَ مَا أَرَدْتَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ، إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: فِيهِ اضْطِرَابٌ وَيُرْوَى، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رُكَانَةَ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ فِي طَلَاقِ الْبَتَّةِ، فَرُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، أَنَّهُ جَعَلَ الْبَتَّةَ وَاحِدَةً وَرُوِيَ، عَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ جَعَلَهَا ثَلَاثًا، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: فِيهِ نِيَّةُ الرَّجُلِ، إِنْ نَوَى وَاحِدَةً فَوَاحِدَةٌ، وَإِنْ نَوَى ثَلَاثًا فَثَلَاثٌ، وَإِنْ نَوَى ثِنْتَيْنِ لَمْ تَكُنْ إِلَّا وَاحِدَةً، وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وقَالَ: مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ فِي الْبَتَّةِ: إِنْ كَانَ قَدْ دَخَلَ بِهَا فَهِيَ ثَلَاثُ تَطْلِيقَاتٍ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنْ نَوَى وَاحِدَةً فَوَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ، وَإِنْ نَوَى ثِنْتَيْنِ فَثِنْتَانِ، وَإِنْ نَوَى ثَلَاثًا فَثَلَاثٌ.[1]

**ترجمه** د ركانه رضي الله عنه بيان دي فرماني چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او عرض مي اوكړو اي دالله رسوله ما خپلي ښځي ته بته ,قطعي, طلاق وركړي دي رسول الله اوفرمائيل ستا ددينه څه مراد وو ما عرض اوكړو يو طلاق وركول مي

---

[1] ـ ابي داود في الطلاق ١٤ (٢٢٠٨) سنن ابن ماجه في الطلاق ١٩ (٢٠٥١) سنن الدارمي في الطلاق ٨ (٢٢١٨) . (تحفة الأشراف: ٣٦١٣)

مراد وو رسول الله صلي الله عليه وسلم تپوس اوكړو ستادي په الله قسم وي؟ ما اوونيل هو زما دي په الله قسم وي رسول الله اوفرمائيل دا به هم دومره واقع كيږي دخومره واقع كولو چي ستا اراده وه

امام ترمذي واي دا حديث مونږ ته صرف په همدي يو سند معلوم دي او ما دامام بخاري نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو نو هغه اوونيل په دي كي اضطراب دي. دعكرمه نه مروي دي چي ابن عباس به وئيل ركانه خپلي ښځي ته دري طلاق وركړي دي او په اهل علمو صحابه كرامو كي دعمربن الخطاب رضي الله عنه نه مروي دي چي هغوئ وايي د بته طلاق نه مراد يو طلاق دي او دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله دا په دري طلاقونو مقرر كړو. بعضي اهل علم وائي په دي سلسله كي دسړي نيت لره اعتبار وي كه چري ديو نيت يي كړي وي نو يو به واقع كيږي او كه د دريونيت يي كړي وي نو دري به واقع كيږي او كه د دوو نيت يي كړي وي نو صرف يو به شميرلي كيږي او همدا دسفيان ثوري او اهل كوفه قول دي؛ مالك بن انس دقطعي طلاق په باره كي وائي كه چري ښځه مدخول بها وي نو طلاق بته به دري شميرلي كيږي. امام شافعي وائي كه چري دا ديونيت كړي وي نو يو به واقع كيږي او دا ته به په رجعت كولو كي اختيار وي او كه د دوو نيت يي كړي وي نو دوه به واقع كيږي او كه د دريو نيت يي كړي وي نو دري به شميرلي كيږي.

**تشريح : دري طلاقونه په يو ځاي واقع كيږي او كنه**

(۱) احناف فقهاء وايي دري طلاقونه چي په يوشان لفظ سره وي اوكه په مختلفو الفاظوسره وي په يوطهر كي وركول حرام، بدعت، اوباعث دګناه دي .

(۲) ليكن امام شافعي ددي مخالف دي ، دهغه قول دا دي چي په دي كي هيڅ حرج نشته ليكن په دي باندي دټولو اتفاق دي چي چا خپلي ښځي ته اوونيل چي په دري طلاقو طلاقه يي نوپه اجماع سره به دري واړه طلاقونه واقع كيږي

(۳) دامامية فرقي قول دا دي كه چري چا په يو ځاي دري طلاقونه وركړل نو ددي ايت په وجه به يو طلاق هم واقع نه شي

(۴) او د بعضي حنبيلانو قول دا دي چي يو طلاق به واقع شي ځكه چي په صحيحينو كي مروي دي چي ابو الصهباء ابن عباس رضي الله عنهماته اوونيل چي ايا تاته ياد نه دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كي او دابو بكر او عمر رضي الله عنهما په خلافت كي هم به دري طلاقونه په يو باندي شماريدل. ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل يقينا خلقوپه دي كار كي جلتي كړيده په كوم كي چي تاخير كول پكار وو پس كه چري اوس په دوئ باندي دا جاري شي نوكولي يي شي.

ابن اسحاق د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت نقل کړي دي چي فرمائيلي ئې ووچي رکانه بن عبدخپلي ښځي ته په يوځاي دري طلاقونه ورکړل ليکن بيا ورباندي ډير پښيمانه شواوبيا ورنه رسول کريم صلي الله عليه وسلم تپوس وکړو چي څنګه طلاق دي ورکړي دي؟ نو عرض ني وکړو چي په يومجلس کي مي دري طلاقونه ورکړي دي رسول کريم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل داخو صرف يوطلاق دي، لهذا رجعت ورته وکړه
دطاوس اوعکرمه نه منقول دي چاچي دري طلاقونه(په يوځاي) ورکړل نودسنت خلاف ني وکړو، نو پدي وجه به ده لره دسنت طرف ته واپس کولي شي ، اوهمدا قول دابن اسحاق هم دي
(٥) دبعضي علماؤ قول دادي چي په انت طالق ثلاثا وئيلو سره په مدخول بها باندي دري طلاقونه واقع کيږي اوپه غير مدخول بها باندي يوطلاق
څکه مسلم، ابوداود اونسائي روايت کړي دي چي ابو الصهباء ابن عباس رضي الله عنهماته اووئيل چي ايا تاته ياد نه دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي او دابو بکر او عمر رضي الله عنهما په خلافت کي هم به دري طلاقونه په يو باندي شماريدل، ليکن کله چي علماؤ وليدل چي اکثرو خلقو دا کار شروع کړو نوهغوئ ووئيل چي ددي په خلاف ددوئ په نسبت په ښځو باندي تاکيد وکړئ ، دامام شافعي قول دي په يوي کلمي سره څو طلاقونه ورکول جائز دي اوبغير دګناه نه واقع کيږي.
د امام ابو حنيفه دليل حديث او اجماع دواړه دي حديث هم هغه دابن عمر رضي الله عنهما حديث دي چي هغه په بيمارئ کي خپلي ښځي ته طلاق ورکړي دي بيا يي اوغوښتل چي دوه نور طلاقونه په بيمارئ کي ورکړي او دا خبر رسول کريم صلي الله عليه وسلم ته هم ورسيدو رسول کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي عبدالله ايا الله تعالي تاته داسي کولو حکم کړي دي يقيناتا خو سنت طريقه پريخوده سنت طريقه خو دا ده چي اول طهر ته صبر اوکړي او بيا دهر حيض دپاره طلاق ورکړي، ابن عمر فرمائي چي مادرسول کريم صلي الله عليه وسلم په حکم سره هغي ته رجعت اوکړو بيا نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کله چي پاکه شوه نويا خو ورته طلاق ورکړه او يا ني اوساته ما عرض وکړو چي اي دالله رسوله که چري زه ورته دري طلاق ورکړم نوايا بيابه زما دپاره ورته رجعت کول جائز وي اوکه نه؟، نو وني فرمائيل چي جائز ندي څکه چي هغه بائنه شوه اوداسي کول به ګناه وي
دا روايت دار قطني په خپل سنن کي او ابن ابي شيبه په خپل مصنف کي دحسن رضي الله عنه نه نقل کړي دي فرمائي چي مونږ ته ابن عمر رضي الله عنهما بيان کړي دي.
په موطاء دامام مالك کي دي چي يوکس ابن عباس رضي الله عنهما ته عرض وکړوچي ما خپلي ښځي ته سل طلاقونه ورکړي دي ستاڅه خيال دي؟ ابن عباس رضي الله عنهما

اوفرمانيل چي ستا دطرف نه په هغې باندي دري طلاقونه واقع شول اوباقي اوه نوي ۹۷ طلاقونه تاد الله تعالي په ايتونو پوري خندا وکړه .ددري طلاقو په واقع کيدو باندي اجماع منعقد شوي ده اود لويو لويو فقيهانو صحابه کرامو نه مروي ده

په موطاء دامام مالك کي دي چي يوکس دابن مسعود رضي الله عنه په خدمت کي حاضرشو او عرض ني وکړوچي مخپلي ښځي ته اته طلاقونه ورکړي دي هغه ورته ووئيل چي علماؤ درته څه جواب درکړي دي؟هغه ووئيل چي دا جواب ني راکړي دي چي هغه زما نه بائنه شوي ده هغه اوفرمائيل چي رشتياني درته وئيلي دي، پدي باره کي حکم خو هغه دي کوم چي درته هغوئ بيان کړي دي ددي روايت نه هم پدي باندي اجماع معلوميږي عبد الرزاق دعلقمه نه روايت نقل کړي دي چي فرمائيل ئي يوکس دابن مسعود رضي الله عنه په خدمت کي حاضرشو او عرض ني وکړوچي مخپلي ښځي ته نهه نوي ۹۹ طلاقونه ورکړي دي هغه ورته ووئيل چي ښځه خودرنه دري طلاقو جدا کړه اوباقي ټول ستاپه سرکشئ کي داخل شول.

ابوداود پخپل سنن اوامام مالك په مؤطاء کي دمحمد بن اياس بن بکير نه روايت نقل کړي دي چي يوکس خپلي ښځي ته ددخول نه مخکي دري طلاق ورکړي وو بياني داسوچ وکړو چي واپس به ورسره نکاح وکړم نوددي خيال په بنا دفتوي طلب کولو دپاره روان شو اوزه هم ورسره شوم نوده پدي باره کي اول ابن عباس او ابوهريره رضي الله عنهما ته ورغلو او تپوس يي ورنه وکړو. دواړو دا جواب ورکړوچي ترڅوپوري دي ښځي دبل چاسره نکاح نه وي کړي نوترهغي پوري ني ستاسره نکاح جائز نده نوده ووئيل چي ماخو صرف يوخل طلاق ورکړي وونو ابن عباس ورته ووئيل چي بس څه چي ستاسره پاتي شوي ووتاټولو لره شاته وغورزول.

اوهمدارنګي امام مالك په مؤطاء کي د ابن عمر رضي الله عنهما نه داسي روايت نقل کړي دي چي هغه داعمش نه اوهغه دحبيب بن ثابت نه فرمائي چي يوکس دعلي رضي الله عنه په خدمت کي حاضر شو او عرض ني وکړو چي مخپلي ښځي ته زر طلاقونه ورکړي دي نو ورته ني اوفرمائيل چي هغه ستانه په دري طلاقونوجداشوي ده اوباقي طلاقونه پخپلو نوروښځو باندي تقسيم کړه

وکيع دمعاويه بن يحيیٰ نه روايت کړي دي چي يوکس دعثمان بن عفان په خدمت کي حاضر شوچي مخپلوښځي ته زر طلاقونه ورکړي دي نو ورته ني اوفرمائيل چي هغه ستانه په دري طلاقونوجداشوي ده .

څومره حديثونه او اثار چي مونږ ذکر کړي دي ددوئ په ذريعه دري طلاقونه په يو ځاي واقع کيدل ثابتيږي اوهمدارنګي ورسره دا هم ثابتيږي چي دا فعل بدعت اوګناه ده

**مسئله** په يوځاي باندي دري طلاقونه ورکول بدعت اوحرام دي اوپه هرطهرکي يو طلاق ورکول په بناءد "فان طلقها" الايه سره جائز مباح دي ، اوددي ټولو نه بهتره طريقه داده چي کله

يوسري خپلي ښځي ته په طلاق ورکولو باندي مجبوره شي نويوطلاق دي ورکړي نوکه چري بيائي درجعت کولو اراده نه وي نو همداسي دي ئې پريږدي تردي چي ددي عدت تيرشي . ددي وجه داده چي د الله تعالي په نزد باندي په مباح څيزونو کي طلاق ورکول زيات مبغوض دي اوضرورت خوپه يوباندي هم پوره کيدي شي

***************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي أَمْرُكِ بِيَدِكِ

**ښځي ته داسي ونيل چي ستا معامله ستا په لاس کي ده**

١١٧٨_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ نَصْرِ بْنِ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، قَالَ: قُلْتُ لِأَيُّوبَ: هَلْ عَلِمْتَ أَنَّ أَحَدًا قَالَ: فِي أَمْرُكِ بِيَدِكِ إِنَّهَا ثَلَاثٌ، إِلَّا الْحَسَنَ، فَقَالَ: لَا إِلَّا الْحَسَنَ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ غَفْرًا إِلَّا مَا حَدَّثَنِي قَتَادَةُ، عَنْ كَثِيرٍ مَوْلَى بَنِي سَمُرَةَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ثَلَاثٌ، قَالَ أَيُّوبُ: فَلَقِيتُ كَثِيرًا مَوْلَى بَنِي سَمُرَةَ، فَسَأَلْتُهُ فَلَمْ يَعْرِفْهُ، فَرَجَعْتُ إِلَى قَتَادَةَ فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ: نَسِيَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سُلَيْمَانَ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا، عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ بِهَذَا وَإِنَّمَا هُوَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مَوْقُوفٌ وَلَمْ يُعْرَفْ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ مَرْفُوعًا، وَلَمْ يُعْرَفْ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ مَرْفُوعًا، وَكَانَ عَلِيُّ بْنُ نَصْرٍ حَافِظًا صَاحِبَ حَدِيثٍ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي أَمْرُكِ بِيَدِكِ، فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَغَيْرِهِمْ مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ هِيَ وَاحِدَةٌ، وَهُوَ قَوْلُ: غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، وقَالَ: عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ، وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ الْقَضَاءُ مَا قَضَتْ، وقَالَ: ابْنُ عُمَرَ إِذَا جَعَلَ أَمْرَهَا بِيَدِهَا وَطَلَّقَتْ نَفْسَهَا ثَلَاثًا، وَأَنْكَرَ الزَّوْجُ، وَقَالَ: لَمْ أَجْعَلْ أَمْرَهَا بِيَدِهَا، إِلَّا فِي وَاحِدَةٍ اسْتُحْلِفَ الزَّوْجُ، وَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ: مَعَ يَمِينِهِ، وَذَهَبَ سُفْيَانُ، وَأَهْلُ الْكُوفَةِ، إِلَى قَوْلِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللهِ، وَأَمَّا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، فَقَالَ: الْقَضَاءُ مَا قَضَتْ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَأَمَّا إِسْحَاق، فَذَهَبَ إِلَى قَوْلِ ابْنِ عُمَرَ.[1]

**ترجمه** دحماد بن زيد بيان دي چي ما د ايوب سختياني، نه تپوس اوکړو ايا تاته دحسن بصري نه علاوه بل داسي څوك معلوم دي چاچي د "امرك بيدك" په سلسله کي دا قول کړي

---

[1] ـ سنن ابي داود في الطلاق ١٣ (٢٢٠٤) ، سنن النسائي في الطلاق ١١ (٣٤٣٩)

وي چي دا دري طلاق دي؟ هغوئ اوونيل دحسن بصري نه علاوه ماته بل هيڅوك نه دي معلوم او بيا يي اوونيل الله دي معافي اوکړي، هو يو روايت شته کوم چي ماته قتاده په سند د کثير مولابني سمرة عن ابي سلمة عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي چي رسول الله فرمائيلي دي دا دري طلاق دي، ايوب وائي زه بيا مولي د بني سمره سره ملاؤ شوم نو ددي حديث باره کي مي ورنه تپوس اوکړو ليکن دا هغه ته نه وه معلومه نو زه بيا قتاده ته راغلم او هغه ته مي دا خبره اوکړه قتاده اوونيل دهغه نه هير شوي دي.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي دا موږ ته صرف دسليمان بن حرب په سند رارسيدلي دي او هغه دحماد بن زيد نه نقل کړي دي، ما دامام بخاري نه دي حديث باره کي تپوس اوکړو نو هغه اوونيل موږ ته سليمان بن حرب بيان کړي دي او هغه دحماد بن زيد نه نقل کړي دي او دا دابوهريره نه موقوفاً مروي دي او دابوهريره مرفوع حديث ورته معلوم نه وو، داهل علمو د "امرك بيدك" په سلسله کي اختلاف دي بعضي صحابه کرام په کومو کي چي عمر بن خطاب، عبدالله بن مسعود هم شامل دي دوئ وائي چي دا يو طلاق دي او دا په تابعينو کي ددينه پس په نورو علماؤ کي دډيرو قول دي، عثمان بن عفان او زيد بن ثابت وائي فيصله به هغه معتبر وي کومه چي ښځه اوکړي، ابن عمر رضي الله عنهما وائي کله چي خاوند اووائي ددي معامله ددي په لاس کي ده او ښځه پخپله دا قول دري طلاق اوګرځوي او خاوند ورنه انکار اوکړي اووائي ما خو صرف ديو طلاق په باره کي وئيلي وو چي ستامعامله ستا په لاس کي ده نوداسي حالت کي به خاوند ته قسم ورکولي شي او دده قول به دقسم سره معتبر وي، سفيان ثوري او اهل کوفه دعمر او عبدالله بن مسعود قول اختيار کړي دي، او دامام مالك قول دي فيصله به هغه معتبر وي کومه چي ښځي کړي وي او دا دامام احمد قول هم دي او اسحاق بن راهويه دابن عمر رضي الله عنهما قول اختيار کړي دي.

## په ،امرکبيدک، سره دطلاق وقوع

په دې مسئله کي دوه خبرې ثابتول دي، (۱)اول دا چي لفظ د اختارد امرباليد جواب کيدې شي، (۲)دويمه دا چي دا په دريوباندې څنګه دلالت کوي؟مصنف د اولنئ خبرې ثابتولوډپاره اوفرمائيل چي لفظ د اختارپه امرباليد جواب کيدې شي، ځکه لکه څنګه لفظ د تخييرپه مالك جوړيدو باندې دلالت کوي نودغه شان امرباليد هم د مالك جوړوپه معنى باندې دلالت کوي نودا دواړه الفاظ په قوت اوضعف کي برابردي نوځکه لفظ د اختار د امرباليدجواب کيدې شي،

ددويم قول دليل دا دې چي واحدة د اختيارة محذوف صفت دې، لکه چي ښځې اووئيل "إخترت نفسي بإختيارة واحدة يعنى بمرة واحدة" نوپه دې الفاظوسره درې طلاقه واقع کيږی نودغه شان دلته هم درې طلاقه واقع کيږی.

که ښځې د "أمرك بيدك" په جواب کي اووئيل چي "طلقت نفسي بواحدة يا إخترت نفسي بتطليقة" نوپه دې باندې يوطلاق بائن واقع کيږی،

دليل دادې چي واحدة د محذوف مصدرصفت دې نود وړاندينی فعل پشان به مصدرمقدرګنړلې شی، په وړاندينۍ مسئله کي يعني "إخترت نفسى بواحدة" کي اختيارةً مقدر ګنړلې شی، اوپه دويمه مسئله يعنى "طلقت نفسى بواحدة" کي تطليقة محذوف دې،

اوس پاتې شوه دا خبره چي په دې الفاظوطلاق بائن ولې واقع کيږی؟نوددې وجه دا ده چي "أمرك بيدك" د کنايه الفاظ دی، اود کنايه په الفاظوسره طلاق بائن واقع کيږی، سوا د هغه درې الفاظونه کوم چي وړاندې تيرشول نوثابته شوه چي خاوند ورته طلاق بائن حواله کړې دې، خکه چي خاوند هغه د خپلې معاملې مالکه جوړه کړه، اومالکه جوړيدل د بينونيت تقاضا کوی، خلاصه دا چي ښځې ته طلاق بائن حواله کړې شوې دې، اود ښځې کلام دسړی د کلام جواب واقع شوې دې نود (بينونت) کوم صفت چي په تفويض کي مذکور دې، هم هغه به د طلاق په واقع کولوکي هم ذکروی چي د ښځې کلام د سړی د کلام مطابق شی.

صاحب دهدايه فرمائی چي په "أمرك بيدك" کي د درې طلاقونيت صحيح دې. اوپه "إختاری" کي نه دې صحيح. خکه چي امرباليد دعموم اوخصوص دواړو احتمال لری، شيخ الاسلام فرمانيلی دی چي امراسم عام دې چي هرڅيزته شامل دې، الله تعالی فرمانيلی دی: والامر يومئذ لله، اوددې نه ټول څيزونه مراد دی نوهرکله چي ئې په دې سره دطلاق نيت اوکړلو نودا کنايه شوه، د "طلاقك بيدك" اوطلاق مصدر دې د عموم اوخصوص احتمال لری نود دريو نيت دتعميم نيت دې.

په خلاف د "إختاری" خکه چي دا د عموم احتمال نه لری، ددې تفصيل په "فصل في الإختيار" کي تيرشوې دې،

وړاندې ذکرشوی دی چي د "إختاری" په جواب کي که "إخترت نفسى بتطليقة" اووئيل نودمصنف دبيان مطابق په دې باندې طلاق رجعی واقع کيږی، دا د کاتب سهوده. ددې

دليل ددي قول دا دې چي په ذکرشوې مسئله کي ئې فرمائيلي دی چي د"أمرك بيدك" په جواب کي په "إخترت نفسى بواحدة" سره يوطلاق بائن واقع کيږی نوددې مسئلې نه معلومه شوه چي په اولنۍ مسئله کښې به هم طلاق بائن واقع کيږی.والله اعلم بالصواب.

***************

## ٤ـ باب مَا جَاءَ فِي الْخِيَارِ

### ښځي ته داختيار ورکولو بيان

١١٧٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " خَيَّرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَرْنَاهُ، أَفَكَانَ طَلَاقًا ؟ ". حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ بِمِثْلِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْخِيَارِ فَرُوِيَ، عَنْ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ. أنهما قَالَا: إِنِ اخْتَارَتْ نَفْسَهَا فَوَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ، وَرُوِيَ عَنْهُمَا أَنَّهُمَا، قَالَا: أَيْضًا وَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ، وَإِنِ اخْتَارَتْ زَوْجَهَا فَلَا شَيْءَ وَرُوِيَ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّهُ قَالَ: إِنِ اخْتَارَتْ نَفْسَهَا فَوَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ، وَإِنِ اخْتَارَتْ زَوْجَهَا فَوَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ، وقَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ: إِنِ اخْتَارَتْ زَوْجَهَا فَوَاحِدَةٌ، وَإِنِ اخْتَارَتْ نَفْسَهَا فَثَلَاثٌ، وَذَهَبَ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ وَالْفِقْهِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ. فِي هَذَا الْبَابِ إِلَى قَوْلِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ، وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَأَمَّا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، فَذَهَبَ إِلَى قَوْلِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. [1]

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته اختيار راکړو ،که خوښه مو وي چي دده په نکاح کي پاتي شو او که دا مو خوښه وي چي پاتي نشو، نو مونږ رسول الله لره اختيار کړو ايا دا طلاق منلي شوي وو

[1] صحيح البخارى في الطلاق ٥ (٥٢٦٣) . صحيح مسلم في الطلاق ٣ (١٤٧٧) . سنن النسائي في النكاح ٢ (٣٢٠٢) . والطلاق ٢٧ (٣٤٧١ ٣٤٧٥) (تحفة الأشراف : ١٧٦١٣) مسند احمد ٦ في ٢٠٢. ٢٠٥. ٢٤٠) وأخرجه سنن ابي داود في الطلاق ١٢ (٢٢٠٣) سنن ابن ماجه في الطلاق ٢٠ (١٥٢) . مسند احمد (٦ في ٤٥. ٤٨. ١٧١. ١٧٣. ١٨٥. ٢٦٣)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي دورسره اوسيدو باره کي په اختيار ورکولو کي داهل علمو اختلاف دي دعمر او عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قول دي که ښځي خپل خان لره اختيار کړو نو بائن طلاق به واقع شي او ددوئ دواړو دا قول هم دي چي يو طلاق به واقع کيږي او خاوند ته به درجعت اختيار وي او که چري دوئ خپل خاوند لره اختيار کړو نو هيڅ به نه واقع کيږي، دعلي رضي الله عنه قول دي که چري ښځي خپل خان اختيار کړو نو بائن طلاق به واقع کيږي او که خاوند يي اختيار کړو نو يو به وي ليکن درجعت اختيار به ثابت وي، دزيد بن ثابت رضي الله عنه قول دي که چري ښځي خاوند اختيار کړو نو يو طلاق به واقع کيږي او که خپل خان يي اختيار کړو نو دري به واقع کيږي، په صحابه کرامو او ددوئ نه پس په اهل علمو کي اکثرو دعبدالله بن مسعود او عمر رضي الله عنهما قول اختيار کړي دي اوهمدا دسفيان ثوري او اهل کوفه قول هم دي البته امام احمد دعلي رضي الله عنه قول لره اختيار کړي دي.

****************

## ٥ـ باب مَا جَاءَ فِي الْمُطَلَّقَةِ ثَلاَثًا لاَ سُكْنَى لَهَا وَلاَ نَفَقَةَ

**د دري طلاقو نو په صورت کي ښځي ته نه رهانش ملاويږي او نه دخوړلو څکلو خرچه**

١١٨٠ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مُغِيرَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: قَالَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ قَيْسٍ: طَلَّقَنِي زَوْجِي ثَلاَثًا، عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ سُكْنَى لَكِ، وَلاَ نَفَقَةَ". قَالَ مُغِيرَةُ: فَذَكَرْتُهُ لِإِبْرَاهِيمَ، فَقَالَ: قَالَ عُمَرُ: لاَ نَدَعُ كِتَابَ اللَّهِ، وَسُنَّةَ نَبِيِّنَا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لِقَوْلِ امْرَأَةٍ لاَ نَدْرِي أَحَفِظَتْ أَمْ نَسِيَتْ، وَكَانَ عُمَرُ يَجْعَلُ لَهَا السُّكْنَى، وَالنَّفَقَةَ. حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَنْبَأَنَا حُصَيْنٌ، وَإِسْمَاعِيلُ، وَمُجَالِدٌ، قَالَ هُشَيْمٌ، وَحَدَّثَنَا دَاوُدُ أَيْضًا، عن الشَّعْبِيِّ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ فَسَأَلْتُهَا، عَنْ قَضَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِيهَا فَقَالَتْ: طَلَّقَهَا زَوْجُهَا الْبَتَّةَ فَخَاصَمَتْهُ فِي السُّكْنَى، وَالنَّفَقَةِ، فَلَمْ يَجْعَلْ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُكْنَى، وَلاَ نَفَقَةً، وَفِي حَدِيثِ دَاوُدَ قَالَتْ: وَأَمَرَنِي أَنْ أَعْتَدَّ فِي بَيْتِ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ: بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ: مِنْهُمُ الْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ، وَعَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ، وَالشَّعْبِيُّ، وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَالُوا: لَيْسَ لِلْمُطَلَّقَةِ سُكْنَى، وَلاَ نَفَقَةٌ، إِذَا لَمْ يَمْلِكْ زَوْجُهَا الرَّجْعَةَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ، عُمَرُ، وَعَبْدُ اللَّهِ، إِنَّ الْمُطَلَّقَةَ ثَلاَثًا لَهَا السُّكْنَى، وَالنَّفَقَةُ، وَهُوَ قَوْلُ:

سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَهَا السُّكْنَى، وَلَا نَفَقَةَ لَهَا، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَاللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنَّمَا جَعَلْنَا لَهَا السُّكْنَى بِكِتَابِ اللَّهِ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: لا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلا يَخْرُجْنَ إِلا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ سورة الطلاق آية ١. قَالُوا: هُوَ الْبَذَاءُ أَنْ تَبْذُوَ عَلَى أَهْلِهَا، وَاعْتَلَّ بِأَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ قَيْسٍ، لَمْ يَجْعَلْ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، السُّكْنَى لِمَا كَانَتْ تَبْذُو عَلَى أَهْلِهَا، قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَلَا نَفَقَةَ لَهَا لِحَدِيثِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي قِصَّةِ حَدِيثِ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ. ([1])

**ترجمه** دعامر بن شراحيل شعبي بيان دي فاطمه بنت قيس رضي الله عنها فرمائي چي ماته زما خاوند دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كي دري طلاقونه راكړل نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ستا دپاره نه رهائش شته او نه دنفقي اخراجات، مغيره وائي بيا ما ددي ذكر ابراهيم نخعي ته اوكړو هغه راته اووئيل دعمر رضي الله عنه قول دي چي مونږ ديوي ښځي په وينا دالله كتاب او درسول سنت نشو پريخودلي مونږ ته معلومه نه ده چي هغي حديث ياد هم ساتلي دي او كه هير كړي يي دي عمر رضي الله عنها به دداسي ښځي دپاره رهائش او نفقه مقرروله په يو بل سند هيشم وائي چي مونږ ته داود روايت بيان كړي دي چي شعبي به وئيل زه فاطمه بنت قيس رضي الله عنها ته ورغلم او ما ورنه په دي باره كي تپوس اوكړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم څنګه فيصله كړي ده فاطمه بنت قيس اووئيل ماته زما خاوند بته طلاق راكړي وو نو ما دنفقي او درهائش په سلسله كي مقدمه اوكړه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم زما دپاره نه درهائش حكم اوكړو او نه دنفقي، د داود په حديث كي دا هم دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته حكم اوكړو چي عدت دابن ام مكتوم په كور كي تير كړه.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او بعضي اهل علمو هم په دي باندي قول كړي دي چي حسن بصري، عطاء بن ابي رباح او شعبي هم په دوئ كي شامل دي او همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي دوئ وائي دمطلقي دپاره كله چي ددي دخاوند سره

---

[1] ـ مسلم في الطلاق ٦ (١٤٨٠). سنن ابي داود في الطلاق ٣٩ (٢٢٨٨). سنن النسائي في الطلاق ٧ (٣٤٣٢، ٣٤٤٣) و ٧٠ (٣٥٧٨، ٣٥٧٩). سنن ابن ماجه في الطلاق ١٠ (٢٠٣٦). مسند احمد (٦ في ٤١٢، ٤١٥، ٤١٥، ٤١٦). سنن الدارمي في الطلاق ١٠ (٢٣٢١) (تحفة الأشراف: ١٨٠٢٥) وأخرجه صحيح مسلم في الطلاق سنن ابي داود في الطلاق ٣٩ (٢٢٨٤). سنن النسائي في النكاح ٨ (٣٢٢٤)، و ٢١ (٣٢٤٦)، و ٢٢ (٣٢٤٧)، والطلاق ١٥ (٣٤٢٧). موطا امام مالک في الطلاق ٢٣ (٦٧). مسند احمد (٦ في ٤١١٣١٧). سنن الدارمي في النكاح ٧ (٢٢٢٣)

رجعت اختيار نه وي نه رهائش شته او نه نفقه په صحابه كرامو كي بعضي اهل علم چي عمر او عبدالله بن مسعود په كي هم شامل دي په دري طلاقو دمطلقي دپاره په رهائش او نفقه باندي قول كړي دي او همدا دسفيان ثوري او اهل كوفه قول دي بعضي اهل علم وائي ديته رهائش او نفقه نه ملاويږي دا دمالك بن انس، ليث بن سعد، او امام شافعي قول دي، امام شافعي وائي مونږ ددي دپاره درهائش حق دالله دكتاب په بنياد وركړي دي الله تعالي فرمائيلي دي دوئ لره ددوئ دكورونو نه مه اوباسئ او دوئ دي پخپله هم نه اوځي علاوه ددينه چي دوئ ښكاره بې حيايي اوكړي "بذاء" ديته وائي چي يوه ښځه دخاوند دكور والا خلقو سره بد كلامي اوكړي، نبي كريم صلي الله عليه وسلم دفاطمه بنت قيس دپاره درهائش نه وركولو علت هم دادي چي هغي دكور دخلقو سره بد كلامي كوله او دفاطمه بنت قيس په واقعه كي درسول الله د نفقي دنه وركولو دحديث په اعتبار سره هغي ته نفقه نه ده وركړي شوي

***************

## ٦_ باب مَا جَاءَ لاَ طَلاَقَ قَبْلَ النِّكَاحِ

### دنكاح نه مخكي دطلاق نه واقع كيدو بيان

١١٨١_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا عَامِرٌ الأَحْوَلُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ نَذْرَ لاِبْنِ آدَمَ فِيمَا لاَ يَمْلِكُ، وَلاَ عِتْقَ لَهُ فِيمَا لاَ يَمْلِكُ، وَلاَ طَلاَقَ لَهُ فِيمَا لاَ يَمْلِكُ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَهُوَ أَحْسَنُ شَيْءٍ رُوِيَ فِي هَذَا البَابِ وَهُوَ قَوْلُ: أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، رُوِيَ ذَلِكَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَسَعِيدِ بْنِ المُسَيِّبِ، وَالحَسَنِ، وَسَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَعَلِيِّ بْنِ الحُسَيْنِ، وَشُرَيْحٍ، وَجَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، وَغَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ فُقَهَاءِ التَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ وَرُوِيَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ قَالَ: فِي المَنْصُوبَةِ إِنَّهَا تَطْلُقُ وَقَدْ رُوِيَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، وَالشَّعْبِيِّ وَغَيْرِهِمَا، مِنْ أَهْلِ العِلْمِ أَنَّهُمْ قَالُوا: إِذَا وَقَّتَ نُزِّلَ وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، أَنَّهُ إِذَا سَمَّى امْرَأَةً بِعَيْنِهَا، أَوْ وَقَّتَ وَقْتًا، أَوْ قَالَ: إِنْ تَزَوَّجْتُ مِنْ كُورَةِ كَذَا، فَإِنَّهُ إِنْ تَزَوَّجَ، فَإِنَّهَا تَطْلُقُ. وَأَمَّا ابْنُ المُبَارَكِ فَشَدَّدَ فِي هَذَا البَابِ، وَقَالَ: إِنْ فَعَلَ لاَ أَقُولُ هِيَ حَرَامٌ. وقَالَ أَحْمَدُ: إِنْ تَزَوَّجَ لاَ آمُرُهُ، أَنْ يُفَارِقَ امْرَأَتَهُ، وقَالَ إِسْحَاقُ: أَنَا أُجِيزُ فِي المَنْصُوبَةِ، لِحَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَإِنْ تَزَوَّجَهَا لاَ أَقُولُ تَحْرُمُ عَلَيْهِ امْرَأَتُهُ، وَوَسَّعَ إِسْحَاقُ فِي غَيْرِ

الْمَنْصُوبَةِ وَذُكِرَ. عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ سُئِلَ، عَنْ رَجُلٍ حَلَفَ بِالطَّلَاقِ، أَنَّهُ لَا يَتَزَوَّجُ ثُمَّ بَدَا لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ هَلْ لَهُ رُخْصَةٌ بِأَنْ يَأْخُذَ بِقَوْلِ الْفُقَهَاءِ الَّذِينَ رَخَّصُوا فِي هَذَا؟. فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ: إِنْ كَانَ يَرَى هَذَا الْقَوْلَ حَقًّا، مِنْ قَبْلِ أَنْ يُبْتَلَى بِهَذِهِ الْمَسْأَلَةِ. فَلَهُ أَنْ يَأْخُذَ بِقَوْلِهِمْ فَأَمَّا مَنْ لَمْ يَرْضَ بِهَذَا فَلَمَّا ابْتُلِيَ أَحَبَّ. أَنْ يَأْخُذَ بِقَوْلِهِمْ فَلَا أَرَى لَهُ ذَلِكَ. (١)

**ترجمه** . دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دانسان دپاره ديو داسي څيز نذر کول نشته کوم چي دهغه په اختيار کي نه دي او په کوم چي هغه قدرت نه لري اونه چاسره دداسي کس دازادولو اختيار شته دچاچي مالك نه وي او نه چا سره داسي ښځي ته دطلاق ورکولو حق شته دکومي چي دي مالك نه دي، امام ترمذي وائي دعبدالله بن عمر حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کي دعلي، معاذ بن جبل، جابر، ابن عباس، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دا په ټولو کي بهترين حديث دي کوم چي په دي باب کي وارد دي، او همدا په صحابه کرامو کي داکثرو اهل علمو قول دي، او د علي بن ابي طالب، ابن عباس، جابر، عبدالله، سعيد بن المسيب ، حسن، سعيد بن جبير، علي بن حسين، شريح، او جابر بن زيد رضي الله عنهم او دمتعددو تابعينو نه هم دارروايت مروي دي او همدا دامام شافعي قول هم دي، او دابن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي چي هغوئ دمنصوبي په سلسله کي وئيلي دي چي طلاق کيږي، او په اهل علمو کي دابراهيم نخعي او شعبي وغيره نه مروي دي چي کله دوئ کوم وخت مقرر کړي نو طلاق به واقع کيږي او همدا دسفيان ثوري او مالك بن انس قول هم دي چي کله چا ديوي معيني ښځي نوم واخستلو او يايي کوم وخت مقرر کړو او يا يي داسي اووئيل چي ما دفلانئ محلي دښځي سره نکاح اوکړه نو هغه دي طلاقه وي نو که ده په مذکوره نکاح اوکړه نو طلاق به واقع شي البته په دي باب کي ابن مبارك دشدت نه کار اخستلي دي ليکن هغوئ دا هم وئيلي دي که چري يو کس داسي اوکړل نو زه هم دا نه وايم چي په ده باندي به دا حرامه شي. او امام احمد وائي که چري دغه کس په دغه محله کي نکاح اوکړه نو زه ورته دا حکم نه کوم چي دي دي دخپلي ښځي نه جدائي اختيار کړي، اسحاق بن راهويه وائي زه دابن مسعود دحديث په بنا دمنسوبه ښځي سره دنکاح کولو اجازت ورکوم، او که چري دي کس ورسره نکاح اوکړه نو زه دا نه وايم چي په ده باندي به دا ښځه حرامه شي ، او دغير منصوبه ښځي په سلسله کي اسحاق بن راهويه وسعت ورکړي دي، دعبدالله بن مبارك نه منقول دي چي هغه نه ديو کس په باره کي

---

(١) .. ابن ماجه في الطلاق ١٧ (٢٠٤٧) (تحفة الأشراف: ٨٧٢١) . مسند احمد (٢ في ١٩٠) وأخرجه ابي داود في الطلاق ٧ (٢١٩٠) . سنن النسائي في البيوع ٦٠ (٤٦١٦) . مسند احمد (٢ في ١٨٩)

تپوس اوکړي شو چاچي دطلاقو قسم خوړلي وو چي زه به نکاح نه کوم او بيا يې سوچ اوکړو چي نکاح اوکړم نو ايا دده دپاره اجازت شته چي دهغه فقهاؤ قول اختيار کړي چاچي اجازت ورکړي دي عبدالله بن مبارك اوونيل که چري په دي معامله کي دواقع کيدونه مخکي ده ته دهغوئ درخصت قول درست ښکاريدو نو بيا دده دپاره دهغوئ په قول عمل کول درست دي او که چري مخکي ددوئ دقول نه مطمئن نه وو او اوس په ازمائش کي دپريوتو په وخت کي دهغوئ په قول عمل کول غواړي نو زه دده په حق کي داسي کار کول درست نه گڼړم

**تشريح** اضافة الطلاق الي الشرط.

**مسئله** . که چا طلاق په نکاح پورې معلق کړل. مثلاً يوې پردئ ښځي ته ئې اوونيل. "إن تزوجتك فأنت طالق" يا ئې داسې اوونيل، "كل إمرأة أتزوجها فهي طالق"

(١)نوزمونږ په نزدپه دې صورت کي د نکاح نه پس طلاق واقع کيږي.

(٢)اوامام شافعي(رحمه الله)فرمائي چي طلاق نه واقع کيږي،

دامام شافعي(رحمه الله)دليل دنبي(ص) حديث دې چي د نکاح نه وړاندې طلاق نشته. د عبدالله بن عمروبن العاص ﷺ نه روايت دې چي دوی يوې ښځې ته د نکاح پيغام اوليږلو، دهغې اولياؤ دهغې دنکاح کولونه انکاراوکړلو نو عبدالله بن عمروبن العاص ﷺ اوفرمائيل "إن نكحتها فهي طالق ثلاثاً" بيا ئې په دې باره کي د رسول الله(ص) نه تپوس اوکړلو، نبي(ص) ورته اوفرمائيل "لاطلاق قبل النكاح" ددې حديث نه معلوميږي چي دنکاح نه وړاندې طلاق معتبر نه دې.

زمونږدليل دا دې چي په يوخيزپورې معلق کول دحالف دطرفه تصرف يمين دې، ځکه چي شرط اوجزاء دواړه موجود دی، اوهم ددې نوم تعليق دې، پاتې شوه دا خبره چي د تعليق په وخت کي دحالف ملك نشته، ددې جواب دا دې چي دتعليق په وخت کي د ملك وجود شرط نه دې، بلکه دجزاء د وجود په وخت کي دملك وجود شرط دې، اودلته د جزاء دوجود په وخت کي يقيناً ملك موجود دې نود طلاق واقع کيدل يعنی ترتب دجزاء به هم وی، اود شرط د وجود نه وړاندې د يمين اثرمنع دې، يعنی دمحلوف نه بچ کيدل، اودا منع د متصرف يعنی حالف پورې قائمه ده نوپه دې وخت کي د طلاق دمحل څه حاجت نشته، بلکه د حالف ذمه واری کافی ده،

دامام شافعي(رحمه الله) د پيش کړی حديث نه جواب دا دې چي دا په طلاق منجزباندې محمول دې، حاصل دا چي نبي(ص) اوفرمائيل چي دنکاح نه وړاندې که طلاق ورکړې شی نوطلاق نه واقع کيږی، ښکاره ده چي په دې کي دچا اختلاف نشته، اختلاف خوپه

دې کې دې چې طلاق په نکاح پورې معلق کول جائزدی که نه دی؟اوپه دې باندې په حدیث کې څه صراحت نشته نوپه دې حدیث باندې استدلال کول صحیح نه دی، اودا حدیث په طلاق منجز باندې حمل کول داسلافو (رحمهم الله) نه منقول دی، لکه امام شعبی امام زهری (رحمهاالله) اود دوی نه علاوه بعضې نور فقهاء.

## دعمروبن شعیب رضي الله عنه حالات

نوم عمرو شعیب بن محمد بن عبدالله بن عمرو بن العاص هغه عموما دخپل پلار او سعید بن المسیب نه روایتونه اوریدلي دي او دی دحدیث په اسناد کې اکثر موندلی شي "ابیه" کې ضمیر پلار ته راجع دی او ددې مصداق شعیب دی 'جده'، په دې ضمیر کې دوه احتماله دي اول ددې مصداق محمد دی ، دویم احتمال دادی چې دجد مرجع ابیه دی او دجد مصداق عبدالله بن عمرو دی کوم چې دشعیب نیکه دی مطلب دا شو چې شعیب دخپل نیکه عبدالله نه روایت کوي ددې احتمالاتو په وجه په سند کې اختلاف راغی پاتې شوه دا خبره چې دا سند قابل داحتجاج دی یا نه دی نو صحیح رائې داده چې دا سند قابل داحتجاج دی کم از کم دحسن درجې دی اصحاب سنن او امام احمد وغیره دا سند قبول کړی دی (میزان الاعتدال، تدریب الرامي).

**تشریح** . یوکس طلاق په نکاح پورې معلق کړلو، مثلاً یوې پردۍ ښځې ته ئې اووئیل، "إن تزوجتك فأنت طالق" یا ئې داسې اووئیل "کل إمرأة أتزوجها فهی طالق"(۱)نوزمونږ په نزدپه دې صورت کې د نکاح نه پس طلاق واقع کیږی، (۲)اوامام شافعی(رحمه الله)فرمائی چې طلاق نه واقع کیږی.

***************

## ۷_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ طَلاَقَ الأَمَةِ تَطْلِيقَتَانِ

### دوینځې طلاق دوه وي

۱۱۸۲_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُظَاهِرُ بْنُ أَسْلَمَ، قَالَ: حَدَّثَنِي الْقَاسِمُ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " طَلاَقُ الأَمَةِ تَطْلِيقَتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ ". قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى: وحَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، أَنْبَأَنَا مُظَاهِرٌ بِهَذَا، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ، حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لاَ نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ مُظَاهِرِ بْنِ أَسْلَمَ، وَمُظَاهِرٌ لاَ نَعْرِفُ لَهُ فِي الْعِلْمِ غَيْرَ هَذَا

الحَدِيثِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. (1)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دوينځي طلاق دوه دي او ددي عدت دوه خل بيماريدل دي

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن غريب دي او مونږ ته صرف دمظاهر بن اسلم په سند دا روايت رارسيدلي دي او ددي روايت نه علاوه دمظاهر بن اسلم بل روايت مونږ ته معلوم نه دي، او په دي باب كي دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي، په صحابه كرامو او اهل علمو كي داكثرو په دي باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري ، شافعي، احمد ، او اسحاق قول هم دي.

*****************

## ٨_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يُحَدِّثُ نَفْسَهُ بِطَلاَقِ امْرَأَتِهِ

### څوك چي په زړه كي دخپلي ښځي دطلاق خيال راوړي نو ددي څه حكم دي

١١٨٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَجَاوَزَ اللَّهُ لِأُمَّتِي مَا حَدَّثَتْ بِهِ أَنْفُسَهَا، مَا لَمْ تَكَلَّمْ بِهِ، أَوْ تَعْمَلْ بِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلمِ، أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا حَدَّثَ نَفْسَهُ بِالطَّلاَقِ لَمْ يَكُنْ شَيْءٌ حَتَّى يَتَكَلَّمَ بِهِ. (2)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي زما دامت هغه خيالات كوم چي ددوئ په زړونو كي تيريږي معاف كړي دي ترڅو پوري چي دا هغوئ دخولي نه ويستلي نه دي او په ژبه يي اداء كړي نه وي او يايي په دي باندي عمل نه وي كړي.

---

[1] _ سنن ابي داود في الطلاق ١٤ (٢٢٤٠) (تحفة الأشراف: ١٨٥٥٥)

[2] _ البخاري في العتق ٦ (٢٥٢٨)، والطلاق ١١ (٥٢٦٥)، والأيمان والنذور ١٥ (٦٦٦٤)، صحيح مسلم في الإيمان ٥٨ (٢٠١)، سنن ابي داود في الطلاق ١٥ (٢٢٠٩)، سنن النسائي في الطلاق ٢٢ (٣٤٦٣)، سنن ابن ماجه في الطلاق ١٤ (٢٠٤٠)، مسند احمد (٢ في ٣٩٣، ٤٢٥، ٤٧٤، ٤٨١، ٤٩١) (تحفة الأشراف: ١٢٨٩٦)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي چي كله يو سړي پخپل زړه كي دطلاق سوچ اوكړي نو په دي باندي هيڅ نه كيږي ترڅوچي هغه په خوله ونيلي نه وي

*****************

## ٩ـ باب مَا جَاءَ فِي الْجِدِّ وَالْهَزْلِ فِي الطَّلاَقِ

### په سنجيدګۍ او ټوقو کي دطلاق لفظ ونيلو بيان

١١٨٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَرْدَكَ الْمَدَنِيِّ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ مَاهَكَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلاَثٌ جِدُّهُنَّ جِدٌّ، وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ النِّكَاحُ، وَالطَّلاَقُ، وَالرَّجْعَةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ: هُوَ ابْنُ حَبِيبِ بْنِ أَرْدَكَ الْمَدَنِيُّ، وَابْنُ مَاهَكَ هُوَ عِنْدِي يُوسُفُ بْنُ مَاهَكَ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري څيزونه داسي دي چي دهغي قصد كول هم قصد كول دي او په هغي كي ټوقي كول هم قصد كول دي يو نكاح ده او يو طلاق دي او يو رجعت دي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي په صحابه كرامو وغيره خلقو كي داهل علمو په دي باندي عمل دي عبدالرحمن دحبيب بن اردك مدني ځوي دي او ابن ماهك زما په نزد يوسف بن ماهك دي

*****************

## ١٠ـ باب مَا جَاءَ فِي الْخُلْعِ

### دخلع بيان

١١٨٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، أَنْبَأَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ سُفْيَانَ، أَنْبَأَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَهُوَ مَوْلَى آلِ طَلْحَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَاءَ، أَنَّهَا

---

[1] ـ ابي داود في الطلاق ٩ (٢١٩٤). ابن ماجه في الطلاق ١٣ (٢٠٣٩). (تحفة الأشراف: ١٤٨٥٤)

اخْتَلَعَتْ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، " فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَوْ أُمِرَتْ أَنْ تَعْتَدَّ بِحَيْضَةٍ ".([1])

**ترجمه** د ربيع بنت معوذ بن عفراء رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كي خلع اوكړه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم حكم اوكړو چي يو حيض عدت تير كړه.

امام ترمذي وائي دربيع حديث چي ديوحيض دعدت تيرولو حكم ورته شوي دي صحيح دي، او په دي باب كي ابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي.

**تشريح** : نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي كومه ښځه بغير دخطري نه دخپل خاوند نه طلاق اوغواړي نوپه هغي باندي دجنت خوشبو حرامه ده (مسند احمد، ترمذي، ابوداود).

ابن ماجه او دارمي دثوبان رضي الله عنه روايت نقل كړي دي او دګناه كيدو باوجود مال وركول حرام دي بلكه په ناحقه مال بربادولونه يعني په كوم كي چي څه ديني يا دنيوي فائده نه وي انسان منع شوي دي، اودرسول كريم صلي الله عليه وسلم ددي ارشاد چي المختلعات هن المنافقات ملطب هم دا دي (ترمذي).

پس كله چي ښځي او خاوند ته دالله دقانون دپابند ئ نه كولو او دګناه دمرتكب كيدو خطره وي نو دواړو لره وركول اخستل جائز دي اوداحكم په هغه صورت كي دي چي كله دجانبينو دطرف نه دجګړي كولو خطره وي اوكه چري صرف دخاوند دطرف نه دجګړي خطره وي نودده په دي كي دائمه كرامو اختلاف دي چي خلع طلاق دي او كه فسخ دنكاح دي

د امام ابو حنيفه مالك او مشهور قول دامام شافعي دا دي چي خلع طلاق دي او يو روايت دامام احمد نه هم ددي پشان مروي دي

دويم قول دامام احمد دي او يو قول دشافعي دي چي خلع فسخ دنكاح دي طلاق نه دي، پس څوك چي خلع ته فسخ وائي نه په دي سره ددي په نزد باندي دطلاقو عدت كميږي اونه په دي سرد دويم طلاق واقع كيږي او نه دعدت په دوران كي دښځي اوخاوند كي وراثت جاري كيږي

***************

أَنْبَأَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ الْبَغْدَادِيُّ، أَنْبَأَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، أَنْبَأَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ امْرَأَةَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ، اخْتَلَعَتْ مِنْ زَوْجِهَا

---

[1] - تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٨٤٥)

عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَعْتَدَّ بِحَيْضَةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي عِدَّةِ الْمُخْتَلِعَةِ. فَقَالَ: أَكْثَرُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. إِنَّ عِدَّةَ الْمُخْتَلِعَةِ عِدَّةُ الْمُطَلَّقَةِ ثَلَاثُ حِيَضٍ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. قَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، إِنَّ عِدَّةَ الْمُخْتَلِعَةِ حَيْضَةٌ. قَالَ إِسْحَاق: وَإِنْ ذَهَبَ ذَاهِبٌ إِلَى هَذَا فَهُوَ مَذْهَبٌ قَوِيٌّ. (1)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي د ثابت بن قيس ښځي دنبي كريم سلي الله عليه وسلم په زمانه كي دخپل خاوند سره خلع اوكړه نو رسول الله ورته په يو حيض عدت تيرولو حكم اوكړو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او دمختلعي دعدت باره كي داهل علمو اختلاف دي، په صحابه كرامو كي اكثر اهل علم وائي عدت دمختلعي دري حيضونه دي او دا د سفيان ثوري او اهل كوفه قول دي او په دي باندي امام احمد او اسحاق بن راهويه هم قول كړي دي او په صحابه كرامو كي بعضي اهل علم وائي چي عدت به دمختلعي يو حيض دي، اسحاق بن راهويه وائي كه څوك دا مسلك اختياروي نو دا يو قوي مذهب دي.

***************

## ۱۱_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُخْتَلِعَاتِ

### دخلع غوښتونكو ښځو بيان

۱۱۸٦_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُزَاحِمُ بْنُ ذَوَّادِ بْنِ عُلْبَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ أَبِي الْخَطَّابِ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُخْتَلِعَاتُ هُنَّ الْمُنَافِقَاتُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ اخْتَلَعَتْ مِنْ زَوْجِهَا مِنْ غَيْرِ بَأْسٍ لَمْ تَرِحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ". (2)

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٨٣٥)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٠٩٢)

**ترجمه** دثوبان رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خلع اخستونكي ښځي منافقاني دي

امام ترمذي وائي داحديث په دي سند غريب دي او څه خاص قوي سند نه دي، دارنګي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي فرمائيل يي كومه ښځه چي بغير دكوم سبب او ضرورت نه دخپل خاوند سره خلع اوكړي نو دا به دجنت خوشبو اونه ګوري.

**تشريح : د سړي دپاره ښځي ته د مال په عوض طلاق وركول ګناه ده**

الله تعالي فرمائيلي دي "وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا"الايه ، او بل ايت كريمه " وَإِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُبِينًا" دداسي قسم طلاقوپه وجه په مال وركولو كي په ښځه باندي هم ګناه نشته دي ځكه چي طلاق غوښتل ګناه ده .

نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي كومه ښځه بغير دخطري نه دخپل خاوند نه طلاق اوغواړي نوپه هغي باندي دجنت خوشبو حرامه ده (مسند احمد، ترمذي، ابوداود، ابن ماجه او دارمي دثوبان رضي الله عنه روايت نقل كړي دي او دګناه كيدو باوجود مال وركول حرام دي بلكي په ناحقه مال بربادولونه يعني په كوم كي چي څه ديني يا دنيوي فائده نه وي انسان منع شوي دي، اودرسول كريم صلي الله عليه وسلم ددي ارشاد چي المختلعات هن المنافقات ملطب هم دا دي (ترمذي)

صاحب هدايه وائي چي دده دپاره دا مال اخستل مكروه تحريمي دي او حق دا دي چي حرام دي.

**مسئله**: په دي كي دائمه كرامو اختلاف دي چي خلع طلاق دي او كه فسخ دنكاح دي

د امام ابو حنيفه ،مالك او مشهور قول دامام شافعي دا دي چي خلع طلاق دي او يو روايت دامام احمد نه هم ددي پشان مروي دي

دويم قول دامام احمد دي او يو قول دشافعي دي چي خلع فسخ دنكاح دي طلاق نه دي . پس څوك چي خلعي ته فسخ وائي نه په دي سره ددي په نزد باندي دطلاقو عدت كميږي اونه په ددي سره دويم طلاق واقع كيږي او نه دعدت په دوران كي دښځي اوخاوند كي وراثت جاري كيږي

***************

١١٨٧_ أَنْبَأَنَا بِذَلِكَ بُنْدَارٌ، أَنْبَأَنَا عَبْدُ الوَهَّابِ، أَنْبَأَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَمَّنْ حَدَّثَهُ، عَنْ ثَوْبَانَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا طَلَاقًا مِنْ غَيْرِ بَأْسٍ

فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَيُرْوَى هَذَا الْحَدِيثُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ، عَنْ ثَوْبَانَ وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ، عَنْ أَيُّوبَ بِهَذَا الإِسْنَادِ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. (1)

**ترجمه** دثوبان رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خلع اخستونكي ښځي باندي دجنت خوشبو حرامه ده

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي او دا حديث په سند د عن ايوب عن ابي قلابه عن ابي اسماء عن ثوبان سره هم مروي دي بعضو دايوب نه په همدي سند نقل كړي دي ليكن هغوئ مرفوع نه دي ذكر كړي.

*****************

## ١٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي مُدَارَاةِ النِّسَاءِ

### دښځو دخاطر كولو بيان

١١٨٨ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَمِّهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْمَرْأَةَ كَالضِّلَعِ إِنْ ذَهَبْتَ تُقِيمُهَا كَسَرْتَهَا، وَإِنْ تَرَكْتَهَا اسْتَمْتَعْتَ بِهَا عَلَى عِوَجٍ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، وَسَمُرَةَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (2)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ، ښځه دپښتئ پشان ده ده كه ته يی نيغول غواړي ماته به يی كړي او كه فائده تري اخلي نو فائده ترينه اخستلی شي او كوږوالی به پكي وي.

امام ترمذي وايي دا حديث په دي سند حسن غريب دی.

**لغات:** اقمتها. اقامه اقامة وقامة په معني دودريدلو اقام المائل او المعوج يعني كوږ يي سيده كړو.

---

1 ـ سنن ابي داود في الطلاق ١٨ (٢٢٢٦) . سنن ابن ماجه في الطلاق ٢١ (٢٠٥٥) . (تحفة الأشراف : ٢١٠٣) . مسند احمد (٥ في ٢٧٧، ٢٨٣) . سنن الدارمی في الطلاق ٦ (٢٣١٦)

2 ـ صحيح مسلم في الرضاع ١٨ (١٣٦٨) . (تحفة الأشراف : ١٣٢٢٧) وأخرجه صحيح البخاری في النكاح ٧٩ (٥١٨٤) . صحيح مسلم في الرضاع . مسند احمد (٢ في ٤٢٨، ٤٤٩، ٥٣٠) . سنن الدارمی في النكاح ٣٥ (٢٢٦٨)

**تشریح** : "فأن المرائة خلقت كضلع" يعني ښځه دپوختئ پشان پيدا شوي ده بعضو ددي كلام دا مطلب بيان كړی دی چي حواء عليها السلام دادم عليه السلام دڅپي پوختئ نه پيدا كړی شوي ده ليكن دبعضو دا خيال دی چي رسول الله په دي جمله كي يوه حكيمانه تشبيه وركړي ده چي دښځي مثال دپوختئ پشان دی چي څوك ورته ګوري نو كږه ښكاري ليكن حسن يي په كوږوالي كي دی.

"ان ذهبت تقيمها كسرتها" ددي مطلب دادی كه څوك اوغواړي چي دا كږه پوختئ نيغه كړي نو دا خو به نيغه نشي بلكي ماته به شي نو همدارنګي حال دښځي هم دی په دي وجه دبعضو خلقو ګمان دی چي په دي جمله كي دښځو مذمت بيان شوی دی حال دادی چي ددي جملي مطلب دښځو مذمت بيانول نه دي دا كوږوالی دښځي يوه فطري تقاضا ده نو پكار ده چي پخپله فطري تقاضا يي پريږدئ او دنيغولو كوشش يي اونكړئ.

****************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَسْأَلُهُ أَبُوهُ أَنْ يُطَلِّقَ زَوْجَتَهُ

### كه دچا نه پلار دښځي طلاقولو طلب اوكړي نو څه به كوي

١١٨٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَنْبَأَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، أَنْبَأَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَتْ تَحْتِي امْرَأَةٌ أُحِبُّهَا، وَكَانَ أَبِي يَكْرَهُهَا، فَأَمَرَنِي أَبِي أَنْ أُطَلِّقَهَا، فَأَبَيْتُ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، طَلِّقْ امْرَأَتَكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ.(١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي زما په نكاح كي يوه ښځه وه او زما ورسره ښه زندګي تيريدله خو زما دپلار خوښه نه وه ماته زما پلار ددي دطلاقولو حكم اوكړو ليكن ما دهغه خبره اونه منله او بيا ما ددي خبري ذكر رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اوكړو نو راته يي اوفرمائيل اي عبدالله بن عمر ښځي ته دي طلاق وركړه.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دا مونږ ته صرف د ابن ابي ذئب په سند رارسيدلي دي.

****************

[1] ـ ابي داود في الأدب ١٢٩ (٥١٣٨)، ابن ماجه في الطلاق ٣٦ (٢٠٨٨)، (تحفة الأشراف: ٦٧٠١)، مسند احمد (٢ في ٤٢، ٥٣)

## ١٤_ باب مَا جَاءَ لاَ تَسْأَلُ الْمَرْأَةُ طَلاَقَ أُخْتِهَا

### ديوې ښځې دپاره جائز نه دي چې دخاوند نه دخپلې بنې د طلاق مطالبه اوکړي

١١٩٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ تَسْأَلِ الْمَرْأَةُ طَلاَقَ أُخْتِهَا لِتَكْفِئَ مَا فِي إِنَائِهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يوه ښځه دي دخپلې بنې دپاره دطلاق مطالبه نه کوي او ددې په لوښي کي چې څه دي پکار داده چې دا ددې دپاره کافي شي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دې باب کي دام سلمه رضي الله عنها نه هم روايت وارد دي.

**تشريح** : ولاتسال المرائة طلاق اختها لتكفا مافي انائها: يعني يوه ښځه به دبلې ښځې دطلاقيدو خواهش نه کوي ددې دپاره چې دهغې حصه هم دېته ملاؤ شي او د لتكفا مافي انائها مطلب دادې چې يو لوښې په بل کې خالي کړې شي دا کنايه ده ددينه چې يوه ښځه چاته اووايي چې خپله ښځه طلاقه کړه او ما سره دنکاح خواهش اوکړي او ددې کس پوره توجه خپل طرف ته وګرځوي.

***************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي طَلاَقِ الْمَعْتُوهِ

### دليوني دطلاقو بيان

١١٩١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، أَنْبَأَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ عَجْلاَنَ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ الْمَخْزُومِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ طَلاَقٍ جَائِزٌ إِلاَّ طَلاَقَ الْمَعْتُوهِ الْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لاَ

---

[1] _ البخاری في البيوع ٥٨ (٢١٤٠)، صحيح مسلم في النكاح ٦ (١٤١٣ في ٥٢)، سنن النسائي في النكاح ٢٠ (٣٢٤١) والبيوع ١٦ (٤٤٩٦)، و١٩ (٤٥٠٦)، و٢١ (٤٥١٠)، مسند احمد (٢ في ٢٣٨)، (تحفة الأشراف: ١٣١٢٣) وأخرجه صحيح البخاری في الشروط ٨ (٢٧٢٣)، والنكاح ٥٣ (٥١٥٢)، والقدر ٤ (٦٦٠١) صحيح مسلم في النكاح، مسند احمد (٢ في ٢٧٤، ٣١١، ٣٩٤، ٤١٠، ٤٨٧، ٤٨٩، ٥٠٨، ٥١٦)

نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَطَاءِ بْنِ عَجْلَانَ، وَعَطَاءُ بْنُ عَجْلَانَ ضَعِيفٌ ذَاهِبُ الْحَدِيثِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَنَّ طَلَاقَ المَعْتُوهِ المَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ لَا يَجُوزُ إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَعْتُوهًا يُفِيقُ الأَحْيَانَ فَيُطَلِّقُ فِي حَالِ إِفَاقَتِهِ.(1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر طلاق واقع كيږي مگر علاوه دطلاق دليوني نه

امام ترمذي وائي دا حديث مونږ ته صرف دعطاء بن عجلان په سند مرفوع رارسيدلي دي او عطاء ضعيف او ذاهب الحديث دي (يعني هيرونكي دحديث) په صحابه كرامو وغيره خلقو كي داهل علمو په دي باندي عمل دي چي دليوني طلاق نه واقع كيږي مگر علاوه دهغه ليوني نه چي دهغه ليونتوب كله كله بنه كيږي او بيا ورته هغه دصحت په حالت كي طلاق ورکړي.

**تشريح**: دلته دا مسئله بيان شوې ده.چي د چا طلاق واقع كيږي اوكه د چا نه واقع كيږي. فرمائي.كه خاوند عاقل بالغ وي.اوده خپلې ښځې ته طلا ق وركړلو.نوطلاق واقع كيږي.اوكه ماشوم يا ليونې يا اوده وي.نوطلاق نه واقع كيږي.

خكه چي نبي ﷺ فرمائيلي دي.هريوطلاق واقع كيږي سوا د ماشوم او ليوني د طلاقه.

دويم دليل دا دې.چي د تصرف اهليت په عقل مميزباندې راځي.(يعني دهغه چاتصرف قبليږي.چي په چا كي عقل وي.اود ښه اوبد تميزكولې شي)اوماشوم اوليونې دواړو كي عقل مميز نشته.نومعلومه شوه.چي په دوی دواړوكي د طلاق اهليت نشته.اوچي د طلاق اهليت په كي نشته.نود دوی طلاق به واقع كيږي هم نه.اوځوك چي اوده وي.نوپه ده كي اختيارنشته.حالانكه په تصرف كي اختيارشرط دې.

***************

## ١٦_ باب

### دليوني دطلاق متعلق يوبل باب

١١٩٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْلَى بْنُ شَبِيبٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ النَّاسُ وَالرَّجُلُ يُطَلِّقُ امْرَأَتَهُ مَا شَاءَ. أَنْ يُطَلِّقَهَا وَهِيَ امْرَأَتُهُ إِذَا ارْتَجَعَهَا وَهِيَ فِي العِدَّةِ، وَإِنْ طَلَّقَهَا مِائَةَ مَرَّةٍ أَوْ أَكْثَرَ حَتَّى قَالَ رَجُلٌ لِامْرَأَتِهِ: وَاللَّهِ لَا أُطَلِّقُكِ فَتَبِينِي مِنِّي وَلَا آوِيكِ أَبَدًا. قَالَتْ: وَكَيْفَ ذَاكَ؟. قَالَ: أُطَلِّقُكِ فَكُلَّمَا هَمَّتْ عِدَّتُكِ أَنْ تَنْقَضِيَ رَاجَعْتُكِ. فَذَهَبَتِ المَرْأَةُ حَتَّى دَخَلَتْ عَلَى

---

1. تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٢٢٢)

عَائِشَةَ فَأَخْبَرَتْهَا. فَسَكَتَتْ عَائِشَةُ حَتَّى جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَتْهُ. فَسَكَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى نَزَلَ الْقُرْآنُ: الطَّلاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ (البقرة ٢٢٩) قَالَتْ عَائِشَةُ: فَاسْتَأْنَفَ النَّاسُ الطَّلاقَ مُسْتَقْبَلًا مَنْ كَانَ طَلَّقَ، وَمَنْ لَمْ يَكُنْ طَلَّقَ. ([1])

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي دخلقو داحال وو چي يو سړي به خپلي ښځي ته خومره طلاقونه ورکول غوښتل هغه به يي ورکړل او بيا به درجوع کولو په صورت کي دهغه ښځه جوړيده اګر که هغه به ديته دسلو پيرو نه هم زيات طلاق ورکړي وو تردي پوري چي يو ځل يو کس خپلي ښځي ته اوويل په الله قسم زه تاته نه طلاق درکوم چي ته رانه بيا جدا شي او نه درته ځرته پناهي درکوم ښځي ورته اوويل دا څنګه کيدي شي ؟ هغه اوويل زه به طلاق درکړم خو چي عدت کله ختميدو ته نژدي شي نو رجعت به کوم دا ښځه عائشه رضي الله عنها ته راغله او داخبره يي ورته بيان کړه عائشه خاموش شوه تردي پوري چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم تشريف راوړو نو ام المؤمنين ورته ددي خبري خبر ورکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم هم خاموشي اختيارکړه تردي پوري چي دا ايت کريمه "الطلاق مرتان فامساك بمعروف او تسريح باحسان" نازل شو يعني رجعي طلاق دوه دي او بيا يا خو په نيکي طريقي سره ساتل دي او يا رخصت ورکول دي (البقره: ٢٢٩) دعائشه رضي الله عنها بيان دي ددينه پس خلقو طلاق دسره نوي شميرل شروع کړل چاچي طلاق ورکړي وو هغوئ هم او چاچي نه وو ورکړي هغوئ هم.

******************

حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ نَحْوَ هَذَا الْحَدِيثِ بِمَعْنَاهُ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ يَعْلَى بْنِ شَبِيبٍ. ([2])

**ترجمه** هشام بن عروه هم دخپل پلار نه ددي هم معني حديث بيان کړي دي او هشام پخپل حديث کي دعائشه ذکر نه دي کړي، امام ترمذي وائي داحديث ديعلي بن شبيب دحديث نه زيات صحيح دي.

******************

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦٣٣٤)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٠٣٦)

## ١٧_ باب مَا جَاءَ فِي الحَامِلِ الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا تَضَعُ

### دخاوند دوفات نه پس دحاملې ښځې دعدت بيان

١١٩٣_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ أَبِي السَّنَابِلِ بْنِ بَعْكَكٍ، قَالَ: وَضَعَتْ سُبَيْعَةُ بَعْدَ وَفَاةِ زَوْجِهَا بِثَلَاثَةٍ وَعِشْرِينَ، أَوْ خَمْسَةٍ وَعِشْرِينَ يَوْمًا فَلَمَّا تَعَلَّتْ، تَشَوَّفَتْ لِلنِّكَاحِ فَأُنْكِرَ عَلَيْهَا، فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "إِنْ تَفْعَلْ فَقَدْ حَلَّ أَجَلُهَا".([1])

**ترجمه** دابو السنابل بن بعكك بيان دي چي دسبيعه دخاوند دمرګ نه پس ٢٣يا ٢٥ ورځي پس ولادت اوشو او كله چي دا دنفاس نه پاكه شوه نو دنكاح دپاره يي زينت شروع كړو خلقو ورباندي اعتراض اوكړو او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يي ددي دحال ذكر اوكړو رسول الله اوفرمائيل كه چري سبيعه داسي كوي نو هيڅ قباحت نشته ددي عدت پوره شوي دي.

***************

حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ نَحْوَهُ. وَقَالَ وَفِي البَابِ: عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي السَّنَابِلِ، حَدِيثٌ مَشْهُورٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَلَا نَعْرِفُ لِلْأَسْوَدِ سَمَاعًا مِنْ أَبِي السَّنَابِلِ، وسَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: لَا أَعْرِفُ أَنَّ أَبَا السَّنَابِلِ، عَاشَ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الحَامِلَ المُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا إِذَا وَضَعَتْ، فَقَدْ حَلَّ التَّزْوِيجُ لَهَا، وَإِنْ لَمْ تَكُنِ انْقَضَتْ عِدَّتُهَا وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: تَعْتَدُّ آخِرَ الأَجَلَيْنِ وَالقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ.([2])

---

[1] _ النسائي في الطلاق ٥٦ (٣٥٢٩). سنن ابن ماجه في الطلاق ٧ (٢٠٢٧). مسند احمد (٢ في ٣٠٥) (تحفة الأشراف: ١٢٠٥٢)

[2] _ النسائي في الطلاق ٥٦ (٣٥٢٩). سنن ابن ماجه في الطلاق ٧ (٢٠٢٧). مسند احمد (٢ في ٣٠٥) (تحفة الأشراف:

**ترجمه** : حسن بن موسي د شيبان په واسطه دمنصور نه د ماقبل هم معني روايت نقل كړى دى ، امام ترمذي وايي په دي باب كي د ام سلمه رضي الله عنها نه هم روايت وارد دى. امام ترمذي وايي د ابو السنابل حديث په مذكوره سندمشهور غريب دى، اود ابو السنابل نه د اسود د سماع باره كي مونږ ته علم نشته، د امام بخاري نه مي اوريدلي دي وئيل يي چي ماته معلومه نه ده ابو السنابل د وفات نبوي نه پس زندګي تيره کړي وي. اوپه دي باندي په صحابه كرامو كي د اهل علمو او ددوي نه پس د نورو اهل علمو عمل دى چي د متوفي عنها زوجها وضع د حمل سبب د حلت د تزويج جديده دى اګر که عدت يي نه وي تير شوي، سفيان ثوري ، شافعي ، احمد او اسحاق هم په دي باندي قول کړى دى مګر په صحابه كراموكي د بعضي اهل علمو اوددوئ نه پس دبعضي اهل علمو قول دادي چي د متوفي عنها زوجها عدت ابعد الاجلين دى ليكن زما په نزد اولني قول راجح دى

****************

١١٩٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، وَابْنَ عَبَّاسٍ، وَأَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، تَذَاكَرُوا الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا الْحَامِلَ تَضَعُ عِنْدَ وَفَاةِ زَوْجِهَا، فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: تَعْتَدُّ آخِرَ الْأَجَلَيْنِ، وَقَالَ أَبُو سَلَمَةَ: بَلْ تَحِلُّ حِينَ تَضَعُ، وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: أَنَا مَعَ ابْنِ أَخِي يَعْنِي أَبَا سَلَمَةَ، فَأَرْسَلُوا إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: قَدْ وَضَعَتْ سُبَيْعَةُ الْأَسْلَمِيَّةُ بَعْدَ وَفَاةِ زَوْجِهَا بِيَسِيرٍ، فَاسْتَفْتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَهَا أَنْ تَتَزَوَّجَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دسليمان بن يسار بيان دي فرمائي چي ابوهريره او ابن عباس او ابوسلمه رضي الله عنهم پخپل مينځ كي دكونډي دعدت مذاكره كوله چي كله دا حامله وي او دخاوند دوفات نه پس يي ولادت اوشي، ابن عباس اووئيل په دوه نيټو كي چي كومه اوږده وي دهغي عدت به تيروي او ابوسلمه اووئيل چي ولادت سره ددي عدت پوره كيږي او ابوهريره اووئيل زه دخپل وراره ابوسلمه هم خيال يم نو هغوئ په دي سلسله كي ام سلمه رضي الله عنها ته ځوك وروليږل

[1] ـ البخاري في تفسير سورة الطلاق ٢ (٤٩٠٩) . صحيح مسلم في الطلاق ٨ (١٤٨٥) . سنن النسائي في الطلاق ٥٦ (٣٥٢٢) . ٣٥٤٤) . مسند احمد (٦ في ٢٨٩) . سنن الدارمي في الطلاق ١١ (٢٣٢٥) (تحفة الأشراف : ١٨١٥٤ و ١٨٢٠٦) وأخرجه صحيح البخاري في الطلاق ٣٩ (٥٣١٨) . صحيح مسلم في الطلاق . سنن النسائي في الطلاق ٥٦ (٣٥٣٩ . ٣٥٤٠ . ٣٥٤١ . ٣٥٤٤ . ٣٥٤٥ . ٣٥٤٦ . ٣٥٤٨) . مسند احمد (٦ في ٣١٢ . ٣١٩).

نو هغي اوونيل دسبيعه اسلمي دوفات نه پس لږي ورځي پس ولادت اوشو او هغي درسول الله نه دمسئلي تپوس اوکړو نو رسول الله ورته دنکاح کولو اجازت ورکړو
امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي

****************

## ١٨ـ باب مَا جَاءَ فِي عِدَّةِ الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا

### دکومي ښځي خاوند چي وفات شي عدت تيرول وربا ندي لازم دي

١١٩٥ـ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى، أَنْبَأَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ بِهَذِهِ الأَحَادِيثِ الثَّلاَثَةِ، قَالَتْ زَيْنَبُ: دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ حَبِيبَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حِينَ تُوُفِّيَ أَبُوهَا أَبُو سُفْيَانَ بْنُ حَرْبٍ، فَدَعَتْ بِطِيبٍ فِيهِ صُفْرَةٌ خَلُوقٌ، أَوْ غَيْرُهُ، فَدَهَنَتْ بِهِ جَارِيَةً، ثُمَّ مَسَّتْ بِعَارِضَيْهَا، ثُمَّ قَالَتْ: وَاللَّهِ مَا لِي بِالطِّيبِ مِنْ حَاجَةٍ، غَيْرَ أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لاَ يَحِلُّ لاِمْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ، أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ إِلاَّ عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا".(١)

**ترجمه** . دحميد بن نافع نه روايت دي چي زينب بنت ابوسلمه دهغه دري احاديثو باره کي اوونيل حميد واني چي زينب اوفرمانيل چي زه دام حبيبه دپلار ابوسفيان په مرګ کي دهغوئ په خدمت کي حاضرشوم نو ام حبيبه خوشبويي راوغوښتله په کومه کي چي دخلوق خوشبويئ زيړوالي وو او که بل څه پکي وو هغوئ په يوي جينئ خوشبويي اولګوله او بيايي پخپلو انګو راښکله او بيا يي اوونيل په الله قسم زما خوشبوته ضرورت نشته ليکن ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمانيل يي چي دکومي ښځي په الله او دقيامت په ورځ ايمان وي دهغي دپاره دا جائز نه دي چي په يو مړي باندي د دريو ورځو نه زيات غم او ماتم اوکړي صرف په خاوند باندي به څلورمياشتي او لس ورځي غم کوي

### دزنب بنت ابوسلمه رضي الله عنها حالات

---

[1] ـ البخاری في الجنائز ٣٠ (١٢٨١)، والطلاق ٤٦ (٥٣٣٤)، و٤٧ (٥٣٣٩)، و٥٠ (٥٣٤٥)، صحيح مسلم في الطلاق ٩ (١٤٨٦)، سنن ابي داود في الطلاق ٤٣ (٢٢٩٩)، سنن النسائي في الطلاق ٥٥ (٣٥٣٠، ٣٥٣٢)، و٦٣ (٣٥٦٣)، سنن ابن ماجه في الطلاق ٣٤ (٢٠٨٣)، موطا امام مالک في الطلاق ٣٥ (١٠١) مسند احمد (٦ في ٣٢٥، ٣٢٦)، سنن الدارمي في الطلاق ١٢ (٢٣٣٠) (تحفة الأشراف ١٥٨٤٣)

نوم زينب قبيله بني مخذوم دام سلمه رضي الله عنها دخيتي نه پيدا شوي ده او اسماء بنت ابي بكر رضي الله عنها ورته تی ورکړی وو ددي نوم بره وو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورباندي زينب نوم كيخودو په څلورم هجري كال كي ابو سلمه وفات شو او دام سلمه رضي الله عنها نكاح درسول الله صلي الله عليه وسلم سره اوشوه او پدغه وخت كي زينب د تي ماشومه وه دخپلي مور سره درسول الله صلي الله عليه وسلم سره پرورش ته راغله رسول الله صلي الله عليه وسلم به دغسل نه پس دخپلي خولي مباركي اوبه په دي باندي راښكلي دمحبت په وجه ليكن ددي دبركت اثردا وو چي دبوډاوالي پوري يي مخ تر اوتازه وو نكاح يي دعبدالله بن زمعه رضي الله عنها سره اوشوه او دوه ماشومان يي هم پيدا شول او دواړه په ۶۳هجري كي په جنګ حره كي شهيدان شول او عبدالله بن عمر رضي الله عنه ورباندي جنازه اوكړه يو څو روايات ورنه مروي دي.

***************

١١٩٦ـ قَالَتْ قَالَتْ زَيْنَبُ: فَدَخَلْتُ عَلَى زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، حِينَ تُوُفِّيَ أَخُوهَا. فَدَعَتْ بِطِيبٍ فَمَسَّتْ مِنْهُ. ثُمَّ قَالَتْ: وَاللَّهِ مَا لِي فِي الطِّيبِ مِنْ حَاجَةٍ غَيْرَ أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا".([1])

**ترجمه**: زينب بنت ابي سلمه وائي چي زينب بنت جحش په مرګ كي زه هغوئ ته ورغلم او هغوئ خوشبويي راوغوښتله او وئيل يي په الله قسم زما خوشبوته ضرورت نشته ليكن ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يي چي دكومي ښځي په الله او دقيامت په ورځ ايمان وي دهغي دپاره دا جائز نه دي چي په يو مړي باندي د دريو ورځو نه زيات غم او ماتم اوكړي صرف په خاوند باندي به څلورمياشتي او لس ورځي غم كوي

**دزينب بنت جحش رضي الله عنها حالات**

نوم زينب كنيه ام الحكم په قريشو كي يي دبني اسد قبيلي سره تعلق وو دپلار نوم يي جحش بن رباب وو او دمور نوم يي اميمه وه دا درسول الله صلي الله عليه وسلم حقيقي دترور لور وه

---

[1] ـ البخاري في الجنائز ٣٠ (١٢٨١)، والطلاق ٤٦ (٥٣٣٤)، و٤٧ (٥٣٣٩)، و٥٠ (٥٣٤٥)، صحيح مسلم في الطلاق ٩ (١٤٨٦)، سنن ابي داود في الطلاق ٤٣ (٢٢٩٩)، سنن النسائي في الطلاق ٥٥ (٣٥٣٠، ٣٥٢٢) و٦٣ (٣٥٦٣)، سنن ابن ماجه في الطلاق ٣٤ (٢٠٨٤)، موطأ امام مالك في الطلاق ٣٥ (١٠١) مسند احمد (٦ في ٣٢٥، ٣٢٦)، سنن الدارمي في الطلاق ١٢ (٢٣٣٠) (تحفة الأشراف: ١٥٨٧٤)

ددي داسلام په باره کي صاحب د اسد الغابه ليکلي دي كانت قديمة الاسلام يعني په اسلام راوړو کي مخکښ وه (اسد الغابه)

ددي مخکښ نکاح دزيد بن حارثه رضي الله عنه سره شوي وه ځوك چي درسول الله صلي الله عليه وسلم ازاد کړی غلام او متبني وو، بيايي ددينه پس درسول الله صلي الله عليه وسلم سره نکاح اوشوه درسول الله ورسره ډير زيات محبت وو همدا وجه ده چي ام المومنين عائشه رضي الله عنها فرمائي : هي التي كانت تساوين من هن في المنزلة عند رسول الله صلي الله عليه وسلم.

يعني درسول الله صلي الله عليه وسلم په نظر کي دعزت او مرتبې په لحاظ سره هغي زما سره مقابله کوله چي ډيره عبادت گذاره اود بهترينو اخلاقو مالکه وه ام سلمه رضي الله عنها فرمائي كانت زينب صالحة صوامة قوامة (زرقاني) يعني زينب يوه نيکه روژه داره او مونځ گذاره ښځه وه.

وفات: دهجرت په شلم كال د دري پنځوس كالو په عمر کي وفات شوه چي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يي دنکاح په وخت کي عمر ۳۸کلونه وو ليکن علامه واقعي ۳۵کلونه ليکلي دي ليکن داکثرو په نزد اولنی قول راجح دی.

***************

١١٩٧_ قَالَتْ قَالَتْ زَيْنَبُ، وَسَمِعْتُ أُمِّي أُمَّ سَلَمَةَ، تَقُولُ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ ابْنَتِي تُوُفِّيَ عَنْهَا زَوْجُهَا، وَقَدِ اشْتَكَتْ عَيْنَيْهَا أَفَنَكْحَلُهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا" مَرَّتَيْنِ، أَوْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، كُلُّ ذَلِكَ يَقُولُ: "لَا". ثُمَّ قَالَ: "إِنَّمَا هِيَ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا، وَقَدْ كَانَتْ إِحْدَاكُنَّ فِي الجَاهِلِيَّةِ تَرْمِي بِالبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الحَوْلِ". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ فُرَيْعَةَ بِنْتِ مَالِكٍ أُخْتِ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، وَحَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْنَبَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ المُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا، تَتَّقِي فِي عِدَّتِهَا الطِّيبَ، وَالزِّينَةَ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (1)

[1] _ البخاري في الجنائز ۳۰ (۱۲۸۱)، والطلاق ۴۶ (۵۳۳۴)، و۴۷ (۵۳۳۹) و۵۰ (۵۳۴۵) صحيح مسلم في الطلاق ۹ (۱۴۸۶). سنن ابي داود في الطلاق ۴۳ (۲۲۹۹). سنن النسائي في الطلاق ۵۵ (۳۵۳۰، ۳۵۳۲) و۶۳ (۳۵۶۳). سنن ابن ماجه في الطلاق ۳۴ (۲۰۸۴). موطا امام مالک في الطلاق ۳۵ (۱۰۱) مسند احمد (۶ في ۳۲۵، ۳۲۶). سنن الدارمي في الطلاق ۱۲ (۲۳۳۰) (تحفة الأشراف: ۱۵۸۷۴)

**ترجمه** زينب وائي ما دخپلي مور ام سلمه رضي الله عنها نه اوريدلي دي چي يوه ښځه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شوه او عرض يي اوکړو اي دالله رسوله زما دلور خاوند مړ شوي دي او دهغي سترګي خوږيږي ايا دا رانجه لګولي شي رسول الله صلي الله عليه وسلم وفرمائيل نه دوه يا دري پيري دي ښځي پوښتنه وکړله او رسول الله به هرځل اوفرمائيل نه، او بيا يي په څلورم ځل اوفرمائيل دا څلورمياشتي او لس ورځي دي مګر دجاهليت په زمانه کي تاسو دکال تيريدو نه پس داوښانو پچي غورځولي. په دي باب کي دفريعه بنت مالك بن سنان (دابوسعيد خدري خور) او دحفصه بنت عمر رضي الله عنهم نه هم روايت وارد دي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دنورو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي چي دکومي ښځي خاوند وفات شي دا به دخوشبو لګولو او ډول سينګار نه پرهيز کوي دسفيان ثوري، امام مالك، امام شافعي، او اسحاق رحمهم الله هم دا قول دي

*****************

## ١٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُظَاهِرِ يُوَاقِعُ قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ

**ظهار کونکي چي دکفاري اداء کولو نه مخکي صحبت اوکړي نو څه حکم دي**

١١٩٨_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْأَشَجُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ صَخْرٍ الْبَيَاضِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمُظَاهِرِ يُوَاقِعُ قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ، قَالَ: "كَفَّارَةٌ وَاحِدَةٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ، وَمَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا وَاقَعَهَا قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ، فَعَلَيْهِ كَفَّارَتَانِ وَهُوَ قَوْلُ: عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَهْدِيٍّ. ([1])

**ترجمه** دسلمه بن صخر بياضي نه روايت دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چي دظهار دکفاري اداء کولو نه مخکي صحبت اوکړي په هغه باندي صرف يوه کفاره ده

[1] _ سنن ابي داود في الطلاق ١٧ (٢٢١٣). سنن ابن ماجه في الطلاق ٢٥ (٢٠٦٢). (تحفة الأشراف: ٤٥٥٥). مسند احمد (٥/ ٤٣٦). سنن الدارمي في الطلاق ٩ (٢٢١٩)

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي او داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي سفيان ثوري، مالك، شافعي، احمد او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول کړي دي. او دبعضي اهل علمو په نزد په داسي کس باندي دوه کفاري اداء کول واجب دي.

****************

١١٩٩_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ أَبَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَدْ ظَاهَرَ مِنَ امْرَأَتِهِ فَوَقَعَ عَلَيْهَا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي قَدْ ظَاهَرْتُ مِنْ زَوْجَتِي فَوَقَعْتُ عَلَيْهَا، قَبْلَ أَنْ أُكَفِّرَ. فَقَالَ: " وَمَا حَمَلَكَ عَلَى ذَلِكَ يَرْحَمُكَ اللهُ "، قَالَ: رَأَيْتُ خَلْخَالَهَا فِي ضَوْءِ الْقَمَرِ، قَالَ: " فَلَا تَقْرَبْهَا حَتَّى تَفْعَلَ مَا أَمَرَكَ اللهُ بِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ.([1])

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهمانه مروي دي چي يو کس دخپلي ښځي سره دظهار کولو نه پس صحبت اوکړو او بيا دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو او عرض يي اوکړو اي دالله رسوله ما دخپلي ښځي سره ظهار کړي دي او دکفاري اداء کولو نه مي مخکي صحبت اوکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله دي په تاباندي رحم اوکړي ته دي کار ته څه څيز مجبوره کړي يي ، رسول الله اوفرمائيل اوس دالله تعالي دحکم (کفاري اداء کولو) پوره کولو نه مخکي ديته ورتلل مه کوه، داحديث حسن صحيح غريب دي

****************

## ٢٠_ باب مَا جَاءَ فِي كَفَّارَةِ الظِّهَارِ

### دظهار دکفاري بيان

١٢٠٠_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَنْبَأَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْخَزَّازُ، أَنْبَأَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَنْبَأَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، أَنْبَأَنَا أَبُو سَلَمَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ، أن سلمان بن صخر الأنصاري أحد بني بياضة، جعل امرأته عليه كظهر أمه، حتى يمضي رمضان، فلما مضى نصف من رمضان وقع عليها ليلا، فَأَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَعْتِقْ رَقَبَةً " قَالَ: لَا أَجِدُهَا، قَالَ: " فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ "، قَالَ: لَا

---

[1] _ سنن ابي داود في الطلاق ١٧ (٢٢٢١، ٢٢٢٢) سنن النسائي في الطلاق ٣٣ (٣٤٨٤)، سنن ابن ماجه في الطلاق ٢٦ (٢٠٦٥).

(تحفة الأشراف: ٦٠٣٦)

أَسْتَطِيعُ، قَالَ: "أَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا"، قَالَ: لَا أَجِدُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِفَرْوَةَ بْنِ عَمْرٍو: "أَعْطِهِ ذَلِكَ الْعَرَقَ وَهُوَ مِكْتَلٌ يَأْخُذُ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا، أَوْ سِتَّةَ عَشَرَ صَاعًا، إِطْعَامَ سِتِّينَ مِسْكِينًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، يُقَالُ: سَلْمَانُ بْنُ صَخْرٍ، وَيُقَالُ: سَلَمَةُ بْنُ صَخْرٍ الْبَيَاضِيُّ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ، عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي كَفَّارَةِ الظِّهَارِ. (1)

**ترجمه** دابوسلمه او محمد بن عبدالرحمن نه روايت دي چي دبنو بياضه قبيلي يو كس سلمان بن صخر انصاري خپلي ښځي ته اووئيل درمضان تيريدو پوري ته په ما باندي زما دمور دشا په شان يي رمضان چي نيم تير شو نو ده صحبت اوكړو او بيا دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او واقعه يي ورته بيان كړه رسول الله اوفرمائيل يو غلام ازاد كړه هغه عرض اوكړو غلام خو نشم ازادولي بيا يي ورته اوفرمائيل دوه مياشتي متواتر روژي اونيسه هغه اووئيل په ما كي ددي طاقت نشته، بيا يي ورته اووئيل شپيته مسكينانو ته خوراك وركړه هغه عرض اوكړو په ما كي ددي طاقت هم نشته رسول الله صلي الله عليه وسلم فروه بن عمرو (دزكوة متولي) ته حكم اوكړو ده ته هغه ټوكرئ وركړه په كوم كي چي شپاړس صاع مال راخي او دشپيته مسكينانو دپاره پوره كيږي داحديث حسن دي او سلمان بن صخر ته سلمه بن صخر بياضي هم وئيلي شي داهل علمو دظهار دكفاري متعلق په دي حديث باندي عمل دي.

**تشريح** : دظهار معني داده چي كوم كس خپلي ښځي ته داسي اووائي چي ته زما دپاره داسي حرامه يي لكه څنګه چي زما دمور شا ده ، دجاهليت په زمانه كي به دا طلاق ګڼړلي كيدل او پدي باندي به دغه ښځه دخپل خاوند په حق كي دهميشه دپاره حراميدله خو شريعت ظهار لره د دائمي حرمت موجب ونه ګرځولو بلكه ديوخاص وخت پوري يي دا ښځه حرامه كړه دكفاري ادا كولو نه پس دظهار والا ښځه حرامه نه پاتي كيږي بلكه دخاوند دپاره حلاليږي.

ظهار دظهر نه مشتق دي (او ظهر په معني د شا دي)

احنافو فقهاؤ پدي كي هر هغه حصه شامله كړي ده دكومي چي بربنډول حرام دي مثلا ورون ، شرمګاه وغيره دظهر په حكم كي شامل دي

او دامام شافعي په نزد خو دخپلي ښځي دبدن دكومي حصي تشبيه دمور دبدن دكومي حصي سره وركول هم دي كوم چي واجب الستر نه وي او كتل ورته دهميشه دپاره جائز وي لكه لاس ، ستركي وغيره دظهار په حكم كي داخل دي، او همدا رنګي ښځي سره دنياګانو سره يادلور

---

[1] ـ سنن ابي داود في الطلاق ١٧(٢٢٢١، ٢٢٢٢) سنن النسائي في الطلاق ٣٣(٣٤٨٧) . سنن ابن ماجه في الطلاق ٢٦(٢٠٦٥).
(تحفة الأشراف : ٦٠٣٦)

سره یادترورپانو سره یا دداسي ښځي سره تشبیه ورکول چي نکاح ورسره دهمیشه دپاره حرام
وي موجب دظهار دي. دامام شافعي په نزد که چري څوك دخپلي ښځي تشبیه دخپلي پی
ورکونکي مور سره یادپلاردښځي سره تشبیه ورکړي نو ظهار به نافذ نه وي ځکه چي دا
حرمت عارضي دي ځکه چي دپی ورکونکي مور یاد پلار دزوجي په وجه پیدا شوي دي. لیکن
دامام ابو حنیفه په نزد دداسي ښځو سره تشبیه ورکول هم موجب دظهار دي ځکه چي ددي
ښځو سره دهمیشه دپاره نکاح حرام ده.
همدا رنګي که چري دخپلي ښځي دکومي غیري معیني حصي یادداسي اندام تشبیه ورکړي
کومه چي دکل بدن قائم مقام وي نو بیابه هم دظهار حکم جاري وي مثلا داسي یي اوونیل زما
دپاره ستا سر یا شرمګاه یا ستا مخ یا ستا غړی یا بدن یا ستا جسم یا ستا روح او نفس یا
ستا نیم بدن یا ستا دبدن دریمه حصه زما دپاره داسي ده لکه زما دمور شا ځکه چي پدي
الفاظو کي داسي دي چي ددي په ونیلو سره پوره شخصیت مراد کیدي شي یا داسي اجزاء
دبدن ذکر کړي کوم چي غیر معین وي نو پدي صورت کي به حکم تمام بدن ته متعدي کیږي
مګر که داسي یي اوونیل چي ستا لاس یا ستا خپه زما دپاره زما دمور دشا پشان ده نو ظهار
به نه واقع کیږي ، دامام شافعي ظاهر قول ددي په خلاف دي
**مسئله**: که چا دښځي تشبیه دمور دشا سره دیوي معیني مودي پوري ورکړي وي او داسي یي
ونیلي وي چي دیوي میاشتي پوري ته زما دپاره زما دمور دشا پشان یي
نو دامام شافعي په نزد په یو روایت کي ظهار نه واقع کیږي بلکه کلام به یي لغوه ګڼړلي شي
لیکن دامام شافعي په بل روایت کي راغلي دي چي ظهار واقع کیږي
دامام ابو حنیفه او احمد رحمهما الله هم دا قول دي ، ددي صورت په بنا که چري دمعیني
مودي پوري یي په یوه میاشت کي دننه دجماع کولو اراده اوکړه نو کفاره ادا کول به وړباندي
لازم وي او که معینه موده همداسي تیره شوه او ښځي ته یي قربت اونکړو نو کفاره به وړباندي
لازمه نه وي
دکفاري دلزوم په صورت کي دامام احمد په نزد دقربت نه مخکي کفاره ادا کول ضروري دي
یعني اول دي کفاره ورکړي او بیادي قربت اوکړي او که داسي اونکړي نو ګنهګار به وو او
کفاره به وړباندي دوباره بیا هم لازمه وي
او دامام ابو حنیفه په نزد خو ګنهګار دي مګر دکفاري اعاده وړباندي نشته مګر په دویم خل
په مقرره موده کي دننه یي دقربت اراده اوکړه نو کفاره ورکول به وړباندي لازم وي او که دغه
معینه موده همداسي تیره شوه نو ښځه به دده دپاره بغیر دکفاري ادا کولو نه حلاله وي او که
چري په معینه موده کي دننه یي بائن طلاق ورکړل نو دکفاري لزوم باقي نه پاتي کیږي.

دامام مالك په نزد د دائمي ظهار حکم لري په يو روايت کي ددي قول نسبت إمام شافعي رحمت الله عليه ته هم شوي دي.

**مسئله** که چري ظهار يي دکوم شرط سره مشروط کړو او بيايي بائن طلاق ورکړو او دطلاق ورکولو نه پس شرط واقع شو (نو طلاق به واقع کيږي) او دظهار حکم به نه وي (کذا قال ابن الهمام).

**مسئله** دامام ابو حنيفه په نزد ظهار دنکاح په شرط صحيح دي مثلا چا کومي اجنبيه ښځي ته اووئيل که چري ما ستاسره نکاح اوکړه نو ته دي زما دپاره داسي يي لکه زما دمور شا نو چي بيا ورسره نکاح اوکړي نو دظهار کفاره به لازميږي، اوکه چري کومي ښځي ته يي اووئيل ته زما دپاره په رجب او رمضان کي داسي يي لکه زما دمور شا او بيايي په رجب کي کفاره ورکړه نو کلفي به وي (په رمضان کي دوباره کفارې ادا کولو ته ضرورت نشته).

**مسئله** که چا ظهار اوکړو او بيا ليوني شو او څه وخت پس يي ليونتوب ختم شو نو ددينه پس به دظهار حکم باقي وي، افاقه دجنون په وجه خپل اصلي حالت ته نه واپس کيږي خوچي ترڅو يي قربت نه وي کړي ليکن دامام شافعي يو قول ددي په خلاف دي.

****************

## ٢١ــ باب مَا جَاءَ فِي الإِيلاَءِ

### دايلاء بيان

١٢٠١ــ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ قَزَعَةَ البَصْرِيُّ، أَنْبَأَنَا مَسْلَمَةُ بْنُ عَلْقَمَةَ، أَنْبَأَنَا دَاوُدُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " آلَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نِسَائِهِ وَحَرَّمَ. فَجَعَلَ الحَرَامَ حَلَالًا. وَجَعَلَ فِي اليَمِينِ كَفَّارَةً ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ أَنَسٍ، وَأَبِي مُوسَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مَسْلَمَةَ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنْ دَاوُدَ. رَوَاهُ عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، وَغَيْرُهُ، عَنْ دَاوُدَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا وَلَيْسَ فِيهِ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ مَسْلَمَةَ بْنِ عَلْقَمَةَ. وَالإِيلَاءُ: هُوَ أَنْ يَحْلِفَ الرَّجُلُ أَنْ لَا يَقْرَبَ امْرَأَتَهُ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ فَأَكْثَرَ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِيهِ إِذَا مَضَتْ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ. وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: إِذَا مَضَتْ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ يُوقَفُ فَإِمَّا أَنْ يَفِيءَ، وَإِمَّا أَنْ يُطَلِّقَ، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ،

وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: إِذَا مَضَتْ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ فَهِيَ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ. وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. (1)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپلو بيبيانو سره ايلاء اوكړو او هغوئ يي پخپل خان باندي حرامي كړي او بيا يي دخپل قسم كفاره اداء كړه او چي كوم څيز يي په خان باندي حرام كړي وو هغه يي حلال كړو. په دي باب كي دابوموسي او انس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي دا حديث مسلمه مسند بيان كړي دي او علي بن مسحر وغيره مرسل بيان كړي دي يعني هغوئ په سند كي دمسروق او عائشي ذكر نه دي كړي بلكه شعبي وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ايلاء كړي ده او مرسل روايت دامام ترمذي په نزد اصح دي، او ايلاء ديته وائي چي يو سړي قسم اوكړي چي دي به دخپلي ښځي سره څلور مياشتي ددينه زيات صحبت نه كوي دعلماؤ په دي كي اختلاف دي چي كله څلور مياشتي تيري شي نو په صحابه كرامو كي بعضي اهل علم وائي قاضي به ددي ښخي خاوند لره راغواړي ياخوبه ښخه خان ته واپس كوي او يا به طلاق وركوي امام مالك او شافعي او احمد او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول كړي دي بعضي صحابه كرام او اهل علم وائي كله چي څلور مياشتي تيري شي نو په دي ښخه به يو بائن طلاق واقع شي او دا دسفيان ثوري او اهل كوفه قول دي.

**تشريح** : قتاده وئيلي دي چي ايلاء داهل جاهليت طلاق وو، سعيد بن المسيب فرماني چي ايلاء دجاهليت په زمانه دضرر وركولو دپاره وو، چي كله به چا دخپلي ښخي سره جماع كول نه غوښتل اونه به ني داخوښوله چي دبل چاسره نكاح وكړي نودا قسم به ني وكړوچي زه به ورته هيڅكله ورنزدي نشم اودابه ني پدي شان سره ساتله چي نه به ني دابښخه وه اونه به ني هغه خاوند وو، داسلام په ابتداء كي تول خلق ددي پابندوو ليكن بياپه اسلام كي ددي دپاره وخت مقررشو

:آلی یولی ايلاءُ قسم خوړل اوپه شريعت كي ايلاء وائي.دڅلورو مياشتو يا ددې نه د زياتې مودې پورې خپلې منكوحې سره د جماع نه كولوقسم خوړل ونيل دي.اوددې حكم په موده دايلاء كي ښخې ته په نزديكت باندې د كفارې لزوم اود ايلاء د مودې تيريدو په صورت كي طلاق بائن واقع كيدل دي.

****************

## ٢٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي اللِّعَانِ

1 _ سنن ابن ماجه في الطلاق ٢٨ (٢٠٨٢) (تحفة الأشراف: ٦٢١٤)

## دلعان بیان

١٢٠٢ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: سُئِلْتُ عَنِ الْمُتَلَاعِنَيْنِ فِي إِمَارَةِ مُصْعَبِ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَيُفَرَّقُ بَيْنَهُمَا؟ فَمَا دَرَيْتُ مَا أَقُولُ: فَقُمْتُ مَكَانِي إِلَى مَنْزِلِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، اسْتَأْذَنْتُ عَلَيْهِ فَقِيلَ لِي: إِنَّهُ قَائِلٌ: فَسَمِعَ كَلَامِي، فَقَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ: ادْخُلْ مَا جَاءَ بِكَ إِلَّا حَاجَةٌ، قَالَ: فَدَخَلْتُ فَإِذَا هُوَ مُفْتَرِشٌ بَرْدَعَةَ رَحْلٍ لَهُ، فَقُلْتُ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُتَلَاعِنَانِ، أَيُفَرَّقُ بَيْنَهُمَا؟، فَقَالَ: سُبْحَانَ اللَّهِ، نَعَمْ إِنَّ أَوَّلَ مَنْ سَأَلَ عَنْ ذَلِكَ فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ، أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ لَوْ أَنَّ أَحَدَنَا رَأَى امْرَأَتَهُ عَلَى فَاحِشَةٍ، كَيْفَ يَصْنَعُ إِنْ تَكَلَّمَ تَكَلَّمَ بِأَمْرٍ عَظِيمٍ، وَإِنْ سَكَتَ سَكَتَ عَلَى أَمْرٍ عَظِيمٍ، قَالَ: فَسَكَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُجِبْهُ، فَلَمَّا كَانَ بَعْدَ ذَلِكَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنَّ الَّذِي سَأَلْتُكَ عَنْهُ قَدِ ابْتُلِيتُ بِهِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ هَذِهِ الْآيَاتِ، الَّتِي فِي سُورَةِ النُّورِ: وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلا أَنْفُسُهُمْ (النور : ٦) ، حَتَّى خَتَمَ الْآيَاتِ فَدَعَا الرَّجُلَ، فَتَلَا الْآيَاتِ عَلَيْهِ، وَوَعَظَهُ، وَذَكَّرَهُ وَأَخْبَرَهُ، أَنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ، فَقَالَ: لَا وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا كَذَبْتُ عَلَيْهَا، ثُمَّ ثَنَّى بِالْمَرْأَةِ فَوَعَظَهَا وَذَكَّرَهَا، وَأَخْبَرَهَا، أَنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ، فَقَالَتْ: لَا وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا صَدَقَ، قَالَ: فَبَدَأَ بِالرَّجُلِ فَشَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ: بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ، وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَةَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ، ثُمَّ ثَنَّى بِالْمَرْأَةِ فَشَهِدَتْ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ: بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ، وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا، إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ ثُمَّ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَحُذَيْفَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. [1]

[1] ـ مسلم في اللعان ١ (١٤٩٣) ، سنن النسائي في الطلاق ٣١ (٣٥٠٣) ، (تحفة الأشراف : ٧٠٥٨) ، مسند احمد (٢ في ١٢) ، سنن الدارمي في النكاح ٣٩ (٢٢٧٥) وأحرجه صحيح البخاري في الطلاق ٢٧ (٥٣٠٦) ، و ٣٢ (٥٣١١) ، و ٣٣ (٥٣١٢) ، و ٢٢ (٥٣١٣، ٥٣١٤) ، و ٣٥ (٥٣١٥) ، و ٥٢ (٥٣٤٩) ، و ٥٣ (٥٣٥٠) ، والفرائض ١٧ (٦٧٤٨) ، صحيح مسلم في اللعان ، سنن ابي داود في الطلاق ٢٧ (٢٢٥٧، ٢٢٥٨، ٢٢٥٩) ، سنن النسائي في الطلاق ٤٢ (٣٥٠٢) ، و ٤٣ (٣٥٠٥) ، و ٤٣ (٣٥٠٥) ، و ٤٤ (٣٥٠٦) ، و ٤٥ (٣٥٠٧) ، سنن ابن ماجه في الطلاق ٢٧ (٢٠٦٦) ، موطا امام مالک في الطلاق ١٣ (٣٥)

**ترجمه** دسعيد بن جبير نه روايت دي چي دمصعب بن زبير دامارت په زمانه کي زما نه د لعان کونکي ښځي او خاوند باره کي تپوس اوکړي شو چي ايا ددوئ دواړو په مينځ کي به جدائي واقع کولي شي او که نه زه نه پوهيږم چي په جواب کي څه اووايم نو زه پاڅيدم او عبدالله بن عمر طرف ته روان شوم هلته چي اورسيدم نو اجازت مي اوغوښتلو په جواب کي راته اووئيلي شول ابن عمر اوس قيلوله (دغرمي ارام) کوي نو ابن عمر دي وخت کي زما خبري واوريدي او ويي فرمائيل اي ابن جبير راشه ته به ضرور دڅه کار دپاره راغلي يي ابن جبير وائي چي زه دننه ورداخل شوم هغه په اوښ باندي دخوررولو څادر دارام کولو دپاره څان ته غوړولي وو او په هغي پروت وو ما اووئيل اي ابو عبدالرحمن ايا د دوه لعان کونکو مينځ کي به تفريق کولي شي ابن عمر اووئيل سبحان الله هو، دټولو نه اول فلاني او فلاني ددي مسئلي تپوس کړي وو او درسول الله په خدمت کي حاضر شوي وو او عرض يي کړي وو اي دالله رسوله که چري په مونږ کي يو کس خپله ښځه په زنا کولو اووينو نو څه به کوو نو که څه وائي نو هم ډير لويه خبره ده او که خاموش پاتي کيږي نو په داسي معامله خاموش پاتي کيدل هم ډير مشکل دي، ابن عمر اوفرمائيل نبي کريم صلي الله عليه وسلم خاموش پاتي شو او سوال کونکي ته يي هيڅ جواب ورنکړو هغه څه موده پس بيا حاضر شو او عرض يي اوکړو اي دالله رسوله دکوم څيز باره کي مي چي ستا نه سوال کړي وو په هم دي کي مبتلا شوي يم نو دي وخت کي دسورة النور ايتونه "والذين يرمون ازواجهم ولم يكن لهم شهداء الا انفسهم" نازل شو نو رسول الله دا سړي راوغوښتلو او دده په وړاندي يي دا ايتونه اولوستل او ده ته يي نصيحت اوکړو او ورته يي اوفرمائيل ددنيا تکليف داخرت دعذاب په مقابل کي هيڅ نه دي هغه عرض اوکړو اي دالله رسوله زما دي په هغه ذات قسم وي چاچي ته دحق سره راليږلي يي ما په دي باندي تهمت نه دي لګولي بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم همدا ايتونه دښځي په وړاندي اولوستل او هغه يي هم په دي شان سره پوهه کړله چي ددنيا عذاب داخرت په مقابل کي ډير اسان دي هغه عرض اوکړو هيڅ کله نه اي دالله رسوله زما دي په هغه ذات قسم وي چاچي ته په حق سره درسول په صفت راليږلي يي دا کس رښتوني نه دي راوي وائي چي بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دسړي نه څلور پيري دقسم سره ګواهي طلب کړه چي زه رښتوني يم او په پنځم خل يي دا اووئيل که چري زه دروغژن يم نو په مادي دالله لعنت وي او ښځي هم داسي څلور پيري په قسم سره ګواهي ورکړه چي دا سړي دروغژن دي او په پنځم خل يي اووئيل که چري دي رښتوني وي نو په ما دي دالله لعنت او غضب وي او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ددواړو په مينځ کي تفريق واقع کړو. په دي باب کي دسهل بن سعد ، ابن

عباس، حذيفه، ابن مسعود رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابن عمر حديث حسن صحيح دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي

*****************

۱۲۰۳ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. أَنْبَأَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: لَاعَنَ رَجُلٌ امْرَأَتَهُ. وَفَرَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا، وَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالأُمِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. (1)

**ترجمه** دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي يو كس د خپلي ښځي سره لعا ن وكړو او رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوئ مينځ كي تفريق راوستلو اود بچي يي(يعني د بچي نسب يي) په مور پوري ملحق كړو

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او د اهل علموورباندي عمل دى

**تشريح** : لعان دباب مفاعلت نه دي.لغوى معنى ئې ده رټل اودرحمت نه لرې كول.اوپه شريعت كي لعان هغه خلورو شهادتونو اولعنت او غضب ته وائى.كوم چي د ښځي اوخاوند په مينځ كي جارى وى.اود مجموعي نوم لعان ددي وجي كيخودې شو.چي په دي كي لعنت مذكور دي.لكه څنګه چي مونځ په ركوع باندې مشتمل دي.ددې وجې د مونځ نوم ركوع كيخودې شو.اوپه تشهد باندې د مشتمل كيدوپه وجه د التحيات نوم تشهد كيخودې شو.نود لعان نوم كيخودل تسمية الكل باسم الجزء د قبيلة څخه دې.

كه څوك سوال وكړي چي لعان نوم ورله ولې كيخودې شو.حالانكه په دې كي خو غضب هم موجود دې.نوددې جواب دا دې.چي لعنت د سړى دطرفه وى.اوغضب د ښځي دطرفه،اوښكاره خبره ده.چي كوم څيزد سړى سره متعلق وى.هغه مقدم وى.نوځكه په نوم كيخودوكي لعنت ته ترجيح وركړې شوه.غضب ته نه،

اود لعان ركن هغه شهادت دې.چي په قسم سره مؤكد وى.اود دې په سبب د سړى په خپله ښځه باندې داسې تهمت لګول چي هغه په پردوكي موجب د حد وى.اوددې شرط قيام د نكاح دې.اوددې حكم د لعان د فارغ كيدو نه پس سمدستى د وطى اواستمتاع حرمت دې.اوزمونږ په نيزد لعان اهل هغه څوك دې.چي هغه د شهادت اهل وى.اودامام شافعى(رح) په نيزهغه څوك دې.چي هغه د يمين اهل وى.

**مسئله** كه څوك پخپله ښځه دزنا تهمت اولګوي يا اووائي چي دا حمل زما نه نه دي او دواړه اهل دلعان هم وي او ښځه دقذف دسزا مطالبه اوكړي نو په خاوند به لعان كول واجب وي

---

1 ـ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ۸۳۲۲)

او که سړي دلعان نه انکار اوکړي نو دامام ابو حنيفه قول دي چي حاکم دي دي لره دهغه وخته پوري په قيد کي اوساتي چي ترڅو يي لعان نه وي کړي او يايي دخپل دروغژن توب اقرار نه وي کړي که چري دخپل ځان د دروغژن توب اقرار اوکړي نو حد دقذف به وربانديجاري کيږي.
دامام مالك او امام شافعي او امام احمدرحمهم الله په نزد په مذکوره صورت کي قيد کول نشته بلکه چي څنګه يي د لعان نه انکار اوکړو نو پده به حد دقذف جاري کيږي ځکه چي قذف دشرعي حد داجرا تقاضا کوي او دلعان صورت خو دخاوند دربنتوني توب ظاهرولو دپاره قائم کړي شوي دي نو کله چي قاذف پخپله دخپل صداقت ظاهرولو نه قاصر شي نو فورا دحد جاري کيدو مستحق ګرځي او دقيد مستحق نه ګرځي
دامام شافعي په نزد دلعان نه په انکار کولو سره فاسق کيږي او دامام مالك په نزد صرف په انکار کولو سره نه فاسق کيږي.
دامام ابو حنيفه دقول دليل دادي چي دلعان نه انکار کول دخپل دروغژن توب اقرار کول دي ليکن پدي کي هيڅ شبهه نشته ،ځکه چي ده صراحتا دکذب اقرار نه دي کړي ، اودشبهي په صورت کي به حد نشي جاري کولي او مجبورا به دي په قيد کي ساتلي شي تردي چي يا خو لعان ته تيار شي او يا لعان اوکړي او ياصراحتا دخپل دروغژن کيدو اقرار اوکړي تردي چي حد دقذف وربانديجاري کړي شي که چري خاوند لعان وکړي نو په ښځه باندي هم لعان کول واجب کيږي او که انکار اوکړي نو حاکم به يي په قيد کي ساتي او تردومره مودي به په قيد کي وي ترڅو لعان کولو ته تياره شوي نه وي او يادا چي دزنا اقرار اوکړي او دخاوند تصديق اوکړي . دامام شافعي په نزد که چري سړي لعان اوکړو نو په سړي او ښځه دواړو کي به جدائي راوستلي شي او دا به په ده باندي دهميشه دپاره حرامه وي او دبچي نسبت به هم ده ته نه کيږي ځکه چي ارشاد نبوي دي دوه لعان کونکي هيڅ کله نشي جمع کيدي مونږ وايو لعان دهغه وخته پوري نه متحقق کيږي چي ترڅو ښځي هم لعان نه وي کړي ،ځکه چي لعان دباب مفاعلي نه دي اوددواړو دشرکت نه بغير دمفاعلي مصدر نه متحقق کيږي نو پدي وجه صرف دخاوند په لعان کولو سره په دوئ کي دتفريق حکم نشي کيدي ترڅو چي دواړو لعان نه وي کړي.

****************

## ٢٣_ بَاب مَا جَاءَ أَيْنَ تَعْتَدُّ الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا

### دخاوند دوفات نه پس به ښځه عدت چرته تيروي

١٢٠٤ـ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، أَنْبَأَنَا مَعْنٌ، أَنْبَأَنَا مَالِكٌ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، عَنْ عَمَّتِهِ زَيْنَبَ بِنْتِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، أَنَّ الفُرَيْعَةَ بِنْتَ مَالِكِ بْنِ سِنَانٍ، وَهِيَ أُخْتُ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، أَخْبَرَتْهَا، أَنَّهَا جَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْأَلُهُ، أَنْ تَرْجِعَ إِلَى أَهْلِهَا فِي بَنِي خُدْرَةَ، وَأَنَّ زَوْجَهَا خَرَجَ فِي طَلَبِ أَعْبُدٍ لَهُ، أَبَقُوا حَتَّى إِذَا كَانَ بِطَرَفِ القَدُومِ، لَحِقَهُمْ فَقَتَلُوهُ. قَالَتْ: فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنْ أَرْجِعَ إِلَى أَهْلِي فَإِنَّ زَوْجِي لَمْ يَتْرُكْ لِي مَسْكَنًا يَمْلِكُهُ، وَلَا نَفَقَةً، قَالَتْ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ"، قَالَتْ: فَانْصَرَفْتُ حَتَّى إِذَا كُنْتُ فِي الحُجْرَةِ، أَوْ فِي المَسْجِدِ نَادَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَوْ أَمَرَ بِي فَنُودِيتُ لَهُ، فَقَالَ: "كَيْفَ قُلْتِ؟" قَالَتْ: فَرَدَدْتُ عَلَيْهِ القِصَّةَ الَّتِي ذَكَرْتُ لَهُ مِنْ شَأْنِ زَوْجِي، قَالَ: "امْكُثِي فِي بَيْتِكِ، حَتَّى يَبْلُغَ الكِتَابُ أَجَلَهُ". قَالَتْ: فَاعْتَدَدْتُ فِيهِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا، قَالَتْ: فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ أَرْسَلَ إِلَيَّ فَسَأَلَنِي عَنْ ذَلِكَ، فَأَخْبَرْتُهُ، فَاتَّبَعَهُ، وَقَضَى بِهِ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، أَنْبَأَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، أَنْبَأَنَا سَعْدُ بْنُ إِسْحَاقَ بْنِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ فَذَكَرَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. لَمْ يَرَوْا لِلْمُعْتَدَّةِ أَنْ تَنْتَقِلَ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا، حَتَّى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَعْتَدَّ حَيْثُ شَاءَتْ، وَإِنْ لَمْ تَعْتَدَّ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ.[1]

**ترجمه**: دزينب بنت كعب بن عجره نه روايت دي فرماني چي فريعه بن مالك بن سنان چي دابوسعيد خدري خور ده ماته خبر راكړي دي فرمائيلي يي دي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضره شوم او تپوس مي ورنه كولو چي زه به خپلي كورني ته بني خدره مقام ته لاړه شم (واقعه داسي شوي وه) ددي خاوند دخپلو غلامانو په لټولو پسي تلي وو كوم چي ورنه تختيدلي وو چي كله يي هغوئ په قدوم علاقه كي رالاندي كړل نو دي غلامانو دي مړ كړو فريعه وائي چي مادرسول الله نه تپوس اوكړو چي زه به خپلي كورني ته لاړه شم ځكه چي زما خاوند خو نه زما دپاره داوسيدو كوم كور پريخودلي دي او نه يي څه خرچه پريخودلي ده؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چنانچه زه واپس روانه شوم تردي پوري چي زه په حجره يا مسجد نبوي كي لاموجود وم چي رسول الله صلي الله عليه وسلم

[1] ـ سنن ابي داود في الطلاق ٤٤ (٢٣٠٠)، سنن النسائي في الطلاق ٦٠ (٣٥٥٨)، سنن ابن ماجه في الطلاق ٨ (٢٠٣١)، موطأ امام مالک في الطلاق ٣١ (٨٧) (تحفة الأشراف: ١٨٠٢٥)، مسند احمد (٦ في ٣٧٠)، سنن الدارمي في الطلاق ١٤ (٢٣٣٣)

راوغوښتلم او بیا یي زما نه تپوس اوکړو تا څه وئیلي وو؟ نو ما هم هغه قصه تکرار کړه، کومه چي مي ورته دخپل خاوند باره کي کړي وه راته یي اوفرمائیل ته هم په دي خپل کور کي اوسیږه تردي پوري چي ستا عدت ختم شي چنانچه ما په همدي کورکي څلورمیاشتي او لس ورځي عدت تیر کړو، بیا چي کله عثمان رضي الله عنه خلیفه شو نو زه یي راوغوښتلم او زما نه یي په دي باره کي تپوس اوکړو نو ما ورته خپل سرګذشت بیان کړو چنانچه هغوئ ددي پیروي اوکړه او هم ددي مطابق یي فیصله اوکړه دمحمد بن بشار نه هم په دي سند باندي ددي هم معني روایت مروي دي
امام ترمذي وائي دا حدیث حسن صحیح دي دصحابه کرامو او اهل علمو کي اکثرو په دي باندي عمل دي دوئ دعدت تیرونکي ښځي دپاره دا درست نه ګڼړي چي دخاوند دکور نه بل چرته منتقل شي چي ترڅو یي عدت پوره شوي نه وي، همدا دسفیان ثوري، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهویه رحمهم الله قول هم دي صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو قول دادي که چري ښځه دخپل خاوند په کور کي علاٍت نه تیروي نو دیته اختیار دي چي چرته یي خوښه وي هلته دي خپل عدت تیر کړي، امام ترمذي وائي دا قول زیات صحیح دي

****************

# كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## داخستلو خرڅولو داحکامو بیان

## ١ـ باب مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الشُّبُهَاتِ

### دشبهاتو پریخودلو بیان

١٢٠٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَنْبَأَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " الحَلَالُ بَيِّنٌ وَالحَرَامُ بَيِّنٌ، وَبَيْنَ ذَلِكَ أُمُورٌ مُشْتَبِهَاتٌ لَا يَدْرِي كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ، أَمِنَ الحَلَالِ هِيَ أَمْ مِنَ الحَرَامِ، فَمَنْ تَرَكَهَا اسْتِبْرَاءً لِدِينِهِ وَعِرْضِهِ، فَقَدْ سَلِمَ، وَمَنْ وَاقَعَ شَيْئًا مِنْهَا يُوشِكُ أَنْ يُوَاقِعَ الحَرَامَ، كَمَا أَنَّهُ مَنْ يَرْعَى حَوْلَ الحِمَى، يُوشِكُ أَنْ يُوَاقِعَهُ، أَلَا وَإِنَّ لِكُلِّ مَلِكٍ حِمًى، أَلَا وَإِنَّ حِمَى اللَّهِ مَحَارِمُهُ ".
حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنِ

النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ. ([1])

**ترجمه** دنعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دى چي مااوريدلي دي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه چي فرمايل يي حلال هم ښكاره دي او حرام هم ښكاره دي او ددي دواړو ترمينځه څه څيزونه مشتبه دي چي ډيرخلق پرى نه پوهيږي نو چاچي دمشتبه څيزونو نه ځان اوساتلو هغه خپل دين او خپل عزت محفوظ كړو او څوك چي مشتبهاتو كي مبتلا شو هغه په حرامو كي مبتلا شو، لكه شپون كه دساتلى شوى ورشو خوا كي مال څروي،نژدي ده چي په حرامو كي واقع شي نو يقيني به ترى څه ځاروي اخوا اوړي (اوجرم كي به يى راځي) خبردار دهر بادشاه څه محفوظ علاقى وي (چي هيڅوك ورننوتو ته نه پريږي) خبردار، دالله تعالي محفوظه علاقه دهغه حرام كړي كارونه دي.

په نورو سندونو هم دنعمان بن بشير نه ددي هم معني روايت مروي دي. امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي دا يو څو راويانو دشعبي نه او شعبي دنعمان بن بشير نه نقل كړي دي.

**لغات** **مشتبهات** اشتبه يشتبه اشتباها د كوم څيز پټ او مشتبه كيدل.استبرا يستبرئ استبراء دقرض يا گناه براءت طلب كول، عرضه، العرض ، عادت، عزت، باعث دفخر جمع يي اعراض راځي. الحمي ، چراه گاه، په كومه كي چي دبل چا ځاروي څرول ممنوع وي.يعني هرهغه څيز چي حفاظت يي شوي وي، ان يرتع. رتع يرتع رتعا ورتوعا ورتاعا في المكان . يعني اقامت كول. په پراخئ سره خوراك كول

استبرأ يستبرئ استبراء دقرض يا گناه نه براءت طلب كول

**تشريح** : **ددي حديث اهميت**

بعضي علماؤ دا حديث ثلث الاسلام گڼلي دي ددوئ په نزد داسلام خلاصه په دري احاديثو كي جمع شوي ده.

اول پورتنى حديث

دويم انما الاعمال بالنيات

دريم من حسن اسلام المرء تركه مالايعنيه

---

[1] _ صحيح البخارى في الإيمان ٣٩ (٥٢) . والبيوع ٢ (٢٠٥١) . صحيح مسلم في المساقاة ٢٠ (البيوع ٢٠) . (١٥٩٩) . سنن ابي داود في البيوع ٣ (٣٣٢٩) سنن النسائي في البيوع ٢ (٤٤٥٨) . سنن ابن ماجه في الفتن ١٤ (٣٩٨٤) . (تحفة الأشراف ١١٦٢٤) . مسند احمد (٤ في ٢٦٧ . ٢٦٩ . ٢٧٠ . ٢٧١ . ٢٧٥) . سنن الدارمى في البيوع ١ (٢٥٧٣)

امام ابو داود په پنځه لاکه احاديثو کي څلور منتخب کړي دي او پخپل کتاب ابو داود کي يي څلور زره اته سوه احاديث جمع کړي دي او ليکلي يي دي چي دانسان دپاره څلور احاديث هم کافي دي

اول انما الاعمال بالنيات.

دويم من حسن اسلام المرء ترکه مالايعنيه

دريم: لايکون المؤمن مؤمنا حتي يرضي لاخيه مايرضي لنفسه

څلورم الحلال بين والحرام بين (پورتنی حديث)

ددي حديث داهميت په بنا محدثين وائي چي يو طرف ته په دي کي په خوراك کي دحلال او حرام څيزونو استعمال بيان شوی دی او ددي سره سره دمشتبهاتو پريخودو حکم هم شوی دی او دا تمامي خبري رسول الله په يو مثال کي بيان کړي دي او بيايي په اخر کي يوضروري کار چي دزړه دحالاتو مراعات کولو او نګراني ده نو په دي باره کي يي هم تاکيد فرمائيلی دی

## حلال او حرام واضح دي

" ان الحلال بين والحرام بين وبينهما مشتبهات لايعلمهن کثير من الناس"

حلال هم واضح دي او حرام هم خو ددي په مينځ کي څه مشتبهات دي کوم چي خلقو ته معلوم نه دي" ددي جملي مطلب ابن حجر داسي ليکلی دی چي ډير څيزونه حلال دي او واضح هم دي او ډير څيزونه حرام دي او واضح هم دي ليکن ددي سره سره ډير څيزونه داسي هم شته چي مشتبهات دي اوبچ کيدل ورنه ضروري دي ځکه که چري دا في نفسه حرام وي خوبنده به ورنه خان اوساتي اوکه في نفسه مباح وي نوبيا هم څه خبره نشته په پريخودو به يي اجر اوثواب ملاويږي.

امام نووي وائي د مشتبهاتو نه مراد هغه څيزونه دي په کوم کي چي دحلت اوحرمت دلائل متعارض وي او ددي پريخودل پکار دي.

کالراعي يرعي حول الحمي يوشك ان يرتع فيه. لکه چي شپونکی دچراګاه چاپيره څاروي څروي نوډيره نزدي ده چي کوم څاروی ورته داخل شي. په سابقه زمانه کي دا رواج وو چي بادشاه او بعضي نورو لويو خلقو به دخان دپاره څه زمکه مخصوص کوله چي سبزياني به يي پکي کرلي که څاروی به ديته راغلو نو سزا به يي ورکوله اود شپونکي سمجداري داده چي خپل څاروي داسي چراګاه ته نزدي پري نږدي ديته به داخل شي ورنه په حرامو کي به واقع شي

الاوان في الجسد مضغة ، يعني خبردار په جسم کي يوه ټکړه ده

په يوبل روايت کي راځي القلب ملك وله جنود اذا صلح الملك صلحت جنوده واذا فسد الملك فسدت جنوده.

يعني دزړه مثال دانجن پشان دي دابه ځنګه ډبې راکاږي نو داسي به دوئ رواني وي.

## د نعمان بن بشير رضي الله عنه حالات:

نوم نعمان كنيه ابو عبدالله او دپلار نوم يي بشير وو نعمان بلند پايه صحابي وو دده مور دعبدالله بن رواحه خور وه دهجرت نه پس په انصارو كي دټولو نه مخكي دده پيدائش شوى وو او بيا شپږمياشتي پس عبدالله بن زبير پيدا شو چي لږ هوښيار شو نو دمنبر نبوي سره به نژدي كيناستو او وعظ نصيحت به يي اوريدلو(مسند احمد).

دهجرت په ۵۹ كال كي امير معايه دكوفي حاكم مقرر كړو او بيا دحمص امير مقرر شو دده په باره كي صاحب دفحري ليكلي دي كان حليما ناسكا يحب العافية. يعني دى ډير صبرناك عابد او عافيت پسند انسان وو

وفات: دهجرت په ۶۵ كال دحمص علاقه بيران نومي كلي كي وفات شو او پدغه وخت كي دابن زبير او مروان جنګ جاري وو په كوم كي چي ده دزبير ملګرتياكړي وه نو په دي وجه دمروان كسانو دى قتل كړو او دده سر يي كټ كړو دده ښځي دده سر پخپله غيږ كي كيښودو او پدغه وخت كي دده عمر ۶۴ كلونه وو (استيعاب).

دده دمروياتو شمير ۱۲۴ دى چي پنځه متفق عليه دي يو په بخاري كي او څلور په مسلم كي

***************

## ۲ــ بَاب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الرِّبَا

## دسود خوړلو بيان

۱۲۰۶ــ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: " لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آكِلَ الرِّبَا، وَمُؤْكِلَهُ، وَشَاهِدَيْهِ وَكَاتِبَهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په سود وركونكي او سود اخستونكي اود سود په معاملي ګواهي كونكو اود سود په ليكونكي باندي لعنت فرمائيلى دى.

---

[1] ــ سنن ابي داود في البيوع ۴ (۳۳۳۳). سنن ابن ماجه في التجارات ۵۸ (۲۲۷۷). (تحفة الأشراف: ۹۳۵۶). مسند احمد (۱/ ۳۹۳، ۴۰۲)

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی او په دي باب کي دعمر اوعلي او جابر او ابو جحيفه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي
يعني په سود رقم ورکونکي اخستونکي ددی اقرار نامی ليکونکي او په دی گواهي ورکوونکي ټولو باندی رسول الله صلي الله عليه وسلم لعنت ونيلی دی اودلعنت معني ده دالله تعالي درحمت نه محروم کيدل او څوك چي دالله تعالي درحمت نه محروم شو ، تباه شو،
**لغات** : لعن؛ يلعن لعنا دفتح نه فلانا معني په چاباندي تهمت لگول ، رسوا کول، کنځل کول، دخير نه لري کول، لعن نفسه يعني پخپل خان باندي لعنت کول . لاعنه لعانا يعني يو په بل باندي لعنت کول لعّنه تلعينا معني عذاب ورکول
**تشريح** : سود په لغت کي زيادت ته ويلي شي او په شرع کي هغه مالي زيادت دي چي دمعاوضي نه بغير حاصل شي.
دسود په گواهانو او ليکونکي باندي هم لعنت دي، خلاصه داده چي په سودي معاملاتو کي معمولي شان تعاون کول هم حرام دي اوموجب دلعنت دي، اود غضب الهي باعث دي، ددي په وجه اقتصادي نظام تباه کيږي ددي په وجه امير امير تر گرځي او غريب غريب تر پاتي کيږي همدا وجه ده چي په قران کريم کي يي سخت مذمت راغلي دي
فان لم تفعلوا فأذنوا بحرب من الله ورسوله: که چري تاسو دسود پريخودو په حکم عمل نه کوئ نو بيا تاسو دالله اودهغه درسول دطرفه دجنگ اعلان واورئ
ديو سوال جواب حکيم الامت وائي بعضي ناکاره خلق دا وائي چي دسود نه بغير نن سبا هيڅ يو کار نشي کيدی، ددي جواب دادی چي دولس سوه کالو پوري سود نه دی اخستلی شوی او دتجربي نه ثابته ده چي هغه دور دډير سکون والا دور وو په خلاف ددیارلسمي صدئ چي په دي کي مسلمانانو سود اخستل شروع کړل ددي سدئ تجربه دا وائي چي په مصيبتونو او پريشانو کي اضافه پيداشوي ده مسلمانان که اوس هم سود پريږدي نو دوباره به يي سکون او اطمينان په نصيب شي.

## دربوي لغوي معني

الربوي في اللغة الزيادة يعني ددي لغوي معني زيادت دی.

## دربوي اصطلاحي تعريف

هو القرض المشروط في الاجل وزيادة مال علي المستقرض: يعني دا هغه قرض دی کوم چي ديوي نيتي پوري په دي شرط سره ورکړی شي چي دقرض اصل مال به سره د زاند سره ادا کوي په قران او حديث کي په ډيرو مقاماتو کي ددي مذمت راغلی دی

**دسود دحرمت عقلي وجوهات**

ددينه علاوه په عقلي طور سره هم په دي کي ډير نقصانات دي مثلا تمام خلق به دسرمايه دارو غلامان جوړ شي او دوئ ته به منافع ورکوي دويم دتمامو څيزونو نرخونو به دسرمايه کار لاس ته ورشي څومره قيمت چي زياتوي هغه هومره به زياتولی شي او يابه دمال خرڅ کم کړي ، دريم په انسانانو کي به دسخاوت جزبه ختمه شي، څلورم په مصيبت وهلي باندي درحم په ځاي دهغه دمصيبت نه به ناجائز فائده اخستل شروع شي، پنځم دسود خورئ په نتيجه کي به دمال حرص دومره زيات شي چي دپاك او دناپاك تميز به ختم شي

**يتخبطه الشيطان من المس** : دشيطان نه مراد جن دی يتخطبه نه مراد سخت مطلب دادی څوك چي سود خوري نو دوئ به دقيامت په ورځ داسي حال کي اوټکولی شي چي شيطان به ليوني کړي وي.

**ذلك بانهم قالوا**: په پورتني ايت کي دسود خوړلو دوه جرمونه بيان شوي دي دسود حرام مال خوړل او سود حلال ګڼړل او داخبره کول چي دا دبيع او شراء پشان دي

****************

## ٣ـ باب مَا جَاءَ فِي التَّغْلِيظِ فِي الْكَذِبِ وَالزُّورِ وَنَحْوِهِ

**په دروغوويلو او دروغ ګواهئ کولو باندي دوعيد بيان**

**١٢٠٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الحَارِثِ، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الكَبَائِرِ، قَالَ: "الشِّرْكُ بِاللَّهِ، وَعُقُوقُ الوَالِدَيْنِ، وَقَتْلُ النَّفْسِ، وَقَوْلُ الزُّورِ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، وَأَيْمَنَ بْنِ خُرَيْمٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.** (١)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دکبيره ګناهونو متعلق فرمانيلي دي دالله تعالي سره شريك مقررول، دمور او پلار نافرماني کول، يو نفس لره په ناحقه وژل، او دروغ خبره کول (دکبائرو نه دي) امام ترمذي واني دانس حديث حسن صحيح

---

١ ـ صحيح البخاري في الشهادات ١٠ (٢٦٥٣) . والأدب ٦ (٦٨٧١) . صحيح مسلم في الإيمان ٣٨ (٨٨) . سنن النسائي في المحاربه (تحريم الدم) ٣ (٤٠١٥) . والقسامة ٣٨ (٤٨٧١) . (التحفه: ١٠٧٧) مسند احمد ٣ في ١٣١، ١٣٤) والمؤلف في تفسير النساء (٣٠١٨)

غريب دي او په دي باب کي دابي بکره، ايمن بن خريم او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح** علماء وايي کبيره گناه دي ته وايي په کومه کي چي په دي لاندينو اوصافو کي کوم وصف موندلی کيږي

اول په کومه گناه چي په قران او حديث کي وعيد راغلی وي

دويم په کومه گناه چي لعنت راغلی وي

دريم په کومه گناه چي حد مقرر وي، مثلا زنا سرقه قذف وغيره

، څلورم په کومه گناه کي چي نقصان زيات وي مثلا کوم فوجي دمسلمانانو راز خور کړي

پنځم صغيره گناه بار بار کول او هغي لره معمولي گڼل

علماء وايي په اعمالو صغيره گناهونه معاف کيږي او دکبيره گناه دپاره توبه ضروري ده دجمهورو علماؤ په دي باندي اتفاق دی دشيخ عبدالحق دهلوي قول دی چي ددينه مراد صغيره گناهونه دي په دليل ددي قول درسول الله صلي الله عليه وسلم "الصلوات الخمس والجمعة الي الجمعة" او همدارنگي دا خبره هم ده که چري په اعمالو سره صغيره او کبيره گناهونه دواړه معاف شي نو بيا خو به دوزخ ته هيڅوك لاړ نشي او يو څه ناڅه عمل خو هر يو سړي کړی وي.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي په روژه کي دروغ خبری اوغلط کارونه نه پريدي نو خوراك څكاك پريښودوته يی دالله تعالي هيڅ حاجت نشته.

أخرجه : البخاري كتاب الصوم باب من لم يدع قول الزور. احمد وابوداود والترمذي وابن حبان والبيهقي.

## په دروغ ويلو د وعيد بيان

قَالَ اللهُ تَعَالَى: ﴿وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ﴾ [الحج: ٣٠].

[او ډه کوی ددروغ وينانه]

امام احمد، ابوداود، ابن ماجه، طبراني او ابن المنذر دخريم بن فاتك نه روايت نقل کړي دي چي رسول الله دسحر مونځ وکړو اود مونځ نه پس ودريدو او وني فرمائيل په دروغه گواهي کول دشرك سره برابر دي اودا کلام يي دري ځلي اعاده کړو او بيا يي ايت کريمه "فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ حُنَفَاءَ لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ" تلاوت کړو

په حديث کي دا گناه په کبائرو کي شميرلي شوي ده او په ډيرو احاديثو کي ددي مذمت بيان

شوي دي

وقال تعالى: ﴿ وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ ﴾ [الفرقان: ٧٢].

[او داهغه کسان دي چي نه حاضرېږي دروغو ته].

**مختصر تشريح**: په دي کي دنيکانو بندګانو دا صفت بيان شو چي هغوئ په داسي مجلسونو کي شرکت نه کوي په کومو کي چي دروغ او دګناه خبري او ريا کاري کيږي. دپورتني ايت متعلق دمجاهد او محمد بن حنفيه بيان دی چي ددينه مراد دګاني بجاني مجلسونه دي دزهري او امام مالك قول دی چي ددينه مراد شراب خاني دي

خلاصه داده چي دالله تعالي نيك بندګان په لغوه او باطل مجلسونو کي شرکت نه کوي، دبعضي مفسرينو په نزد د يشهدون نه مراد ګواهي کول دي ددي تفسير په بنا دايت مطلب دا شو چي دا خلق د دروغو په ګواهئ کي شرکت نه کوي قاضي ثناء الله پاني پتي رحمة الله عليه په دي باره کي بهترين وضاحت کړی دی کوم چي مندرجه ذيل دی.

دعلي بن طلحه په نزد دشهادت الزور نه مراد دخلقو په خلاف په دروغه شهادت کول دي. بغوي دا هم ليکلي دي چي عمر رضي الله عنه فرمائيلي دي په دروغه ګواهي کونکي به څلويښت کوړي وهلي شي او مخ به يي تورولي شي او په بازار کي به ګرځولي شي

ابن ابي شيبه دابو خالد په روايت سره دحجاج نه او هغه دمکحول نه دوليد بيان نقل کړي دي چي عمر رضي الله عنه خپلو هغو عاملانو ته چي په شام کي مقرر وو يو تحرير ليږلي وو چي په دروغه ګواهي کونکي به څلويښت کوړي وهئ او مخ به يي توروئ او سر به يي خروئ او تراوږدي مودي به يي قيد کوئ. عبدالرزاق په مصنف کي دمکحول په سند سره روايت بيان کړي دي چي عمر فاروق رضي الله عنه په دروغه ګواهي کونکي لره څلويښت کوړي سزا ورکړي وه. عبدالرزاق دا هم ليکلي دي چي ماته يحيي بن علاء او هغه ته احوص بن حکيم روايت بيان کړي دي او احوص دخپل پلارنه روايت نقل کړي دي چي عمر فاروق رضي الله عنه په دروغه د شهادت کونکي متعلق حکم کړي وو چي دداسي کس مخ دي تور کړي شي او دده پټکي دي دده په مرئ کي واچولي شي او په ټولو قبيلو کي دي اوګرځولي شي.

دامام مالك. شافعي، ابويوسف او محمد رحمهم الله په نزد به په دروغه ګواهي کونکي ته تعذيري سزا ورکولي شي او دي به دقوم په وړاندي اودرولي شي ددي دپاره چي هغوئ يي اوپيژني چي دي په دروغه ګواهي کونکي دي امام مالك دومره اضافه کړي ده چي په مساجدو او بازارونو کي دي داسي کس حاضر کړي شي، دذکر شوو امامانو قول دي چي په دروغه شهادت کول کبيره ګناه ده لکه چي صحيحينو درسول الله صلي الله عليه وسلم دا فرمان دانس رضي الله عنه نه نقل کړي دي، دبخاري په روايت کي دي چي رسول الله اوفرمائيل ايا زه تاسو ته اوښايم چي په ټولو کي لويه ګناه کومه يوه ده، صحابه کرامو عرض اوکړو اي دالله رسوله

ضرور يي راته اوښايه نو ويي فرمائيل دالله تعالي سره په عبادت کي بل څوك شريكول او بل چالره دهغه په شان ګڼل ، او دپلار نه سرکشي كول ، رسول الله ددي وخته پوري ډډه وهلي وه او ددينه پس فورا كيناستو او ويي فرمائيل واورئ او په دروغه ګواهي كول هم لويه ګناه ده رسول الله صلي الله عليه وسلم په دروغه دګواهئ كولو لفظ دومره پيري بار بار تكرار كړو چي مونږ اوونيل كاش چي رسول الله خاموش شوي وي نو بهتره به وه .

الله تعالي دشرك او د دروغو دګواهئ كولو نه دپرهيز كولو حكم په يوځاي كړي دي او فرمائيلي يي دي

"فاجتنبوا الرجس من الاوثان واجتنبوا قول الزور"

كله چي ددروغو شهادت كبيره ګناه ګرځولي شوي ده او ددي دپاره كومه شرعي سزا مقرر شوي نه ده بلكه پدي كي تعذيري سزا ده دامام ابو حنيفه په نزد دتعذيري سزا دپاره صرف تشهير كافي دي وهل او قيد كول يي جائز نه دي ځكه چي دتعذير مقصد دمجرم منع كول دي او دا مقصد په تشهير سره حاصليږي وهل او قيد كول په زجر او منع كولو كي شدت دي تردي چي دداسي سختي سزا تصور مجرم لره دخپل دروغو دشهادت اقرار او دشهادت نه دواپس كيدو نه منع كول دي اودشهادت دروغژن كيدل بغير ددينه نه ثابتيږي چي مجرم پخپله دخپل شهادت ددروغژن كيدو اقرار وكړي او د وركړي شهادت نه واپس شي لهذا دوركړي شهادت په سزا كي تخفيف پكار دي ، پاتي شو دعمر رضي الله عنه اثر نو هغه يو سياسي حكم وو (يعني كوم جاري قانون نه وو).

دامام ابو حنيفه دقول پشان د قاضي شريح يو قول هم په يوروايت كي راغلي دي چي امام محمد په كتاب الاثار كي بيان كړي دي چي شريح به كله كوم دروغژن ګواه اونيولو او مجرم به څوك بازاري سړي وو نو شريح به خپل قاصد ته حكم اوكړو چي ورشه او بازاريانو ته اووايه چي شريح په تاسو سلام واني او دسلام نه پس هغه دا ونيلي دي چي دا كس مونږ د دروغو په ګواهئ اوليږو لهذا تاسو ورنه پرهيز اوكړئ او كه چري مجرم به په عربو كي دكومي قبيلي نه وو نو ددغه قبيلي مسجد ته به يي قاصد اوليږلو او مذكوره پيغام به يي ددي قاصد په خوله اوليږلو ابن ابي شيبه هم دشريح دا فيصله نقل كړي ده، دابن جريج په نزد دشهادت الزور نه مراد هر قسم دروغ مراد دي صرف شرك نه دئ

بعضي علماؤ د لايشهدون الزور دا مطلب بيان كړي دي چي دوئ د دروغو په محفلونو كي شركت نه كوي يعني دالزور نه مخكي مضاف محذوف دي ، ځكه چي په عبس مجلسونو كي موجود كيدل هم د شركت حكم لري ، ددي تفسير په بنا په عبو قصو ياد شاعرئ په مجلسونو كي شركت كول ناجائز ګرځي، دمجاهد هم دا قول دي ددي مطلب دادي چي دمشركانو اخترونو او ميلو كي دوئ شركت نه كوي

بعضو دالزور نه دنوحه (وير) مجلس مراد كړي دي . او قتاده دعدم شهادت الزور هم دا مطلب بيان كړي دي چي دعبسو اوباطلو خبرو تائيد او اعانت نه كوي .
دمحمد بن حنفيه قول دي چي دلغوه خبرو او سندرو په موقع نه حاضريږي ، دابن مسعود رضي الله عنه بيان دي سندري اوريدل په زړونو كي نفاق لره داسي رازرغونوي لكه ځرنګه چي اوبه فصل لره زرغونوي
بغوي ليكلي دي دزور اصل معني كوم څيز لره ښائسته كول او داصل حالت په خلاف په بل حالت خودل دي، پس دزور معني په باطل باندي داسي تينګيدل تردي چي هغه خلقو ته حق ښكاره شي. زه وايم په لغت كي زور په معني د اوړيدلو دي د حق نه الله تعالي فرمائيلي دي تزاور عن كهفهم يعني نمر ددوئ دغار نه ګرځي . ددي لفظ استعمال دكذب دپاره هم كيږي خكه چي په دروغو كي دحق نه باطل طرف ته ميلان وي او همدا رنګي په هره دروغژنه خبره هم ددي اطلاق كيږي .

**************

## ٤_ باب مَا جَاءَ فِي التُّجَّارِ وَتَسْمِيَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاهُمْ

دتاجرانو ذكر او درسول الله دوئ لره مسمي كولو بيان

١٢٠٨_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نُسَمَّى السَّمَاسِرَةَ، فَقَالَ: " يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ، إِنَّ الشَّيْطَانَ، وَالإِثْمَ، يَحْضُرَانِ الْبَيْعَ فَشُوبُوا بَيْعَكُمْ بِالصَّدَقَةِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، وَرِفَاعَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، رَوَاهُ مَنْصُورٌ، وَالأَعْمَشُ، وَحَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ، وغير واحد، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ، وَلَا نَعْرِفُ لِقَيْسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ هَذَا. حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقِ بْنِ سَلَمَةَ، أَبِي وَائِلٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** قيس بن ابي غرزه رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زمونږ خواته تشريف راوړو او مونږ ته به په دغه وخت كي سماسره (دلال) وئيلي كيدل رسول الله

---

[1] ـ سنن ابي داود في البيوع ا (٣٣٢٦) . سنن النسائي في الأيمان والنذور ٢٢ (٣٨٣١) . والبيوع ٧ (٤٤٧٥) . سنن ابن ماجه في التجارات ٣ (٢١٤٥) . (تحفة الأشراف : ١١١٠٣) . مسند احمد (٤ في ٦ . ٢٨٠)

صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي دتاجرانو ډلي دخريد او فروخت وخت كي اكثر دشيطان او گناه سره مخامخ كيدل واقع كيږي لهذا تاسو خپله سوداگري دصدقي سره يوځاي كوئ.
امام ترمذي وائي دقيس بن ابي غرزه حديث حسن صحيح دي او مونږ ته ددي حديث نه علاوه دقيس كوم بل حديث معلوم نه دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يي نقل كړي وي، مصنف په سند د ابومعاويه عن الاعمش عن شقيق بن سلمه وشقيق هو ابووائل عن قيس بن ابي غرزة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او دسابقه حديث هم معني روايت يي بيان كړي دي داحديث صحيح دي او په دي باب كي دبراء بن عازب او رفاعه نه هم احاديث وارد دي.

****************

١٢٠٩ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "التَّاجِرُ الصَّدُوقُ الأَمِينُ مَعَ النَّبِيِّينَ، وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ، مِنْ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، وَأَبُو حَمْزَةَ اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَابِرٍ وَهُوَ شَيْخٌ بَصْرِيٌّ. (١)

**ترجمه**: دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي رښتوني او امانتدار تاجر به دقيامت په ورځ دانبياء او صديقينو او شهداؤ سره په ملګرتيا كي وي.
امام ترمذي وائي داحديث حسن دي او مونږ ته صرف دثوري په سند رارسيدلي دي او هغه دابوحمزه نه نقل كړي دي او دابو حمزه نوم عبدالله بن جابر دي او هغه دبصري شيخ دي

****************

حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ المُبَارَكِ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. (٢)

**ترجمه**: دابو حمزه نه هم ددي روايت هم معني روايت مروي دي.

****************

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٩٩٣)

[2] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٩٩٣)

١٢١٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمُصَلَّى، فَرَأَى النَّاسَ يَتَبَايَعُونَ، فَقَالَ: "يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ"، فَاسْتَجَابُوا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَفَعُوا أَعْنَاقَهُمْ، وَأَبْصَارَهُمْ إِلَيْهِ، فَقَالَ: "إِنَّ التُّجَّارَ يُبْعَثُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فُجَّارًا إِلَّا مَنِ اتَّقَى اللَّهَ وَبَرَّ، وَصَدَقَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَيُقَالُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ رِفَاعَةَ أَيْضًا. (١)

**ترجمه** درفاعه نه مروي دي فرمائي چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره عيدګاه طرف ته روان شوم خو رسول الله هلته خلق په خريدو فروخت كولو اوليدل نو وبي فرمائيل اي دتاجرانو ډلي نو خلقو درسول الله صلي الله عليه وسلم خبرو ته غوږ كيخودو او درسول الله طرف ته يي خپل څټونه او نظرونه راتاؤو كړل ورته يي اوفرمائيل تاجران به دقيامت په ورځ ګنهګار راپورته كيږي مګر علاوه دهغه چانه څوك چي دالله دويري نيك كارونه كوي او رښتيا وائي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، اسماعيل بن عبيد بن رفاعه ته اسماعيل بن عبيدالله بن رفاعه هم وئيلي شي.

***************

## ٥ـ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ حَلَفَ عَلَى سِلْعَةٍ كَاذِبًا

### په سودا په دروغه دقسم خوړلو بيان

١٢١١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَلِيُّ بْنُ مُدْرِكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا زُرْعَةَ بْنَ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ يُحَدِّثُ، عَنْ خَرَشَةَ بْنِ الْحَرِّ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "ثَلَاثَةٌ لَا يَنْظُرُ اللَّهُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ". قُلْنَا: مَنْ هُمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ فَقَدْ خَابُوا وَخَسِرُوا، فَقَالَ: "الْمَنَّانُ، وَالْمُسْبِلُ إِزَارَهُ، وَالْمُنَفِّقُ

---

[1] ـ سنن ابن ماجه في التجارات ٣ (٢١٤٦)

سِلعَتَهُ بِالحَلِفِ الكَاذِبِ ". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ بْنِ ثَعْلَبَةَ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَمَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دابوذر رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري قسمه خلق داسي دي چاته چي به الله تعلي دقيامت په ورځ درحمت په نظر اونه ګوري او نه به دوئ لره دګناهونو نه پاك كړي او ددوئ دپاره به دردناك عذاب وي مونږ تپوس اوكړو اي دالله رسوله دا څوك دي دوئ خو نقصان او خساره پورته كونكي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چاچي چا سره نيكي كړي وي او هغه ورته بيا رايادوي او زياتل ورته كوي. بل هغه كس دي چي پرتوګ يا لنګ دګيټو نه لاندي ساتي او بل هغه كس دي چي په دروغه قسم په ذريعه خپل سامان رائج كول او خرڅول غواړي

امام ترمذي وائي دابوذر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن مسعود، ابوهريره، ابو امامه بن ثعلبه او عمران بن حصين او معقل بن يساررضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

*****************

## ٦ـ باب مَا جَاءَ فِي التَّبْكِيرِ بِالتِّجَارَةِ

### دتجارت كاروبار دپاره دسحر وختي وتلو بيان

١٢١٢ـ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا يَعْلَى بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ حَدِيدٍ، عَنْ صَخْرٍ الغَامِدِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اللَّهُمَّ بَارِكْ لِأُمَّتِي فِي بُكُورِهَا ". قَالَ: وَكَانَ إِذَا بَعَثَ سَرِيَّةً، أَوْ جَيْشًا بَعَثَهُمْ أَوَّلَ النَّهَارِ، وَكَانَ صَخْرٌ رَجُلًا تَاجِرًا، وَكَانَ إِذَا بَعَثَ تِجَارَةً بَعَثَهُمْ أَوَّلَ النَّهَارِ، فَأَثْرَى، وَكَثُرَ مَالُهُ. قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَبُرَيْدَةَ، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ صَخْرٍ الغَامِدِيِّ حَدِيثٌ

---

[1] ـ صحيح مسلم في الإيمان ٤٦ (١٠٦). سنن ابي داود في اللباس ٢٨ (٤٠٨٧). سنن النسائي في الزكاة ٦٩ (٢٥٦٤)، والبيوع ٥ (٤٤٦٣)، والزينة ١٠٤ (٥٣٣٥). سنن ابن ماجه في التجارات ٣٠ (٢٢٠٨). (تحفة الأشراف: ١١٩٠٩). مسند احمد (٥/ ١٤٨، ١٥٨، ١٦٢، ١٦٨، ١٧٨)

حَسَنٌ، وَلَا نَعْرِفُ لِصَخْرٍ الغَامِدِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ هَذَا الحَدِيثِ. وَقَدْ رَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ هَذَا الحَدِيثَ. ([1])

**ترجمه** : دصخر غامدي رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اي الله زما امت ته د دوئ د ورځي په ابتدائي حصه کي برکت ورکړي، دصخر بيان دي کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم کومه سريه يا لښکر ليږلو نو دوئ به يي دورځي په ابتدائي حصه کي رخصتول، او صخر يوتاجر سړي وو کله چي به هغه دخپلي سودا سره خپل کسان ليږل نو هغوئ به يي دورځي په ابتدائي حصه٠کي رخصتول تردي چي صخر مالدار شو او دولت يي زيات شو.

امام ترمذي وائي دصخر غامدي حديث حسن دي او مونږ ته ددي حديث نه علاوه دصخر غامدي کوم بل حديث معلوم نه دي چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه يي نقل کړي وي، او په دي باب کي دعلي، ابن مسعود، بريده، انس، ابن عمر، ابن عباس، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

*****************

## ٧ـ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي الشِّرَاءِ إِلَى أَجَلٍ

### دکومي نيتي په وعده دکوم څيز داخستلو داجازت بيان

١٢١٣ـ حَدَّثَنَا أَبُو حَفْصٍ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، أَخْبَرَنَا عُمَارَةُ بْنُ أَبِي حَفْصَةَ، أَخْبَرَنَا عِكْرِمَةُ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَوْبَانِ قِطْرِيَّانِ غَلِيظَانِ، فَكَانَ إِذَا قَعَدَ فَعَرِقَ ثَقُلَا عَلَيْهِ، فَقَدِمَ بَزٌّ مِنَ الشَّامِ لِفُلَانٍ اليَهُودِيِّ، فَقُلْتُ: لَوْ بَعَثْتَ إِلَيْهِ، فَاشْتَرَيْتَ مِنْهُ ثَوْبَيْنِ إِلَى المَيْسَرَةِ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: قَدْ عَلِمْتُ مَا يُرِيدُ إِنَّمَا يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِمَالِي، أَوْ بِدَرَاهِمِي، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَذَبَ قَدْ عَلِمَ أَنِّي مِنْ أَتْقَاهُمْ لِلَّهِ، وَآدَاهُمْ لِلأَمَانَةِ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَنَسٍ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ أَيْضًا، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ أَبِي حَفْصَةَ، قَالَ: وسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ فِرَاسٍ البَصْرِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا دَاوُدَ الطَّيَالِسِيَّ، يَقُولُ: سُئِلَ شُعْبَةُ يَوْمًا، عَنْ

---

[1] ـ سنن ابي داود في الجهاد ٨٥ (٢٦٠٦) . سنن ابن ماجه في التجارات ٤١ (٢٢٣٦) (تحفة الأشراف : ٤٨٥٢) . مسند احمد (٣ في ٤١٦، ٤١٧، ٤٣٢) . و (٤ في ٣٨٤، ٣٩٠، ٣٩١) . سنن الدارمي في السير ١ (٢٤٧٩)

هَذَا الحَدِيثِ فَقَالَ: لَسْتُ أُحَدِّثُكُمْ حَتَّى تَقُومُوا إِلَى حَرَمِيِّ بْنِ عُمَارَةَ بْنِ أَبِي حَفْصَةَ. فَتُقَبِّلُوا رَأْسَهُ، قَالَ: وَحَرَمِيٌّ فِي القَوْمِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: أَيْ إِعْجَابًا بِهَذَا الحَدِيثِ. (1)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په جسم مبارك دقتر جوړي دوه جامي وي كله چي به كيناستلو او خوله به وربانډي راغله نو دا به وربانډي درني شوي نو دشام نه فلاني فلاني يهودي دكاروبار دپاره جامي راوړلي نو ما عرض اوكړو كاش چي تا دوئ ته څوك ورليږلي وي او ددوئ نه دي دوه جامي دهغه وخت په وعده اخستلي وي كله چي مونږ سره ګنجائش پيداشي نو قيمت به يي ورکړو. رسول الله صلي الله عليه وسلم هغوئ ته يو كس وروليږلو كه چري هغوئ غواړي او خوښه يي وي (نو مونږ ته دي په نيته سودا راكړي) مګر هغوئ دا خيال اوكړو او ددينه اوويريدل چي دي زما مال او يا زما دراهم خوړل غواړي ، رسول الله اوفرمائيل هغه دروغژن دي هغه ته معلومه ده چي زه په خلقو كي دهر چا نه زيات دالله نه ويريدونكي او دهر چانه زيات دامانت اداء كونكي يم

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن غريب صحيح دي دا حديث شعبه هم دعماره بن ابي حفصه نه نقل كړي دي،دمحمد بن فراس بصري نه مي اوريدلي دي فرمائيل يي چي ابو داود طيالسي وائي يوه ورځ مي دشعبه نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړي شو نو هغه اوونيل دا درته هغه وخته پوري نشم بيانولي څو پوري چي تاسو پاڅيدلي نه يئ او د حرمي بن عماره بن ابي حفصه سر مو ښكل كړي نه وي حرمي په قوم كي موجود وو، امام ترمذي وائي دايي ددي حديث نه دتعجب كولو په بنياد اوونيل

**تشريح:** عروه رضي الله عنه دام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها دا وينا نقل كوي چي هغى به وئيل، په الله قسم! اى خوريه، په مونږ به دوه مياشتي دري مياشتي تيري شوي او د رسول الله صلي الله عليه وسلم په كورونو كي به اور بل نه شو ما عرض اوكړو چي اى خما تروري ! بيا به موګذاره په څه كيدله؟ وبى فرمائيل په كهجورو او اوبو باندي، البته داسى به ضرور كيدل چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم انصار ګاونډيان وو چي دپيو والا څاروي ورسره وو. هغوي به د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي پئ دهديى په طور راليږل نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ باندي هم څكول (مطلب دا چي رسول الله صلي الله عليه وسلم او دهغوي دكور خلقو ټول ژوند په احتياج او فقر كي تير كړو.

أخرجه : البخاري في كتاب الهبة وكتاب الرقاق باب كيف كان عيش النبي صلى الله عليه وسلم واصحابه ومسلم في اوائل كتاب الزهد والرقاق. وابن حبان.

1 ــ سنن النسائى كتاب البيوع ٤٠ (٤٦٢٢). مسند احمد (٦ ـ ١٤٧) (تحفة الأشراف : ١٤٢٠)

دامام غزالي قول دی په يو حديث کي راغلي دي څوك چي په دنيا کي دخوراك او څښاك مقدار کم ساتي نو الله تعالي ورباندي دفرشتو په وړاندي فخر کوي او ارشاد فرمائي زما بنده ته اوګورئ چي ما دخوراك او څښاك په کمي مبتلا کړی دی مګر دی صبر کوي تاسو ګواه شئ کومه لقمه چي ده دخپل خوراك نه کمه کړي ده دهغي په بدله کي به ورته دجنت درجي ورکوم په يو حديث کي راځي چي اکثر وخت به رسول الله صلي الله عليه وسلم په ولږه وخت تيرولو يعني داسي به هم کيدل چي خوراك به موجود هم وو خو ددي باوجود به يي کم خوراك کولو ددي وجه دا وه چي په ولږي تيرولو سره انسان ته انوار په کثرت سره ورکولی شي سليمان عليه السلام به وئيل چي ولږه دلله يوه داسي خزانه ده کومه چي خپلو دوستانو ته ورکوي.

****************

١٢١٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، وَعُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِرْعُهُ مَرْهُونَةٌ بِعِشْرِينَ صَاعًا مِنْ طَعَامٍ، أَخَذَهُ لِأَهْلِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حال کي وفات شو چي زغره يي په شل صاع غله باندي ګرو کړي شوي وه او دا غله يي دخپل کور د خلقو دخوراك دپاره اخستلي وه، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**په ثمن مؤجل بيعه کول**

**د اعيان اقسام:** د اعيان دري قسمونه دی،(١) نقود، يعنی درهم او دنانير (٢) څاروی اوکور وغيره (٢) مقدرات، لکه مکيلات، موزونات، او عدديات متقاربه که د غيرنقدينو بيع د نقدينو په عوض کي وی،نودا بيع په " مبيع محض " او په " ثمن محض " باندې مشتمل ده يعنی په دې کي د نقدينو ثمن کيدل اود غيرنقدينو مبيع کيدل متعين دی اوددې نه علاوه په باقی نورو صورتونوکي هر يو عوض ثمن هم کيدلې شی اوبيع هم کيدلې شی،خو په لفظونوکي به په دخول د " باء " او په عدم دخول د " باء " سره فرق کولې شی يعنی په کوم عوض باندې چي " باء " داخله شی،هغې ته به ثمن وائی اوديم ته به عوض د مبيع وئيلې شی،

[1] ـ سنن النسائي كتاب البيوع ٨٣ (٤٦٥٥)، (تحفة الأشراف : ٦٢٢٨)، سنن الدارمي كتاب البيوع ٤٣ (٢٦٢٣)، مسند احمد (١كتاب ٢٣٦، ٣٦١)، و سنن ابن ماجه كتاب الرهون ١ (٢٤٣٩)، مسند احمد (١ـ٣٠٠)

اوس بيع په نقدو او قرضو دواړه شان جائز ده،په دې شرط چې د قرضو موده معلومه وی که د قرضو موده معلومه نه وی نو بيع به فاسد وی،دليل(١) دادې چې الله تعالى واحل الله البيع مطلق فرمائيلی دی يعنی بيع مطلقا حلال ده.ثمن که نقد وی. او که چرې قرض وی،په دې آيت کې دواړه داخل دی، دويم دليل د رسول اللهﷺ حديث دې،حديث دادې چې رسول اکرم ﷺ د ابوشحم نومې يهودی نه څه غله د يوې مودې په وعده باندې قرض واخستله اوخپله زغره ئې دده سره رهن کيخودله .اود بخاری په حديث کې د (( ثلاثين صاعاً من شعير )) لفظ دې يعنی نبی کريم ﷺ ديرش صاع اوربشې واخستلې،د ذکر شوی آيت او روايت نه معلوميږی چې بيع څنګه په نقدو جائز ده،دغه شان په قرضو هم جائز ده.خود قرضو موده او وخت معلومول ضروری دی څکه چې د مودې مجهول کيدل. د ثمن سپارلو نه مانع دی،حالانکه د ثمن سپارل د عقد بيع په وجه واجب شوې دې اود سپارلو نه په دې وجه مانع دې چې بائع به په نزدې موده کې د ثمن مطالبه کوی اومشتری به په لرې مودد کې د ورکولو کوشش کوی نو په دې وجه به جګړه پيدا شی اوکوم جهالت چې جګړه پيدا کړی چې دا د بيع د جواز دپاره مانع دې،په دې وجه د مودې مجهول کيدل به د بيع د جواز دپاره مانع وي.

*****************

١٢١٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ هِشَامٍ الدَّسْتُوَائِيِّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ. ح قَالَ مُحَمَّدٌ: وَحَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: مَشَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخُبْزِ شَعِيرٍ، وَإِهَالَةٍ سَنِخَةٍ، وَلَقَدْ رُهِنَ لَهُ دِرْعٌ، عِنْدَ يَهُودِيٍّ بِعِشْرِينَ صَاعًا مِنْ طَعَامٍ، أَخَذَهُ لِأَهْلِهِ، وَلَقَدْ سَمِعْتُهُ ذَاتَ يَوْمٍ يَقُولُ: "مَا أَمْسَى فِي آلِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاعُ تَمْرٍ، وَلَا صَاعُ حَبٍّ، وَإِنَّ عِنْدَهُ يَوْمَئِذٍ لَتِسْعَ نِسْوَةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(١)

**ترجمه** . دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يوه ورځ مي داوربشو دوډۍ او زړه ترکاري راواخستله او دنبي کريم صلي الله عليه وسلم کور ته ورغلم او يقينا دهغه زغره ديو يهودي سره په شل صاع طعام باندي ګرو کړي شوي وه چي هغه يي دخپل اهل دپاره اخستلي وه او يقينا ما ورنه يوه ورځ اوريدلي وو چي فرمائيل يي قتاده وائي ما يوه ورځ دانس رضي

١ ــ صحيح البخاری كتاب البيوع ١٤ (٢٠٦٩) ، والرهون ١ (٢٥٠٨) . سنن ابن ماجه كتاب الرهون ١ (الأحكام ٦٢) . (٢٤٣٧) . (تحفة الأشراف : ١٣٥٥)

الله عنه نه واوريدل چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دكورنۍ سره يو صاع كجوري يا دمانبام دپاره يو صاع غله نه وه او دا دهغه وخت خبره ده كله چي دهغه نهه بيبياني وي، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : د رسول الله د كور معاشي حالت بخاري او مسلم د عائشي رضي الله عنها نه داسي نقل كړى دى:

عن عائشة رضي الله عنها ، قالت : مَاشَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ ﷺ مِنْ خُبْزِ شَعِيرٍ يَوْمَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ حَتَّى قُبِضَ.

وفي رواية : مَاشَبِعَ آلُ محَمَّدٍ ﷺ مُنْذُ قَدِمَ المَدِينَةَ مِنْ طَعَامِ البُرِّ ثَلَاثَ لَيَالٍ تِبَاعاً حَتَّى قُبِضَ.

ام المومنين عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم تروفاته پورى دوه ورځى پرله پسې داسې نه دي تيرى شوى چي دهغوۍ دكور خلقو پكي داوربشو روټۍ په مړه خيټه خوړلى وي (بخاري ومسلم) او په يو روايت كي دي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني منوري ته دتشريف راوړلو نه پس تروفاته پور ى دهغوي دكور خلقو درى شپې متواتر دغنمو ډوډۍ هيڅكله په مړه خيټه نه ده خوړلى

"يومين متتابعين" يعني دوه ورځي مسلسل نبي كريم صلي الله عليه وسلم او دهغه دكورنۍ دا معمول وو چي كه يوه ورځ خوراك به يي اوكړو نو دويمه ورځ به يي نهره تيروله او دا شان زندګي تيرول دهغوۍ دپاره اختياري وو ورنه هغه ته دالله تعالي دطرفه دټولي دنيا دخزانو او دمكي دغرونو دسرو زرو ګرځولو پيشكش شوى وو، ددي په مقابله كي رسول الله صلي الله عليه وسلم فقر او تنګدستي خوښه كړه او وېې فرمائيل زه خو دا غواړم چي يوه ورځ موړ يم او يوه ورځ نهر او هر وخت دالله تعالي شكر ادا كړم او كله چي نهر يم نو په هغه ورځ صبر اوكړم.

حتي قبض، تردي پوري چي ددنيا نه رخصت شو بعضي خلقو خو دا وئيلي دي چي رسول الله په اخري زمانه كي غني شوى وو نو په پورتني حديث كي ددي ترديد هم اوشو چي دمرګه پوري يي وخت په ولږه او فقر كي تير كړى وو.

مګر دومره خبره ضرور ده چي دنبوت په اخري زمانه كي دفتوحاتو دسلسلي په وجه دغنميت مالونه به دربار نبوت ته ډير راتلل ليكن دا خبره هم درواياتِ صحيحه نه ثابته ده چي دا مالونه به رسول الله په خلقو تقسيمول او ددينه به يي دخان سره هيڅ نه ساتل.

رسول الله صلي الله عليه وسلم په فقيرانه زندګۍ كي دغريبانانو دپاره دتسلۍ ډير انتظام دى پدي كي د اميرانو دپاره هم سبق دى چي په خپلو حاجاتو به مسكينانو ته ترجيح وركوي.

**************

## ٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كِتَابَةِ الشُّرُوطِ

## دسوداګرئ دکاروبار دشرائطو ليکلو بيان

١٢١٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، أَخْبَرَنَا عَبَّادُ بْنُ لَيْثٍ صَاحِبُ الْكَرَابِيسِيِّ الْبَصْرِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَجِيدِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: قَالَ لِي الْعَدَّاءُ بْنُ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ: أَلَا أُقْرِئُكَ كِتَابًا كَتَبَهُ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قُلْتُ: بَلَى فَأَخْرَجَ لِي كِتَابًا " هَذَا مَا اشْتَرَى الْعَدَّاءُ بْنُ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ، مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرَى مِنْهُ عَبْدًا، أَوْ أَمَةً، لَا دَاءَ، وَلَا غَائِلَةَ، وَلَا خِبْثَةَ بَيْعَ الْمُسْلِمِ الْمُسْلِمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبَّادِ بْنِ لَيْثٍ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ هَذَا الْحَدِيثَ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْحَدِيثِ. ([1])

**ترجمه** دعبد المجيد بن وهب نه مروي دي چي ماته عداء بن خالد بن هوذه روايت بيان کړو چي زه تاته يو تحرير وانوروم کوم چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زما دپاره ليکلي دي؟ ما اووئيل ولي نه ضرور يي راته بيان کړه بيا هغه يو خط راوويستلو اودا پکي ليکلي شوي دي، دا ديو داسي څيز بيع نامه ده کوم چي عداء بن خالد بن هوذه دمحمد (صلي الله عليه وسلم) نه اخستلي دي هغوئ درسول الله نه دغلام يا وينځي خريداري په دي شرط کړي وه چي نه به په دي کي کومه بيماري وي او نه به تختيدونکي وي او نه به دحرام مال نه وي، دا ديو مسلمان نه ديل مسلمان اخستل دي

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي دا مونږ ته صرف دعباد بن ليث په سند رارسيدلي دي او دهغه نه دا حديث متعددو محدثينو نقل کړي دي.

****************

## ٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمِكْيَالِ وَالْمِيزَانِ

### دناپ اوتول بيان

١٢١٧_ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَعْقُوبَ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِ الْمِكْيَالِ وَالْمِيزَانِ: " إِنَّكُمْ قَدْ وُلِّيتُمْ أَمْرَيْنِ هَلَكَتْ فِيهِ الْأُمَمُ السَّالِفَةُ قَبْلَكُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا

[1] _ صحيح البخاري کتاب البيوع ١٩ (تعليقاً في الترجمة) سنن ابن ماجه کتاب التجارات ٤٧ (٢٢٥١) (تحفة الأشراف: ٩٨٤٨)

حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا، مِنْ حَدِيثِ حُسَيْنِ بْنِ قَيْسٍ، وَحُسَيْنُ بْنُ قَيْسٍ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا بِإِسْنَادٍ صَحِيحٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَوْقُوفًا. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ناپ كونكو او تول كونكو ته اوفرمائيل تاسو ته داسي دوه كارونه سپارلي شوي دي په كوم چي ستاسو نه مخكني تير شوي امتونه هلاك شوي دي

امام ترمذي وائي داحديث مونږ ته صرف دحسين بن قيس په سند مرفوع رارسيدلي دي حسين بن قيس دمحدثينو په نزد ضعيف دي دارنګي داحديث په دي سند باندي دابن عباس نه موقوفاً هم مروي دي

***************

## ١٠ــ باب مَا جَاءَ فِي بَيْعِ مَنْ يَزِيدُ

## دبيع من يزيد ( نيلامي ) بيان

١٢١٨ــ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ شُمَيْطِ بْنِ عَجْلَانَ، حَدَّثَنَا الأَخْضَرُ بْنُ عَجْلَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ الْحَنَفِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَاعَ حِلْسًا وَقَدَحًا، وَقَالَ: " مَنْ يَشْتَرِي هَذَا الْحِلْسَ وَالْقَدَحَ ". فَقَالَ رَجُلٌ: أَخَذْتُهُمَا بِدِرْهَمٍ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ ". فَأَعْطَاهُ رَجُلٌ دِرْهَمَيْنِ فَبَاعَهُمَا مِنْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الأَخْضَرِ بْنِ عَجْلَانَ. وَعَبْدُ اللَّهِ الْحَنَفِيُّ الَّذِي رَوَى عَنْ أَنَسٍ هُوَ أَبُو بَكْرٍ الْحَنَفِيُّ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ لَمْ يَرَوْا بَأْسًا بِبَيْعِ مَنْ يَزِيدُ فِي الْغَنَائِمِ، وَالْمَوَارِيثِ. وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، مِنْ كِبَارِ النَّاسِ، عَنِ الأَخْضَرِ بْنِ عَجْلَانَ. [2]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا ټاټ كوم چي به دكجاوي دلاندي غوړولي شو او دا پياله به څوك واخلي يو كس عرض اوكړو زه يي په يو درهم اخستلي شم رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ديو درهم نه يي په زياتو

---

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦٠٢٦)

[2] ــ سنن ابي داود كتاب الزكاة ٢٦ (١٦٤١) . سنن النسائي كتاب البيوع ٢٢ (٤٥١٢) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٢٥ (٢١٩٨) . مسند احمد (٣ـ١٠٠)

څوك اخلي؟ بل كس رسول الله ته دوه درهم وركړل بو رسول الله په هم هغه باندي دا دواړو ځيزونه خرڅ كړل

امام ترمذي واني داحديث حسن دي دا مونږ ته صرف داخضر بن عجلان په سند رارسيدلي دي او عبدالله حنفي چاچي دانس نه نقل دروايت كړي دي هغه ابوبكر حنفي دي، دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي ددوئ په نزد دغنيمت او دميراث سامان په زيات قيمت وركونكي باندي په خرڅولو كي څه قباحت نه ويني، داحديث دمعتمر بن سليمان او بعضي نورو لويو محدثينو هم داخضر بن عجلان نه نقل كړي دي.

***************

## ١١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي بَيْعِ الْمُدَبَّرِ

### دمدبر غلام دخرڅولو بيان

١٢١٩ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ. عَنْ جَابِرٍ. أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ دَبَّرَ غُلَامًا لَهُ فَمَاتَ، وَلَمْ يَتْرُكْ مَالًا غَيْرَهُ فَبَاعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاشْتَرَاهُ نُعَيْمُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ النَّحَّامِ. قَالَ جَابِرٌ: عَبْدًا قِبْطِيًّا مَاتَ عَامَ الْأَوَّلِ فِي إِمَارَةِ ابْنِ الزُّبَيْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَرُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. لَمْ يَرَوْا بِبَيْعِ الْمُدَبَّرِ بَأْسًا وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَكَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ بَيْعَ الْمُدَبَّرِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكٍ، وَالْأَوْزَاعِيِّ. (1)

**ترجمه**. دجابر رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي په انصارو كي يو كس خپل غلام مدبر كړو (يعني غلام به دده دمرګ نه پس ازاد وي)، او بيا مالك مړ شو او ددي غلام نه علاوه ددي مالك كوم بل وارث نه وو نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم دي خرڅ كړو او نعيم بن عبدالله بن نحام واخستلو دجابر رضي الله عنه بيان دي چي دا يو قبطي غلام وو دعبدالله بن زبير دامارت نه مخكي كال باندي وفات شو.

امام ترمذي واني داحديث حسن صحيح دي او دا دجابر بن عبدالله نه په نورو سندونو هم مروي دي په صحابه كرامو وغيره خلقو كي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ

---

1 ـ سنن ابي داود كتاب البيوع ١١٠ (٣٢٢١). صحيح مسلم كتاب الأيمان والنذور ١٣ (٩٩٧). سنن ابن ماجه كتاب العتق ١ (الأحكام ٩٢). (٢٥١٣) (تحفة الأشراف: ٢٥٢٦)

دمدبر په خرڅولو کي هيڅ قباحت نه ويني، او همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي بعضو دمدبر خرڅول مکروه ګڼرلي دي او دا دسفيان ثوري او دامام مالك اوزاعي رحمهم الله قول هم دي.

***************

## ١٢_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ تَلَقِّي الْبُيُوعِ

**دمال خرڅونکو سره بازارته درارسيدو نه مخکي په لاره کي دملاويدو دکراهت بيان**

١٢٢٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ: " نَهَى عَنْ تَلَقِّي الْبُيُوعِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَرَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم بازارته درارسيدو نه مخکي په لاره کي دسوداګرو سره دملاويدو نه منع فرمائيلي ده
امام ترمذي وائي په دي باب کي دعلي، ابن عباس، ابوهريره، ابوسعيد خدري، ابن عمر، او ديو بل صحابي رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

***************

١٢٢١_ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَهَى أَنْ يُتَلَقَّى الْجَلَبُ، فَإِنْ تَلَقَّاهُ إِنْسَانٌ فَابْتَاعَهُ فَصَاحِبُ السِّلْعَةِ فِيهَا بِالْخِيَارِ إِذَا وَرَدَ السُّوقَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، مِنْ حَدِيثِ أَيُّوبَ، وَحَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ تَلَقِّي الْبُيُوعِ، وَهُوَ ضَرْبٌ مِنَ الْخَدِيعَةِ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ وَغَيْرِهِ، مِنْ أَصْحَابِنَا. ([2])

---

[1] _ صحيح البخاري كتاب البيوع ٦٤ (٢١٤٩)، و٧١ (٢١٦٤)، صحيح مسلم كتاب البيوع ٥ (١٥١٨)، سنن ابن ماجه كتاب التجارات ١٦ (٢١٨٠)، مسند احمد (١_ ٤٣٠) (تحفة الأشراف ٩٣٧٧)

[2] _ سنن ابي داود كتاب البيوع ٤٥ (٣٤٣٧)، (تحفة الأشراف: ١٤٤٤٨) و صحيح مسلم كتاب البيوع ٥ (١٥١٩)، سنن النسائي كتاب البيوع ١٨ (٤٥٠٥)، سنن ابن ماجه كتاب التجارات ١٦ (٢١٧٩)، مسند احمد (٢_ ٢٨٤، ٤٠٣، ٤٨٨)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم بازار ته درارسيدو نه مخكي په لاره كي دسوداگرو سره دملاويدو نه منع فرمائيلي ده.او كه څوك ورسره ملاؤ شو او سودا يي اوكړه نو دمال مالك ته به بازار ته دِرسيدو پوري اختيار دي (كه خوښه يي وي نو دا څيز دي وربانديي خرڅ كړي او كه خوښه يي وي نو نه دي خرڅوي).
امام ترمذي وائي دا حديث دايوب په روايت حسن غريب دي او دابن مسعود په روايت حسن صحيح دي، په اهل علمو كي يو جماعت دسوداگرو سره بازار ته درسيدو نه مخكي ملاويدل او خريداري كول ناجائز گنړلي دي ځكه چي دا د دهوكي يو قسم دي او زمونږ په فقهاؤ كي دامام شافعي وغيره هم دا قول دي

**************

## ١٣_ بَاب مَا جَاءَ لَا يَبِيعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ

### دښار اوسيدونكي دي دبهر نه راتلونكي با ندچي دپاره سودا نه كوي

١٢٢٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَقَالَ قُتَيْبَةُ: يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَبِيعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ طَلْحَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَكِيمِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ، وَعَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيِّ جَدِّ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَرَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ دى نه منع كړي يرو چي يو شهري سړى دباندچي دپاره څه څيز خرڅ كړي.
امام ترمذي وائي په دي باب كي دطلحه، جابر، انس، ابن عباس، ابويزيد، كثير بن عبدالله نيكه عمرو بن عوف، مزني، او يو بل صحابي رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**لغات** : نهي ينهي نهيا معني منع كول مذكرصفت يي ناه راځي او مونث يي ناهية راځي.

**تشريح** : "دښار اوسيدونكى به دباندچي دپاره سودانه كوي" ددي مطلب دادى كه دښار

[1] _ البخارى كتاب البيوع ٥٨ (٢١٣٠) . و مسلم كتاب النكاح ٦ (١٤١٣) . والبيوع ٦ (١٥٢٠) . سنن النسائى كتاب النكاح ٢٠ (٣٢٤١) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ١٥ (٢١٧٥) (تحفة الأشراف : ١٣١٢٣) . مسند احمد (٢_ ٢٣٨) و البخارى كتاب البيوع ٦٤ (٢١٥٠) . و٧٠ (٢١٦٠) . و٧١ (٢١٦٢) . . ٨ (٢٧٢٣) . و ١١ (٢٧٢٧) . صحيح مسلم كتاب النكاح . سنن النسائى كتاب البيوع ١٦ (٤٤٩٦) . و١٩ (٣٥٠٦) . و٢١ (٣٥١٠) . مسند احمد (٢_ ٢ـ٢ ٢٩٣ . ٢٨٧) (و رقم ١١٣٤ و ١١٩٠) و ١٢٢٢ . و ١٣٠٣)

اوسيدونکی دباندچي سره خبره اوکړي چي خپله غله زما سره پريږده څه موده پس په ښار کي ريټ زياتيږي او بيابه يي ستا دپاره خرڅه کړم نو داسي قسم سودا داحتکار يو قسم دی دا په هغه وخت کي ناجائز دی کله چي دعام ضرر سبب ګرځي.

***************

۱۲۲۳ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَبِيعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ دَعُوا النَّاسَ يَرْزُقُ اللهُ بَعْضَهُمْ مِنْ بَعْضٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَحَدِيثُ جَابِرٍ فِي هَذَا هُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ أَيْضًا. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، كَرِهُوا أَنْ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ، وَرَخَّصَ بَعْضُهُمْ فِي أَنْ يَشْتَرِيَ حَاضِرٌ لِبَادٍ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُكْرَهُ أَنْ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ، وَإِنْ بَاعَ فَالْبَيْعُ جَائِزٌ. (۱)

**ترجمه**: دجابر رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هيڅ يو دښار اوسيدونکي دي دباندچيانو سامانونه نه خرڅوي او تاسو خلق پريږدئ رچي خپل سامانونه پخپله خرچ کړئ، څکه چي الله تعالي د بعضو په ذريعه بعضو نورو ته رزق ورکوي امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دجابر حديث هم حسن صحيح دي. او په صحابه کرامو کي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ دا کار مکروه ګنړي چي ښار والا دبهر نه راتلونکو باندچيانو دپاره سوداګري اوکړي او بعضي اهل علمو اجازت ورکړي دي چي دښار اوسيدونکي دباندچيانو دپاره سودا کولي شي، امام شافعي وائي ديو ښاري دپاره دباندچي دپاره سودا خرڅول مکروه دي او که خرڅ يي کړي نو بيع به جائز وي.

## دتلقي حکم

د تلقي يو څو صورتونه فقهاؤ ذکر کړي دي.

(۱) دا چي په ښارکي قحط وي، خوچي کله د ښار بعضو سوداګرو ته د غلي د قافلي راتللو خبرملاؤ شي نو دوی د ښار نه بهر اوځي اود قافلي والو نه ټوله غله واخلی چي دخپلي خوښي په قيمت ني خرڅه کړي.

---

[1] ـ مسلم کتاب البيوع ٦ (١٥٢٢)، سنن ابن ماجه کتاب التجارات ١٥ (٢١٧٧)، (تحفة الأشراف: ٢٧٦٣)، مسند احمد (٣/٣٠٧) و صحيح مسلم کتاب البيوع، سنن ابي داود کتاب البيوع ٤٧ (٣٤٤٢)، سنن النسائي کتاب البيوع ١٧ (٤٥٠٠)، مسند احمد ٣/٣١٢، ٣٨٦، ٣٩٢)

(۲) چي په ښار کي د غلې کمی نه وی اوځه سوداګر د ښارنه اوځی اود قافلې تو له غله واخلی.
(۳) چي د قافله والو نه په آرزان قیمت غله واخلی اود ښار نرخ په دوی باندې پټ اوساتی اودوی پخپله هم د ښار د قیمت نه ناخبره وی.
(۴) چي د قافله والو نه غله په آرزان قیمت واخلی،خو په دوی باندې قیمت پټ اونه ساتی.
په دې کي ړومبې او دریم صورت مکروه دې،ړومبې صورت ځکه مکروه دې چي په دې صورت کي د ښارخلق په قحط اود غله نه کیدلو په وجه په ضرر او پریشانئ کي مبتلا دی اود سوداګرو په دې عمل سره به د ښار د خلقو په پریشانئ کي نوره هم اضافه اوشی اوخوك په پریشانئ کي مبتلاکول امرقبیح دې،خودا امرقبیح داسې دې چي دا د بیع نه جداکیدلې شی ځکه به په دې وجه بیع مکروه وی.
اوپه دریم صورت کي چونکه د راتلونکې قافلې په خلقو باندې نرخ پټ کړې شوې دې اودوی ته دهوکه ورکړې شوې ده اودهوکه ورکول امرقبیح دې ځکه به په دې صورت کي هم بیع مکروه وی اوپه باقی دوه صورتونوکي چونکه دا خرابیانې نشته ځکه به په دې کي بیع بلا کراهت درست وی.

**************

## ١٤_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ

### دمحاقله اومزابنه دممانعت بیان

١٢٢٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الإِسْكَنْدَرَانِيُّ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُحَاقَلَةِ، وَالْمُزَابَنَةِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَسَعْدٍ، وَجَابِرٍ، وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْمُحَاقَلَةُ بَيْعُ الزَّرْعِ بِالْحِنْطَةِ، وَالْمُزَابَنَةُ بَيْعُ الثَّمَرِ عَلَى رُءُوسِ النَّخْلِ بِالتَّمْرِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا بَيْعَ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ.[1]

[1] _ مسلم کتاب البیوع ١٧(١٥٣٥). (تحفة الأشراف: ١٢٨-١٢). مسند احمد (٢/٤١٩) و سنن النسائی کتاب المزارعة ٢ (٣٩١٥). مسند احمد (٢/٣٩٢، ٤٨٣)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمحاقلې او مزابنې نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دابن عمر، ابن عباس، زيد بن ثابت، سعد جابر، او رافع بن خديج او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، په ورو کي ولاړ فصل ته په غنمو خرڅولو ته محاقله وئيلي شي او په ونو کي زوړندو کجورو لره په شوکيدلو کجورو خرڅولو ته مزابنه وئيلي شي د اکثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي چي محاقله او مزابنه مکروه ګرځي.

***************

١٢٢٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، أَنَّ زَيْدًا أَبَا عَيَّاشٍ، سَأَلَ سَعْدًا، عَنِ الْبَيْضَاءِ بِالسُّلْتِ، فَقَالَ: أَيُّهُمَا أَفْضَلُ ؟، قَالَ الْبَيْضَاءُ: فَنَهَى عَنْ ذَلِكَ، وَقَالَ سَعْدٌ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْأَلُ عَنِ اشْتِرَاءِ التَّمْرِ بِالرُّطَبِ ؟، فَقَالَ: " لِمَنْ حَوْلَهُ، أَيَنْقُصُ الرُّطَبُ إِذَا يَبِسَ ؟ "، قَالُوا: نَعَمْ، فَنَهَى عَنْ ذَلِكَ. حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ زَيْدٍ أَبِي عَيَّاشٍ، قَالَ: سَأَلْنَا سَعْدًا فَذَكَرَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَصْحَابِنَا.(١)

**ترجمه** : دعبدالله بن يزيد نه روايت دي فرمائي چي ابوعياش ، زيد دسعد رضي الله عنه نه د غنمو په پوستکي ويستلي شوو اوربشي باندي خرڅولو باره کي تپوس اوکړي شو نو هغه ورنه تپوس اوکړو په دي دواړو کي کوم يو افضل دي نو ده غنم ذکر کړل نو هغوئ ددينه منع اوفرمائيل او سعد رضي الله عنه اوفرمائيل چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چي په اوچو کجورو دلمدو کجورو دخرڅولو باره کي ورنه تپوس اوکړي شو نو رسول الله دخان خوا کي دناستو خلقو نه تپوس اوکړو چي ايا لمدي کجوري داوچيدو نه پس کميږي؟ خلقو اووئيل هو کميږي، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ددينه منع اوفرمائيله

[1] ـ سنن ابي داوذ كتاب البيوع ١٨(٣٣٥٩) . سنن النسائي كتاب البيوع ٣٦ (٣٥٤٩) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٣٥ (٢٢٦٣) . (تحفة الأشراف : ٣٨٥٤) . موطا امام مالک كتاب البيوع ١٢ (٢٢) . مسند احمد (١/١١٥، ١٧١)

امام ترمذي په سند دوكيع عن مالك ددي هم معني روايت نقل كړي دي او وائي چي دا حديث حسن صحيح دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي او همدا دامام شافعي او زمونږ دعامو شوافعو قول دي.

**بيع مزابنه او محاقله**

بيع مزابنه داده چي د كهجورې په ونه كي لګيدلې كهجورې،د شوكيدلو كهجورو په عوض په دې طريقه خرڅې كړې چي شوكيدلې كهجورې ئې پيمانه كړلې،يا ئې وزن كړلې اوپه ونه كي چي كومې كهجورې لګيدلې دى،د هغې اندازه اوكړى،مثلا دا اندازه ئې اوكړله چي په ونه كي لګيدلې كهجورې پنځه منه دى،نود عاقد آخر نه ددې عوض پنځه منه شوكيدلې وزن كړى اوواخلى.

اوبيع محاقله داده چي په وګو( بمبلو) كي غنم خرڅ كړى،د وګو( يعنى بمبلو) نه د وتلى شوى صفا غنمو په عوض كښې، په دې طريقه چي په وګو كي د غنمو اندازه اوكړى اوصفا غنم په وزن يا پيمانه سره واخلى،مثلا دا اندازه ئې اوكړله چي په وګوكي پنځه منه غنم دى،نود عاقد آخرنه ئې ددې عوض پنځه منه غنم وزن كړل اووائې خستل، او امام شافعى رحمه الله د پنځه وسقو نه په كم كي مزابنه اومحاقله جائز ګرځولې ده اود پنځه وسقو نه په زياتى كي ئې ناجائز ګرځولې ده اوپه پنځه وسقو كي دوه اقواله دى.يود جواز اودويم د عدم جواز ،(عنايه)

****************

## ١٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ بَيْعِ الثَّمَرَةِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلاَحُهَا

**دپوخ والي دظاهريدو نه مخكي دميوي خرڅولو دكراهت بيان**

١٢٢٦_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى يَزْهُوَ".[1]

---

[1] _ مسلم كتاب البيوع ١٣ (١٥٣٥) . و ابى داود كتاب البيوع ٢٣ (٣٣٦٨) . و النسائى كتاب البيوع ٤٠ (٤٥٥٥) . (تحفة الأشراف : ٥٤١٥) . مسند احمد (٢/٥) و البخارى كتاب الزكاة ٥٨ (١٤٨٦) . والبيوع ٨٢ (٢١٨٣) . و٨٥ (٢١٩٣) و ٩٠ (٢١٩٩) والسلم ٢ (٢٢٤٧ و ٢٢٤٩) . صحيح مسلم كتاب البيوع ١٣ . سنن ابى داود كتاب البيوع ٢٣ (٣٣٦٧) . و النسائى كتاب البيوع ٢٨ (٤٥٢٣) . و ابن ماجه كتاب التجارات ٣٢ (٢٢١٤) . موطا امام مالک كتاب البيوع ٨ (١٠) . مسند احمد (٢/٧، ٣٦، ٥٦، ٦١، ٨٠، ١٢٣) . و الدارمى كتاب البيوع ٢١ (٢٥٩٧)

**ترجمه** . دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ونه کي دکجورو دخرڅولو نه منع فرمائيلي ده تردي پوري چي دا ښانسته شوي نه وي (اوپوخ والي ته رسيدلي نه وي)

****************

١٢٢٧/ وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنْ بَيْعِ السُّنْبُلِ، حَتَّى يَبْيَضَّ، وَيَأْمَنَ العَاهَةَ نَهَى البَائِعَ، وَالمُشْتَرِيَ". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ أَنَسٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، كَرِهُوا بَيْعَ الثِّمَارِ قَبْلَ أَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهَا وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (١)

**ترجمه** : او په همدي سند مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دغنمو وربشو دوړو دخرڅولو نه منع فرمائيلي ده چي څو پوري پاکه شوي نه وي او دافت نه په امن کي شوي نه وي رسول الله بائع او مشتري دواړه ددي کار نه منع کړي دي.

امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دانس، عائشه، ابوهريره، ابن عباس، جابر، ابوسعيد خدري، او زيد بن ثابت رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي په صحابه کرامو کي داهل علمو په همدي باندي عمل دي چي هغوئ دپوخ والي دظاهريدو نه مخکي دميوو خرڅول مکروه ګنړل او همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي.

****************

١٢٢٨_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ، وَعَفَّانُ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنْ بَيْعِ

---

[1] ـ مسلم كتاب البيوع ١٣ (١٥٣٥) . و ابي داود كتاب البيوع ٢٣ (٣٣٦٨) . و النسائي كتاب البيوع ٣٠ (٤٥٥٥) . (تحفة الأشراف : ٥٤١٥) . مسند احمد (٢/٥) و البخاري كتاب الزكاة ٥٨ (١٤٨٦) . والبيوع ٨٢ (٢١٨٣) . و٨٥ (٢١٩٣) . و٨٧ (٢١٩٩) . والسلم ٣ (٢٢٤٧ و٢٢٤٩) . صحيح مسلم كتاب البيوع ١٣ . سنن ابي داود كتاب البيوع ٢٣ (٣٣٦٧) . و النسائي كتاب البيوع ٢٨ (٤٥٢٣) . و ابن ماجه كتاب التجارات ٣٢ (٢٢١٣) . موطا امام مالک كتاب البيوع ٨ (١٠) . مسند احمد (٢/٧، ٣٦، ٥٦، ٦١، ٨٠، ١٢٣) . و الدارمي كتاب البيوع ٢١ (٢٥٩٧)

الْعِنَبِ حَتَّى يَسْوَدَّ، وَعَنْ بَيْعِ الْحَبِّ حَتَّى يَشْتَدَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. (1)

**ترجمه** د انس رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله دداسي انګورو د خرڅولو نه منع فرمانيلي ده کوم چي توريدو ته رسيدلي نه وي اود خرڅولو ددانو غلو نه څو پوري چي سختي او کلکي شوي نه وي.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دی، او ددي مرفوع کيدل زمونږ په نزد ثابت نه دي، مګر صرف د حماد بن سلمه سند (چي هغه يي مرفوع بيانوي).

**تشريح : بيع الثمر قبل بدو الصلاح**

صلاح ښکاره کيدل زمونږ په نزد دادی چي ميوې د طوفان (سيلۍ) وغيره آفت نه اود ګلۍ وغيره د فساد نه محفوظ شي.
اود امام شافعی رحمهم الله په نزد د پوخوالی او خوږوالی شروع کيدل، د صلاح ښکاره کيدل دی، چي په وُنو باندې د ميوو خرڅولو دوه صورتونه دی،يود ميوو ښکاره کيدلو نه وړاندې.
دويم د ميوو ښکاره کيدلو نه پس،په ړومبی صورت کي خو بالاتفاق ناجائز دی.
اوپه دويم صورت کي د صلاح ښکاره کيدلو نه پس بالاتفاق جائز دی اود صلاح ښکاره کيدلو نه وړاندې زمونږ په نزد جائز دی.
خود امام مالك، امام شافعی اود امام احمد رحمه الله په نزد ناجائز دی.
حاصل داچي زمونږ په نزد په وُنه باندې د لګيدلو ميوو خرڅول، د صلاح ښکاره کيدلو نه پس هم جائز دی اود صلاح ښکاره کيدلو نه وړاندې هم جائز دی.
اود امام شافعی،امام مالك اود امام احمد رحمه الله په نزد د صلاح ښکاره کيدلو نه وړاندې خرڅول جائز نه دی،هم دا قول د شمس الائمه سرخسی رحمه الله هم دې،خو ړومبې قول يعنی په دواړه حالتونوکي د بيع جائز کيدلو قول زيات صحيح دې.(عنايه).

***************

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنْ بَيْعِ حَبَلِ الْحَبَلَةِ

**دحمل دحمل دخرڅولو بيان**

---

1 _ سنن ابي داود کتاب البيوع ٢٢ (٣٣٧١) . سنن ابن ماجه کتاب التجارات ٣٢ (٢٢١٧) . (تحفة الأشراف : ٦١٣)
وأخرجه: مسند احمد (٣/١١٥)

١٢٢٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنْ بَيْعِ حَبَلِ الحَبَلَةِ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَحَبَلُ الحَبَلَةِ نِتَاجُ النِّتَاجِ وَهُوَ بَيْعٌ مَفْسُوخٌ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ وَهُوَ مِنْ بُيُوعِ الغَرَرِ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَرَوَى عَبْدُ الوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ وَغَيْرُهُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَنَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَذَا أَصَحُّ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دحمل دحمل دخرڅولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي، او شعبه دا حديث په سند د عن ايوب عن سعيد بن جبير عن ابن عباس سره نقل كړي دي او عبدالوهاب ثقفي وغيره په سند د عن ايوب عن سعيد بن جبير ونافع عن ابن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او دا روايت زيات صحيح دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي او دحمل دحمل نه مراد داوښ دبچي بچي دي داهل علمو په نزد دا بيع منسوخ ده او دا د دهوكي په بيوعاتو كي يوه بيعه ده، او په دي باب كي دعبدالله بن عباس او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

## دحمل او نتاج بيع

د مارغانو د بيع درې صورتونه دى:

(١) د ښكار كولو نه وړاندې په هواكي خرڅول.

(٢) دښكار كولو نه پس په هواكي پريخودلو نه پس خرڅول.

(٣) مارغه پخپله ځى راځى، مثلا كونتره چي پخپله ځى او پخپله راځى.

( د داسې مارغه خرڅول) په ړومبى دوه صورتونوكي بالاتفاق بيع ناجائز ده، په ړومبى صورت كي د مارغه د غير مملوك كيدلو په وجه او په دويم صورت كي د غيرمقدور التسليم كيدلو په وجه، ځكه چي په دويم صورت كي د ښكار كولو په وجه مارغه د بائع مملوك شو، خود پريخودلو په وجه غيرمقدورالتسليم شوې دي.

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (وأخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٧٥٥٢)

اوبه دریم صورت کښې که د مارغه د څه حیلې نه بغیر نیول ممکن وی نو ددې بیع جائز ده،کنی جائز نه ده.

اود حمل یعنی د جنین اود حمل حملِ بیع ناجائز ده.د حمل دبیع صورت دادې چې مثلا مشتری اووئیل: ددې اوښې یا چیلۍ په خیټه کې چې کوم بچې دې،په سلو روپو کې ما واخستلو،بائع دا قبول کړلو اود نتاج یعنی د حمل حمل بیع داده چې مشتری اووائی چې ددې اوښې په خیټه کې که ماده بچې وی نو چې دا ماده بچې لوئې شی اوددې کوم بچې پیدا شی.ما هغه واخستلو اوبائع دا قبول کړلو.

د جاهلیت په زمانه کې دا عادت وو چې یو سړی به د بل نه اوښه اخستله،په دې شرط باندې چې دا اوښه به ماسره هغه وخته پورې وی چې ترکومه ددې بچې پیدا شی،بیا ددغه بچی بچې پیدا شی نو هرکله چې به ددې اوښې د بچی نه بچې پیدا شولو نو دا اوښه به بائع ته واپس کولې شوه اودا اوښه به ده ملك کیدله.

(۱) رسول اللهﷺ دا بیع باطل اوګرځوله اود حمل اود حمل حمل بیع نه ئې منع اوفرمائیله.

***************

## ۱۷_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ بَيْعِ الْغَرَرِ

### دبیعې غرر(دهوکه ) دحرمت بیان

۱۲۳۰_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، أَنْبَأَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ، وَبَيْعِ الْحَصَاةِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا بَيْعَ الْغَرَرِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَمِنْ بُيُوعِ الْغَرَرِ بَيْعُ السَّمَكِ فِي الْمَاءِ، وَبَيْعُ الْعَبْدِ الآبِقِ، وَبَيْعُ الطَّيْرِ فِي السَّمَاءِ وَنَحْوُ ذَلِكَ مِنَ الْبُيُوعِ، وَمَعْنَى بَيْعِ الْحَصَاةِ: أَنْ يَقُولَ الْبَائِعُ لِلْمُشْتَرِي: إِذَا نَبَذْتُ إِلَيْكَ بِالْحَصَاةِ، فَقَدْ وَجَبَ الْبَيْعُ فِيمَا بَيْنِي وَبَيْنَكَ وَهَذَا شَبِيهٌ بِبَيْعِ الْمُنَابَذَةِ، وَكَانَ هَذَا مِنْ بُيُوعِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ.[1]

---

[1] _ مسلم كتاب البيوع ۲ (۱۵۱۳) . سنن ابي داود كتاب البيوع ۲۵ (۳۳۷٦) . سنن النسائي كتاب البيوع ۲۷ (۴۵۲۲) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ۲۳ (۲۱۹۴) . (تحفة الأشراف : ۱۳۷۹۴) مسند احمد (۲/۲۵۰، ۴۳٦، ۴۳۹، ۴۹٦) وأخرجه مسند احمد (۲/۳۷٦)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دبيع غرر او دبيع الحصاة نه منع فرمائيلي ده.
امام ترمذي وائي دابوهريره داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن عمر، ابن عباس، ابوسعيد، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي ددوئ په نزد بيع غرر مكروه ده، امام شافعي وائي دمهي خرڅول كله چي په اوبو كي وي او دتختيدونكي غلام خرڅول او په اسمان كي دالوتونكو مرغو خرڅول او دارنګي بعضي نور بيوعات دبيع غرر دقبيلي نه دي، او دبيع حصات مطلب دادي چي خرڅونكي اخستونكي ته اووائي چي زه كله ستا طرف ته ګيتۍ دروغورځوم نو زما او ستا په مينځ كي به بيع واجب وي دا دبيع منابذه سره مشابه ده او دا دجاهليت په بيوعاتو كي يو قسم وو.

****************

## ١٨ــ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنْ بَيْعَتَيْنِ، فِي بَيْعَةٍ

### په يوه بيعه كي د دوه بيعو دمما نعت بيان

١٢٣١ــ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ فِي بَيْعَةٍ". وَفِي الْبَابِ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَقَدْ فَسَّرَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ قَالُوا: بَيْعَتَيْنِ فِي بَيْعَةٍ، أَنْ يَقُولَ: أَبِيعُكَ هَذَا الثَّوْبَ بِنَقْدٍ بِعَشَرَةٍ وَبِنَسِيئَةٍ بِعِشْرِينَ، وَلَا يُفَارِقُهُ عَلَى أَحَدِ الْبَيْعَيْنِ، فَإِذَا فَارَقَهُ عَلَى أَحَدِهِمَا فَلَا بَأْسَ، إِذَا كَانَتِ الْعُقْدَةُ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمَا. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَمِنْ مَعْنَى نَهْيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ فِي بَيْعَةٍ أَنْ يَقُولَ: أَبِيعُكَ دَارِي هَذِهِ بِكَذَا، عَلَى أَنْ تَبِيعَنِي غُلَامَكَ بِكَذَا، فَإِذَا وَجَبَ لِي غُلَامُكَ، وَجَبَتْ لَكَ دَارِي، وَهَذَا يُفَارِقُ عَنْ بَيْعٍ بِغَيْرِ ثَمَنٍ مَعْلُومٍ، وَلَا يَدْرِي كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا، عَلَى مَا وَقَعَتْ عَلَيْهِ صَفْقَتُهُ.[1]

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په يوه بيعه كي د دوه بيعو كولو نه منع فرمائيلي ده، امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعبدالله بن عمر او عبدالله بن عمرو او ابن مسعود رضي الله عنهم نه هم

---

[1] ــ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٠٥٠) و سنن النسائي كتاب البيوع ٧٣ (٤٦٣٢)، موطا امام مالك كتاب البيوع ٣٣ (٧٢) (بلاغا) مسند احمد (٢/٤٣٢، ٤٧٥، ٥٠٣)

احاديث مروي دي او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي. بعضي اهل علمو په يوه بيعه كي د دوه بيعو كولو داسي تفسير كړي دي مثلا يو سړي اووائي زه په تا باندي دا جامه په نغدو په لس روپئ خرڅوم او په قرضو يې په شل روپئ خرڅوم او خريدار په دي دوه بيعو كي په كومه يوه باندي جدا نشي (بلكه بغير دكومي يوې د معين كولو نه په مبهمه بيعه ددي خاي نه لاړ شي) او كله چي دي په دي دوه بيعو كي په كومه يوه باندي جدا شي نو څه حرج نشته خو شرط دادي چي په دي دوه بيعو كي به كومه يوه منعقد شوي وي. امام شافعي وائي په يوه بيعه كي د دوه بيعو مفهوم دادي چي يو كس اووائي زه خپل كور په دومره پيسو په دي شرط خرڅوم چي ته به په ماباندي خپل غلام په دومره قيمت خرڅوي كله چي ستا غلام زما دپاره واجب او ثابت شي نو زما كور به هم ستا دپاره واجب اوثابت شي دا بيع دمعلوم ثمن نه بغير واقع شوي دداو په بائع او مشتري كي يو هم نه پوهيږي چي دده سودا په څه څيز واقع شوي ده

***************

## ١٩_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ بَيْعِ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ

### چي كوم څيز دچا سره موجود نه وي دهغه دخرڅولو دعدم جواز بيان

١٢٣٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. عَنْ أَبِي بِشْرٍ. عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ. عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ. قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ: يَأْتِينِي الرَّجُلُ. يَسْأَلُنِي مِنَ الْبَيْعِ مَا لَيْسَ عِنْدِي أَبْتَاعُ لَهُ مِنَ السُّوقِ. ثُمَّ أَبِيعُهُ. قَالَ: "لَا تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ.[1]

**ترجمه** دحكيم بن حزام رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چي زه رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او عرض مي اوكړو ماته بعضي كسان راخي او دهغه څيز دخرڅولو خبره راته كوي كوم چي زما سره نه وي نو زه دغه څيز ددوئ دپاره په بازار كي اخلم او بيا يې راوړم او په دوئ يې خرڅوم (ددي څه حكم دي) رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كوم څيز چي تاسره نه وي دهغي بيعه مه كوه

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي

***************

[1] _ سنن ابي داود كتاب البيوع ٧٠ (٣٥٠٣). سنن النسائي كتاب البيوع ٦٠ (٤٦١٧). سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٢٠ (٢١٨٧). (تحفة الأشراف ٣٤٢٦) مسند احمد (٣/٤٠٢، ٤٣٤)

١٢٣٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، قَالَ: " نَهَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنْ أَبِيعَ مَا لَيْسَ عِنْدِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. قَالَ إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ: قُلْتُ لِأَحْمَدَ: مَا مَعْنَى نَهَى عَنْ سَلَفٍ، وَبَيْعٍ. قَالَ: أَنْ يَكُونَ يُقْرِضُهُ قَرْضًا، ثُمَّ يُبَايِعُهُ عَلَيْهِ بَيْعًا، يَزْدَادُ عَلَيْهِ، وَيَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ يُسْلِفُ إِلَيْهِ فِي شَيْءٍ، فَيَقُولُ: إِنْ لَمْ يَتَهَيَّأْ عِنْدَكَ فَهُوَ بَيْعٌ عَلَيْكَ. قَالَ إِسْحَاق: يَعْنِي ابْنَ رَاهَوَيْهِ، كَمَا قَالَ: قُلْتُ لِأَحْمَدَ: وَعَنْ بَيْعِ مَا لَمْ تَضْمَنْ. قَالَ: لَا يَكُونُ عِنْدِي إِلَّا فِي الطَّعَامِ، مَا لَمْ تَقْبِضْ. قَالَ إِسْحَاق، كَمَا قَالَ: فِي كُلِّ مَا يُكَالُ أَوْ يُوزَنُ. قَالَ أَحْمَدُ: إِذَا قَالَ أَبِيعُكَ هَذَا الثَّوْبَ، وَعَلَيَّ خِيَاطَتُهُ وَقَصَارَتُهُ، فَهَذَا مِنْ نَحْوِ شَرْطَيْنِ فِي بَيْعٍ، وَإِذَا قَالَ: أَبِيعُكَهُ وَعَلَيَّ خِيَاطَتُهُ، فَلَا بَأْسَ بِهِ، أَوْ قَالَ: أَبِيعُكَهُ وَعَلَيَّ قَصَارَتُهُ، فَلَا بَأْسَ بِهِ، إِنَّمَا هُوَ شَرْطٌ وَاحِدٌ. (١)

**ترجمه** : دحكيم بن حزام رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه دهغه څيز دخرڅولو نه منع كړي يم كوم چي زما سره موجود نه وي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي داسحاق بن منصور قول دي ما دامام احمد بن حنبل نه دبيعي سره دقرض متعلق مسئلي تپوس اوكړو چي ددي څه مطلب دي هغه اوونيل ددي صورت دادي چي څوك يو سړي ته قرض وركړي او بيا ورسره سودا اوكړي او دقيمت سامان زيات واخلي او دا احتمال هم شته چي څوك په كوم څيز كي سلف اوكړي او داسي اووائي كه چرې تا سره پيسي پيدا نشوي نو ته به دا سامان په ماباندي خرڅوي داسحاق بن راهويه هم دا قول دي، اسحاق بن منصور اوونيل ما دامام احمد نه دداسي څيز دخرڅولو باره كي تپوس اوكړو دكوم چي بائع ضامن نه وي نو هغوئ په جواب كي اوونيل دا ممانعت زما په نزد صرف دطعام په بيع كي دي چي څو پوري قبض شوي نه وي يعني دضمان نه قبضه مراد ده .اسحاق بن راهويه هم داسي وائي څنګه چي امام احمد وائي ليكن دا ممانعت په هرهغه څيز كي وي كوم چي مكيلي يا موزوني وي امام احمد بن حنبل وائي كله چي بائع اووائي زه په تا باندي دا جامه په دي شرط خرڅوم چي ددي ګنډل او وينځل به زما په ذمه وي نو دبيعي دا شكل په يوه بيعه كي د دوه شرطونو دقبيلي نه دي، او كله چي بائع داسي اووائي زه دا جامه په تاباندي په دي شرط خرڅوم چي ددي ګنډل به زما په ذمه وي او يا داسي اووائي دا كپړه په دي شرط په تا

---

(1) ـ سنن ابي داود كتاب البيوع ٧٠ (٣٥٠٣) . سنن النسائي كتاب البيوع ٦٠ (٤٦١٧) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٢٠ (٢١٨٧) . (تحفة الأشراف : ٣٤٣٦) . مسند احمد (٣/٤٠٢، ٣٤٣)

خرڅوم چي ددي وينخل به زما په ذمه وي نو په دي بيعه كي هيڅ قباحت نشته دا خو صرف يو شرط دي امام احمد چي څنګه وائي داسي قول داسحاق بن راهويه هم دي.

**دحديث دراوي حكيم بن حزام رضي الله عنه حالات**

نوم حكيم كنيه ابو خالد او په قريشو كي داسدي قبيلي سره تعلق لري او د ام المؤمنين خديجه رضي الله عنه وراره وو دفيل دواقعي نه ديارلس كاله مخكي په كعبه كي پيدا شوى دى دجاهليت او داسلام په دواړو زمانو كي به ورته دعزت په نظر كتلى شول او وروسته يي اسلام هم ډير ښكلى وو په صحابه كرامو به يي دفاضل او سمجدار مرتبه وه په شروع كي په مؤلفة القلوب كي وو او دجاهليت په زمانه كي يي سل غلامان ازاد كړي وو او داسلام په زمانه كي يي بياهم سل غلامان ازاد كړل په ۵۴هجري كي ديوسل او شلو كلونو په عمر كي په مدينه كي وفات شو.

***************

١٢٣٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ أَبِيهِ، حَتَّى ذَكَرَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا يَحِلُّ سَلَفٌ، وَبَيْعٌ وَلَا شَرْطَانِ فِي بَيْعٍ، وَلَا رِبْحُ مَا لَمْ يُضْمَنْ، وَلَا بَيْعُ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، قَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، رَوَى أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ، وَأَبُو بِشْرٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَوْفٌ، وَهِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَذَا حَدِيثٌ مُرْسَلٌ، إِنَّمَا رَوَاهُ ابْنُ سِيرِينَ، عَنْ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دبيعي سره قرض جائز نه دي او نه په يوه بيعه كي دوه شرطونه جائز دي او نه دداسي څيز نه فائده اخستل جائز دي دكوم چي هغه ضامن نه وي او نه دداسي څيز بيعه جائز ده كوم چي تاسره نه وي.

---

[1] _ سنن ابي داود كتاب البيوع ٧٠ (٣٥٠٣). سنن النسائي كتاب البيوع ٦٠ (٤٦١٥). سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٢٠ (٢١٨٨). (تحفة الأشراف: ٨٦٦٤). مسند احمد (٢/١٧٩)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او دحكيم بن حزام حديث حسن دي دا حديث دحكيم بن حزام نه په نورو سندونو هم مروي دي دا حديث ايوب سختياني او ابوبشر ديوسف بنت ماهك نه او هغه دحكيم بن حزام نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي او داحديث مرسل منقطع دي په اصل كي ابن سيرين دايوب سختياني نه او هغه ديوسف بن ماهك نه او هغه دحكيم بن حزام نه همداسي نقل كړي دي.

*****************

١٢٣٥ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، وَعَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْخُزَاعِيُّ الْبَصْرِيُّ أَبُو سَهْلٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، قَالَ: " نَهَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَبِيعَ مَا لَيْسَ عِنْدِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى وَكِيعٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، وَرِوَايَةُ عَبْدِ الصَّمَدِ أَصَحُّ وَقَدْ رَوَى يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عِصْمَةَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، كَرِهُوا أَنْ يَبِيعَ الرَّجُلُ مَا لَيْسَ عِنْدَهُ.[1]

**ترجمه**: دحكيم بن حزام رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه دهغه څيز دخرڅولو نه منع كړي يم كوم چي زما سره نه وي.

امام ترمذي وائي وكيع دا حديث په سند د يزيد بن ابراهيم عن ابن سيرين عن ايوب عن حكيم بن حزام سره نقل كړي دي او په دي كي يي ديوسف بن ماهك واسطه نه ده ذكر كړي، دعبدالصمد روايت زيات صحيح دي (په كومه كي چي دابن سيرين ذكر دي)، او يحىٰ بن كثيردا حديث په سند د يعلي بن حكيم عن يوسف بن ماهك عن عبدالله بن عصمة عن حكيم بن حزام عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي، داكثرو اهل علمو په همدي حديث عمل دي ددوئ په نزد دداسي څيز بيعه مكروه ده كوم چي دخرڅونكي سره نه وي.

*****************

[1] ـ سنن ابي داود كتاب البيوع ٧٠ (٣٥٠٣) . سنن النسائي كتاب البيوع ٦٠ (٤٦١٣) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٢٠ (٢١٨٧) . (تحفة الأشراف : ٣٤٣٦) . مسند احمد (٣/٤٠٢، ٤٣٤)

## ٢٠_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ بَيْعِ الْوَلاَءِ وَهِبَتِهِ

### دميراث ولاء دخرڅولو او ددې دهبه کولو دکراهت بيان

١٢٣٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، وَشُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ بَيْعِ الْوَلَاءِ وَهِبَتِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَقَدْ رَوَى يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ نَهَى عَنْ بَيْعِ الْوَلَاءِ وَهِبَتِهِ"، وَهُوَ وَهْمٌ وَهِمَ فِيهِ يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، وَرَوَى عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سُلَيْمٍ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دولاء خرڅولو او هبه کولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دا مونږ ته صرف دعبدالله بن دينار په سند رارسيدلي دي کوم چي هغه دابن عمر نه نقل کړي دي، او يحیٰ بن سليم دا حديث په سند د عبيدالله بن عمرو عن نافع عن ابن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي چي رسول الله دولاء دخرڅولو او هبه کولو نه منع فرمائيلي ده، په دي سند کي وهم دي، ددي په سند کي يحیٰ بن سليم ته وهم شوي دي، عبدالوهاب ثقفي او عبدالله بن نمير او بعضي نورو راويانو په سند دعبيدالله بن عمر عن عبدالله بن دينار عن ابن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي او ديحي بن سليم حديث زيات صحيح دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي.

***************

[1] _ البخاری کتاب العتق ١٠ (٢٥٣٥) و الفرائض ٢١ (٦٧٥٦). صحيح مسلم کتاب العتق ٣ (١٥٠٦). سنن ابی داود کتاب الفرائض ١٣ (٢٩١٩). سنن النسائی کتاب البيوع ٨٤ (٤٦٦٦). سنن ابن ماجه کتاب الفرائض ١٥ (٢٧٤٨). ويأتي برقم (٢١٢٦). (التحفه: ٧١٥، و٧١٨٩). و موطا امام مالک کتاب العتق ١٠ (٢٠). و مسند احمد (٢/٩، ٧٩، ١٠٧). سنن الدارمی کتاب البيوع ٣٦ (٢٦١٣). والفرائض ٥٣ (٣٢٠٠)

## ٢١_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ بَيْعِ الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً

## دیو څاروي په بل څاروي په قرضو خرڅولو دکراهت بيان

١٢٣٧_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ مُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَهَى عَنْ بَيْعِ الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَسَمَاعُ الْحَسَنِ مِنْ سَمُرَةَ صَحِيحٌ، هَكَذَا قَالَ: عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ وَغَيْرُهُ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، فِي بَيْعِ الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، فِي بَيْعِ الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَإِسْحَاق. (١)

**ترجمه**. دسمره رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دقرض په صورت كي ديو څاروي په بل څاروي دخرڅولو نه منع فرمانيلي ده

امام ترمذي وائي دسمره حديث حسن صحيح دي او دحسن سماع دسمره نه ثابت ده، علي بن مديني وغيره هم داسي وئيلي دي، او په دي باب كي دابن عباس، جابر، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، په صحابه كرامو او ددوئ نه پس اهل علمو ديو څاروي په بل څاروي په قرضو خرڅولو په صورت كي په همدي حديث عمل دي او دسفيان ثوري او اهل كوفه هم دا قول دي او امام احمد بن حنبل هم ددي قائل دي مګر په صحابه كرامو او اهل علمو كي بعضو ددي اجازت وركړي دي او همدا دامام شافعي او اسحاق بن راهويه قول هم دي

***************

١٢٣٨_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الْحَجَّاجِ وَهُوَ ابْنُ أَرْطَاةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْحَيَوَانُ اثْنَانِ بِوَاحِدٍ لَا يَصْلُحُ نَسِيئًا، وَلَا بَأْسَ بِهِ يَدًا بِيَدٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

---

[1] _ سنن ابي داود كتاب البيوع ١٥ (٣٣٥٦). سنن النسائي كتاب البيوع ٦٥ (٤٦٢٣). سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٥٦ (٢٢٧٠). (تحفة الأشراف: ٤٥٨٣). مسند احمد (١٢/٥، ٢١، ٢٢)

[2] _ سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٥٦ (٢٢٧١). (تحفة الأشراف: ٢٦٤٦)

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دوه څاروي په يو څاروي په قرضو خرڅول درست نه دي او لاس په لاس خرڅولو كي څه قباحت نشته.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

***************

## ٢٢_ باب مَا جَاءَ فِي شِرَاءِ الْعَبْدِ بِالْعَبْدَيْنِ

### يوغلام په دوه غلامانو داخستلو بيان

١٢٣٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: جَاءَ عَبْدٌ فَبَايَعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْهِجْرَةِ، وَلَا يَشْعُرُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ عَبْدٌ، فَجَاءَ سَيِّدُهُ يُرِيدُهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بِعْنِيهِ فَاشْتَرَاهُ بِعَبْدَيْنِ أَسْوَدَيْنِ". ثُمَّ لَمْ يُبَايِعْ أَحَدًا بَعْدُ حَتَّى يَسْأَلَهُ أَعَبْدٌ هُوَ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِعَبْدٍ بِعَبْدَيْنِ يَدًا بِيَدٍ، وَاخْتَلَفُوا فِيهِ إِذَا كَانَ نَسِيئًا. ([1])

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي يو غلام راغلو او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره يي په هجرت باندي بيعت اوكړو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورباندي پوهه نشو چي دا غلام دي په دي دوران كي دده مالك راغي او دده مطالبه يي كوله رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ته دي په ماباندي خرڅ كړه چنانچه ده لره رسول الله صلي الله عليه وسلم په دوه تورو غلامانو واخستلو او بيا به ددينه پس رسول الله د دچا سره هغه وخته پوري بيعت نه كولو چي څو پوري به يي معلومه كړي نه وه چي دا غلام دي
امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي داهل علمو په همدي باندي عمل دي چي يو غلام په دوه غلامانو په نقد اخستلو كي څه باك نشته او چي كله قرض وي نو په دي كي اختلاف دي

***************

[1] ـ مسلم كتاب المساقاة ٢٣ (البيوع ٣٣) . (١٦٠٢) . و ابي داود كتاب البيوع ١٧ (٣٣٥٨) . و النسائي كتاب البيعة ٢١ (٤١٨٩) . و البيوع ٦٦ (٤٦٢٥) . سنن ابن ماجه كتاب الجهاد ٤١ (٢٨٩٦) . مسند احمد (٣/٣٤٢) . ويأتي عند المؤلف في السير ٣٦ (١٥٩٦) . (تحفة الأشراف : ٢٩٠٤)

## ٢٣ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الْحِنْطَةَ بِالْحِنْطَةِ مِثْلاً بِمِثْلٍ وَكَرَاهِيَةِ التَّفَاضُلِ فِيهِ

## دغنمو په غنمو برابر خرڅولو او په دې کې د کمي او زياتي کولو درست نه کيدلو بيان

١٢٤٠ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ مِثْلًا بِمِثْلٍ، وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ مِثْلًا بِمِثْلٍ، وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ مِثْلًا بِمِثْلٍ، وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ مِثْلًا بِمِثْلٍ، وَالْمِلْحُ بِالْمِلْحِ مِثْلًا بِمِثْلٍ، وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ مِثْلًا بِمِثْلٍ، فَمَنْ زَادَ أَوِ ازْدَادَ، فَقَدْ أَرْبَى بِيعُوا الذَّهَبَ بِالْفِضَّةِ، كَيْفَ شِئْتُمْ يَدًا بِيَدٍ، وَبِيعُوا الْبُرَّ بِالتَّمْرِ كَيْفَ شِئْتُمْ يَدًا بِيَدٍ، وَبِيعُوا الشَّعِيرَ بِالتَّمْرِ، كَيْفَ شِئْتُمْ يَدًا بِيَدٍ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَبِلَالٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُبَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ خَالِدٍ بِهَذَا الْإِسْنَادِ، وَقَالَ: بِيعُوا الْبُرَّ بِالشَّعِيرِ، كَيْفَ شِئْتُمْ يَدًا بِيَدٍ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ، عَنْ عُبَادَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَدِيثَ وَزَادَ فِيهِ، قَالَ خَالِدٌ: قَالَ أَبُو قِلَابَةَ: " بِيعُوا الْبُرَّ بِالشَّعِيرِ كَيْفَ شِئْتُمْ. فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، لَا يَرَوْنَ أَنْ يُبَاعَ الْبُرُّ بِالْبُرِّ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ، وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ، فَإِذَا اخْتَلَفَ الْأَصْنَافُ فَلَا بَأْسَ، أَنْ يُبَاعَ مُتَفَاضِلًا إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ ". وَهَذَا قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَالْحُجَّةُ فِي ذَلِكَ، قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " بِيعُوا الشَّعِيرَ بِالْبُرِّ كَيْفَ شِئْتُمْ يَدًا بِيَدٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ تُبَاعَ الْحِنْطَةُ بِالشَّعِيرِ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ.[1]

**ترجمه**: دعبيده بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دې نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سره زر په سرو زرو او سپين زر په سپينو زرو كجورې په كجرو او غنم په غنمو او مالگه په مالگې او وربشي په وربشو برابر په برابر خرڅ كړئ او چاچې زيات وركړو او يايې

---

[1] ـ صحيح مسلم كتاب المساقاة ١٥ (البيوع ٣٦) . (١٥٨٧) . سنن ابي داود كتاب البيوع ١٢ (٣٣٤٩ . ٣٣٥٠) . سنن النسائي كتاب البيوع ٤٢ (٤٥٦٧) . (تحفة الأشراف : ٥٠٨٩) . مسند احمد (٣١٤/٥ . ٣٢٠) و سنن النسائي كتاب ٤٢ (٤٥٦٣ . ٤٥٦٥) سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٤٨ (٢٢٥٤)ـ

زيات واخـتلو هغه دسود معامله اوكړه، سره زر په سروزرو او سپين زر په سپينو زرو نقد په نقد څنګه چي تاسو غواړئ هغه شان يي خرڅ كړئ غنم په كجورو نقد په نقد چي څنګه مو خوښه وي خرڅ كړئ او وربشي په كجورو نقد په نقد چي څنګه مو خوښه وي هغه شان يي خرڅ كړئ

امام ترمذي وائي دعباده حديث حسن صحيح دي، بعضي راويانو داحديث دخالد نه په همدي سند نقل كړي دي او په دي روايت كي داسي دي غنم په وربشو نقد په نقد څنګه چي مو خوښه وي خرڅ كړئ، بعضي راويانو داحديث دخالد نه او هغه دابوقلابه نه او هغه دابوالاشعث نه او هغه دعباده نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي او په دي كي دا اضافه ده خالد وائي چي ابوقلابه اوونيل غنم په وربشو چي څنګه ستاسو خوښه وي خرڅولي شئ او بيا يي پوره حديث ذكر كړو، په دي باب كي دابوسعيد خدري، ابوهريره، بلال، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داهل علموپه همدي باندي عمل دي دوئ وائي چي غنم په وربشو او وربشي په اوربشو برابر په برابر خرڅول جائز دي او كله چي اجناس مختلف وي نو په كمي زياتي سره خرڅولو كي څه باك نشته خو شرط دادي چي نقد په نقد وي په صحابه كرامو كي داهل علمو هم دا قول دي سفيان ثوري او امام شافعي، احمد او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول كړي دي ، امام شافعي وائي ددي خبري دليل دا ارشاد نبوي دي چي وربشي په غنمو نقد په نقد چي څنګه ستاسو خوښه وي خرڅ كړئ، او داهل علمو يو جماعت په وربشو او غنم اخـتـل مكروه ګنړلي دي مګر دا چي وزن مساوي وي ليكن اولني قول زيات صحيح دي.

**تشريح** : رباء په هرمكيلى او موزونى شى كي حرام ده،په دې شرط چي ددې د جنس په عوض كمى زياتى سره خرڅ كړې شى نو زمونږ په نزد د رباء علت " كيل مع الجنس " يا " وزن مع الجنس " دې يعنى په كومو دوه څيزونوكي چي مبادله شوې ده،هغه دواړه مكيلى وى،يا موزونى وى،خو ددې دواړو جنس يووى اوكه دواړه عوضونه موزونى وى،جنس يو نه وى،مثلاً سره زر او سپين زر،يا دواړه مكيلى وى،خوجنس يو نه وى لكه غنم او اوربشې نو ددې دواړو په مينځ كي ربوا او زياتوالې حرام نه دې.

قدر چونكه كيل او وزن دواړو ته شامل دې،په دې وجه دا هم وئيلې شى چي علت د ربوا " قدرمع الجنس " دې،د " قدر مع الجنس " د ربوا په علت كيدلوكي اصل حديث مشهور دې،دا حديث شپاړس صحابه كرامو روايت كړې دې.

(( عن ابي سعيدالخدرى رضي الله عنه عن رسول الله ﷺ أنه قال ألذهب بالذهب مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا.والفضة بالفضة مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا.والحنطة بالحنطة مثلاً بمثل يداً

بيد والفضل ربوا. والشعير بالشعير مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا. والملح بالملح مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا. والتمر بالتمر مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا))

د عباده بن الصامت رضي الله عنه د حديث الفاظ دادي:

((قال رسول الله ﷺ الذهب بالذهب والفضة بالفضة والبر بالبر والشعير بالشعير والتمر بالتمر والملح بالملح مثلاً بمثل سواء بسواء يداً بيد فاذا اختلف هذه الأصناف فبيعوا كيف شئتم إذا كان يدا بيد))

دا حديث د اعراب په اعتبارسره په دوه طريقو نقل دي، يوخو كلمات سته او لفظ مثل په رفع سره دی، په دې صورت كې به مضاف مقدر وی، تقدير عبارت به داسې وی. ((بيع التمر بالتمر يا بيع الذهب بالذهب مثل بمثل)) بيع التمر به مبتدا وی اومثل به ددې خبر وی، په دويم روايت كې داكلمات او لفظ د مثل منصوب دي. په دې صورت كې به فعل امر بيعوا مقدر وی، تقدير د عبارت به داسې وی. ((بيعوا التمر "ألحديث)) دا كلمات په د بيعوا مفعول كيدلو په وجه منصوب وی اولفظ مثلاً به حال كيدلو په وجه منصوب وی، په حديث كې مثلاً بمثل نه مراد دادې چې دواړه عوض كيل يا وزن كې برابر وی اود يداً بيد نه مراد دادې چې په دواړه عوضونوكښې په مجلس عقدكې قبضه اوشی. حاصل داچې اتحاد قدر اود اتحاد جنس په صورت كښې په عوضين كې د كيل يا وزن په اعتبارسره برابری هم شرط ده اوپه عوضينو باندې قبضه هم شرط دې.

## دعباده بن صامت رضي الله عنه حالات

نوم عباده كنيه ابو الوليد په بني خزرج كې يې دسالم خاندان سره تعلق دی دپلار نوم يې صامت او دمور نوم يې قرة العين وو، په غزوه بدر او ددينه پس په تمامو عزواتو كې شريك پاتې شوی دی او په بيعة الرضوان كې هم موجود وو (طبقات ابن سعد)

خلافت صديقي او فاروقي كې هم په جنګونو كې شريك پاتې شوی دی.

عمرفاروق رضي الله عنه دخپل خلافت په زمانه كې دی دفلسطين قاضي مقرر كړی دی عباده د حفاظو صحابه كرامو دجملې نه وو چې اصحاب صفه ته به يې دقرائت تعليم وركولو (مسند احمد).

عمرفاروق رضي الله عنه دی په شام كې دمسلمانانو دتعليم دپاره متعين كړی وو دقرائت نه علاوه په فقه كې ورته هم كمال حاصل وو يوځل قتاده دعباده ملاقات ته لاړو نو وېی وئيل "وكان قد تفقه في دين الله" يعني عباده دالله په دين كې مهارت حاصل كړی وو.

وفات: د دوه اوياكالو په عمر كې دهجرت په ۳۴ كال وفات شو دوفات وخت يې چې نژدې شو

نو يو خوي يي ورته دوصيت كولو درخواست اوكړو نو ويې فرمائيل مانيغ كينوئ او بيايي ددينه پس اوفرمائيل اى بچيه په تقدير به يقين ساتي ورنه ايمان ته دي خيرنشته (مسند احمد).

دده د دفن كيدو دځاى په باره كي دعلماؤ دري اقوال دي ، اول ابن سعد رمله مقام ليكلى دى، دويم بعضي علماؤ بيت المقدس ليكلى دى او امام بخاري فلسطين ليكلى دى، ددي دري واړو په حقيقت كي څه اختلاف نشته خكه چي رمله په فلسطين كي يوه صوبه ده او بيت المقدس هم يوه ضلع ده دده درو ايت شمير ١٨١ دى چي شپږ متفق عليه دي او دوه صرف بخاري نقل كړي دي.

***************

## ٢٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّرْفِ

### دصرف بيان

١٢٤١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، أَخْبَرَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا شَيْبَانُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: انْطَلَقْتُ أَنَا وَابْنُ عُمَرَ، إِلَى أَبِي سعيد فحدثنا، أن رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ هَاتَانِ، يَقُولُ: "لَا تَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ، وَالْفِضَّةَ بِالْفِضَّةِ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ، لَا يُشَفُّ بَعْضُهُ عَلَى بَعْضٍ، وَلَا تَبِيعُوا مِنْهُ غَائِبًا بِنَاجِزٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَهِشَامِ بْنِ عَامِرٍ، وَالْبَرَاءِ، وَزَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، وَفَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، وَأَبِي بَكْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَبِلَالٍ، قَالَ: وَحَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرِّبَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، إِلَّا مَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ كَانَ لَا يَرَى بَأْسًا أَنْ يُبَاعَ الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ مُتَفَاضِلًا، وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ مُتَفَاضِلًا، إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ، وقَالَ: إِنَّمَا الرِّبَا فِي النَّسِيئَةِ، وَكَذَلِكَ رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِهِ شَيْءٌ مِنْ هَذَا، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ رَجَعَ عَنْ قَوْلِهِ، حِينَ حَدَّثَهُ أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ: لَيْسَ فِي الصَّرْفِ اخْتِلَافٌ.[1]

---

[1] ـ البخارى كتاب البيوع ٧٨ (٢١٧٧) . صحيح مسلم كتاب المساقاة ١٣ (البيوع ٣٥) . (١٥٨٤) . سنن النسائى كتاب البيوع ٤٧ (٤٥٧٣) . (تحفة الأشراف : ٤٣٨٥) . موطا امام مالک كتاب البيوع ١٦ (٣٠) . مسند احمد (٣/٤، ٥١، ٦١)

**ترجمه** دنافع بيان دي چي زه او ابن عمر رضي الله عنه ابوسعيد خدري رضي الله عنه ته ورغلم هغه موږ ته حديث بيان كړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي او زما دواړو غوږونو اوريدلي دي سره زر په سرو زرو برابر په برابر خرڅ كړئ او سپين زر په سپينو زرو برابر په برابر خرڅ كړئ او ديو نه دي په بل كي كمي او زيادت اونكړي شي او غير موجود په موجود مه خرڅوئ.

امام ترمذي وائي دربا په سلسله كي دابوسعيد خدري رضي الله عنه هغه حديث كوم چي هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابوبكر، عمر، عثمان، ابوهريره، هشام بن عامر، زيد بن ارقم، فضاله بن عبيد، ابوبكره، ابن عمر، او ابو الدرداء او بلال رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، په صحابهٔ كرامو او ددوئ نه پس په خلقو كي اهل علمو په دي باندي عمل دي مګر كوم حديث چي دابن عباس نه مروي دي چي سره زر په سرو زرو او سپين زر په سپينو زرو دكمي او زيادت په صورت كي خرڅولو كي څه باك نشته خو دا هله كله چي بيعه نقد وي ابن عباس به دا هم وئيل چي سود خو په قرض وركولو دي او ددي هم معني روايت دهغه دبعضي ملګرو نه هم مروي دي، دابن عباس نه دا هم مروي دي ابوسعيد خدري رضي الله عنه چي كله دنبي كريم صلي الله عليه وسلم حديث بيان كړو نو هغه دخپل قول نه رجوع اوكړه، اولني قول زيات صحيح دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري او ابن مبارك او شافعي او احمد او اسحاق قول هم دي، ابن مبارك به وئيل په صرف كي دهيڅا اختلاف نشته.

***************

١٢٤٢ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كُنْتُ أَبِيعُ الإِبِلَ بِالبَقِيعِ فَأَبِيعُ بِالدَّنَانِيرِ، فَآخُذُ مَكَانَهَا الوَرِقَ، وَأَبِيعُ بِالوَرِقِ فَآخُذُ مَكَانَهَا الدَّنَانِيرَ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدْتُهُ خَارِجًا مِنْ بَيْتِ حَفْصَةَ، فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "لَا بَأْسَ بِهِ بِالقِيمَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَرَوَى دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ مَوْقُوفًا، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، أَنْ لَا بَأْسَ أَنْ يَقْتَضِيَ الذَّهَبَ مِنَ الوَرِقِ وَالوَرِقَ، مِنَ الذَّهَبِ وَهُوَ قَوْلُ:

أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ ذَلِكَ. (1)

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي ما دبقيع په بازار كي اوبن خرڅولو او په دينارونو مي خرڅولو او دهغي په بدل كي به مي سپين زر اخستل او چي په سپينو زرو يي خرڅ كړم نو دهغي په بدل كي مي دينارونه اخستل زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او ما هغه اوليدلو چي هغوئ دحفصه رضي الله عنها دكور نه راووتلو نو ما ورنه په دي باره كي تپوس اوكړو راته يي اوفرمائيل په قيمت سره داسي كولو كي هيڅ باك نشته.

امام ترمذي وائي مونږ ته دا حديث صرف دسماك بن حرب په سند مرفوع رارسيدلي دي سماك دا روايت دسعيد بن جبير نه او سعيد دابن عمر نه نقل كړي دي او داود بن ابي هند دسعيد بن جبير نه او سعيد دابن عمر نه موقوفاً نقل كړي دي دبعضي اهل علمو عمل هم په دي حديث باندي دي چي كه څوك دسرو زرو په بدل كي سپين زر واخلي او يا دسپينو زرو په بدل كي سره زر واخلي نو هيڅ باك نشته همدا دامام احمد او اسحاق قول هم دي او په صحابه كرامو او اهل علمو كي بعضو دا مكروه ګڼړلي دي.

***************

١٢٤٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ، أَنَّهُ قَالَ: أَقْبَلْتُ أَقُولُ مَنْ يَصْطَرِفُ الدَّرَاهِمَ، فَقَالَ طَلْحَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ وَهُوَ عِنْدَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: أَرِنَا ذَهَبَكَ، ثُمَّ ائْتِنَا إِذَا جَاءَ خَادِمُنَا نُعْطِكَ وَرِقَكَ، فَقَالَ عُمَرُ: كَلَّا وَاللَّهِ لَتُعْطِيَنَّهُ وَرِقَهُ، أَوْ لَتَرُدَّنَّ إِلَيْهِ ذَهَبَهُ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْوَرِقُ بِالذَّهَبِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ". قَالَ أَبُو عِيسَى:

---

1 _ ابي داود كتاب البيوع ١٤ (٣٣٥٤)، والنسائي كتاب البيوع ٥٠ (٤٥٨٦)، سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٥١ (٢٢٦٢)، (تحفة الأشراف ٧٠٥٣)، مسند احمد (٢/٣٣، ٥٩، ٨٩، ١٠١، ١٣٩)

هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ: إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ يَقُولُ يَدًا بِيَدٍ. (١)

**ترجمه** . دمالك بن اوس بن حدثان بيان دي چي ما په بازار كي دا واوريدل درهمونه په دينار ځوك بدلوي نو طلحه بن عبيدالله اوونيل او هغه دعمر رضي الله عنه سره وو ماته خپل سره زر اوښايه كله چي زمونږ خادم راشي نو ته بيا مونږ ته راشه «ددي په بدل كي به تاته سپين زر دركړي ددي خبري اوريدو كي عمر رضي الله عنه اوونيل په الله قسم داسي هرګز نشي كيدي ده ته به سپين زر دركوي او كه داسي نه كوي نو خپله سونه ورته واپس كړه ځكه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دسرو زرو په بدل كي سپين زر اخستل سود دي مګر دا چي لاس په لاس وي، دغنمو په بدل كي غنم اخستل سود دي مګر هغه وخت كي سود نه دي كله چي لاس په لاس وي او د وربشو په بدل كي وربشي اخستل سود دي خو چي كله لاس په لاس وي نو سود نه دي او دكجورو په بدل كي كجوري اخستل سود دي مګر دا چي كله په يو لاس وركړي او په بل يي واخلي نو بيا سود نه دي

***************

## ٢٥ـ باب مَا جَاءَ فِي ابْتِيَاعِ النَّخْلِ بَعْدَ التَّأْبِيرِ وَالْعَبْدِ وَلَهُ مَالٌ

**په ونوكي دپيوند لګولو نه پس دكجورو دونو خرڅول او دداسي غلام خرڅول دچا سره چي مال وي**

١٢٤٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " مَنِ ابْتَاعَ نَخْلًا بَعْدَ أَنْ تُؤَبَّرَ فَثَمَرَتُهَا لِلَّذِي بَاعَهَا، إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ، وَمَنِ ابْتَاعَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُهُ لِلَّذِي بَاعَهُ، إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَحَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، هَكَذَا رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: " مَنِ ابْتَاعَ نَخْلًا بَعْدَ أَنْ تُؤَبَّرَ فَثَمَرَتُهَا لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ، وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُهُ لِلَّذِي بَاعَهُ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ

---

[1] ـ صحيح البخاري كتاب البيوع ٥٣ (٢١٣٤) ، و٧٤ (٢١٧٠) ، و٧٦ (٢١٧٤) ، صحيح مسلم كتاب المساقاة (البيوع ٣٨) (١٥٨٦) ، سنن ابي داود كتاب البيوع ٣٣٤٨) ، سنن النسائي كتاب البيوع ٤١ (٣٨) ، (تحفة الأشراف : ١٠٦٣٠) ، مسند احمد (١كتاب ٢٢، ٢٥، ٣٥) ، سنن الدارمي كتاب البيوع ٤١ (٢٦٢٠)

الْمُبْتَاعُ". وَقَدْ رُوِيَ عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنِ ابْتَاعَ نَخْلًا قَدْ أُبِّرَتْ فَثَمَرَتُهَا لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ"، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ بَاعَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُهُ لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ". هَكَذَا رَوَاهُ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، وَغَيْرُهُ، عَنْ نافع، الحديثين. وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْضًا. وَرَوَى عِكْرِمَةُ بْنُ خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ حَدِيثِ سَالِمٍ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل: حَدِيثُ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَحُّ مَا جَاءَ فِي هَذَا الْبَابِ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چاچي د تابير (پيوند لگولو) نه پس دكجوري ونه واخستله نو ددي ميوه به دخرڅونکي وي مگر هله چي اخستونکي داخستلو وخت کي دميوي شرط مقرر کړي وي او که چا کوم داسي غلام واخستلو دچا سره چي مال وي نو دده مال به دخرڅونکي وي مگر دا چي اخستونکي شرط لگولي وي.

امام ترمذي وائي د ابن عمر حديث حسن صحيح دي دارنگي په نورو سندونو هم دا حديث دزهري نه او هغه دسالم نه او هغه دابن عمر رضي الله عنهما نه او هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي چي فرمائيل يي چاچي دپيوند لگولو نه پس دکجوري ونه واخستله نو ددي ميوه به دخرڅونکي وي مگر دا چي اخستونکي دميوي شرط لگولي وي او چاچي يو داسي غلام واخستلو دکوم سره چي مال وي نو دده مال به هم دخرڅونکي وي مگر دا که اخستونکي شرط لگولي وي، دا روايت دنافع نه هم مروي دي چي هغه دابن عمر نه او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي چي فرمائيل يي چاچي يو داسي غلام واخستلو دکوم سره چي مال وي نو دده مال به هم دخرڅونکي وي مگر دا که اخستونکي شرط لگولي وي، دنافع نه مروي دي او هغه دابن عمر نه روايت نقل کوي چي چا کوم داسي غلام

[1] _ البخارى كتاب الشرب والمساقاة ١٧ (٢٣٧٩) . و مسلم كتاب البيوع ١٥ (١٥٤٣) . و ابن ماجه كتاب التجارات ٣١ (٢٢١١) . (تحفة الأشراف : ٦٩٠٧) و البخارى كتاب البيوع ٩٠ (٢٢٠٣) . و ٩٢ (٢٢٠٦) . والشروط ٢ (٢٧١٦) . و مسلم كتاب البيوع . و ابى داود كتاب البيوع ٤٤ (٣٤٣٣) . سنن النسائى كتاب البيوع ٧٥ (٤٦٣٩) . و٧٦ (٤٦٤٠) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٣١ (٢٢١٠) . موطا امام مالك كتاب البيوع ٧ (٩) . مسند احمد (٢/٦، ٩، ٥٤، ٦٣، ٧٨)

خرڅ کړو چي مال ورسره وي نو دده مال به دخرڅونکي وي مګر دا چي اخستونکي داخستلو وخت کي شرط لګولي وي، دا رنګي عبيدالله بن عمر وغيره دنافع نه دا دواړه حديثونه نقل کړي دي، بعضي راويانو داحديث دنافع نه او نافع دابن عمر نه او ابن عمر دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي، عکرمه بن خالد د ابن عمر نه او ابن عمر دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دسالم دروايت پشان حديث نقل کړي دي ، امام بخاري واني چي دزهري هغه حديث کوم چي هغه دسالم نه او هغه دخپل پلار او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي دا روايت په دي باب کي دټولو روايتونو نه زيات صحيح دي او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل هم دي او همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

***************

## ٢٦ــ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبَيِّعَيْنِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا

**د دوه سودا کونکو سره هغه وخته پوري دسودا ماتولو او نه ماتولو اختيار دي چي څو پوري ديوبل نه جدا شوي نه وي**

١٢٤٥ــ حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا الكوفيُّ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا "أَوْ" يَخْتَارَا". قَالَ: فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا ابْتَاعَ بَيْعًا وَهُوَ قَاعِدٌ، قَامَ لِيَجِبَ لَهُ الْبَيْعُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ، وَحَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَسَمُرَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالُوا: الفُرْقَةُ بِالأَبْدَانِ لَا بِالكَلَامِ، وَقَدْ قَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: مَعْنَى قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا يَعْنِي الفُرْقَةَ بِالكَلَامِ"، وَالقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ لِأَنَّ ابْنَ عُمَرَ هُوَ رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَعْنَى مَا رَوَى. وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يُوجِبَ البَيْعَ مَشَى لِيَجِبَ لَهُ. (١)

---

[1] ـ البخاری کتاب البیوع ٤٣ (٢١٠٧). صحیح مسلم کتاب البیوع ١٠ (١٥٣١). سنن النسائی کتاب البیوع ٩ (٤٤٧٨). (تحفة الأشراف: ٨٥٢٢) و صحیح البخاری کتاب البیوع ٤٣ (٢١٠٩). و ٤٤ (٢١١١). و ٤٥ (٢١١٢). و ٤٦ (٢١١٣). صحیح

**ترجمه** : عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي داخستلو خرڅولو معامله کونکو ته تر څو چي هغوي جدا شوي نه وي دسودا کولو او ماتولو اختيار دي او يا دا چي دواړه اختيار لره شرط مقرر کړي. نافع وائي کله چي به ابن عمر کوم څيز اخستلو او ناست به وو نو دي وخت کي به اودريدلو تردي پوري چي بيعه واجب (پخه) شي (او اختيار باقي پاتي نشي)

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابوبرزه، حکيم بن حزام، عبدالله بن عباس، عبدالله بن عمرو، سمره، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي په صحابه کرامو او تابعينو کي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق رحمهم الله قول هم دي، دوئ وائي چي دتفرق نه جسماني تفرق مراد دي نه چي قولي تفرق يعني دمجلس نه جدا کيدل مراد دي او دخبري موضوع بدليدل مراد نه دي، بعضي اهل علم وائي چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دقول "مالم يتفرقا" نه مراد قولي جدائي ده ليکن اولني قول زيات صحيح دي خکه چي ابن عمر رضي الله عنهما دا دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي او هغه پخپل نقل کړي حديث زيات پوهيدونکي دي دهغوئ نه مروي دي چي کله به هغه دبيعي واجب کولو اراده اوکړه نو د مجلس نه به روان شو تردي چي بيعه پخه شي، دابوبرزه رضي الله عنه نه هم ددي هم معني روايت مروي دي.

**تشريح** : که احدالمتعاقدين د ايجاب او قبول نه پس د آخر د قبلولو نه وړاندې يوکس پاڅيدلو،نوايجاب باطل شو اودده دا اودريدل به د ايجاب نه د رجوع کولو دليل وى.

او که چري عاقد آخر پاڅيدلو نو دده پاڅيدل به د قبلولو نه د اعراض کولو دليل وى.

بنکاره دې وى چي په عامو کتابونوکي ذکر دى چي مطلق قيام د اعراض دليل دې که ددې خائې نه منتقل کيدل اومونډې شى،يا منتقل کيدل اونه مونډې شى.خو شيخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله په شرح جامع صغير کي ليکلى دى چي مطلق پاسيدل د اعراض دليل نه دې بلکه هغه قيام د اعراض دليل دې چي په هغې کي تلل، او منتقل کيدل اومونډې شى که بائع پاسيدلو، او د خپل خائې نه منتقل نشو اومشترى قبول کړلو نو صحيح ده،

هر کله چي د عاقدينو د طرفه ايجاب او قبول حاصل شو نو بيع لازمه شوه اوپه بائع اومشترى کي د هر يوکس دپاره ملك ثابت شو يعنى بائع د ثمن مالك شو اومشترى د مبيع مالك شو اوس به په دوى کي د هيڅ يو کس دپاره د بيع فسخ کولو اختيار نه وى.خو که په

مسلم کتاب البيوع . سنن ابي داود کتاب البيوع ۵۳ (۳۴۵۴) . سنن النسائي کتاب البيوع ۹ (۴۴۷۷،۴۴۷۰) . سنن ابن ماجه کتاب التجارات ۱۷ (۲۱۸۱) . موطا امام مالک کتاب البيوع ۳۸ (۷۹) . مسند احمد (۲/۴، ۹، ۵۲، ۵۴، ۷۳، ۱۱۹، ۱۳۵)

مبيع کي څه عيب وی، يا ئې مبيع بغير د کتلو نه اخستې وی نو په دې دواړو صورتونوکي به مشتری ته خيار حاصل وی، په ړومبی صورت کي خيار عيب اوپه دويم صورت کي به خيار رويت حاصل وی.

حاصل داچي زمونږ په نزد په عاقدينوکي هيڅ يو کس ته خيار مجلس حاصل نه دې اوامام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.

امام شافعی رحمه الله فرمائی چي په عاقدينو کي د هريو کس دپاره خيارمجلس ثابت دې يعنی د ايجاب او قبول نه پس هر يو کس ته د ملګری د رضامندئ نه بغير په مجلس کي دننه د بيع فسخ کولو حق حاصل دې، خو د مجلس نه پس به دا اختيار باقی نه وی. هم دا د امام احمد رحمه الله قول دې. (ددې دلائل د علم فقه په مطولاتو کي مذکور دي هلته يې د مزيد تحقيق دپاره کتلی شئ).

***************

١٢٤٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ صَالِحٍ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا فَإِنْ صَدَقَا وَبَيَّنَا بُورِكَ لَهُمَا فِي بَيْعِهِمَا، وَإِنْ كَتَمَا وَكَذَبَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا "، هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ وَهَكَذَا رُوِيَ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ الأَسْلَمِيِّ أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَيْهِ فِي فَرَسٍ بَعْدَ مَا تَبَايَعَا، وَكَانُوا فِي سَفِينَةٍ، فَقَالَ: لاَ أَرَاكُمَا افْتَرَقْتُمَا، وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا ". وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ وَغَيْرِهِمْ، إِلَى أَنَّ الْفُرْقَةَ بِالْكَلاَمِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ: كَيْفَ أَرُدُّ هَذَا ؟ وَالْحَدِيثُ فِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَحِيحٌ وَقَوَّى هَذَا الْمَذْهَبَ، وَمَعْنَى قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِلاَّ بَيْعَ الْخِيَارِ " مَعْنَاهُ: أَنْ يُخَيِّرَ الْبَائِعُ الْمُشْتَرِيَ بَعْدَ إِيجَابِ الْبَيْعِ، فَإِذَا خَيَّرَهُ فَاخْتَارَ الْبَيْعَ، فَلَيْسَ لَهُ خِيَارٌ بَعْدَ ذَلِكَ فِي فَسْخِ الْبَيْعِ، وَإِنْ لَمْ يَتَفَرَّقَا هَكَذَا فَسَّرَهُ الشَّافِعِيُّ، وَغَيْرُهُ، وَمِمَّا يُقَوِّي قَوْلَ: مَنْ يَقُولُ الْفُرْقَةُ بِالأَبْدَانِ، لاَ بِالْكَلاَمِ حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[1]

---

[1] ـ البخاری کتاب البیوع ١٩(٢٠٧٩)، و٢٢(٢٠٨٢)، و٤٢(٢١٠٨)، و ٤٣(٢١١٠)، و ٤٦(٢١١٢). صحيح مسلم کتاب البیوع ١(١٥٣٢). سنن ابی داود کتاب البیوع ٥٣ (٣٤٥٩). سنن النسائی کتاب البیوع ٥ (٤٤٦٣). (تحفة الأشراف: ٣٤٢٧) و مسند احمد (٣/٤٠٢، ٤٠٣، ٤٣٤)

**ترجمه** : حكيم بن حزام رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي داخستلو خرڅولو معامله كونكو ته تر څو چي هغوي جدا شوي نه وي دسودا كولو او ماتولو اختيار دي كه خپله معامله رښتياو سره اوكړي دمال يازرمبادله عيب ښكاره كړي نو اخستل خرڅول به يې دبركت ذريعه وي او كه چرى دي كي د دروغو يا دعيب پرده پوشي او موندى شوه نوبركت به ترينه ختم شي

امام ترمذي وائي دا حديث صحيح دي ددي هم معني حديث دابوبرزه اسلمي نه هم مروي دي چي دوه كسانو داس خرڅولو نه پس پخپل مينځ كي مقدمه شروع كړه او ابوبرزه ته يې مقدمه پيش كړه او هغوئ په دغه وخت كي په كشتئ كي ناست وو ابوبرزه اووئيل زه نه پوهيږم يعني ماته معلومه نه ده چي تاسو دواړه جداشوي يئ او رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بائع او مشتري ته هغه وخته پوري اختيار دي چي څو پوري ديو بل نه جدا شوي نه وي په اهل كوفه كي بعضي اهل علمو داقول اختيار كړي دي چي تفرق به په قول سره راخي او همدا دسفيان ثوري قول دي او امام مالك ته هم ددي قول نسبت شوي دي. ابن مبارك وائي چي زه به دا مسلك څنګه رد كړم هر كله چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په دي باره كي صحيح حديث وارد دي او هغوئ دا قوي ګڼړلي دي او درسول الله دقول "الابيع الخيار" مطلب دادي چي بائع مشتري ته دبيعي واجب كولو نه پس اختيار وركړي پس هر كله چي مشتري بيعه قبوله كړي نو ددينه پس بَه ده ته دفسخ كولو اختيار نه وي اګر كه دواړه جداشوي نه وي دارنګي امام شافعي وغيره دحديث دا تفسير كړي دي او څوك چي دجسماني جدائي (تفرق بالابدان) قائل دي دهغوئ دقول دليل دعبدالله بن عمر حديث دي كوم چي هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي (او لاندي راروان دي)

**لغات**: البيعان: باع بيعا ومبيعا د ضرب نه په معني داخستلو او خرڅولو دي بائع يې صفت دي او باعة يې جمع مفعولي دى، مبيع بايعه مبايعة، يعني دچا سره دخريد او فروخت څه قسم معامله كول چي هرڅنګه وي.

الخيار: خار خيرا وخيرة د ضرب په معني د فضيلت وركولو دي يو شي ته په بل باندي اوهم ددي نه "اللّهمَّ خرلي" فقره مشتق كړي شوي ده ، الخيار غوره كولو ته وئيل شي.

يتفرقا: فرق فرقا وفرقانا دنصر او ضرب نه په معني د جدا كولو دي .

كتم: كتم كتما وكتمانا دنصر نه په معني دپټولو دي، يا كوم څيز لره پوشيده كول، كتم په بعضي وختونو كي دوه مفعولو ته متعدي كيږي لكه كتمت زيدا الحديث يعني دزيد نه مي خبره پټه كړه ، په مفعول اول كي من هم زياتولي شي لكه كتمت من زيد الحديث.

محقت: محق محقا دضرب نه په معني دورانولو دي.

**تشريح** : "البيعان بالخيار مالم يتفرقا" يعني اخستونكى او خرڅونكى چي ترڅو پوري جدا شوي نه وي ترهغې پوري دوئ ته اختيار باقي وي په دي حديث كي د دي خبري وضاحت دى چي په اخستلو او خرڅولو كي دبايع او مشتري دواړو رضامندي ضروري ده لكه چي الله تعالي فرمانيلي دي:

"لاتأكلوا اموالكم بينكم بالباطل الا ان تكون تجارة عن تراض منكم"

كله چي بايع او مشتري دواړو ايجاب او قبول اوكړي نو رضامندي متحققه شوه لهذا اوس به يوته دبل مال حلال وي دپورتني حديث هم دا مطلب دى چي بايع او مشتري دواړو لره ديو بل د مال درد كولو اختيار وي خو ترڅو چي ايجاب او قبول شوى نه وي كله چي ايجاب او قبول اوشي نو اختيار ختم شي.

فان صدقا وبينا بورك لهما في بيعهما. يعني كه دوئ رښتيا اووائي او دسودا عيب بيان كړي نو په دي كي به د دي دواړو دپاره بركت واچولى شي.

په يو بل حديث كي راغلي دي كه چرې دوئ عيب بيان نكړي نو داسي سودا غوره سودا نه ده

عن واثلة بن الاسقع رضي الله عنه قال سمعت رسول الله صلي الله عليه وسلم يقول من باع عيبا لم ينبه لم يزل في مقت الله او لم تزل الملائكة تلعنه (ابن ماجه).

دواثله بن اسقع رضي الله عنه نه روايت دي چي د رسول الله نه مي اوريدلي دي كه څوك كوم عيب دار څيز خرڅ كړي او عيب يي پټ كړي نو الله تعالي ورته په غضب كي وي او كه داسي يي او فرمانيل چي فرښتي ورباندي هميشه لعنت وايي.

***************

١٢٤٧ـ أَخْبَرَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا إِلَّا أَنْ تَكُونَ صَفْقَةَ خِيَارٍ، وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يُفَارِقَ صَاحِبَهُ خَشْيَةَ أَنْ يَسْتَقِيلَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَمَعْنَى هَذَا أَنْ يُفَارِقَهُ بَعْدَ الْبَيْعِ خَشْيَةَ أَنْ يَسْتَقِيلَهُ، وَلَوْ كَانَتِ الْفُرْقَةُ بِالْكَلَامِ، وَلَمْ يَكُنْ لَهُ خِيَارٌ بَعْدَ الْبَيْعِ لَمْ يَكُنْ لِهَذَا الْحَدِيثِ مَعْنًى حَيْثُ قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يُفَارِقَهُ خَشْيَةَ أَنْ يَسْتَقِيلَهُ".[1]

---

[1] ـ ابي داود كتاب البيوع ٥٣ (٣٤٥٨). (تحفة الأشراف: ٨٧٩٤). ومسند احمد (٢/١٨٣)

**ترجمه** د عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي داخستلو خرڅولو معامله كونكو ته تر څو چي هغوي جدا شوي نه وي دسودا كولو او ماتولو اختيار دي او دبائع دپاره جائز نه دي چي دخپل ملګري (مشتري) نه ددي ويري په وجه جدا شي چي دي چرته بيعه ماته نكړي امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي او ددي معني داده چي دبيعي نه پس اخستونكي دخرڅونكي نه ددي ويري په وجه جدا شي چي چرته بيعه ماته نكړي او كه جدائي صرف په كلام سره راتلي او دبيعي نه پس مشتري ته اختيار نه پاتي كيدي نو بيا خو به ددي حديث كومه معني نه وه چي دبائع دپاره جائز نه دي چي دمشتري نه ددي ويري په وجه جدا شي چي دي چرته بيعه ماته نكړي.

****************

## ٢٧_ باب

## دخيار متعلق يو بل باب

١٢٤٨_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ وَهُوَ الْبَجَلِيُّ الكوفي، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا زُرْعَةَ بْنَ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا يَتَفَرَّقَنَّ عَنْ بَيْعٍ إِلَّا عَنْ تَرَاضٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي بائع او مشتري دي دمجلس نه په رضامندئ سره جدا شي.
امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي.

****************

١٢٤٩_ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ الشَّيْبَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَيَّرَ أَعْرَابِيًّا بَعْدَ الْبَيْعِ ". وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (٢)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دبيعي نه پس يو اعرابي ته اختيار وركړي وو

---

[1] _ ابي داود كتاب البيوع ٥٣ (٣٤٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٢٢)، ومسند احمد (٢/٥٣٦)

[2] _ سنن ابن ماجه كتاب التجارات ١٨ (٢١٨٤)، (تحفة الأشراف: ٢٨٢٢)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي.

***************

## ٢٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ يُخْدَعُ فِي الْبَيْعِ

### بيان دهغه چا څوك چي په كاروبار كي دهوكه كيږي

١٢٥٠_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ حَمَّادٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَجُلًا كَانَ فِي عُقْدَتِهِ ضَعْفٌ، وَكَانَ يُبَايِعُ، وَأَنَّ أَهْلَهُ أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ، احْجُرْ عَلَيْهِ. فَدَعَاهُ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَهَاهُ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي لَا أَصْبِرُ عَنِ الْبَيْعِ. فَقَالَ: "إِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ: هَاءَ وَهَاءَ، وَلَا خِلَابَةَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. وَحَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَقَالُوا: الْحَجْرُ عَلَى الرَّجُلِ الْحُرِّ فِي الْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ إِذَا كَانَ ضَعِيفَ الْعَقْلِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَلَمْ يَرَ بَعْضُهُمْ أَنْ يُحْجَرَ عَلَى الْحُرِّ الْبَالِغِ. [1]

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي يوكس اخستلو خرڅولو كي كمزوري وو او هغه به اخستل خرڅول كول چنانچه دده دكور خلق دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شول او عرض يي اوكړو يا رسول الله ده لره دتصرف كولو نه منع كړه رسول الله صلي الله عليه وسلم دي راوغوښتلو او منع يي كړلو هغه عرض اوكړو زه داخستلو خرڅولو نه بغير نشم پاتي كيدي رسول الله اوفرمائيل څوك چي تاسره سودا كوي نو دا ورته وايه برابر په برابر لين دين كول دي او په دي كي فريب اودهوكه به نه وي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي او دانس حديث حسن غريب دي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي چي كمزوري عقل والالره دي داخستلو خرڅولو نه منع كړي شي داسحاق هم دا قول دي او دبعضي اهل علمو په نزد يو ازاد بالغ انسان لره داخستلو خرڅولو نه منع كول جائز نه دي.

**لغات** : الخلابة معني دوكه كول، يعني كه دهوكه دي راسره كړي وي نو شى به درته واپس كيږي.

**تشريح** : ددي كس نه مراد منقذ بن عمرو دى څوك چي دسر دزخم په وجه ذهني كمزورى شوى

---

[1] _ ابي داود كتاب البيوع ٦٨ (٣٥٠١). و النسائي كتاب البيوع ١٣ (٤٤٩٠). و ابن ماجه كتاب الأحكام ٢٣ (٢٣٥٤). (تحفة الأشراف: ١١٧٥). و مسند احمد ٣٢١٧)

وو.

"فقل لاخلابة" توربشتي ددي دا مطلب بيان کړی دی چي رسول الله دي صحابي ته اوفرمائيل چي ته به د خرڅولو په وخت کي داسي وائي چي زما دمعاملاتو سره زيات واقفيت نشته نو په دي وجه به ما نه دوکه کوئ نو ددينه پس به دی هيڅا نه دوکه کولو

واضح دي وي چي دا دهغي زماني خبره ده کومه زمانه چي دامانتدارئ او ديندارئ او پرهيزګارئ اعلي نمونه پيش کړي وه او په هغه زمانه کي دهر چا په زړه کي دنورو دپاره دهمدردئ جزبه وه ليکن ننن سبا که چاته معلومه شي چي فلانی دمعاملاتو نه واقف نه دی نو بيا خو خلق هغه لره دنور زيات دوکه کولو کوشش کوي.

***************

## ٢٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُصَرَّاةِ

### دبيع مصرات بيان

١٢٥١_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اشْتَرَى مُصَرَّاةً فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِذَا حَلَبَهَا إِنْ شَاءَ رَدَّهَا وَرَدَّ مَعَهَا صَاعًا مِنْ تَمْرٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَنَسٍ، وَرَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که چا داسي لنګ څاروي واخستلو چي پئ يي مالك دڅو ورځو نه بند کړي وو نو اخستونکي ته اختيار دي چي دلوشلو نه پس دي لره دي ديو صاع کجورو سره واپس کوي (او که څان سره يي ساتي)

امام ترمذي وائي په دي باب کي دانس رضي الله عنه نه او يو بل صحابي نه هم روايت وارد دي.

**تشريح** په حديث کي راغي: ونهي عن النجش والتصري: يعني منعه يي فرمائيلي ده ديو څيز دګران خرڅولو او دڅاروو په غلانزو کي دشودو جمع کولو نه پس هغي لره دخرڅولو نه دنجش تشريح خو مخکي تيره شوه چي يو دريم کس په ذريعه ديو څيز قيمت زيات کړی شي حالانکه هغه ددي څيز اخستل نه غواړي صرف خريدار ته دوکه ورکول يي مطلب وي چي دا څيز ګران

---

1_ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٣٦٥)

واخلي او دا دريم كس عموما دبانع دطرف نه په دي كار مقرر وي.

***************

١٢٥٢ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ اشْتَرَى مُصَرَّاةً فَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ. فَإِنْ رَدَّهَا رَدَّ مَعَهَا صَاعًا مِنْ طَعَامٍ لَا سَمْرَاءَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَصْحَابِنَا مِنْهُمْ: الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ: "لَا سَمْرَاءَ" يَعْنِي: لَا بُرَّ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي په غلانز كي حصار كړو پيو والا څاروي واخستلو ده ته د دري ورځو پوري اختيار دي كه چري دي لره واپس كوي نو دغنمو نه علاوه كومه بله غله به يوصاع ورسره وركوي او د لا سمراء معني داده چي غنم به نه وي.
داحديث حسن صحيح دي او زمونږ دشوافعو علماؤ په دي باندي عمل دي او دامام شافعي او احمد او اسحاق رحمهم الله هم دا قول دي.

**تشريح** : مصرات داسم مفعول صيغه ده او دتصريه معني تړل او حصارول دي يعني دڅاروي په غلانز كي دڅو ورځو نه پئ حصارولو ته وئيلي شي تردي چي خريدارورباندي دهوكه شي او دي دڅپل طبيعت قيمت وصول كړي دي عمل ته تصريه وئيلي شي كه چري دا عمل داوبښ نه علاوه دبل څاروي سره اوكړي شي نو ديته تصريه ويلي شي او ګډو چيلو سره اوكړي شي نو ديته شات مصرات وئيلي شي او كه دا عمل غواؤ سره اوكړي شي نو ديته بقرة المصرات وئيلي شي، او كه دا عمل داوبښ سره اوكړي شي نو ديته تحفيل وئيلي شي او اوبښي ته ناقة محفلة وئيلي شي (ددي تفصيل دعلم فقه په كتابونو كي موجود دي هلته يي كتلي شئ).

***************

## ٣٠ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي اشْتِرَاطِ ظَهْرِ الدَّابَّةِ عِنْدَ الْبَيْعِ

### د سورلئ د خرڅون وخت د سورلئ كولو شرط مقررولو بيان

---

[1] ـ البخاري كتاب البيوع ٦٤ (٢١٤٨). مسلم كتاب البيوع ٤ (١٥١٥). سنن النسائي كتاب البيوع ١٣ (٤٤٩٣، ٤٤٩٤). ابن ماجه كتاب التجارات ٤٢ (٢٢٣٩). (تحفة الأشراف: ١٤٥٠٠)

١٢٥٣_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ زَكَرِيَّا، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، "أَنَّهُ بَاعَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعِيرًا، وَاشْتَرَطَ ظَهْرَهُ إِلَى أَهْلِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ جَابِرٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، يَرَوْنَ الشَّرْطَ فِي الْبَيْعِ جَائِزًا، إِذَا كَانَ شَرْطًا وَاحِدًا، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا يَجُوزُ الشَّرْطُ فِي الْبَيْعِ وَلَا يَتِمُّ الْبَيْعُ إِذَا كَانَ فِيهِ شَرْطٌ. (١)

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي ما په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندي اوښ خرڅ کړو او په دي باندي مي دځپل کور پوري دسورلئ کولو شرط مقرر کړو.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دجابر رضي الله عنه نه په يوځو سندونو مروي دي دبعضي صحابه کرامو او اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي په بيع کي يو شرط لګول جائز دي دامام احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي مګر دبعضي علماؤ په نزد په بيع کي شرط لګول جائز نه دي او دشرط والا بيع ددوئ په نزد کامله بيعه نه وي

***************

## ٣١_ باب مَا جَاءَ فِي الِانْتِفَاعِ بِالرَّهْنِ

### دمرهونه څيز نه دفاندي اخستلو بيان

١٢٥٤_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَيُوسُفُ بْنُ عِيسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ زَكَرِيَّا، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الظَّهْرُ يُرْكَبُ إِذَا كَانَ مَرْهُونًا، وَلَبَنُ الدَّرِّ يُشْرَبُ إِذَا كَانَ مَرْهُونًا، وَعَلَى الَّذِي يَرْكَبُ وَيَشْرَبُ نَفَقَتُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَامِرٍ الشَّعْبِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مَوْقُوفًا، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ

---

١_ البخاري كتاب البيوع ٣٣ (٢٠٩٤)، والاستقراض ١ (٢٣٨٥)، و ١٨ (٢٤٠٦)، والمظالم ٢٦ (٢٤٧٠)، والشروط ٤ (٢٧١٨)، والجهاد ٤٩ (٢٨٦١)، و ١١٣ (٢٩٦٧)، صحيح مسلم كتاب البيوع ٢٣ (المساقاة ٢١) (٧١٥)، والرضاع ١٦ ٥٧ و ٥٨). سنن ابي داود كتاب البيوع ٧٧ (٣٦٤١)، سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٢٩ (٢٢٠٥). (تحفه الأشراف: ٢٣٤١)، و مسند احمد (٣/٢٩٩)

بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَيْسَ لَهُ أَنْ يَنْتَفِعَ مِنَ الرَّهْنِ بِشَيْءٍ. (1)

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي گرو كري څاروي دسورلئ دپاره استعمالول او يا ددي پئ خوړل جائز دي ليكن په سورلي كونكي او پئ خوړونكي باندي ددي څاروي نفقه واجب ده.

داحديث حسن صحيح دي او دا مونږ ته صرف دعامر شعبي په سند دابوهريره نه مرفوع رارسيدلي دي يو څو راويانو داحديث داعمش نه او هغه دابوصالح نه او هغه دابوهريره رضي الله عنه نه موقوفاً نقل كړي دي او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي امام احمد او اسحاق هم ددي قائل دي او دبعضي علماؤ په نزد دگروئ والاخيز نه فائده اخستل جائز نه دي.

***************

## ٣٢_ باب مَا جَاءَ فِي شِرَاءِ الْقِلَادَةِ وَفِيهَا ذَهَبٌ وَخَرَزٌ

**دداسي اميل اخستلو بيان په كوم كي چي سره زر او غمي استعمال شوي وي**

١٢٥٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي شُجَاعٍ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ أَبِي عِمْرَانَ، عَنْ حَنَشٍ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، قَالَ: اشْتَرَيْتُ يَوْمَ خَيْبَرَ قِلَادَةً بِاثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا فِيهَا ذَهَبٌ، وَخَرَزٌ فَفَصَّلْتُهَا، فَوَجَدْتُ فِيهَا أَكْثَرَ مِنَ اثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا. فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: "لَا تُبَاعُ حَتَّى تُفَصَّلَ". حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ: حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ أَبِي شُجَاعٍ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ، بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى ١٢: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. لَمْ يَرَوْا أَنْ يُبَاعَ السَّيْفُ مُحَلًّى، أَوْ مِنْطَقَةٌ مُفَضَّضَةٌ، أَوْ مِثْلُ هَذَا بِدَرَاهِمَ حَتَّى يُمَيَّزَ وَيُفَصَّلَ، وَهُوَ قَوْلُ: ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي ذَلِكَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. (2)

---

1 _ البخاری کتاب الرهن ۴ (۲۵۱۱) . سنن ابی داود کتاب البیوع ۷۸ (۳۵۲۶) . سنن ابن ماجه کتاب الرهون ۲ (۲۴۴۰) . (تحفة الأشراف : ۱۳۵۴۰) . و مسند احمد ۲/۲۲۸)

2 _ مسلم کتاب المساقاة ۱۷ (البیوع ۳۸) . سنن ابی داود کتاب البیوع ۱۳ (۳۳۵۱) . سنن النسائی کتاب البیوع (۴۵۷۷) . (تحفة الأشراف : ۱۱۰۲۷) . و مسند احمد (۲۱،۶/۱۹)

**ترجمه** : دفضاله بن عبيد رضي الله عنه بيان دي چي دغزوه خيبر په موقع ما په دولس ديناره يو هار واخستلو چي سره زر او غمي پکي لګيدلي وو ما چي ورنه دا ځيزونه جدا کړل نو ددولس دينارو نه مي زيات زر اوموندل نو ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکړو راته يي اوفرمائيل دزرو جدا كولو نه دي دا خرڅ نکړي شي، دقتيبه، ابن مبارك، ابوشجاع، سعيد بن زيد نه هم په همدي سند ددي حديث هم معني روايت مروي دي او دا حديث حسن صحيح دي دبعضي صحابه کرامو او ددوئ نه پس دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي چي دداسي كمربند ياتوري وغيره جدا جدا خرخول په کوم کي چي سپين زر استعمال شوي وي جائز نه دي تردي چي دواړه ځيزونه جدا جدا خرڅ کړي شي اود ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم دا قول دي، مګر بعضي صحابه کرامو او ددوئ نه پس بعضي اهل علمو ددي اجازت ورکړي دي.

**دابومحمد فضاله بن عبيد انصاري رضي الله عنه حالات**

نوم فضاله كنيه ابو محمد دپلار نوم عبيد بن نافذ او دمور نوم عقبه بنت محمد بن عقبه وو مديني ته دراتلونکو سره مسلمان شوی وو چي دغزوه بدر نه علاوه په تمامو غزواتو کي شريك شوی دی او په بيعة الرضوان کي هم شامل وو (اصابه).

دوفات نبوي نه پس شام ته لاړو او هلته يي كور جوړ کړو مسند احمد.

ابوالدرداء رضي الله عنه د دمشق قاضي وودوفات كيدو نه مخکي يي اوفرمائيل چي زمانه پس به فضاله بن عبيد قاضي مقرروئ خلق به ورته دډير لري لري نه درسول الله داحاديثو داوريدلو دپاره راتلل يو سړی ورته ددي دپاره راغلی وو چي احاديث ورنه واوري هغه چي اوكتل چي ويخته يي ګډ وډ او په خپو برېنډ دی نو په تعجب سره يي تپوس اوکړو چي ته ددي ښار قاضي يي او حالت دي دادی فضاله رضي الله عنه اوفرمائيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ داسانئ او ډول او سنګار خوښولو نه منع کړي يو او كله كله به يي راته په برېنډو خپو دګرځيدو حكم كولو (مسند احمد)

وفات: دهجرت په ۵۳ كال دامير معاويه په دور کي وفات شو او په دمشق ښار کي يي تراوسه پوري قبر موجود دی چي پنځوس روايات ورنه منقول دي چي دوه ددينه په مسلم کي دي.

****************

## ٣٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي اشْتِرَاطِ الْوَلَاءِ وَالزَّجْرِ عَنْ ذَٰلِكَ

**په بيعه کي دولاء په شرط مقررولوزجر او وعيد**

١٢٥٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا أَرَادَتْ أَنْ تَشْتَرِيَ بَرِيرَةَ، فَاشْتَرَطُوا الوَلَاءَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اشْتَرِيهَا فَإِنَّمَا الوَلَاءُ لِمَنْ أَعْطَى الثَّمَنَ، أَوْ لِمَنْ وَلِيَ النِّعْمَةَ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. قَالَ: وَمَنْصُورُ بْنُ المُعْتَمِرِ يُكْنَى: أَبَا عَتَّابٍ. حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ العَطَّارُ البَصْرِيُّ، عَنِ ابْنِ المَدِينِيِّ، قَال: سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ، يَقُولُ: إِذَا حُدِّثْتَ عَنْ مَنْصُورٍ، فَقَدْ مَلَأْتَ يَدَكَ مِنَ الخَيْرِ لَا تُرِدْ غَيْرَهُ، ثُمَّ قَالَ يَحْيَى: مَا أَجِدُ فِي إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، وَمُجَاهِدٍ، أَثْبَتَ مِنْ مَنْصُورٍ. قَالَ مُحَمَّدٌ: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي الأَسْوَدِ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ مَنْصُورٌ، أَثْبَتُ أَهْلِ الكُوفَةِ.[1]

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چي ما دبريري داخستلو اراده اوكړي نو خرڅونكو دولاء شرط اولګولو نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ته دا واخله ځكه چي ولاء حق دهغه چا دپاره دي څوك چي قيمت اداء كړي او يا ددي د ازادولو مالك اوګرځي. او په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي او دعائشه حديث حسن صحيح دي داهل علمو هم په دي باندي عمل دي او دمنصور بن معتمر كنيه ابوعتاب ده ابوبكر عطار دعلي بن مديني نه روايت نقل كوي او هغه ديحي بن سعيد نه چي كله تاسو ته دمنصور په واسطه كوم حديث راورسيږي نو پوهه شئ چي ستاسو دواړه لاسونه دخير نه ډك شول او دده نه پس بل چاته ضرورت نشته، بيا وائي دابراهيم نخعي او مجاهد نه په روايت كولو كي دمنصور نه زيات اثبت بل څوك نشته دامام بخاري، عبدالله بن ابي اسود نه روايت نقل كوي او هغه دعبدالرحمن بن مهدي قول نقل كړي دي چي منصور دكوفي په تمامو راويانو كي اثبت دي.

******************

## ٣٤_ باب

## دولادا حكامو متعلق يو بل باب

١٢٥٧_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَعَثَ حَكِيمَ بْنَ حِزَامٍ يَشْتَرِي لَهُ

---

1 _

أُضحِيَّةً بِدِينَارٍ، فَاشْتَرَى أُضحِيَّةً، فَأُرْبِحَ فِيهَا دِينَارًا، فَاشْتَرَى أُخْرَى مَكَانَهَا، فَجَاءَ بِالأُضْحِيَّةِ وَالدِّينَارِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: " ضَحِّ بِالشَّاةِ، وَتَصَدَّقْ بِالدِّينَارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ، حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ لَمْ يَسْمَعْ عِنْدِي مِنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ. ([1])

**ترجمه** دحكيم بن حزام رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه په يو دينار دقرباني دځاروي اخستلو دپاره اوليږلم راوي وائي چي حكيم بن حزام يو ځاروي واخستلو (او په دوه ديناره يي خرڅ كړو) او په دي كي يي يو دينار اوګټلو او بيا حكيم ددي ځاروي په ځاي په يو دينار بل ځاروي واخستلو نو يو يي دقرباني ځاروي راوستلو او يو دينار يي هم دځان سره رسول الله صلي الله عليه وسلم وسلم ته راوړو او پيش يي كړو رسول الله ورته اوفرمائيل په چيلي قرباني اوكړئ او دينار صدقه كړئ
امام ترمذي وائي دحكيم بن حزام حديث مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي او زما په نزد دحبيب بن ابي ثابت سماع دحكيم بن حزام نه ثابت نه ده

**تخريج** تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٣٤٢٣)

***************

١٢٥٨ــ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الدَّارِمِيُّ، حَدَّثَنَا حَبَّانُ، حَدَّثَنَا هَارُونُ الأَعْوَرُ المُقْرِئُ، حَدَّثَنَا الزُّبَيْرُ بْنُ الخِرِّيتِ، عَنْ أَبِي لَبِيدٍ، عَنْ عُرْوَةَ البَارِقِيِّ، قَالَ: دَفَعَ إِلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِينَارًا لِأَشْتَرِيَ لَهُ شَاةً، فَاشْتَرَيْتُ لَهُ شَاتَيْنِ، فَبِعْتُ إِحْدَاهُمَا بِدِينَارٍ، وَجِئْتُ بِالشَّاةِ وَالدِّينَارِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ لَهُ مَا كَانَ مِنْ أَمْرِهِ، فَقَالَ لَهُ: " بَارَكَ اللَّهُ لَكَ فِي صَفْقَةِ يَمِينِكَ ". فَكَانَ يَخْرُجُ بَعْدَ ذَلِكَ إِلَى كُنَاسَةِ الكُوفَةِ، فَيَرْبَحُ الرِّبْحَ العَظِيمَ فَكَانَ مِنْ أَكْثَرِ أَهْلِ الكُوفَةِ مَالًا. حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الدَّارِمِيُّ، حَدَّثَنَا حَبَّانُ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا الزُّبَيْرُ بْنُ خِرِّيتٍ فَذَكَرَ نَحْوَهُ، عَنْ أَبِي لَبِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ إِلَى

[1] ــ البخاري كتاب كفارات الأيمان ٨ (٦٧١٤)، سنن النسائي كتاب الطلاق ٣٠ (٣٤٤٩) وايضا برقم: ١١٥٣. وما يأتي برقم: ٣١٢٣ و٣١٢٥) (تحفة الأشراف: ١٥٩٩٢)

هَذَا الحَدِيثِ، وَقَالُوا بِهِ: وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَلَمْ يَأْخُذْ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ بِهَذَا الحَدِيثِ مِنْهُمْ: الشَّافِعِيُّ، وَسَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ أَخُو حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، وَأَبُو لَبِيدٍ اسْمُهُ لِمَازَةُ بْنُ زَبَّارٍ.[1]

**ترجمه** : دعروه بارقي بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دچيلي اخستلو دپاره ماته يو دينار راكړو نو ما په هغه دينار دوه چيلي واخستل او بيا مي په دوئ كي يو چيلي په يو دينار خرڅ كړو نو يو چيلي او يو دينار مي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راوړل او راغلم او تمامه معامله مي ورته بيان كړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله تعالي دي ستا دلاس په سودا كي بركت واچوي، بيا مي ددينه پس عروه دكوفي كناسي ته تلو او ديره زياته گټه به يي كيدله چنانچه دده نه په كوفه كي دټولو نه زيات مالدار سړي جوړ شو. مؤلف داحمد بن سعيد دارمي په سند دزبير بن خريت نه هم ددي هم معني روايت نقل كړي دي.

امام ترمذي وائي بعضي اهل علمو دي حديث طرف ته ميلان كړي دي او هم ددي خبري قائل شوي دي او همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي ليكن بعضي اهل علمو دا حديث نه دي اختيار كړي چي يو په هغوئ كي امام شافعي او سعيد بن زيد او حماد بن زيد دي . اود ابو لبيد نوم لمازه بن زبار دی.

### دعروه بارقي رضي الله عنه حالات

نوم عروه دپلار نوم جهد د اسدي دقبيله بارق سره يي تعلق دی كومه چي په يمن كي وه عمر رضي الله عنه عروه دكوفي قاضي مقرر كړی وو دده شمير په كوفيانو كي شوی دی او دده روايات هم اكثر داهل كوفه نه موندلی شي.

ابن مديني وائي دبعضي خلقو قول دی چي عروه او ابو جهد ديوكس نومونه دي خو دا بالكل غلط قول دی ځكه چي عروه خوي دی او جهد دده پلاره دی دده دمروياتو شمير ١٣ دی چي يو په بخاري كي دی او دوه په مسلم كي (فتح الباري).

*****************

## ٣٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُكَاتَبِ إِذَا كَانَ عِنْدَهُ مَا يُؤَدِّي

**دهغه مكاتب بيان دچا سره چي دومره مال وي چي دي وربا ندي حق دكتابت اداء كولي شي**

---

[1] ـ البخاري كتاب المناقب ٢٨ (٣٦٤٢) . سنن ابي داود كتاب البيوع ٢٨ (٣٣٨٣) . سنن ابن ماجه كتاب الأحكام ، (٢٤٠٢) . (تحفه الأشراف: ٩٨٩٨)

١٢٥٩_ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَصَابَ الْمُكَاتَبُ حَدًّا، أَوْ مِيرَاثًا وَرِثَ بِحِسَابِ مَا عَتَقَ مِنْهُ"، وقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُؤَدِّي الْمُكَاتَبُ بِحِصَّةِ مَا أَدَّى دِيَةَ حُرٍّ وَمَا بَقِيَ دِيَةَ عَبْدٍ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَهَكَذَا رَوَى يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ عَلِيٍّ قَوْلَهُ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وقَالَ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چي مكاتب غلام د ديت يا ميراث مستحق شي نو هم دومره حصه به ورته ملاويږي څومره چي دي ازاد شوي وي او بيا يي اوفرمائيل مكاتب چي څومره زر دكتابت اداء كړي دي دهم دومره ازادئ موافق به ورنه ديت اخستلي شي او چي كوم ورباندي باقي وي دهغي مطابق به دغلام دطرفه ديت وركولي شي.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او ددي په شان روايت يحىٰ بن كثير دعكرمه نه او عكرمه دابن عباس نه او ابن عباس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي، او په دي باب كي دام سلمه رضي الله عنها نه هم حديث مروي دي ليكن خالد الحذاء هم دعكرمه نه روايت نقل كړي دي مګر دهغه مطابق عكرمه دعلي رضي الله عنه قول نقل كړي دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي حديث عمل دي او داكثرو صحابه كرامو او اهل علمو قول دي چي كله په مكاتب باندي يو درهم هم باقي وي تر هغي به دي غلام شميرلي شي دسفيان ثوري، شافعي، احمد او اسحاق رحمهم الله هم دا قول دي

***************

١٢٦٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَخْطُبُ يَقُولُ: "مَنْ كَاتَبَ

[1] _ ابي داود كتاب الديات ٢٢ (٤٥٨١)، سنن النسائي كتاب القسامة ٣٨، ٣٩ (٤٨١٢-٤٨١٦)، (تحفة الأشراف: ٥٩٩٣)، و مسند احمد (١/٢٢٢، ٢٢٦، ٢٦٣)

عَبْدَهُ عَلَى مِائَةِ أُوقِيَّةٍ فَأَدَّاهَا إِلَّا عَشْرَ أَوَاقٍ، أَوْ قَالَ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ، ثُمَّ عَجَزَ فَهُوَ رَقِيقٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ المُكَاتَبَ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ شَيْءٌ مِنْ كِتَابَتِهِ، وَقَدْ رَوَى الحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ نَحْوَهُ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دخطبي په دوران کي اوريدلي دي څوك چي دخپل غلام سره په سل اوقيو (دولس سوه درهمه) باندي مکاتبت اوکړي او هغه دلس اوقيو نه علاوه باقي ټول حق دکتابت اداء کړي وي او بيا دبقايه د اداء کولو نه عاجز شي نو دده غلامي به برحال وي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، حجاج بن ارطاة هم دعمرو بن شعيب نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي داکثرو په دي باندي عمل دي چي څوپوري په مکاتب باندي څه حصه دزرو باقي وي ترهغي به دي غلام وي

***************

١٢٦١- حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ نَبْهَانَ مَوْلَى أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَ عِنْدَ مُكَاتَبِ إِحْدَاكُنَّ مَا يُؤَدِّي، فَلْتَحْتَجِبْ مِنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَمَعْنَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ عَلَى التَّوَرُّعِ، وَقَالُوا: لَا يُعْتَقُ المُكَاتَبُ، وَإِنْ كَانَ عِنْدَهُ مَا يُؤَدِّي حَتَّى يُؤَدِّيَ. (2)

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي په تاسو کي دچا مکاتب غلام سره دومره پيسي وي چي زر دکتابت ورباندي اداء کولي شي نو دهغه نه ددوئ دپاره پرده کول پکار دي، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او داهل علمو په دي حديث دتقوي او احتياط په بنياد په دي باندي عمل دي دوئ وائي مکاتب غلام چي څو پوري زر دکتابت اداء کړي نه وي نه ازاديږي اګر چي دده سره زر دکتابت د اداء کولو دپاره موجود وي

***************

1 _ ابي داود كتاب العتق ا (٣٩٢٦) . ٣٩٢٧ سنن ابن ماجه كتاب العتق ٣ (٢٥١٩) (تحفة الأشراف : ٨٨١٣)

2 _ ابي داود كتاب العتق ا (٣٩٢٨) . ابن ماجه كتاب العتق ٣ (٢٥٢٠) . (تحفة الأشراف ١٨٢٢١)

## ٣٦_ باب مَا جَاءَ إِذَا أَفْلَسَ لِلرَّجُلِ غَرِيمٌ فَيَجِدُ عِنْدَهُ مَتَاعَهُ

**كه دچا قرضداري مفلس شي او خپل مال ورسره بيامومي نو ددې څه حکم دي**

١٢٦٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "أَيُّمَا امْرِئٍ أَفْلَسَ، وَوَجَدَ رَجُلٌ سِلْعَتَهُ عِنْدَهُ بِعَيْنِهَا فَهُوَ أَوْلَى بِهَا مِنْ غَيْرِهِ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ سَمُرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: هُوَ أُسْوَةُ الغُرَمَاءِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَهْلِ الكُوفَةِ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر يو قرضداري چې مفلس شي او قرض ورکونکي ورسره خپل مال بعينه بيامومي نو دي ددې سامان دنورو قرضدارو په نسبت زيات مستحق دي

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دې باب کې دسمره او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، او دبعضې اهل علمو په دې باندې عمل دی او همدا دامام شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي، مګر بعضې اهل علم وائي ددې مال مالك به هم دنورو قرضدارو پشان وي او دا داهل کوفه قول دي

***************

## ٣٧_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ لِلْمُسْلِمِ أَنْ يَدْفَعَ إِلَى الذِّمِّيِّ الْخَمْرَ يَبِيعُهَا لَهُ

**يو مسلمان لره ذمي ته دخرڅ دپاره شراب ورکول منع دي**

١٢٦٣_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنْ أَبِي الوَدَّاكِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: كَانَ عِنْدَنَا خَمْرٌ لِيَتِيمٍ، فَلَمَّا نَزَلَتْ المَائِدَةُ، سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ، وَقُلْتُ: إِنَّهُ لِيَتِيمٍ، فَقَالَ: "أَهْرِيقُوهُ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

[1] _ البخاری کتاب الاستقراض ١٢ (٢٤٠٢). صحيح مسلم کتاب المساقاة ٥ (البيوع ٢٦). (١٥٥٩). سنن ابي داود کتاب البيوع ٧٦ (٣٥١٩). سنن النسائي کتاب البيوع ٩٥ (٤٦٨٠). سنن ابن ماجه کتاب الأحكام ٢٦ (٢٣٥٨). (تحفة الأشراف: ١٤٨٦١). وط کتاب البيوع ٤٢ (٨٨). ومسند احمد (٢/٢٢٨، ٢٥٨، ٤١٠، ٤٦٨، ٤٨٤، ٥٠٨)

نَحْوُ هَذَا، وقَالَ بِهَذَا بَعْضُ أَهْلِ العِلمِ: وَكَرِهُوا أَنْ تُتَّخَذَ الخَمْرُ خَلًّا. وَإِنَّمَا كُرِهَ مِنْ ذَلِكَ وَاللَّهُ أَعْلَمُ، أَنْ يَكُونَ المُسْلِمُ فِي بَيْتِهِ خَمْرٌ، حَتَّى يَصِيرَ خَلًّا، وَرَخَّصَ بَعْضُهُمْ فِي خَلِّ الخَمْرِ، إِذَا وُجِدَ قَدْ صَارَ خَلًّا أَبُو الوَدَّاكِ اسْمُهُ: جَبْرُ بْنُ نَوْفٍ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي فرماني چي زمونږ سره ديو يتيم شراب پراته وو كله چي دسورة مائدي ايت دشرابو دحرمت باره كي نازل شو نو ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باره كي تپوس اوكړو او عرض مي اوكړو چي دا ديو يتيم دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا واړوئ، امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري حديث حسن صحيح دي او دا حديث په نورو سندونو هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي په هم معني مفهوم مروي دي، او په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او بعضي اهل علم هم ددي قائل دي او دوئ دشرابو نه سركي جوړول مكروه ګڼي او په دي وجه دا مكروه ګرخولي شوي دي چي دمسلمان په كور كي شراب پراته وي تردي پوري چي سركه ورنه جوړه شي، او بعضي اهل علمو دشرابو نه دسركي جوړولو اجازت وركړي دي مګر دا اجازت هغه وخت كي دي كله چي ددينه پخپله سركه جوړه شي.

**تشريح** : په دي مسئله كي دفقهاؤ اختلاف دي چي دشرابو نه سركه جوړول جائز دي او كنه دي؟ په دي كي دوه مذاهب دي.

(۱) داحنافو په نزد دشرابو نه سركه جوړول جائز دي.

(۲) او دامام شافعي رحمه الله په نزد دشرابو نه سركه جوړول جائز نه دي ددي مدلل تحقيق دعلم فقه په مطولاتو كي موندلي شي.

****************

## ۳۸ـ باب

## دكاروبار متعلق يو بل باب

۱۲٦٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ، عَنْ شَرِيكٍ، وَقَيْسٍ، عَنْ أَبِي حَصِينٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَدِّ الأَمَانَةَ إِلَى مَنِ ائْتَمَنَكَ وَلَا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ إِلَى هَذَا الحَدِيثِ، وَقَالُوا: إِذَا كَانَ لِلرَّجُلِ عَلَى آخَرَ شَيْءٌ فَذَهَبَ بِهِ، فَوَقَعَ لَهُ عِنْدَهُ شَيْءٌ، فَلَيْسَ لَهُ أَنْ

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٩٩١)

يَحْبِسَ عَنْهُ بِقَدْرِ مَا ذَهَبَ لَهُ عَلَيْهِ، وَرَخَّصَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وَقَالَ: إِنْ كَانَ لَهُ عَلَيْهِ دَرَاهِمُ، فَوَقَعَ لَهُ عِنْدَهُ دَنَانِيرُ فَلَيْسَ لَهُ، أَنْ يَحْبِسَ بِمَكَانِ دَرَاهِمِهِ إِلَّا أَنْ يَقَعَ عِنْدَهُ لَهُ دَرَاهِمُ فَلَهُ حِينَئِذٍ، أَنْ يَحْبِسَ مِنْ دَرَاهِمِهِ بِقَدْرِ مَالَهُ عَلَيْهِ. (١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي تاسو سره امانت كيږدي نو هغه ته خپل امانت واپس كړئ او څوك چي تاسو سره خيانت اوكړي نو تاسو ورسره خيانت مه كوئ

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي. او بعضي اهل علمو دي طرف ته ذهاب كړي دي چي كله ديو سړي په چا باندي څه شي قرض وي او دي دي لره دخان سره ويسي او بيا ددي تلونكي كوم څيز دده لاس ته راشي نو دده دپاره جائز نه دي چي ددينه دومره دخان سره حصار كړي څومره چي ورنه هغه وړي وي، په تابعينو كي بعضي اهل علمو ددي اجازت وركړي دي او دا دسفيان ثوري قول هم دي سفيان ثوري وائي كه دده په ذمه دراهم وي په طور د امانت او بيا ده ته دده دينار راشي نو دده دپاره جائز نه دي چي دخپلو دراهمو په بدل كي دده دينارحصار كړي البته كله چي ده ته دراهم راشي نو هغه وخت كي به دده دپاره درست وي چي دهغه د دراهمو نه دومره حصار كړي څومره چي دهغه په ذمه قرض دي.

**لغات**: خان: خان خونا وخيانة دنصر نه په معني د خيانت كولو په امانت كښي.

**تشريح** : د خيانت په مذمت كي نصوص شرعيه په كثرت سره وارد دي، الله تعالي تبارك وتعالي په خپل كتاب كي فرمائيلي دي:

وَقَالَ تَعَالَى: ﴿يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ﴾ [غافر: ١٩].

يعني خبردار دى هغه په خيانت كونكي ستركي باندي.

په دي باره كي دمفسرينو څلور اقوال دي.اولنى قول ابن عباس رضي الله عنهما دى چي مطلب دايت دادى چي په كوم خاي كي څوك تيريږي او په چاچي يي نظر اولګي نو فورا دي خپل نظر اوګرځوي ، دريم قول دمجاهد دى چي په ايت كي هغه خاي ته كتل مراد دي كوم چي شريعت منع كړي دي ، دريم قول دضحاك دى چي هغه ځايونو ته كتل مراد دي كوم چي الله تعالي نه خوښوي ، څلورم قول دسدي دى دهغه په نزد په ايت كي ديو خل نه علاوه دوباره كتل مراد دي "وماتخفي الصدور" كوم چي په زړونو كي پټ وي ددينه مراد هغه وسوسي دي كومي چي په زړونو كي راځي نو الله تعالي قدرت دادى چي هغه دوسوسو نه هم خبر دى چي ددي سړي په زړه كي څه تيريږي

---

(١) ـ ابي داود كتاب البيوع ٨١ (٣٥٣٥). (تحفة الأشراف. ١٢٨٣٦) وسنن الدارمي كتاب البيوع ٥٧ (٢٦٣٩)

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمنافق دري نښې دي اول چي خبره کوي دروغ وائي :دويم دا چي وعده وکړي خلاف يی کوي: دريم داچي امانت ورسره کيخودی شي خيانت پکي کوي
أخرجه: البخاري كتاب الايمان باب علامات المنافق ١٥/١ ( ٣٣ ) . ومسلم كتاب الايمان باب خصال المنافق ٥٦/١ ( ٥٩ ) ( ١٠٧ ) و( ١٠٩ ) واحمد والنسائي وابن حبان وابن منده في الايمان وابو عوانه والبيهقي٢٨٨/٥٦..
منافق هغه چاته ونيلي شي څوك چي په ژبه داسلام اظهار کوي ليکن په زړه کي يي کفر پټ پروت وي ، نفاق په ګناه کي دکفر نه سخت دي، همدا وجه ده چي الله په قران کي ددوی دپاره سخته سزا بيان کړي ده.
ان المنافقين في الدرك الاسفل من النار، دلته دعهد نبوي منافقين مراد دي چي رسول الله ته يي دوحي په ذريعه خبر ورکړي شوي وو.
په دي خبره دعلماؤ اتفاق دي چي اعتقادي نفاق درسول الله په دور کي ختم شوي دي ليکن عملي نفاق په مسلمانانو کي اوس هم موندلي شي داد کفر نه په درجه کي کم دي، ليکن خان ورنه ساتل ضروري دي.
سوال : په پورتني حديث کي دمنافقانو دري عادات بيان شوي دي اوپه بعضو دي څلور دي لكه اربع من كن فيه .
جواب: دري او څلور کيدل قيد اتفاقي دي ، ذبعضو قول دي اول رسول الله دري بيان کړي وو بيا يي څلور بيان کړل

***************

## ٣٩_ باب مَا جَاءَ فِي أَنَّ الْعَارِيَةَ مُؤَدَّاةٌ

### په سوال دغوښتلي شوي څيز دواپس کولو بيان

١٢٦٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ شُرَحْبِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ الْخَوْلَانِيِّ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ. قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي الْخُطْبَةِ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ: " الْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ وَالزَّعِيمُ غَارِمٌ، وَالدَّيْنُ مَقْضِيٌّ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب، عَنْ سَمُرَةَ،

وَصَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ، وَأَنَسٍ، قَالَ: وَحَدِيثُ أَبِي أُمَامَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْضًا مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي ما د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دحجة الوداع په خطبه كي واوريدل فرمانيل يي په سوال غوښتلي شوي څيز به واپس كولي شي او ضمانت كونكي به تاوان وركوي او قرض به واجب الاداء وي

امام ترمذي وائي دابوامامه حديث حسن غريب دي او دابوامامه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په نورو سندونو هم دا روايت مروي دي، په دي باب كي دسمره صفوان بن اميه. او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

***************

١٢٦٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " عَلَى الْيَدِ مَا أَخَذَتْ حَتَّى تُؤَدِّيَ ". قَالَ قَتَادَةُ: ثُمَّ نَسِيَ الْحَسَنُ، فَقَالَ: " فَهُوَ أَمِينُكَ لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ، يَعْنِي الْعَارِيَةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، إِلَى هَذَا وَقَالُوا: يَضْمَنُ صَاحِبُ الْعَارِيَةِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: لَيْسَ عَلَى صَاحِبِ الْعَارِيَةِ ضَمَانٌ، إِلَّا أَنْ يُخَالِفَ، وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَبِهِ يَقُولُ إِسْحَاق. (2)

**ترجمه** دسمره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي هر يو شي چي لاس اخستلي څو پوري چي دا اداء شوي نه وي ترهغي به دده په ذمه باقي وي، قتاده وائي بيا دحسن بصري نه دا حديث هير شو او داسي به يي وئيل چاچي عاريت اخستلي وي هغه ستا امين دي او په هغه باندي تاوان نشته يعني په عاريت دغوښتلي شوي څيز دتباه كيدو په صورت كي تاوان نشته.

---

1 _ ابن ماجه كتاب الصدقات ٥ (٢٣٩٨). (تحفة الأشراف: ٤٨٨٤)

2 _ ابي داود كتاب البيوع ٩٠ (٣٥٦١). سنن ابن ماجه كتاب الصدقات ٥ (٢٤٠٠). (تحفة الأشراف: ٤٥٨٤). ومسند احمد (١٣/٥، ١٣). وسنن الدارمي كتاب البيوع ٥٦ (٢٦٣٨)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي بعضي په دي باندي عمل كول اختيار كړي دي چي په عاريت اخستونكي ضامن دي او همدا دامام شافعي او امام احمد قول دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو قول دي چي په عاريت اخستونكي تاوان نشته مګر دا چي هغوئ دسامان والا مخالفت اوكړي دسفيان ثوري او اهل كوفه هم دا قول دي او اسحاق بن راهويه هم ددي قائل دي.

***************

## ٤٠ـ باب مَا جَاءَ فِي الاِحْتِكَارِ

### ديو څيز دذخيره كولو بيان

١٢٦٧ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ مَعْمَرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَضْلَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَحْتَكِرُ إِلَّا خَاطِئٌ". فَقُلْتُ لِسَعِيدٍ: يَا أَبَا مُحَمَّدٍ، إِنَّكَ تَحْتَكِرُ، قَالَ: وَمَعْمَرٌ، قَدْ كَانَ يَحْتَكِرُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا رُوِيَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، أَنَّهُ كَانَ يَحْتَكِرُ الزَّيْتَ وَالْحِنْطَةَ وَنَحْوَ هَذَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. وَحَدِيثُ مَعْمَرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا احْتِكَارَ الطَّعَامِ، وَرَخَّصَ بَعْضُهُمْ فِي الاِحْتِكَارِ فِي غَيْرِ الطَّعَامِ، وقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: لَا بَأْسَ بِالاِحْتِكَارِ فِي الْقُطْنِ، وَالسِّخْتِيَانِ وَنَحْوِ ذَلِكَ. [1]

**ترجمه** : دمعمرو بن عبدالله بن نضله رضي الله عنه بيان دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي ذخيره اندوزي صرف ګنهګار انسان كوي دمحمد بن ابراهيم قول دي ما سعيد بن المسيب ته اووئيل اي ابو محمد ته خو ذخيره اندوزي كوي ؟ هغه اووئيل معمرو هم ذخيره اندوزي كوله.

امام ترمذي وائي دمعمرو حديث حسن صحيح دي، دسعيد بن مسيب نه مروي دي چي هغه به په تيلو او غنمو او دي قسم نورو څيزونو كي ذخيره اندوزي كوله، په دي باب كي دعمر، علي، ابوامامه، او ابن عمر رضي الله عنهم نه احاديث مروي دي ، او په همدي داهل علمو عمل دي او دوئ په خوراكي څيزونو كي ذخيره اندوزي كول ناجائز ګڼرلي دي، بعضي اهل

[1] ـ مسلم كتاب المساقاة ٢٦ (البيوع ٤٧) . (١٦٠٥) . سنن ابي داود كتاب البيوع ٤٩ (٣٤٤٧) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ٦ (٢١٥٤) . (تحفة الأشراف : ١١٤٨١) . ومسند احمد (٦/٤٠٠) وسنن الدارمي/البيوع ١٢ (٢٥٨٥)

علمو دخوراك دځيزونو نه علاوه په نورو ځيزونو کي دذخيره اندوزي کولو اجازت ورکړي دي، ابن مبارك وائي مالوچ او دچيلئ رنګ شوي څرمن او دا قسم نورو ځيزونو کي که ذخيره اندوزي اوشي نو څه قباحت نشته.

**تشريح**: دعمر رضي الله عنه نه روايت دی چي ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يي که تاسو په الله تعالي توکل کولی څنګه چي دتوکل حق دی نو تاسو ته به يی هم داسي روزي درکولی لکه چي مرغانو ته يی ورکوي چي سحر اوږي دجالي نه اولوزي او ماښام ورته واپس ماړه راځي (ترمذي روايت کړی دی او حديث حسن يی ورته وئيلی دی).

مطلب يی دادی چي مرغان د ورځي په شروع کي تش ججوري دجالي نه روان شي او ماښام ورته ډکی ججوري ماړه واپس شي (يعني مارغان ځانته خوراکه ذخيره کوي نه. او هره ورځ الله تعالي رزق ورکوي او وږي نه پاتي کيږي).

ددي حديث مفهوم دادی چي سعي اوکوشش اوکسب او عمل په حقيقت کي درزق سبب نه دی بلکه رزق ورکونکی الله تعالي دی ددي حديث دا مطلب نه دئ چي انسان دي دځپل رزق ګټلو دپاره حرکت اوعمل کول پريږدي ځکه چي دتوکل او اعتماد تعلق دزړه سره دی کوم چي داعضاء دظاهري حرکت او عمل سره منافي نه دی په همدي وجه امام غزالي وائي که دچا داګمان وي چي توکل نوم دی دکسب او عمل پريخودو او دلاسو اوخپو اوډرولو او دشل ګوډ دناستي په شان کيناستلو نو که دچا دا خيال وي نو خيال يي غلط دی

دامام قشيري قول دی چي دتوکل اصل مقام زړه دی اودمعاش دحصول دپاره معقول او مناسب طريقه باندي کوشش کول په الله تعالي باندي داعتماد کولو سره منافي نه دي لکه چي الله تعالي فرمائيلي دي "وکاين من دابة لاتحمل رزقها الله يرزقها وايا کم" ملاعلي قاري يوه واقعه بيان کړي ده چي الله تعالي څنګه پرورش کوي تاسو اوګورئ کله چي د ناروبچی داندي نه بهر کيږي نو بالکل سپين وي چي موريي کله اووينې نو بد ورته ښکاره شي او پخپل ځاي يي پريږدي او ورنه روانه شي بيا ددينه پس الله تعالي مچان او ميږي دي بچي ته راوليږي چي دابچي يي اوخوري اوبيادا هم تور شي ددينه پس يي چي کله خپله مور اوګوري نو واپس ورته راشي او پرورش يي شروع کړي

ام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چي هغوي يوه چيلئ ذبح کړه دهغی متعلق رسول الله صلي الله عليه وسلم تپوس اوکړو چي دهغی نه څه غوښه باقي شته ؟ هغی جواب ورکړو چي يو مخکنی اولی پاتي شوی دی ، رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو چي ددغی اولي نه علاوه ټوله باقي ده دا حديث امام ترمذي روايت کړی دی او حديث حسن صحيح يی ورته وئيلی دی ، مطلب دادی چي ديو اولي نه علاوه ټوله غوښه

كومه چي صدقه كړی شوه هغه مونږ دپاره په اخرت كي باقي ده.
دحديث مطلب دادی څه چي دالله دپاره خرڅ شول هغه باقي دي او په همدي به په اخرت كي هميشه ثواب ملاويږي او په دي حديث كي دقران كريم دي ايت كريمه "ماعندكم ينفد وماعندالله باق" الايه. ته اشاره ده. يعني څه چي تاسو سره دي دابه ختم شي اود الله سره چي څه دي دا به هميشه وي.
فقيه ابو الليث سمرقندي ليكلي دي چي سهل بن تستري به دالله په لار كي ډيرمال خرچ كولو دده پلار او رونړو عبدالله بن مبارك ته دده نه شكايت اوكړو چي دی خو هر څه ختموي فقير به شي عبدالله بن مبارك چي كله دسهل سره خبري اوكړي نو هغه ورته اووئيل كه چري دمديني كوم اوسيدونكی په "رستاق" (په فارس كي ديو ښار نوم دی) كي زمكه واخلي او هلته منتقل كيدل اوغواړي نو ايا په مدينه كي به كوم څيز پريږدي هغه اووئيل نه نو ده اووئيل بس همداخبره ده (چي زه اخرت ته تلونكی يم او هلته خپل مال منتقل كول غواړم)

***************

## ٤١_ باب مَا جَاءَ فِي بَيْعِ الْمُحَفَّلاَتِ

### دداسي څاروي دخرڅولو بيان دكوم په غلانزكي چي پئ حصار كړي شوي وي

١٢٦٨_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا تَسْتَقْبِلُوا السُّوقَ، وَلَا تُحَفِّلُوا، وَلَا يُنَفِّقْ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا بَيْعَ الْمُحَفَّلَةِ وَهِيَ الْمُصَرَّاةُ. لَا يَحْلُبُهَا صَاحِبُهَا أَيَّامًا، أَوْ نَحْوَ ذَلِكَ لِيَجْتَمِعَ اللَّبَنُ فِي ضَرْعِهَا، فَيَغْتَرَّ بِهَا الْمُشْتَرِي وَهَذَا ضَرْبٌ مِنَ الْخَدِيعَةِ، وَالْغَرَرِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بازار ته درارسيدو نه مخكي دراتلونكي قافلي استقبال مه كوئ او دڅاروو په غلانزو كي پئ مه حصاروئ (چي خريدار ورباندي دهوكه شي) او په دروغه خريدار جوړيدو په شكل كي خلقو دپاره ددوئ سامانونه مه خرڅوئ امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دابن مسعود او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او په همدي داهل علمو عمل دي دوئ دداسي څاروي خرڅول جائز نه ګڼري دكوم په غلانز

---
[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦١١٦)

کي چي پۍ حصار کړي شوي دي او محفله هغه څاروي ته وئيلي شي دکوم په غلانز کي چي پۍ حصار کړي شوي دي او مالك يو څو ورځي نه وي لوشلي تردي چي غلانز يي ډکه شي او خريدار ورباندي دهوکه شي دا دفريب او دهوکي يو شکل دي.

***************

## ٤٢_ باب مَا جَاءَ فِي الْيَمِينِ الْفَاجِرَةِ يُقْتَطَعُ بِهَا مَالُ الْمُسْلِمِ

**د دروغو دقسم په ذريعه ديو مسلمان دمال خوړلو بيان**

١٢٦٩_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ وَهُوَ فِيهَا فَاجِرٌ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ لَقِيَ اللَّهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ". فَقَالَ الأَشْعَثُ بْنُ قَيْسٍ: فِيَّ وَاللَّهِ لَقَدْ كَانَ ذَلِكَ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ مِنَ الْيَهُودِ أَرْضٌ فَجَحَدَنِي، فَقَدَّمْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِي: رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟". قُلْتُ: لاَ. فَقَالَ لِلْيَهُودِيِّ: "احْلِفْ". فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِذًا يَحْلِفُ، فَيَذْهَبُ بِمَالِي. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلاً (آل عمران: ٧٧) إِلَى آخِرِ الآيَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَأَبِي مُوسَى، وَأَبِي أُمَامَةَ بْنِ ثَعْلَبَةَ الأَنْصَارِيِّ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَحَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي په دروغه قسم اوخوړلو تردي چي دقسم په ذريعه دکوم مسلمان مال اوخوري دي به دالله تعالي سره په داسي حال کي مخامخ کيږي چي هغه به ورنه ناراضه وي، اشعث بن قيس رضي الله عنه وائي په الله قسم رسول الله زما باره کي دا حديث بيان کړي وو زما او ديهودي په مينځ کي زمکه شريکه وه او هغه زما دحصي نه انکار اوکړو نو ما ده لره نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته راوستلو رسول الله زما نه تپوس اوکړو ايا تاسره کوم ګواه شته ما عرض اوکړو نشته رسول الله صلي الله عليه وسلم يهودي ته اوفرمائيل ته قسم اوخوره ما عرض اوکړو اي دالله رسوله ده ته خو قسم خوړل څه ګران نه دي قسم به اوخوري او زما مال

[1] _ البخاري/الشرب والمساقاة ٢ (٢٣٥٦) . والخصومات ٢ (٢٤١٦) . والرهن ٦ (٢٥١٥) . والشهادات ١٩ (٢٦٦٦) . و ٢٠ (٢٦٦٩) . و ٢٣ (٢٦٧٣) . و ٢٥ (٢٦٧٦) . وتفسير آل عمران ٣ (٤٥٤٩) . والايمان والنذور ١١ (٦٦٥٩) . و ١٧ (٦٦٧٦) . والأحكام ٣٠ (٧١٨٣) . والتوحيد ٢٤ (٧٤٤٥) . صحيح مسلم كتاب الإيمان ٦١ (٢٢٠) . سنن ابي داود كتاب الأيمان والنذور ٢ (٣٢٤٣) . سنن ابن ماجه كتاب الأحكام ٨ (٢٣٢٣) . (تحفة الأشراف : ١٥٨ و ٩٢٤٤) . و مسند احمد (١/٣٧٧)

به هضم كړي نو دي وخت كي الله تعالي دا ايت كريمه نازل كړو إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا او يقينا هغه كسان څوك چي دالله تعالي په وعدو باندي او په قسمونو باندي ددنيا لږي پيسي اخلي (ال عمران ٧٧) او په دي باب كي دوائل بن حجر ، ابو موسي، ابوامامه بن ثعلبه او عمران بن حصين رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**لغات**: حلف، حلف ، حلفا وحلفا دضرب نه په معني دقسم كولو دي په الله باندي. او دا لفظ عموما په جديد لغت كي دمعاهدي كولو دپاره هم استعماليږي.

: اليمين جمع ايمان راځي په معني دقسم سره دفتح او كرم او سمع نه مستعمل دي معني يي بابركته كيدل دي.

**تشريح** : "من حلف علي" يعني كه يو سړی قسم اوخوري اوبياورته ددينه بل كار بهتر ښكاره شي نو هغه بهتر كار دي اوكړي. په دي خبره دفقهاء اتفاق دی چي داطاعت قسم پوره كول پكار دي او دمعصيت قسم پوره كول جائز نه دي لكه چي په يو روايت كي راغلي دي "فراي غيرها خيرا منها فليكفر عن يمينه وليفعل".

ليكن دفقهاؤ په دي كي اختلاف دی چي دمعصيت نذر به پوره كولی شي او كه نه او په دي كي كفاره شته او كه نشته ، امام مالك او امام شافعي وايي چي كفاره نشته ليكن امام ابو حنيفه وائي دي معصيت ته به كتلی شي دابه يا معصيت لعينها وي يابه لغيرها وي كه لعينها وي مثلا قتل ، زنا وغيره نو ددي پوره كول هم جائز نه دي او نه ددي كفاره وركول ضروري دي، خو كه لغيرها وي مثلا داختر په ورځ ياپه ايام تشريق كي روژې اونيولي نو په دي صورت كي به ددي نذر پوره كول جائز نه وي ليكن كفاره ديمين به ورباندي راځي.

دابن مسعو درضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي دبل مسلمان په مال باندی ناحقه قسم اوخوري قيامت كي به الله تعالي ته مخامخ كيږي په داسي حالت كي چي الله تعالي به ورته سخت غصه وي، بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ددی په تائيد كي مونږ ته دا ايت مبارك تلاوت كړو څوك چي الله تعالي په اقرار او قسمونو باندی لږ مال واخلي په اخرت كي دهغوئ هيڅ حصه نشته تر اخره (ابوداؤد ، ترمذي).

عبدالله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه بيان كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا خبری دګناه كبيره په طور بيان كړی (١) الله تعالي سره شريك جوړول (٢) دمور پلار نافرماني كول (٣) خان وژل يا بل څوك په ناحقه وژل (۴) په دروغه قسم خوړل (بخاري) دی قسم ته بالاراده او دپوهی سره چي دا دروغ دي يمين غموس وائي چي ددی قسم ګناه دومره زياته ده چي انسان پكي ډوبيږي.

اليمين جمع ايمان راځي په معني دقسم سره دفتح او كرم او سمع نه مستعمل دي معني يي

بابر کته کیدل دي.

## دقسم دري اقسام

قسم په دري قسمه دي اول یمین لغوه، دویم یمین منعقد، دریم یمین غموس. یمین لغوه دامام ابو حنیفه په نزد په ماضي کي په کوم کار باندي خلاف واقع قسم خوړل دي چي زه رشتیا وایم په دي کي نه کفاره شته او نه ګناه، امام شافعي وائي دیمین لغوه نه مراد هغه قسم دی کوم چي بغیر دقصد نه دخولي نه اوخي او یمین منعقد په مستقبل کي دکوم کار کولو یا نه کولو دپاره قسم خوړل دي نو په دي صورت کي به په اتفاق سره کفاره لازمیږي او یمین غموس دماضي په کوم خلاف واقع کار باندي په قصد سره قسم خوړل دي دغموس معني غوپه ورکول دي او دلته دا قسم کونکی هم په ګناه کي غوپه خوري دامام شافعي په نزد په دي قسم کي هم کفاره ده او دامام ابو حنیفه په نزد په یمین غموس کي کفاره نه وي. (مدارج السالکین)

دزید بن ثابت ضحاك انصاري رضي الله عنه نه روایت دی په بیعت رضوان کي شریك وو چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي چاچي اسلام نه غیر بل مذهب باندی په دروغه قسم اوخوړو نو هغه هغه شان شو څنګه چي یی وئیلي دي (مثلا یو سړي اوونیل هندو به یم که دا کارمی کړی وي) او دا قسم یی قصدا په دروغه خوړلی وي (یعني هغه کار یی کړی وي او بیا هم قسم خوري چي نه می دی کړی نو دی هم دغه شان شو څنګه چي یی وئیلي دي او چاچي خودکشي اوکړه خپل ځان یی په څه شي قتل کړو نو دقیامت په ورځ به هم په هغه شي عذاب ورکولی شي او دکوم څیز چي څوك مالك نه وي دهغی نذر نه صحیح کیږي او په مسلمان لعنت ونیل دهغه دقتل په شان دي (یعني دقتل په شان غټه ګناه ده)(متفق علیه).

"من حلف علي یمین بملة غیرالاسلام کاذبا متعمدا" یعني څوك چي په قصد داسلام نه علاوه په کوم بل دین باندي په دروغه قسم اوخوري نو هغه داسي دی، مثال یي داسي دی که څوك قسم اوخوري که ما فلانی کار اوکړو نو زه به یهودي یا نصراني یم یا دا چي مسلمان به نه یم یا داچي دپیغمبر نه به بیزار یم.

نو ظاهري مفهوم دحدیث خو دادي په داسي قسم کولو سره یي ارتکاب دحرام وکړو او په قسم ماتولو سره یهودي یا نصراني شو ، علماء وایي دا بیان په طور دتنبیه دي ، ددي مثال داسي لکه من ترك الصلاة فقد کفر، پداسي قسم سره کافر کیږي خو نه لیکن داسي قسم خوړل حرام دي.

## په داسي قسم خوړلو کي کفاره شته اوکنه

دداسي قسم خوړلو په صورت کي دامام ابو حنیفه په نزد کفاره لازمیږي او دامام مالك او امام

شافعي په نزد کفاره نه لازميږي التبه سخت ګنهګار به ضروري وي.
اوکه دي قسم وکړي چي فلاني که صحت مند شو نو فلاني فلاني غلام که ما واخستلو نو هغه دي ازاد وي نو که ذهغه دصحت منذئ نه پس ده دا غلام واخستلو نو ازاديږي

****************

## ٤٣ـ بَابُ مَا جَاءَ إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيِّعَانِ

١٢٧٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَوْنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيِّعَانِ، فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْبَائِعِ، وَالْمُبْتَاعُ بِالْخِيَارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُرْسَلٌ عَوْنُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ لَمْ يُدْرِكْ ابْنَ مَسْعُودٍ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الْحَدِيثُ أَيْضًا، وَهُوَ مُرْسَلٌ أَيْضًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ. قُلْتُ لِأَحْمَدَ: إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيِّعَانِ، وَلَمْ تَكُنْ بَيِّنَةٌ، قَالَ: الْقَوْلُ مَا قَالَ رَبُّ السِّلْعَةِ، أَوْ يَتَرَادَّانِ. قَالَ إِسْحَاق: كَمَا قَالَ، وَكُلُّ مَنْ كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ فَعَلَيْهِ الْيَمِينُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ مِنْهُمْ: شُرَيْحٌ وَغَيْرُهُ نَحْوُ هَذَا. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي په بائع او مشتري کي اختلاف پيداشي نو دبائع خبره به معتبره وي او مشتري ته به اختيار وي

امام ترمذي وائي داحديث مرسل دي او دابن مسعود سره دعون بن عبدالله ملاقات نه دي شوي، او دقاسم بن عبدالرحمن نه هم دا حديث مروي دي هغه دابن مسعود نه نقل کړي دي او ابن مسعود دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي مګر دا روايت هم مرسل دي، اسحاق بن منصور وائي ما دامام احمد نه تپوس اوکړو چي کله په بائع او مشتري کي اختلاف پيدا شي او کوم ګواه موجود نه وي نو دچا خبره به منلي کيږي؟ هغوئ اووئيل خبره به هغه معتبر وي کومه چي دمال مالك کړي وي او يا خو به دوئ دواړه خپل خپل څيز واپس واخلي يعني بائع به خپل سامان واپس واخلي او مشتري به خپل قيمت واپس واخلي اسحاق بن راهويه هم هغه خبره کړي ده کومه چي امام احمد کړي ده خو خبره که دهر چا اومنلي شي هغه

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٩٥٢١) وانظر أيضا: سنن ابي داود كتاب البيوع ٧٤ (٣٥١١) . سنن النسائي كتاب البيوع ٨٢ (٣٦٥٢) . سنن ابن ماجه كتاب التجارات ١٩ (٢١٨٦) . مسند احمد (١/٤٢٦)

ته به قسم ضرور ورکولي شي، امام ترمذي واني په تابعينو کي دبعضي اهل علمو نه هم داسي مروي دي چي يو په هغوئ کي قاضي شريح هم دي

*****************

## ٤٤_ باب مَا جَاءَ فِي بَيْعِ فَضْلِ الْمَاءِ

### دپالتو اوبو دخرڅولو بيان

١٢٧١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَطَّارُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ عَبْدٍ الْمُزَنِيِّ، قَالَ: " نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْمَاءِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَبُهَيْسَةَ، عَنْ أَبِيهَا، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ إِيَاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنَّهُمْ كَرِهُوا بَيْعَ الْمَاءِ، وَهُوَ قَوْلُ: ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي بَيْعِ الْمَاءِ مِنْهُمْ: الْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ.[1]

**ترجمه** . داياس بن عبد مزني رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم داوبو خرڅولو نه منع فرمائيلي ده، امام ترمذي واني داياس حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجابر، او د بهيسه دپلار او ابوهريره، انس، او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. داکثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي او دوئ داوبو خرڅول ناجائز ګنړلي دي. او همدا د ابن مبارك ، شافعي، احمد، او اسحاق قول هم دي مګر بعضي اهل علمو داوبو خرڅولو اجازت ورکړي دي چي يو په دوئ کي حسن بصري هم شامل دي

### د اياس بن عبدالله بن ابوذباب رضي الله عنه حالات

نوم اياس قبيله دوس دپلار نوم عبدالله خلقو مزنيه قبيلي ته منسوب کړی دی مګر داکثريت په نزد دوس قبيلي ته يي نسبت راجع دی دمکي اوسيدونکی صحابي دی ابن منده او ابو نعيم اختلاف کړی دی چي دی صحابي دی اوکه نه دی دده نه صرف يو روايت منقول دی

*****************

[1] _ سنن ابی داود کتاب البیوع ٦٣ (٣٤٧٨) . سنن النسائی کتاب البیوع ٨٨ (٤٦٦٦) . سنن ابن ماجه کتاب الرهون ١٨ (الأحكام ٤٩) (٢٤٧٦) . (تحفة الأشراف : ١٧٤٨) . و مسند احمد (٣/٤١٧) . وسنن الدارمی کتاب البیوع ٦٩ (٢٦٥٣)

١٢٧٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يُمْنَعُ فَضْلُ المَاءِ لِيُمْنَعَ بِهِ الكَلَأُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو الْمِنْهَالِ اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مُطْعِمٍ كُوفِيٌّ، وَهُوَ الَّذِي رَوَى عَنْهُ حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ، وَأَبُو الْمِنْهَالِ سَيَّارُ بْنُ سَلَامَةَ بَصْرِيٌّ، صَاحِبُ أَبِي بَرْزَةَ الأَسْلَمِيِّ.[1]

**ترجمه** دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي د ضرورت نه زیاتي اوبه دي دچانه منع نکړي شي څکه چي په دي وجه ګیا بندیږي

امام ترمذي واني دا حدیث حسن صحیح دي

*****************

## ٤٥_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ عَسْبِ الْفَحْلِ

### د نر څاروي بنځه څاروي ته په پریخودو باندي داجرت اخستلو دکراهت بیان

١٢٧٣_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَأَبُو عَمَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ عُلَيَّةَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَكَمِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَسْبِ الفَحْلِ". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُهُمْ فِي قَبُولِ الْكَرَامَةِ عَلَى ذَلِكَ.[2]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دي نبي کریم صلي الله علیه وسلم د نر څاروي مالونو ته په پریخودلو داجرت اخستلو نه منع فرمائیلي ده، امام ترمذي واني دابن عمر حدیث حسن صحیح دي، او په دي باب کي دابوهریره، انس، او ابوسعید خدري رضي الله عنهم نه هم احادیث مروي دي او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي.او بعضي علماؤ ددي کار اجازت ورکړي دي ، او دجمهورو په نزد داکراهت تحریمي دي.

*****************

[1] _ صحيح البخاري كتاب الشرب والمساقاة ٢ (٢٣٥٣) . صحيح مسلم كتاب البيوع ٢٩ (المساقاة ٨) (١٥٦٦) . سنن ابي داود كتاب البيوع ٦٢ (٣٤٧٣) . سنن ابن ماجه كتاب الأحكام ١٩ (٢٤٧٨) . (تحفة الأشراف : ١٣٩٨) . وط/الأقضية ٢٥ (٢٩) و مسند احمد (٢/٢٤٤، ٢٧٣، ٣٠٩، ٣٨٢، ٣٩٤، ٥٠٠)

[2] _ البخاري كتاب الإجارة ٢١ (٢٢٨٤) . سنن ابي داود كتاب البيوع ٢٣ (٣٤٢٩) . سنن النسائي كتاب البيوع ٩٤ (٤٦٧٥) . (تحفة الأشراف : ٨٢٤٢) . و مسند احمد (٢/٢)

١٢٧٤_ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْخُزَاعِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ حُمَيْدٍ الرُّؤَاسِيِّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِلَابٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ " فَنَهَاهُ ". فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا نُطْرِقُ الْفَحْلَ، فَنُكْرَمُ، " فَرَخَّصَ لَهُ فِي الْكَرَامَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ حُمَيْدٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. (1)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرماني چي دبني كلاب قبيلي يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دنر ځاروي مادي ته په پريخودلو داجرت اخستلو باره كي تپوس اوكړو نورسول الله صلي الله عليه وسلم ددينه منع اوفرمائيله، سوال كونكي بيا عرض اوكړو اي دالله رسوله مونږ چي نران ځاروي ځاروو ته پريږدو نو مونږ ورنه غواړو نه مونږ ته بخشش راكولي كيږي ددي څه حكم دي؟ نو رسول الله هغه ته په طور دبخشش اخستلو اجازت وركړو، امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دابراهيم بن حميد په سند رارسيدلي دي كوم چي هغه دهشام بن عروه نه نقل كړي دي

***************

## ٤٦_ باب مَا جَاءَ فِي ثَمَنِ الْكَلْبِ

### دسپي دقيمت بيان

١٢٧٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَارِظٍ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " كَسْبُ الْحَجَّامِ خَبِيثٌ، وَمَهْرُ الْبَغِيِّ خَبِيثٌ، وَثَمَنُ الْكَلْبِ خَبِيثٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي مَسْعُودٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ رَافِعٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، كَرِهُوا ثَمَنَ الْكَلْبِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي ثَمَنِ كَلْبِ الصَّيْدِ. (2)

---

1 _ النسائي كتاب البيوع ٩٣ (٤٦٤٦) . (تحفة الأشراف: ١٣٥٠)

2 _ مسلم/المساقاة ٩ (البيوع ٣٠) ، (١٥٦٨) . سنن ابي داود/ البيوع ٣٩ (٣٤٢١) . سنن النسائي/ الذبائح ١٥ (٤٢٩٩) . تحفة الأشراف: ٣٥٥٥) ، و مسند احمد (٣/٤٦٣، ٤٦٥) ، و ٤/١٤١)

**ترجمه** درافع بن خديج رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دښکر لګونکي ګټه پليته ده او دزناکاري ښځي اجرت پليت دي او دسپي قيمت پليت دي

امام ترمذي وائي درافع رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعمر، علي، ابن مسعود، ابومسعود، جابر، ابوهريره، ابن عباس، ابن عمر، او عبدالله بن جعفر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل هم دي او دوی دسپي دقيمت خوړل ناجائز ګڼړلي دي همدا دامام شافعي او امام احمد بن حنبل او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي او بعضي اهل علمو دښکاري سپي دقيمت اجازت ورکړي دي

**لغات** . الثمن معني دمبيعي مالي بدل ، قيمت، الثمانة او الثمين قيمتي څيز

البغي معني ظلم، خيانت، ګناه، جنايت، ډير باران

**تشريح** : په ښځو امدن حاصلولوباندي اود نجوميانو په اجرت باندي اود سپو په ساتلو باندي په دي حديث کي بحث شوي دی.

**مهر البغي** : ديته ويلي شي چي زناکاره ښځه په زنا باندي اجرت واخلي پدي دتمامو علماؤ اتفاق دي چي داقسم اجرت حرام قطعي دي.

بعضي علماؤ دحديث مذکوره ظاهر ته په کتو سره دهر قسم سپي قيمت او خريدو فروخت حرام ګرځولي دي ، مګر امام ابوحنيفه او امام محمد او بعضي نورو علماؤ دا حديث په دي حمل کړي دي چي ددينه غير معلم اوغير ښکاري سپي مراد دي، او که چا په سپي محنت وکړو اوښکار يي ورته وخودلو

يا ددي حديث تعلق دهغه وخت سره دي کله چي رسول الله دسپو دوژلو حکم کړي وو او بيا وروسته ددي حکم منسوخ شو

### فرشتي داسي کورته نه ورځي چي سپي يا تصوير پکي وي

دابوطلحه رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کوم کور کي چي تصوير ياسپی وي درحمت فرشتی نه ورننوزي (بخاري مسلم)

داسي کورونو ته فرشتي نه ورځي په کومو کي چي سپی يا تصوير موجود وي. دا حکم د هغه سپي دی دکوم چي ساتل حرام دي او دکومو سپو دساتلو چي اجازت شته هغه په دي کي داخل نه دي، مثلا ښکاري سپی يا دخارو دحفاظت دپاره دداسي سپو ساتل دفرشتو دپاره رکاوټ نه جوړيږي

او دتصوير نه مراد هغه تصوير دی دکوم ساتل او استعمالول چي حرام دي او که داسي تصوير وي چي بالکل وړوکی وي يا دغير ذي روح څيز تصوير وي نو دداسي تصوير موجودګي هم دفرشتو دپاره رکاوټ نه دی، ليکن بعضي علماء وائي چي دا حکم عام دی هر قسم سپي او

تصوير ته شامل دی برابره خبره ده چي په کور کي يي دساتلو اجازت وي او که نه
دفرشتونه هغه فرشتي مراد دي کومي چي دانسانانو داعمالو ليکونکي او حفاظت کونکي نه
وي ځکه چي عمل ليکونکي فرشتي خو په هر حال کي دانسان سره موجودي دي

## دسپي په وجه جبريل نه راتلل

دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چي جبرائيل عليه السلام رسول الله صلي الله عليه وسلم سره دراتلو وعده کړی وه بيايي راتلو کي دومره تاخير اوکړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته انتظار مشکل شو بهر ته اووتو نو جبرائيل عليه السلام ورسره ملاقات اوکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته دتاخير ګيله اوکړه نو هغه اووئيل مونږ داسی کور ته نه ورځو کوم کي چي سپي يا تصوير وي.

ابن عمر رضي الله عنه نه.روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دښکار يا فصل دحفاظت نه علاوه سپی اوساتلو هره ورځ به يی دنيکو دثواب نه دوه قيراطه اجر کميږي او په يو روايت يو قيراط راغلی دی.

## دقيراط تحقيق

قيراط يو وزن دی کوم چي يو دانګ شپږ رتئ او دبعضو په نزد ديو دينار ۲۴ حصه ده او دبعضو په قول ددينار لسمه حصي دنيمي برابر وي او يو دانګ دشپږ رتو برابر وي يا ديو درهم دشپږي حصي برابر وي او په بعضو روايتونو کي دقيراط وزن داحد دغر برابر خودلی شوی دی خلاصه داده چي دضرورت نه بغير سپي ساتلو په وجه انسان دخپلو نيکو عملونو ديوي ډيري لويي حصي نه محروميږي.

## په بعضي وجوهاتو سپي ساتل جائز دي

ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي سپی اوساتلو دهغه دنيك عمل داجر نه به هره ورځ دوه قيراطه کميږي ليکن که دپټي يا څاروو دحفاظت دپاره وي نو خير دی.

او دامام مسلم يو روايت په دی الفاظو دی چاچي سپی اوساتلو که دښکار سپی يا دپټي او يا دځاروو دحفاظت سپی نه وي نو دهغه داجر نه هره ورځ دوه قيراطه کميږي

يو سوال څلور جوابونه

سوال: دسپي ساتلو په وجه په يو روايت کي ديو قيراط ثواب دکميدو ذکر دی او په بل روايت کي د دوه قيراطه نيکئ کميدو ذکر دی په دواړو روايتونو کي تعارض دی

جواب: بعضي علماء وائي بعضي سپي ډيرخطرناك په تکليف رسونکي وي نو دهغي په ساتلو سره دوه قيراطه ثواب کميږي او کوم سپي چي کم ضرر والا وي دهغوئ په ساتلو يو قيراط

ثواب كميږي
دويم جواب مقدس مقام مثلا مكه ، مدينه، وغيره ښارونو كي بغير دضرورته سپي ساتلو په وجه دوه قيراطه ثواب كميږي او ددينه په علاوه ښارونو كي يو قيراط ثواب كميږي.
دريم جواب په ښار كي دوه قيراطه كميږي او په كلو كي يو قيراط كميږي
څلورم په ابتداء كي ديو قيراط وعيد وو ليكن كله چي خلقوسپي ساتل زيات كړل نو په زجر كي زيادت راغى او ددوه قيراطه ثواب كميدو حكم جاري شو اوس به په دوه قيراطه ثواب كميدو والاحديث باندي عمل وي.
دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درحمت فرشتى داسى قافلى سره نه ملگري كيږي كومه كي چي سپى وي يا جرس وي
"لاتصحب الملائكة" يعني فرشتي ملگرتيا نه كوي، ددينه هغه فرشتي مراد دي كومي چي داعمالو ليكونكو او حفاظت كونكو نه علاوه وي
"جرس" يعني تلئ ددي په وجه هم فرشتي لري تختي څكه چي دا د ناقوس سره مشابه دى كوم چي دغيرمسلمو علامه ده يا داچي ددي اواز په شريعت كي بد گڼلى شوى دى، په يو روايت كي راځي چي يو هلك عائشه رضي الله عنها ته راغلو او داسي څيز ورسره وو چي شرنگا يي كوله ام المومنين ورته اوفرمائيل داسي څيز زما خواته مه راوړه كوم چي فرشتو لره لري شړونكى وي.

****************

١٢٧٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ. ح وحَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ، وَمَهْرِ الْبَغِيِّ وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)
**ترجمه** دابومسعود انصاري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسپي دقيمت اخستلو نه او دزناكاري ښځي دامدن نه او دكاهن دخوړو نه منع فرمائيلي ده، امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي

****************

[1] ـ حديث رقم ١١٣٣ (تحفة الأشراف: ١٠٠١٠)

## ٤٧_ باب مَا جَاءَ فِي كَسْبِ الْحَجَّامِ

### دښکر لګونکي دمزدورئ اخستلو دعدم جواز بيان

١٢٧٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنِ ابْنِ مُحَيِّصَةَ أَخَا بَنِي حَارِثَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي إِجَارَةِ الْحَجَّامِ، فَنَهَاهُ عَنْهَا، فَلَمْ يَزَلْ يَسْأَلُهُ، وَيَسْتَأْذِنُهُ، حَتَّى قَالَ: " اعْلِفْهُ نَاضِحَكَ، وَأَطْعِمْهُ رَقِيقَكَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ، وَجَابِرٍ، وَالسَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مُحَيِّصَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وقَالَ أَحْمَدُ: إِنْ سَأَلَنِي حَجَّامٌ نَهَيْتُهُ، وَآخُذُ بِهَذَا الْحَدِيثِ.
([1])

**ترجمه** : دمحيصه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دښکر لګونکي داجرت اجازت طلب کړو نو هغویٔ ددینه منع اوفرمائیله لیکن ما به ورنه بار بار تپوس کولو او اجازت به مي غوښتلو تردي پوري چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا دخپل اوښ په ګيا باندي خرچ کړه او يا يي پخپل غلام باندي اوخوروه
امام ترمذي وائي دمحيصه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي درافع بن خديج، جحيفه، جابر، او سائب بن يزيد رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي، امام احمد وائي که چري زما نه کوم ښکر لګونکي مزدوري اوغواړي نو زه يي ورته نه ورکوم او په دليل کي به ورته همدا حديث پيش کوم

**************

**حلوان الكاهن**، يعني دکاهن شيريني، کاهنانو ته چي به کوم خلق راتلل او هغوئ به ورته راتلونکي خبرونه بيانول نو خلقو به ورته دشيرينئ په نوم اجرت ورکولو ، داهم حرام دي

## ٤٨_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي كَسْبِ الْحَجَّامِ

### دښکر لګونکي دمزدورئ اخستلو دجواز بيان

١٢٧٨_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، قَالَ: سُئِلَ أَنَسٌ عَنْ كَسْبِ الْحَجَّامِ، فَقَالَ أَنَسٌ: " احْتَجَمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَجَمَهُ أَبُو طَيْبَةَ، فَأَمَرَ لَهُ بِصَاعَيْنِ مِنْ طَعَامٍ، وَكَلَّمَ أَهْلَهُ، فَوَضَعُوا عَنْهُ مِنْ خَرَاجِهِ ". وَقَالَ: إِنَّ أَفْضَلَ مَا تَدَاوَيْتُمْ بِهِ الْحِجَامَةَ، أَوْ إِنَّ

---

[1] _ حديث رقم ١١٣٢ (تحفة الأشراف، ١١٠١٠)

مِنْ أَمْثَلِ دَوَائِكُمُ الحِجَامَةَ. قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، فِي كَسْبِ الحَجَّامِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ. (1)

**ترجمه** دحميد بيان دي فرمائي چي دانس رضي الله عنه نه مي دښکر لګونکي دمزدورئ باره کي تپوس اوکړو نو انس رضي الله عنه اوويل رسول الله صلي الله عليه وسلم ښکر لګولي وو او ښکر لګونکي ابوطيبه وو او رسول الله هغه ته د دوه صاع دغلي ورکولو حکم اوکړو او دده دمالکانو سره يي خبره اوکړه نو هغوئ دابوطيبه په خراج کي کمي اوکړو او رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په کومو څيزونو چي تاسو خپل علاج کوئ په هغوئ کي ښکر دتولو نه افضل دي، او که داسي يي اوفرمائيل ستاسو په بهترينو دواګانو کي ښکر لګول دي.
امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعلي، ابن عباس، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي صحابه کرامو او اهل علمو کي بعضو دښکر لګونکي داجرت په جواز قول کړي دي او همدا دامام شافعي قول هم دي.

***************

## ٤٩_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَالسِّنَّوْرِ

### دسپي او دپيشو دقيمت دکراهت بيان

١٢٧٩_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، وَعَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، قَالَا: أَنْبَأَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الكَلْبِ، وَالسِّنَّوْرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ فِي إِسْنَادِهِ اضْطِرَابٌ، وَلَا يَصِحُّ فِي ثَمَنِ السِّنَّوْرِ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِهِ، عَنْ جَابِرٍ وَاضْطَرَبُوا عَلَى الأَعْمَشِ فِي رِوَايَةِ هَذَا الحَدِيثِ، وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ ثَمَنَ الهِرِّ، وَرَخَّصَ فِيهِ بَعْضُهُمْ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَرَوَى ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ. (2)

---

1 _ مسلم/المساقاة ١١ (البيوع ٣٢) (١٥٦٨). (تحفة الأشراف: ٥٨٠)

2 _ ابي داود/ البيوع ٦٣ (٣٤٧٩) (تحفة الأشراف: ٢٣٠٩) و انظر أيضا ما عند صحيح مسلم/المساقاة ٩ (١٥٦٩). وسنن النسائي/الذبائح ١٦ (٤٣٠٠). وسنن ابن ماجه/التجارات ٩ (٢١٦١). ومسند احمد (٣/٣٣٩)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسپي او د پيشو دقيمت اخستلو نه منع فرمائيلي ده
امام ترمذي وائي ددي حديث په سند كي اضطراب دي دپيشو دقيمت باره كي دا صحيح نه دي، داحديث داعمش نه مروي دي او هغه دبعضي اصحابو نه نقل كړي دي او هغه دجابر رضي الله عنه نه دوئ داعمش نه ددي حديث په نقل كولو كي په اضطراب كي واقع شوي دي، او ابن فضل ددي سند نه علاوه په بل سند هم داعمش نه او هغه دابوحازم نه او هغه دابوهريره نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي په اهل علمو كي يو جماعت دپيشو قيمت ناجائز ګڼړلي دي او بعضو ددي اجازت وركړي دي اوهمدادامام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي

***************

١٢٨٠ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ زَيْدٍ الصَّنْعَانِيُّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الْهِرِّ وَثَمَنِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَعُمَرُ بْنُ زَيْدٍ لَا نَعْرِفُ كَبِيرَ أَحَدٍ رَوَى عَنْهُ غَيْرَ عَبْدِ الرَّزَّاقِ. (1)

**ترجمه** دجابررضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دپيشو او ددي دقيمت خوړلو نه منع فرمائيلي ده، امام ترمذي وائي داحديث غريب دي او مونږ ته دعبدالرزق نه علاوه بل څوك لوي محدث نه دي معلوم چاچي دا روايت دعمرو بن زيد نه نقل كړي وي

***************

## ٥٠ـ باب
## دسپي دقيمت متعلق يو بل باب

١٢٨١ـ أَخْبَرَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَزِّمِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ إِلَّا كَلْبَ الصَّيْدِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا يَصِحُّ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو الْمُهَزِّمِ اسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ سُفْيَانَ، وَتَكَلَّمَ فِيهِ شُعْبَةُ بْنُ الْحَجَّاجِ وَضَعَّفَهُ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هَذَا وَلَا يَصِحُّ إِسْنَادُهُ أَيْضًا. (2)

---

1 ـ ابي داود/البيوع ٦٣ (٣٤٨٠)، سنن ابن ماجه/الصيد ٢٠ (٣٢٥٠) (تحفة الأشراف: ٢٨٩٣)، ومسند احمد (٣/٢٩٧)

2 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٤٨٣٤)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسپي دقيمت اخستلو نه منع فرمائيلي ده مگر علاوه دښکاري سپي نه .
امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند صحيح نه دي، او د ابو المهزم نوم يزيد بن سفيان دي او په ده باندي شعبه بن حجاج كلام كړي دي او ضعيف يي گنړلي دي، او دجابر نه ددي يو هم معني روايت مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه يي نقل كړي دي مگر ددي سند هم درست نه دي (الصحيحه رقم ۲۹۷۱) .

***************

## ٥١_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ بَيْعِ الْمُغَنِّيَاتِ

### دسندري ويونكي داجرت دحرمت بيان

۱۲۸۲_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، أَخْبَرَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ زَحْرٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا تَبِيعُوا الْقَيْنَاتِ، وَلَا تَشْتَرُوهُنَّ، وَلَا تُعَلِّمُوهُنَّ، وَلَا خَيْرَ فِي تِجَارَةٍ فِيهِنَّ، وَثَمَنُهُنَّ حَرَامٌ ". فِي مِثْلِ هَذَا أُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ (لقمان : ٦) إِلَى آخِرِ الْآيَةِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي أُمَامَةَ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ هَذَا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي عَلِيِّ بْنِ يَزِيدَ وَضَعَّفَهُ وَهُوَ شَامِيٌّ. [1]

**ترجمه** : دابوامامه رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سندري ويونكي وينځي مه خرڅوئ او مه يي اخلئ او نه به ورته سندري زده كوئ ددوئ په تجارت كي خير او بركت نشته او ددي قيمت حرام دي او هم دداسي څيزونو باره كي دا ايت كريمه "ومن الناس من يشتري لهو الحديث ليضل عن سبيل الله"(لقمان : ٦) نازل شوي دي .

**تشريح** : قاضي ثناء الله پاني پتي پخپل تفسيركي ددي ايت د لاندي ددي مسئلي يو شاندار او مدلل تحقيق كړى دى چي د باب سره دمناسبت په وجه يي نقل كوو
"لهوالحديث" يعني بي بنياده خبري او قصي او غير معتبر داستانونه او خندونكي لغوه بيانات كوم چي دنيكو خبرو نه منع كول كوي ، كه چري لهوالحديث كي دحديث نه مراد بدي خبري وي نو اضافت به بياني وي او كه عامي خبري مراد وي نو اضافت به تبعيضي وي.

---

[1] _ ابن ماجه/التجارات ۱۱ (۲۱٦۸) . (تحفة الأشراف : ۴۸۹۸)

ابن جرير دعوفي په سندسره دابن عباس بيان نقل کړي دي چي ددي ايت نزول ديو قريشي په حق کي شوي دي چاچي يوه مغنيه (سندرغاړي) وينځه اخستلي وه .
بغوي دابوسلمه نه روايت بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سندرو ويونکو ښځو ته تعليم ورکول جائز نه دي او ددوئ قيمت حرام دي (يعني خرڅول يي ناجائز دي) او د همداسي کس په باره کي وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ . نازل شوي دي څوك چي دګاني دپاره اواز پورته کړي نو الله تعالي ورباندي دوه شيطانان مسلط کړي يو په يوه اوږه او بل په بله اوږه او دهغه وخته پوري يي په لتو وهي چي ترڅوپوري خاموش شوي نه وي.
ترمذي وغيره دابوامامه رضي الله عنه بيان نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي سندري ويونکي وينځي مه خرڅوئ او مه يي اخلئ ددوئ په تجارت کي هيڅ خير نشته او ددوئ قيمت حرام دي او دهمداسي کس په باره کي وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ ، نازل شوي دي .
بغوي دمقاتل او کلبي بيان نقل کړي دي چي ددي ايت نزول دنضر بن حارث بن کلده په حق کي شوي دي نضر به تجارت کولو او ايران ته به تلو او هلته به يي دعجميانو نه افساني اخستلي او قريشو ته به يي بيانولي او وئيل به يي محمد (صلي الله عليه وسلم) تاسو ته دعاد اوثمود قصي بيانوي او زه درته داسفنديار او رستم قصي بيانوم او دايران دشاهانو حکايتونه درته کوم او خلقويه دده خبري په خوند خوند اوريدلي او قران اوريدل به يي پريخودل تردي چي پدي باره کي دا ايت نازل شو.
بيهقي په شعب الايمان کي دابن عباس رضي الله عنهما په سند سره همدا روايت په همدي مضمون نقل کړي دي.
دمجاهد بيان دي چي دلهوالحديث نه مراد ګاني ويونکي سړي او ښځي دي ددي صورت په بنا به دلهو نه مخکي مضاف محذوف وي يعني بعضي خلق قران پريږدي اوموسيقي اوريدل خوښوي .
دمکحول قول دي څوك چي دګاني بجاني په غرض کومه وينځه واخلي او دي پدي کار باندي دمرګه پوري قائم وي نو زه دده جنازه نه کوم ځکه چي الله تعالي فرمائيلي دي وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ.
دابن مسعود او ابن عباس حسن عکرمه او سعيد بن جبير رضي الله عنهم په نزد د لهو الحديث نه مراد ګاني اوريدل دي او همددي متعلق دا ايت نازل شوي دي . دابو الصهباء

بكري بيان دي چي دابن مسعود رضي الله عنه نه مي ددي ايت متعلق تپوس اوكړو ابن مسعود دري پيري اوفرمائيل زما دي په هغه ذات قسم وي دچانه علاوه چي بل معبود نشته چي دا (لهو الحديث) غني ده .
دابن جريج په نزد دلهوالحديث نه مراد تمبل، ډول ، باجه او طبله وغيره دي .
زه وايم مورد دنزول اګر چي خاص دي غني اوريدل وي او که عجمي قصي اوريدل وي ليکن الفاظ عام دي او عموم قابل داعتبار دي په همدي وجه قتاده ونيلي دي چي پدي ايت کي هر لهو لعب مراد دي او دضحاك په نزد شرك مراد دي .
**مسئله**: په اتفاق دفقهاؤ هر قسم ډول ، باجه ، تبله وغيره برابره خبره ده چي بغير دتار وي او که دتار سره وي غږول حرام دي .
دابوهريره رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسپي دقيمت او دډول باجو دګټي نه منع فرمائيلي ده .(رواه البغوي)
دابو مالك اشعري بيان دي پخپله مي اوريدلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيل بعضي کسان به شراب څکي او په دوئ به څه نور نومونه ايږدي ، ددوئ په وړاندي به باجي غږيږي او سندرغاړي به ددوئ په وړاندي ګاني وائي او الله تعالي به دوئ لره په زمکه کي ډوب کړي او بعضي به شادوګان او بعضي خنزيران اوګرخوي (رواه ابن ماجه) ابن حبان دا روايت صحيح ګنړلي دي، ددي اصل په بخاري کي موجود دي ، دعلي رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زما امت چي کله پنځلس کارونه شروع کړي نو په دوئ به عذاب رانازليږي عرض اوکړي شو اي دالله رسوله هغه کوم کوم کارونه دي نو ويي فرمائيل.

(۱) کله چي مال دغنيمت دولت اوګنړلي شي .
(۲) کله چي امانت غنيمت اوګنړلي شي.
(۳) کله چي ذکات تاوان او ټيکس وګنړلي شي.
(۴) کله چي خاوند دخپلي ښځي فرمانبردار جوړشي.
(۵) او دخپلي مور نافرماني شروع کړي.
(۲) او د دوست سره ښه سلوك کوي.
(۷) او په پلار باندي ظلم کوي.
(۸) اوکله چي په جماتونو کي تيز اوازونه شروع شي
(۹) کله چي په ټولنه کي رذيل سړي دقوم مشر جوړ شي.
(۰) او درذيل سړي عزت پدي وجه شروع شي چي دده دشر نه حفاظت حاصل شي
(۱۱) او شراب څکل شروع شي.

(۱۲) او ريشمي جامې اغوستل شروع شي.
(۱۳) او ډګانو والاو دساتلو انتظام شروع شي.
(۱۴) او ډهول باجو استعمال شروع شي.
(۱۵) او وروستني خلق په تيرو شوو خلقو لعنت ونيل شروع کړي
(۱۲) په داسي وخت کي خلقو لره پکار دي چي دتوند او ګرم باد دراتلو او په زمکه کي دډوبيدو انتظار اوکړي (رواه الترمذي وقال غريب)
**مسئله**. فقهاؤ ددي ايت او نورو احاديثو په وجه دګانو اوريدل حرام کړي دي ، دصوفيانو قول دي څوك چي دالله په ياد کي مشغول وي نو دالله تعالي په ذکر سره ده ته اطمينان حاصليږي خو چي بل طرف ته التفات نه وي او مجلس داغيارو نه خالي وي او دمونځ وخت هم نه وي او دګاني والا محل شهوت هم نه وي دداسي کس دپاره نه داچي فقط سماع جائز ده بلکه مستحب ده .
من جمله دهغه احاديثو نه دکومو نه چي دغنا جواز بلکه د دف (چمبه) وهلو اجازت اباحت معلوميږي يو خو هغه حديث دي دکوم رويت چي ربيع بنت معويذ بن عفراء کړي دي، دربيع بيان دي چي زما دواده په ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم راغي او زما خواته داسي کيناستو لکه ته چي زما خواته نزدي ناست يي او بعضي ماشومانو جينکو چمبه وهله او دهغه خلقو مرثيه يي کوله کوم چي دبدر په ورځ وژلي شوي وو يوي جينۍ داسي مصرع اوونيله "وفينا نبي يعلم ما في غد" يعني په مونږ کي يوداسي نبي دي چي په سبا راتلونکو خبرو پوهيږي، رسول الله صلي الله عليه وسلم دي ماشومي ته اوونيل دا پريږده مخکي چي دي ونيل هغه شان وايه (رواه البخاري).
دابن ماجه په روايت کي دومره اضافه ده چي رسول الله اوفرمائيل داسي مه وايه دسبا کيدونکو کارونو متعلق دالله تعالي نه علاوه بل هيڅوك نه پوهيږي.
دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ددي نکاح اعلان به کوئ او په مسجد کي به يي کوئ او پدي باندي چمبه اووهئ (رواه الترمذي فقال هذا حديث غريب).
دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي زما سره يوه انصاريه جينۍ وه ما دچا سره دهغي نکاح اوکړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي عائشي څه غني به مو کړي وه څکه چي دانصاريانو دا قبيله مالداره کيدل خوښوي (رواه ابن حبان في الصحيح)
دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي عائشه رضي الله عنها دخپلي کومي رشته داري جينۍ نکاح ديو انصاري سره اوکړه رسول الله صلي الله عليه وسلم چي دننه داخل شو نو وېي

فرمائيل ايا جينئ مو رخصت كړي ده ؟ حاضرينو په جواب كي اووئيل هو نو وبي فرمائيل ايا تاسو ورسره څوك ګاني ويونكي ليږلي دي ؟ عائشه رضي الله عنها اووئيل نه ، نو وبي فرمائيل انصار خو مالداره كيدل خوښوي، كه چري تاسو ددي مصرعي دپاره اتيناكم اتيناكم فحيانا وحياكم وئيلو دپاره مو څوك ليږلي وى (نو بهتره به وه) او مونږ به هم درته درغلي وي ، يعني الله تعالي دي په مونږ كي هم بركت واچوي او په تاسو كي هم (رواه ابن ماجه).

دعامر بن سعد رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي زه په يو واده كي شريك شوم او هلته قرظ بن كعب او ابو مسعود انصاري هم موجود وو او جينكو سندري وئيلي ما عرض اوكړو اي درسول الله ملګرو او اي دبدر مجاهدينو ستاسوپه وړاندي دا څه كيږي نو هغوئ دواړو راته په جواب كي اووئيل كه ستا خوښوي نو كينه او زمونږ سره يي ته هم واوره او كه تلل غواړي نو زه او مونږ ته يقينا په ودونو كي دلهو اجازت راكړي شوي دي .

دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي ماته ابوبكر رضي الله عنه پداسي وخت كي راغي چي دحج زمانه وه او زما سره دوه جينكئ ناستي وي چي دف يي وهلو او رسول الله صلي الله عليه وسلم پداسي حالت كي پروت وو چي په مخ يي كپره غوړيدلي وه نو ابوبكر رضي الله عنه جينكئ ديكه كړي رسول الله صلي الله عليه وسلم دكپړي نه مخ ښكاره كړو او وبي فرمائيل اي ابوبكر دوئ پريږده خكه چي دا داختر ورځ ده (رواه البخاري)

دابن ماجه په روايت كي ورسره دومره اضافه ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دهر يو قوم دپاره يو اختر وي او زمونږ دا اختر دي.

دعمرو بن شعيب دنيكه نه روايت دي چي يوي زنانه عرض اوكړو اي دالله رسوله ما داسي نذر منلي وو چي كله تا الله تعالي راولي نو پدي خوشحالئ كي به ستا په سر باندي دف وهم رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نذر دي پوره كړه (رواه ابو داود)

دا منلي شوي خبره ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دالله تعالي دنافرمانئ نذر پوره كول پكار نه دي (نو كه چري دف وهل ګناه وي نو رسول الله به هيڅ كله ددي اجازت نه وو وركړي ، رواه مسلم).

دا هم په يو روايت كي راغلي دي چي كله رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته راغي او دبني نجار قبيلي په محله كي يي قيام اوكړو نو دبني نجار قبيلي جينكو دا شعرونه وئيل ·

نحن جوار من بنى نجار * يا حبذا محمدا من جار

(رواه ابن ماجة عن انس)

طلع البدر علينا من ثنيات الوداع * وجب الشكر علينا ما دعى لله داع

ايها المبعوث فينا * جئت بالأمر المطاع

امام احمد دانس رضي الله عنه نه روايت بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم كله مديني ته راغي نو دده دراتلو په خوشحالئ كي حبشيانو دوړو وړو نيزو وبشتلو لوبه كوله دمحمد بن حاطب جمحي بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په ګانو او نكاح كي په چمبه وهلو كي دحلت او حرمت متعلق امتياز دي (رواه احمد والترمذي وابن ماجه والنسائي).

دپورتني تقرير نه معلومه شوه چي ګاني وئيل او اوريدل هغه حرام كار دي كوم چي ګناه ته دعوت وركوي او دالله دياد نه خلق غافل كوي او كه داسي نه وي نو بيا حلال دي مګر دا جدا خبره ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يا صحابه كرامو اوريدل او دقربت الهي دحصول ذريعه ګرځول ثابت نه دي نو پدي وجه دنقش بنديه اكابرين ګاني نه اوري ليكن ترديد يي هم نه كوي.

***************

## ٥٢_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْفَرْقِ بَيْنَ الأَخَوَيْنِ أَوْ بَيْنَ الْوَالِدَةِ وَوَلَدِهَا فِي الْبَيْعِ

### دغلامانو په خرڅولو كي په دوه رونړو كي يا مور او بچو كي تفريق كول حرام دي

١٢٨٣_ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ الشَّيْبَانِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي حُيَيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الْوَالِدَةِ وَوَلَدِهَا، فَرَّقَ اللَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَحِبَّتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه**: د ابو ايوب انصاري رضي الله عنه روايت دى چي رسول الله به فرمائيل چاچي جدايي راوستله په مينځ د مور او د بچي دهغي كي نو الله تعالي به دده او دده ددوستانو مينځ كي جدايي راولي د قيامت په ورځ

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دى

***************

١٢٨٤_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ قَزَعَةَ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ أَبِي شَبِيبٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: وَهَبَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

[1] _ تفرد به المؤلف وأعاده في السير ١/٧ (١٥٦٦). (تحفة الأشراف: ٣٤٦٨). وانظر مسند احمد (٥/٤١٣، ٤١٤)

وَسَلَّمَ غُلَامَيْنِ أَخَوَيْنِ، فَبِعْتُ أَحَدَهُمَا. فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَلِيُّ. مَا فَعَلَ غُلَامُكَ؟" فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ: "رُدَّهُ رُدَّهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. التَّفْرِيقَ بَيْنَ السَّبْيِ فِي الْبَيْعِ. وَيُكْرَهُ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَ الْوَالِدَةِ وَوَلَدِهَا وَبَيْنَ الإِخْوَةِ وَالأَخَوَاتِ فِي البيع. وَرَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي التَّفْرِيقِ بَيْنَ الْمُوَلَّدَاتِ الَّذِينَ وُلِدُوا فِي أَرْضِ الإِسْلَامِ، وَالْقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ. وَرُوِيَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا فِي الْبَيْعِ. فَقِيلَ لَهُ: فِي ذَلِكَ. فَقَالَ: إِنِّي قَدِ اسْتَأْذَنْتُهَا بِذَلِكَ. فَرَضِيَتْ. ([1])

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته دوه غلامان راكړل كوم چي پخپل مينځ كي رونړه وو نو ما په دوئ كي يو خرڅ كړو بيا رانه رسول الله صلي الله عليه وسلم تپوس اوكړو اي علي دغلامانو دي څه حال دي ما عرض اوكړو چي ما خو په دوئ كي يو خرڅ كړي دي راته يي اوفرمائيل راواپس يي كړه .

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي بعضي علماء دخرڅولو په وخت كي دقيديانو مينځ كي جدائي راوستل ناجائز ګڼړي او بعضي اهل علمو دهغه هلكانو مينځ كي جدائي واقع كول جائز ګڼړلي دي كوم چي په دارلاسلام كي پيدا شوي دي ليكن اولني قول زيات صحيح دي، دابراهيم نخعي نه مروي دي چي هغه دخرڅولو وخت كي دمور او خوي مينځ كي تفريق كړي وو چنانچه كله په هغه دا اعتراض اوكړي شو نو ويي ونيل ما دهغه دمور نه اجازت اوغوښتلو نو همه په دي باندي راضي شوه

****************

## ٥٣_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَشْتَرِي الْعَبْدَ وَيَسْتَغِلُّهُ ثُمَّ يَجِدُ بِهِ عَيْبًا

**حكم دهغه چاچي يو غلام واخلي او مزدوري وربا ندي اوكړي او بيا پكي څه عيب بيامومي**

١٢٨٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، وَأَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ مَخْلَدِ بْنِ خُفَافٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى أَنَّ الْخَرَاجَ

---

[1] _ ابن ماجه/التجارات ٣٦(٢٢٤٩)، (تحفة الأشراف : ١٠٢٨٥)، و مسند احمد (١/١٠٢)

بِالضَّمَانِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. (1)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا فيصله كړي وه چي دفائدي مستحق كيدل دضامن كيدو په بنياد دي
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دي او داهل علمو عمل هم په دي باندي دي

***************

١٢٨٦ــ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ المُقَدَّمِيُّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى أَنَّ الخَرَاجَ بِالضَّمَانِ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى مُسْلِمُ بْنُ خَالِدٍ الزَّنْجِيُّ هَذَا الحَدِيثَ، عن هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، وَرَوَاهُ جَرِيرٌ، عنْ هِشَامٍ أَيْضًا. وَحَدِيثُ جَرِيرٍ يُقَالُ: تَدْلِيسٌ دَلَّسَ فِيهِ جَرِيرٌ لَمْ يَسْمَعْهُ مِنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. وَتَفْسِيرُ الخَرَاجِ بِالضَّمَانِ، هُوَ الرَّجُلُ يَشْتَرِي العَبْدَ، فَيَسْتَغِلُّهُ ثُمَّ يَجِدُ بِهِ عَيْبًا، فَيَرُدُّهُ عَلَى البَائِعِ، فَالغَلَّةُ لِلْمُشْتَرِي لِأَنَّ العَبْدَ لَوْ هَلَكَ هَلَكَ مِنْ مَالِ المُشْتَرِي، وَنَحْوُ هَذَا مِنَ المَسَائِلِ يَكُونُ فِيهِ الخَرَاجُ بِالضَّمَانِ. (2)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا فيصله كړي وه چي دفائدي مستحق كيدل دضامن كيدو په بنياد دي.
امام ترمذي وائي داحديث دهشام بن عروه په سند حسن صحيح غريب دي، او ما د امام بخاري نه دا حديث دعمرو بن عدي په سند غريب حاصل كړي دي ما ورنه تپوس اوكړو ستا په نظر كي په دي كي تدليس دي؟ هغه اووئيل نه. مسلم بن خالد زنجي داحديث دهشام بن عروه نه نقل كړي دي او جرير هم دا د هشام نه نقل كړي دي، او وئيلي شوي دي چي دجرير په حديث كي تدليس دي چي جرير پكي تدليس كړي دي جرير دا حديث دهشام بن عروه نه نه دي اوريدلي او د "الخراج بالضمان" تفسير دادي چي يو كس غلام واخلي او مزدوري ورباندي اوكړي او بيا په دي كي څه عيب بيامومي او چي دچا نه يي اخستي وي هغه ته يي واپس كړي

1 ــ ابي داود/ البيوع ٧٣ (٣٥٠٨). سنن النسائي/البيوع ١٥ (٤٤٩٥). سنن ابن ماجه/ التجارات ٤٣ (٢٢٤٣ و٢٢٤٢). التحفة: ١٦٧٥٥). و مسند احمد (٤٩/٦، ٨٠، ٢٠٨، ٢٣٧)

2 ــ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٧١٢٦)

نو دغلام چي كومه مزدوري او فائده ده دا به داخستونكي حق جوړيږي او دا څكه كه چري غلام دده رسيدلي وي نو دمشتري مال هلاكيدو دا او ددي پشان نورو مسائلو كي دفائدي استحقاق دضامن كيدو په وجه باندي وي

***************

## ٥٤_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي أَكْلِ الثَّمَرَةِ لِلْمَارِّ بِهَا

### دلاروي دپاره په لاره كي دكجورو دونو نه دميوي خوړلو داجازت بيان

١٢٨٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ دَخَلَ حَائِطًا فَلْيَأْكُلْ، وَلَا يَتَّخِذْ خُبْنَةً ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَبَّادِ بْنِ شُرَحْبِيلَ، وَرَافِعِ بْنِ عَمْرٍو، وَعُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سَلِيمٍ، وَقَدْ رَخَّصَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ لِابْنِ السَّبِيلِ فِي أَكْلِ الثِّمَارِ، وَكَرِهَهُ بَعْضُهُمْ إِلَّا بِالثَّمَنِ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي كوم باغ ته داخل شي نو ميوه دي اوخوري او دځان سره دي په پنډوكي كي نه اوړي.

امام ترمذي وائي دابن عمر حديث غريب دي اوداحديث صرف مونږ ته ديحي بن سليم په سند رارسيدلي دي، او په دي باب كي دعبدالله بن عمرو، عباد بن شرحبيل، رافع بن عمرو، عمير مولي ابي اللحم او ابو هريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي بعضي اهل علمو دلاروي دپاره دميوي خوړلو اجازت وركړي دي او بعضو ناجائز ګڼړلي دي مګر دا چي كله ده قيمت اداء كړي وي.

***************

١٢٨٨_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ الْخُزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ صَالِحِ بْنِ أَبِي جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَافِعِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: كُنْتُ أَرْمِي نَخْلَ الْأَنْصَارِ، فَأَخَذُونِي، فَذَهَبُوا بِي إِلَى النَّبِيِّ

[1] _ سنن ابن ماجه/التجارات ٦٧ (٢٣٠١)، (تحفة الأشراف: ٨٢٢٢)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: "يَا رَافِعُ، لِمَ تَرْمِي نَخْلَهُمْ ". قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، الْجُوعُ، قَالَ: " لَا تَرْمِ، وَكُلْ مَا وَقَعَ أَشْبَعَكَ اللَّهُ وَأَرْوَاكَ ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه** : رافع بن عمرو رضي الله عنه بيان دي ما به دانصارو دكجورو ونې په كانړو ويشتلې نو هغوئ زه اونيولم او نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته يي راوستلم رسول الله رانه تپوس اوكړو اي رافع ته دكجورو ونې په كانړو باندي ولې اولې؟ ما عرض اوكړو اي دالله رسوله دسختې ولږې په وجه راته يي اوفرمائيل په كانړو يي مه وله او كومې چي ورنه لاندې پخپله راپريوځي هغه خوره تا به تندرست او موړ كړي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي.

*****************

١٢٨٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ، فَقَالَ: " مَنْ أَصَابَ مِنْهُ مِنْ ذِي حَاجَةٍ غَيْرَ مُتَّخِذٍ خُبْنَةً فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما بيان دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په ونو كي دزوړندو ميوو باره كي تپوس اوكړې شو نو ويي فرمائيل كوم ضرورت مند چي ددينه دضرورت مطابق حاصلي كړي او په كپړه كي جمع كونكي نه وي نو په دي باندي هيڅ مؤاخذه نشته.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي

*****************

## ٥٥_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الثُّنْيَا

## په بيعه كي داستثناء كولو دمما نعت بيان

١٢٩٠_ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ الْبَغْدَادِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، " أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ

---

1 _ ابي داود/ الجهاد ٩٣ (٢٦٢٢) . ابن ماجه/التجارات ٦٧ (٢٢٩٩) . (تحفة الأشراف : ٣٥٩٥)

2 _ ابي داود/ اللقطة ح رقم ١٠ (١٧١٠) و الحدود ١٢ (٤٣٩٠) . سنن النسائي/قطع السارق ١١ (٤٩٦١) . (تحفة الأشراف : ٨٧٩٨)

الْمُحَاقَلَةِ، وَالْمُزَابَنَةِ، وَالْمُخَابَرَةِ، وَالثُّنْيَا إِلَّا أَنْ تُعْلَمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ. (١)

**ترجمه** . دجابر رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمحاقلي، مزابني، او مخابري او په بيعه کي دبعضي څيزونو دمستثني کولو نه منع فرمائيلي ده مګر هغه وخت کي جائز دي چي استثناء کړي شوي څيز معلوم وي.

امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند په روايت د يونس بن عبيد کوم چي هغه دعطاء نه او عطاء دجابر نه نقل کړي دي حسن صحيح غريب دي.

****************

## ٥٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ بَيْعِ الطَّعَامِ حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ

### دقبضي کولو نه مخکي دغلي خرڅول ناجائز دي

١٢٩١ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِعْهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ ". قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَأَحْسِبُ كُلَّ شَيْءٍ مِثْلَهُ. قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ جَابِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، كَرِهُوا بَيْعَ الطَّعَامِ، حَتَّى يَقْبِضَهُ الْمُشْتَرِي، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِيمَنِ ابْتَاعَ شَيْئًا مِمَّا لَا يُكَالُ وَلَا يُوزَنُ مِمَّا لَا يُؤْكَلُ، وَلَا يُشْرَبُ، أَنْ يَبِيعَهُ قَبْلَ أَنْ يَسْتَوْفِيَهُ، وَإِنَّمَا التَّشْدِيدُ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي الطَّعَامِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. (٢)

---

[1] ـ البخاري/الشرب والمساقاة ١٧ (٢٣٨١)، صحيح مسلم/البيوع ١٦ (١٥٣٦)، سنن ابي داود/ البيوع ٣٤ (٣٤٠٥)، سنن النسائي/الأيمان (والمزارعة)، ٤٥ (٣٩١٠)، والبيوع ٧٤ (٤٦٣٧)، سنن ابن ماجه/التجارات ٥٤ (٢٢٦٦)، (تحفة الأشراف: ٢٤٩٥)، و مسند احمد (٣١٣/٣، ٣٥٦، ٣٦٠، ٣٦٤، ٣٩١، ٣٩٢)

[2] ـ البخاري/البيوع ٥٤ (٢١٣٢)، صحيح مسلم/البيوع ٨ (١٥٢٥)، سنن ابي داود/ البيوع ٦٧ (٣٤٩٦) سنن النسائي/البيوع ٥٥ (٤٦٠٤)، سنن ابن ماجه/التجارات ٣٧ (٢٢٢٧)، (تحفة الأشراف: ٥٧٣٦)، و مسند احمد (٢١٥/١، ٢٢١، ٢٥١، ٢٧٠، ٢٨٥، ٣٥٦، ٣٦٨، ٣٦٩)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي غله واخلي دا دي هغه وخته پوري نه خرخوي څو پوري چي دده په قبضه کي راغلي نه وي، دابن عباس بيان دي زه هر يو شي دغلي پشان ګڼړم.
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجابر، ابن عمر، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داکثرو اهل علمو عمل هم په دي باندي دي هغوئ هغه وخته پوري دغلي خرڅولو ته ناجائز وائي څو پوري چي خريدارقبض کړي نه وي او بعضي خلقو دقبضه کولو نه مخکي ددي دخرڅولو اجازت ورکړي دي ، څوک چي داسي څيز واخلي کوم چي مکيلي او موزوني نه وي او نه دخوړلو څکلو څيز وي داهل علمو په نزد تشديد صرف په طعام کي دي. د امام احمد او اسحاق هم دا قول دی.

***************

## ٥٠ـ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الْبَيْعِ عَلَى بَيْعِ أَخِيهِ

**دخپل يو مسلمان ورور په بيعه با ندي بيعه کول منع دي**

١٢٩٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ، وَلَا يَخْطُبْ بَعْضُكُمْ عَلَى خِطْبَةِ بَعْضٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا يَسُومُ الرَّجُلُ عَلَى سَوْمِ أَخِيهِ". وَمَعْنَى الْبَيْعِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ هُوَ السَّوْمُ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمررضي الله عنهمانه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي دي هيڅوك دچا په بيعه بيعه نه کوي او نه دي څوك کومي ښځي ته دبل چا دپيغام دپاسه دنکاح پيغام ورکوي.
امام ترمذي وائي دابن عمر حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابوهريره او سمره رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي

---

1 ـ البخاری/النکاح ٤٥ (٥١٤٢). صحیح مسلم/النکاح ٦ (١٤١٢). والبیوع ١٤١٢). سنن ابی داود/ النکاح ١٨ (٢٠٨١). سنن النسائی/النکاح ٢٠ (٣٢٤٠). و٢١ (٣٢٤٥). والبیوع ٢٠ (٤٥٠٧). سنن ابن ماجه/النکاح ١٠ (١٨٦٧). (تحفة الأشراف : ٨٢٨٤). ومسند احمد (١٢٢/٢، ١٢٤، ١٢٦، ١٣٠، ١٤٢، ١٥٣). سنن الدارمی/النکاح ٧ (٢٢٢٢). والبیوع ٣٣ (٢٦٠٩)

فرمائيل يي هيڅوك دي دخپل ورور په ريټ دپاسه ريټ نه وركوي ، او دبعضي اهل علمو په نزد په دي حديث كي دبيعي نه مراد ريټ وركول دي.

**تشريح** : مسلم هم د عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت نقل كړى دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي : "يو كس به دبل كس په سودا سودا نه كوي"

أخرجه : مسلم كتاب النكاح باب تحريم الخطبة علي خطبة اخيه ١٣٩/٤ (١٤١٤) (٥٦).

ددي حديث مطلب دادى كله چي دوه كسانو مينځ كي سودا روانه وي نو د دريم كس دپاره جائز نه دي چي هغه هم ددي څيز داخستلو خبره شروع كړي او داسي اووائي چي زه دا څيز په دومره اخلم ده لره پكار دي چي انتظار اوكړي كه چري ددوئ په مينځ كي معامله اونه شوه نو بيا دى معامله كولى شي.

ددي وجه داده چي دداسي كار په وجه په خلقو كي بغض او عداوت پيدا كيږي او محبت او اسلامي اخوت ددي په سبب ختميږي او په حديث كي خو راغلي دي چي يو مومن دبل مومن ورور دى.

***************

## ٥٨ـ باب مَا جَاءَ فِي بَيْعِ الْخَمْرِ وَالنَّهْيِ عَنْ ذَلِكَ

### دشرابو دخرڅولو دمما نعت بيان

١٢٩٣ـ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ لَيْثًا يُحَدِّثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبَّادٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي طَلْحَةَ، أَنَّهُ قَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، إِنِّي اشْتَرَيْتُ خَمْرًا لِأَيْتَامٍ فِي حِجْرِي، قَالَ: "أَهْرِقِ الْخَمْرَ، وَاكْسِرِ الدِّنَانَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي طَلْحَةَ رَوَى الثَّوْرِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ السُّدِّيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبَّادٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ كَانَ عِنْدَهُ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ اللَّيْثِ.[1]

**ترجمه** : دابوطلحه رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي ما عرض اوكړو اي دالله رسوله ما دخپلو يتيمانو دپاره شراب اخستلي وو څوك چي زما په پرورش كي دي نودي څه حكم دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل شراب واړوه او منګي يي مات كړه.

امام ترمذي وائي دابوطلحه داحديث ثوري په سند دسدي عن يحيٰ بن عباد عن انس سره نقل كړي دي چي ابوطلحه درسول الله سره وو او دا روايت دليث درو ايت نه زيات صحيح دي، او

---

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٣٧٧٢)

په دي باب کي دجابر، ابوسعيد، ابن مسعود، ابن عمر، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

## دابوطلحه زيد بن سهل حالات

نوم زيد کنيه ابو طلحه دبني نجار قبيلي عمرو بن مالك خاندان سره يي تعلق دی دپلار نوم يي سهل بن اسود وو او دمور نوم يي عباده وه دجاهليت په زمانه کي دعامو عربو پشان بت پرست او شرابي وو تقريبا دشلو کالو په عمر کي په اسلام کي داخل شو او دمسلمانيدو واقعه يي داسي ده چي مصلين ته يي دنکاح پيغام ورکړو نو هغي ورباندي دمسلمانيدو شرط اولګولو ددي اثر دا وو چي دده په زړه کي داسلام حقيقت داخل شو او مسلمان شو کارکردګي يي داسي ده چي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره هميشه په غزواتوکي شريك شوی دی او په هر يو جنګ کي يي ښه بهادري خودلي ده دا هغه صحابي دی چاچي درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره قبر کنستلی وو درسول الله سره يي دومره محبت وو چي دهغه دوفات کيدو نه پس يي دهغه دناستي ځاي خالي ليدل برداشت کولی نشول نوپه دي وجه شام ته لاړو او بيابه دپريشانيدو نه پس واپس دقبر زيارت ته راتلودعمر رضي الله عنه دامارت په زمانه کي هغه دمسانلو دحل دپاره دشپږ کسانو انتخاب کړی وو چي يو په هغوئ کي ابو طلحه هم وو، دده دوفات کيدو په کال کي اختلاف دی بعضو ۳۱او بعضو ۳۲هجري خودلي ده او بعضو ۵۱هجري خودلي دی، کوم چي صحت ته زيات نزدي دی دمرورياتو شمير يي ۹۲ دی دده مزيد حالات تهذيب التهذيب الاصابه او تذکرة الحفاظ او بخاري کتاب المغازي وغيره کي کتلی شئ.

****************

## ٥٩_ باب النَّهْيِ أَنْ يُتَّخَذَ الْخَمْرُ خَلاًّ

### دشرابو نه دسرکي جوړولو دمما نعت بيان

١٢٩٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ السُّدِّيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبَّادٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَيُتَّخَذُ الْخَمْرُ خَلًّا؟ قَالَ: "لَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

---

[1] _ مسلم/الأشربة ٢ (١٩٨٣). سنن ابي داود/الأشربة ٣ (٣٦٧٥). (تحفة الأشراف: ١٦٦٨). وسنن الدارمي/الأشربة ١٧

(٢١٦١)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړي شو چي دشرابو نه سرکه جوړيدي شي او کنه؟ نو ويې فرمائيل دشرابو نه سرکه نشي جوړيدي. امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : په دي مسئله کي دفقهاؤ اختلاف دي چي دشرابو نه سرکه جوړول جائز دي او کنه دي؟ په دي کي دوه مذاهب دي.

(١) داحنافو په نزد دشرابو نه سرکه جوړول جائز دي.

(٢) او دامام شافعي رحمه الله په نزد دشرابو نه سرکه جوړول جائز نه دي ددي مدلل تحقيق دعلم فقه په مطولاتو کي موندلي شئ.

****************

١٢٩٥ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا عَاصِمٍ، عَنْ شَبِيبِ بْنِ بِشْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الخَمْرِ عَشْرَةً عَاصِرَهَا، وَمُعْتَصِرَهَا، وَشَارِبَهَا، وَحَامِلَهَا، وَالمَحْمُولَةُ إِلَيْهِ، وَسَاقِيَهَا، وَبَائِعَهَا، وَآكِلَ ثَمَنِهَا، وَالمُشْتَرِي لَهَا، وَالمُشْتَرَاةُ لَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أَنَسٍ، وَقَدْ رُوِيَ نَحْوُ هَذَا، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** . دانس رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دشرابو په وجه په لسو کسانو لعنت وئيلي دي ددي په زبيخونکي او نچوړونکي باندي، ددي په څکونکي باندي، او ددي په وړونکي باندي، او ددي په غوښتونکي باندي، او دچا دپاره چي دا اوړلي شي، او ددي په څکونکي باندي، او ددي په خرڅونکي باندي، او ددي دقيمت په خوړونکي باندي او ددي په اخستونکي باندي او په هغه چا باندي دچا دپاره چي دا اخستلي شي (په دي ټولو کسانو رسول الله لعنت وئيلي دي). امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه روايت غريب دي او ددي حديث پشان عبدالله بن عباس، ابن مسعود، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم روايات مروي دي کوم چي دوئ دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي

****************

## ٦٠ـ باب مَا جَاءَ فِي احْتِلاَبِ الْمَوَاشِي بِغَيْرِ إِذْنِ الأَرْبَابِ

## دمالك داجازت نه بغير دچا د څاروي لوشلو بيان

[1] ـ ابن ماجه/الأشربة ٦ (٣٣٨١). (تحفة الأشراف: ٩٠٠)

١٢٩٦_ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ عَلَى مَاشِيَةٍ فَإِنْ كَانَ فِيهَا صَاحِبُهَا فَلْيَسْتَأْذِنْهُ، فَإِنْ أَذِنَ لَهُ فَلْيَحْتَلِبْ وَلْيَشْرَبْ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهَا أَحَدٌ فَلْيُصَوِّتْ ثَلاثًا، فَإِنْ أَجَابَهُ أَحَدٌ فَلْيَسْتَأْذِنْهُ، فَإِنْ لَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ فَلْيَحْتَلِبْ وَلْيَشْرَبْ وَلا يَحْمِلْ ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. قَالَ أَبُو عِيسَى ١٢: وَقَالَ عَلِيُّ بْنُ المَدِينِيِّ، سَمَاعُ الحَسَنِ مِنْ سَمُرَةَ صَحِيحٌ، وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الحَدِيثِ فِي رِوَايَةِ الحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، وَقَالُوا: إِنَّمَا يُحَدِّثُ عَنْ صَحِيفَةِ سَمُرَةَ. (1)

**ترجمه** : دسمره بن جندب رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چه په تاسو كي څوك يوي رمي ته دېږ څكلو دپاره راشي نو كه په دي كي ددوئ مالك موجود وي نو دهغه نه دي اجازت اوغواړي كه اجازت اوكړي اودي څكي او كه مالك يي موجود نه وي نو دري پيري دي اواز اوكړي نو كه څوك اواز وركړي دهغه نه دي اجازت اوغواړي او كه جواب ورته ملاؤ نشي نو پې دي اوڅكي خو دخان سره دي نه اوړي
امام ترمذي وائي دسمره حديث حسن غريب دي په دي باب كي دعمر فاروق او ابوسعيد خدري رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي امام احمد بن حنبل او اسحاق هم ددي قائل دي علي بن مديني وائي دسمره نه دحسن سماع ثابت نه دد بعضي محدثينو دحسن په روايت كوم چه هغه دسمره نه نقل كړي دي كلام كړي دي، دوئ وائي چه حسن به دسمره دصحيفي نه احاديث بيانول.

***************

## ٦١_ باب مَا جَاءَ فِي بَيْعِ جُلُودِ المَيْتَةِ وَالأَصْنَامِ

**دمردارڅاروو دڅرمنواو بتانو دخرڅولو بيان**

١٢٩٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الفَتْحِ وَهُوَ بِمَكَّةَ، يَقُولُ: " إِنَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ حَرَّمَ بَيْعَ الخَمْرِ، وَالمَيْتَةِ، وَالخِنْزِيرِ، وَالأَصْنَامِ ". فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ شُحُومَ

---

1 _ سنن ابي داود/الجهاد ٩٣ (٢٦١٩)، (تحفة الأشراف: ٤٥٩١)

الْمَيْتَةِ؟ فَإِنَّهُ يُطْلَى بِهَا السُّفُنُ، وَيُدْهَنُ بِهَا الْجُلُودُ، وَيَسْتَصْبِحُ بِهَا النَّاسُ. قَالَ: "لَا، هُوَ حَرَامٌ". ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذَلِكَ: "قَاتَلَ اللَّهُ الْيَهُودَ، إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَيْهِمُ الشُّحُومَ، فَأَجْمَلُوهُ، ثُمَّ بَاعُوهُ، فَأَكَلُوا ثَمَنَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. (١)

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي چه هغوئ دفتحي مكه په كال په مكه كي دننه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي الله او دهغه رسول د شرابو او مرداري او خنزير او بتانو خرڅول حرام كړي دي، عرض اوكړي شو اي دالله رسوله دمرداري دچربي باره كي تپوس كول غواړم كومه چه په كشتو باندي مږلي شي او په چمړو باندي لګولي شي او خلق ورنه چراغونه لګوي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هرګزنه دا جائز نه دي او دا حرام دي او بيا يي په همدي وخت كي اوفرمائيل يهود دي الله تباه كړي الله تعالي وربانډي وازګه حرامه كړي وه نو هغوئ به خوټكوله او بيا به يي خرڅوله او بيا به يي خوړله.

امام ترمذي وائي دجابر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعمر او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي.

**تشريح** : ميتة هغه ذي روح ته وئيلي شي كوم چي بغير دحلالولو مړ شي.

امام شافعي او احمد او څلورو وارو اصحاب سنن دعبدالله بن حكيم نه روايت كړي دي فرمائي چي مونږ ته درسول الله خط په دي مضمون سره راغي : خبردار دمردار غير مدبوغ څرمني اوپلو نه فائده مه اخلئ ليكن ابوداود ورسره دا اضافه كړي ده چي دا واقعه درسول كريم صلي الله عليه وسلم دوفات نه يوه مياشت مخكي وه اوداامام احمد په روايت كي يوه يادوه مياشتي مخكي ذكر ده ، دجابر رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله فرمائيلي دي چي دمرداري دهيڅ جزء نه فائده مه اخلئ ددي حديث روايت اوبوبكر شافعي كړي دي او وئيلي يي دي چي ددي سند حسن دي.

ابوداود نسائي اوحاكم داسامه رضي الله عنه نه روايت كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخناورو دڅرمنو داستعمال نه منع فرمائيلي ده، ليكن حاكم دومره اضافه كړي ده چي دخناورودڅرمنو نه دفرش جوړولو نه ني منع فرمائيلي ده، اود معاويه رضي الله عنه نه روايت

---

1 _ البخاري/البيوع ١١٢ (٢٢٣٦)، والمغازي ٥١ (٤٢٩٦)، وتفسير سورة الأنعام ٦ (٤٦٣٣)، صحيح مسلم/المساقاة ١٣ (١٥٨١)، سنن ابي داود/ البيوع ٦٦ (٣٤٨٦)، سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٨ (٤٢٦٤)، والبيوع ٩٣ (٤٦٦٣)، سنن ابن ماجه/التجارات ١١ (٢١٦٧)، (تحفة الأشراف: ٢٤٩٤)، ومسند احمد (٣/٣٢٤، ٣٢٦، ٣٤٠)

دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د نمار(يو درنده ځناور) په څرمن باندي دسوريدونه منع فرمائيلي ده
امام احمد اونسائي د مقداد بن معديكرب نه روايت كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دريځمو او سرو زرو او د نمار(يو درنده ځناور) په څرمن باندي دډډي وهلونه منع فرمائيلي ده، اود ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي په كومه كېږه كي د نمار څرمن وي فرشتي دهغي نه لري اوسيږي . ليكن پدي كي دعلماؤ اختلاف دي چي ايا دمرداري دڅرمن نه پس درنګ كولو فائده اخستلي شي اوكه نه، دامام ابوحنيفه او شافعي مسلك دادي چي درنګ كولو نه پس څرمن پاكيږي اوبيا ورنه نفع اخستل جائز كيږي اوبيعه ئي هم جائز كيږي، ليكن امام احمد اومالك ددي دعدم جواز قائل دي.
زمونږ دپاره دليل دا احاديث دي دابن عباس نه روايت دي چي رسول الله يوځل په يوه مړه چيلۍ باندي تيريدو نوئي فرمائيل چي ددي دڅرمن نه مو فائده ولي نده اخستلي خلقو عرض وكړو چي اي دالله رسوله داخو مرداره ده نو وئي فرمائيل چي خوراك ئي حرام دي خو څرمن ئي ايا په اوبو اوپه رنګ كولو سره نه پاكيده ؟ اوپه بعضي رواياتو كي ذكر دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي ددي غوښه خوړل حرام دي اودجلد په باره كي ئي اجازت دي.
همدارنګي دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي درسول الله نه مي اوريدلي دي چي فرمائيل ئي هره يوه څرمن چي رنګ كړي شي نوهغه پاكه شي ، اوددي مضمون مطابق نور احاديث هم مروي دي ، همدارنګي دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: هره يوه څرمن چي رنګ كړي شي نوفائده ورنه اخلئ، دسودة رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي زمونږ يوه چيلۍ مړه شوه نو مونږ ئي څرمن رنګ كړه ، اود مالكيانو اوحنابله وو دليل هغه حديث دي په كوم كي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: چي دمرداري دهيڅ يوجزء نه فائده اخستل جائز ندي، اوداهم وائي چي درسول الله اخري قول همدا دي ځكه چي دعبدالله بن حكيم په حديث كي صراحت دي چي مونږ ته داسي قسم خط درسول كريم صلي الله عليه وسلم دطرف نه دهغه دوفات نه يوه يادوه مياشتي مخكي ملاو شوچي دمرداري دكچي څرمني اوپلونه فائده مه اخلئ زمونږ دطرف نه مالكيانو اوحنابلوو ته داجواب دي چي دعبدالله بن حكيم دحديث سند اومتن مضطرب دي نوپدي وجه مونږ چي كوم صحيح احاديث پيش كړي دي دادهغوي مزاحم نشي جوړيدي ، اودويمه خبره داده چي دعبدالله بن حكيم دحديث په سند كي اهاب لفظ مروي دي او اهاب كچي څرمن ته ونيلي شي دكچي څرمني نه خو زمونږ په نزد هم فائده حاصلول ممنوع دي كه

څوك داخبره اوكړي چي دعبدالله بن حكيم حديث په اوسط د طبراني كي اوداين عدي په نزد باندي په دي مضمون سره نقل دي چي مونږ دجهينه علاقي په زمكه كي وو چي درسول كريم صلي الله عليه وسلم تحرير مونږ ته راغي اوپه هغي كي دا مضمون وو چي ماتاسوته دمرداري دڅرمني په باره كي اجازت دركړي وو ليكن اوس درته ليكم چي دمرداري دڅرمني اوپلونه فائده مه اخلئ نوددينه خوصريح عدم جواز معلوميږي اوهمدارنګي داهم معلوميږي چي اخري قول درسول كريم صلي الله عليه وسلم همدا وو نوددي جواب دادي چي ددي روايت په سند كي فزاله بن مفضل راوي دي اودده متعلق ابوحاتم رازي وئيلي دي چي دي ددي اهل نه دي چي اهل علم ورنه حديث اوليكي.

دمرداري دوړئ ، هډوكو، پلو، ښكرو، نه دفائدي اخستلو په بارد كي داهل علمو اختلاف دي، امام ابوحنيفه رحمة الله عليه فرمائي چي دا تمام څيزونه پاك دي ددي بيع اوانتفاع دواړه جائز دي. امام شافعي فرمائي چي ناپاك دي او امام احمد اومالك وړئ پاكه ګڼړي او باقي څيزونه ناپاك ګڼړي دامام شافعي اواحمد اومالك دري واړودپاره دليل دادي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دمرداري دهيڅ يو جزء نه فائده اخستل حلال نه دي . او امام شافعي دوړئ دنجاست دپاره دابن عمر رضي الله عنهما دحديث نه استدلال كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دمرداري نوكان او وړئ او وينه دفن كړئ داټول مرداردي داحنافو دطرف نه دوئ دري واړوته جواب دادي چي ددي دويم حديث په سند باندي مونږ كلام كوو څكه چي په دي كي يو راوي دي عبدالله بن عزيز اودهغه متعلق ابوحاكم رازي وئيلي دي چي دهغه احاديث منكر وي اوزما په نزد باندي دصدق په صفت موصوف نه دي علي بن حصين فرمائي چي عبدالله بن عزيز هيڅ نه دي نوپه دي وجه مونږ دهغه نه ددروغو احاديث نه قبلوو اوس پاتي شو مخكني حديث نوددي په سند باندي هم كلام دي اوقطع نظر ددينه داديوصحيح حديث سره معارض هم دي اوهغه حديث دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي دمرداري صرف خوړل حرام دي چنانچه بتمامه داحديث مونږ مخكي نقل كړي دي اوددي اولني حديث چي څومره سندونه دي منكر دي نوپدي وجه قابل داعتماد نه دي ، زمونږ دپاره دليل يوبل حديث دي اومضمون يي دادي چي ابن عباس فرمائي چي رسول الله صرف دمرداري دغوښي دخوړلونه منع فرمائيلي ده نوددي په څرمن او وړئ كي څه نقصان دي ليكن ددي روايت سند هم مخدوش دي څكه چي په دي كي عبدالجبارراوي دي اوهغه ضعيف دي اګر چي ابن حبان په ثقاتوكي شميرلي دي، اوهمدارنګي دابن عباس نه مروي دي چي مادرسول الله نه اوريدلي دي چي فرمائيل يي دمرداري هغه حصه حرام ده كومه چي خوړلي شي باقي دي جلد وړئ ويښته غابښونه او هډوكي شو نوددينه په فائدي اخستلو كي څه نقصان دي، ليكن ددي سند

هم داعتراض نه خالي نه دي څکه چي ددي په سند کي ابوبکر هذلي راوي دي اوهغه متروك دي ، غندر دهغه متعلق كذاب لفظ استعمال كړي دي اويحيي بن معين او علي وئيلي دي چي ابوبكر هذلي ليس بشئ دي، اودثوبان نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دفاطمي دپاره دپلو يوهار او دوه بنګړي چي دهاتي دغابنونونه جوړ وو واخستو ددي سند هم كمزوري دي څكه چي په دي كي حميد او سليمان دي اوهغه دواړه مجهول دي اوس زمونږه استدلال دلاندېني اثارونه دي كوم چي بخاري تعليقا نقل كړي دي، زهري، دمرداري دهډوكو يادهاتي دغابنونو وغيره په باره كي وئيلي دي چي ما سلف علماء ليدلي دي چي دهاتي دغابنونونه يي بنګړي جوړول او دهغي په پيالوكي به يي تيل لګول اوپه دي كي به يي څه حرج نه ګڼړلو زه وايم چي دزهري سلف ياخوصحابه كرام دي يالوي تابعين دي نوپېدي تقديرسره دا فعل دصحابو يادتابعينوشو نوبيادي په جواز كي څه كلام پاتي شو . حماد بن سلمه وائي چي دمرداري دوزرونه په فائده اخستلو كي څه حرج نشته ، ابن سيرين اوابراهيم هم وئيلي دي چي دهاتي په غابنونو باندي په تجارت كولو كي څه بدوالي نشته، والله اعلم.

ابوداود ، ترمذي او نسائي په دي باب كي دابومليح رضي الله عنه په واسطه دده د پلار نه روايت نقل كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دځنګلي څناورو دڅرمنی داستعمالولو نه منعه كړی ده (يعني په فرش غوړول ورباندي كيناستل، او په زين اچول ورباندي سوريدل، وغيره استعمال نه منعه كړی ده (څكه چي په دی په كيناستو سره زړه كي دتكبر او لوئي راتلو احتمال پيدا كيږي ).

دلته مراد هغه څرمن ده كومه چي په دباغت نه پاكيږي ددي په ويښتو كي نجاست پروت وي څكه ددي استعمال جائز نه دی بعضي علماء وائي چي د درندګانو څرمني فضول خرچي ده او دمتكبرينو داستعمال څيز دی رسول الله ددينه څكه منع فرمائيلي ده

د څرمن د استعمال دحلت او حرمت باره كي احكام په كتاب الطهارت كي مفصل تير شوي دي ، هلته يي كتلي شئ.

***************

## ٦٢ــ بَاب مَا جَاءَ فِي الرُّجُوعِ فِي الْهِبَةِ

**په بخشش دوركړي څيزپه واپس اخستلو باندي دوعيد بيان**

١٢٩٨ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيْسَ لَنَا مَثَلُ السُّوءِ الْعَائِدُ فِي هِبَتِهِ كَالْكَلْبِ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ".[1]

**ترجمه** . دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بد مثال زمونږ دپاره مناسب نه دي او خپله هديه واپس اخستونكي دهغه سپي پشان دي كوم چه قي اوكړي او واپس يې ختي.

**تشريح** : مروي دي چي عمر رضي الله عنه چاته يو اس دالله په لاره كي وركړو او بيا يې اوليدل چي دغه اس خرڅيږي نو ددي اخستل يي اوغوښتل نبي كريم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل خپله صدقه واپس مه اخله.(رواه الترمذي)

عن ابن عباس رضي الله عنهما : أَنَّ رسول الله ﷺ ، قَالَ : ((الَّذِي يَعُودُ فِي هِبَتِهِ كَالْكَلْبِ يَرْجِعُ فِي قَيْئِهِ)) . متفق عَلَيْهِ .

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي بخښلی شي واپس اخلي داسی دی لكه سپی چي خپل قی بياختي.

أخرجه : البخاري كتاب الهبة ٢١٥/٣ (٢٦٢١) و(٢٦٢٢) . ومسلم كتاب البيوع باب تحريم الرجوع في الصدقة والهبة ٦٣/٥ (١٦٢٢) (٥) و(٨) واحمد وابوداود والترمذي والنسائي وابن ماجه وعبد الرزاق والحميدي وابن حبان والبيهقي١٨٠/٦ .

او يو روايت په دی الفاظو دی مثال دهغه چاچي خپل خيرات كړی شی واپس كوي داسی دی لكه سپی چي قی اوكړي، بيا ورته رااوګرځي او ويی خوري او په يو روايت كي بخښلی شي واپس كوونكی داسی دی لكه خپل قی چي بيا اوخوري (مطلب د دری واړو يو دی).

وركړي صدقه واپس اخستل دابن ملك په نزد حرامه ده ليكن دجمهورو علماؤ په نزد مكروه ده په حديث كي ددي مثال داسي راغلی دی لكه سپی چي خپله قی واپس ختي په دي جمله كي دصدقي وركولو قباحت بيان شوی دی چي مثال يي داسي دی لكه دسپي پشان او دده د صدقي مثال دسپي دقی پشان دی ددينه انسانان سخته كركه كوي علامه طيبي وائي ددينه زيات نه زيات كراهت تنزيهي ثابتيدی شي تحريمي نشي ثابتيدی.(التعليق الصبيح، عمدة

[1] ـ البخاری/الهبة ٣٠ (٢٦٢٢) . والحيل ١٣ (٦٩٧٥) . سنن النسائی/الهبة ٣ (٣٧٢٨، ٣٧٢٩) . (تحفة الأشراف : ٥٩٩٢) . و مسند احمد (٢١٧/١) وانظر الحديث الآتي. مايأتي برقم: ٢١٣١ و ٢١٣٢ وانظر أيضا: صحيح البخاری/الهبة ١٣ (٢٥٨٩) . صحيح مسلم/الهبات ٢ (١٦٢٢) . و النسائی/الهبة ٢ (٣٧٢١٣٧٢٣) . و٣ (٣٧٢٣، ٣٧٢٦، ٣٧٢٥٣٧٢٧، ٣٧٣٠) . و٣ (٣٧٢١٣٧٢٣)

القاري)

عن عمر بن الخطاب ﷺ قَالَ: حَمَلْتُ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللهِ فَأَضَاعَهُ الَّذِي كَانَ عِنْدَهُ، فَأَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِيَهُ، وَظَنَنْتُ أَنَّهُ يَبِيعُهُ بِرُخْصٍ، فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ ﷺ، فَقَالَ: ((لاَ تَشْتَرِهِ وَلاَ تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ وإِنْ أَعْطَاكَهُ بِدِرْهَمٍ؛ فَإِنَّ العَائِدَ فِي صَدَقَتِهِ كَالعَائِدِ فِي قَيْئِهِ)). متفق عَلَيْهِ.

قَوْله: ((حَمَلْتُ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ الله)) مَعنَاهُ: تَصَدَّقْتُ بِهِ عَلَى بَعْضِ المُجَاهِدِينَ.

عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دى چي ما يو سړي ته جهاد دپاره يو اس خيراتي ورکړى وو، نو دهغه نه خراب شو خما دا خيال وو چي دى به يى اوس ارزانه خرڅوي نو زه به يى ترى په بيا واخلم، رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مى تپوس اوکړو نو هغوئ راته اوفرمائيل که په يو درهم يى درباندى خرڅوي هم يى مه اخله خپله صدقه واپس اخستل داسى دي لکه خپل قى بيا خوړل.

حملت علي فرس في سبيل الله: يعني ما دا کوم مجاهد ته دجهاد دپاره ورکړو په طور دصدقي

"لاتعد في صدقتك" يعني خپله صدقه واپس مه اخله مطلب دادى چي خپله ورکړي صدقه په قيمت واپس اخستل جائز نه دي او بعضي علماؤ حرام ګڼرلي دي مګر اکثر علماء وائي چي مکروه تنزيهي دي مکروه په دي وجه دي کيدى شي چي په چا يي احسان کړى وي دهغه نه يي به ارزان قيمت واخلي، نو داسي کس به دصدقي په واپس غوښتونکي کي شميرلي شي چي په واپس کولو يي په شريعت کي ډير وعيدونه راغلي دي.

******************

١٢٩٩_ قَالَ: وَفِي البَاب، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يُعْطِيَ عَطِيَّةً، فَيَرْجِعَ فِيهَا إِلَّا الوَالِدَ فِيمَا يُعْطِي وَلَدَهُ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ حُسَيْنٍ المُعَلِّمِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، أَنَّهُ سَمِعَ طَاوُسًا يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ يَرْفَعَانِ الحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الحَدِيثِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، قَالُوا: مَنْ وَهَبَ هِبَةً لِذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ، فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِيهَا، وَمَنْ وَهَبَ هِبَةً لِغَيْرِ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ، فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِيهَا، مَا لَمْ يُثَبْ مِنْهَا، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يُعْطِيَ عَطِيَّةً فَيَرْجِعَ فِيهَا، إِلَّا الوَالِدَ فِيمَا يُعْطِي وَلَدَهُ.

وَاحْتَجَّ الشَّافِعِيُّ بِحَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يُعْطِيَ عَطِيَّةً، فَيَرْجِعَ فِيهَا إِلَّا الْوَالِدَ فِيمَا يُعْطِي وَلَدَهُ".[1] 3/39

**ترجمه** دعبدالله بن عمر او ابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دهيچا دپاره جائز نه دي چه چاته وركړي هديه واپس اوغواړي مگر علاوه دپلار نه چه كومه يي خپل ځوي ته وركړي وي.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي دوئ وائي څوك چه كوم محرم ته څه ځيز په طور دهديه وركړي نو د وركونكي سره ددي دواپس اخستلو اختيار نشته او څوك چه كوم غير محرم ته كوم ځيز په طور دهديه وركړي نو دده دپاره ددي واپس اخستل جائز دي خو دا هغه وخت كي جائز دي كله چه ددي بدله نه وي وركړي شوي همدا دسفيان ثوري قول دي، او امام شافعي وائي دهيچادپاره جائز نه دي چه څوك چاته هديه وركړي او بيا يي ورنه واپس واخلي مگر علاوه دپلار نه چه خپل ځوي ته يي وركړي وي امام شافعي دعبدالله بن عمر دهغه حديث نه استدلال كړي دي كوم چه هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي چه فرمائيل يي دهيچا دپاره جائز نه دي چه چاته وركړي هديه واپس اوغواړي مگر علاوه دپلار نه چه كومه يي خپل ځوي ته وركړي وي

***************

## ٦٣ـ باب مَا جَاءَ فِي الْعَرَايَا وَالرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### دعاريت والا بيعي دجواز بيان

١٣٠٠ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْمُحَاقَلَةِ، وَالْمُزَابَنَةِ، إِلَّا أَنَّهُ قَدْ أَذِنَ لِأَهْلِ الْعَرَايَا، أَنْ يَبِيعُوهَا بِمِثْلِ خَرْصِهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ هَكَذَا رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ هَذَا الْحَدِيثَ، وَرَوَى أَيُّوبُ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنِ الْمُحَاقَلَةِ، وَالْمُزَابَنَةِ"،

---

[1] ـ ابي داود/ البيوع ٨٣ (٣٥٣٩). النسائي/الهبة ٢ (٣٧٢٠)، و ٢ (٣٧٣٣). ابن ماجه/الهبات ١ (٢٣٧٧). (تحفة الأشراف: ٥٧٤٣ و ٧٠٩٧). و مسند احمد (٢/٢٧، ٧٨) (ويأتي برقم ٢١٣٢)

وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ رَخَّصَ فِي الْعَرَايَا"، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** . دزيد بن ثابت رضي الله عنه بيان دي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم د محاقلي او مزابني نه منع فرمائيلي ده مگر عرايا والاته يي داندازي لگولو نه پس په هم دومره كجورو دخرڅولو اجازت وركړي دي

امام ترمذي وائي دزيد بن ثابت حديث محمد بن اسحاق په همدي مضمون نقل كړي دي او ايوب، عبدالله بن عمر، او مالك بن انس، دنافع نه او نافع دابن عمر نه نقل كړي دي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم دمحاقلي او مزابني نه منع فرمائيلي ده، په دي باب كي دابوهريره او جابر رضي الله عنهما نه هم روايات وارد دي او په همدي سند ابن عمر دزيد بن ثابت نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل كړي دي چه رسول الله دبيعه عرايا اجازت وركړي دي او داحديث دمحمد بن اسحاق دحديث نه زيات صحيح دي.

**بيع مزابنه او محاقله**

بيع مزابنه داده چه د كهجورې په وُنه كي لګيدلې كهجورې،د شوكيدلو كهجورو په عوض په دې طريقه خرڅې كرى چه شوكيدلې كهجورې ئې پيمانه كړلې،يا ئې وزن كړلې اوپه وُنه كي چه كومې كهجورې لګيدلې دى،د هغې اندازه اوكړى.

مثلا دا اندازه ئې اوكړله چه په وُنه كي لګيدلې كهجورې پنځه منه دى،نود عاقد آخر نه ددې عوض پنځه منه شوكيدلې وزن كړى اوواخلى.

اوبيع محاقله داده چه په وګو( بمبلو) كي غنم خرڅ كړى،د وګو( يعنى بمبلو) نه د وتلى شوى صفا غنمو په عوض كښې، په دې طريقه چه په وګو كي د غنمو اندازه اوكړى اوصفا غنم په وزن يا پيمانه سره واخلى،مثلا دا اندازه ئې اوكړله چه په وګوكي پنځه منه غنم دى،نود عاقد آخرنه ئې ددې عوض پنځه منه غنم وزن كړل اووائې خستل، كه چرې بيع مزابنه اوبيع محاقله ناجائز ده.

---

[1] ـ البخاري/البيوع ٧٥ (٢١٧٢، ٢١٧٣) ، و٨٢ (٢١٨٣) ، و ٨٣ (٢١٩٢) . والشرب والمساقاة ١٧ (٢٣٨٠) . مسلم البيوع ١٣ (١٥٣٩) . سنن ابي داود/ البيوع ٢٠ (٣٣٦٢) . سنن النسائي/البيوع ٣٢ (٤٥٣٦، ٤٥٤٠) . و ٣٤ (٤٥٤٣، ٤٥٤٤) . ابن ماجه/التجارات٥٥ (٢٢٦٨، ٢٢٦٩) . (تحفة الأشراف : ٣٧٢٣) . وط/البيوع ٩ (١٤) . و مسند احمد (١٨١/٥، ١٨٢، ١٨٨، ١٩٢) ويأتي برقم ١٣٠٢

او امام شافعي رحمه الله د پنځه وسقو نه په کم کي مزابنه اومحاقله جائز ګرځولې ده اود پنځه وسقو نه په زياتی کي ئې ناجائز ګرځولې ده اوپه پنځه وسقو کي دوه اقواله دی،يود جواز اودويم د عدم جواز،(عنايه).
عرايا د عرية جمع ده اوامام شافعي رحمه الله د عريه تفسير دا کړې دي چه د پنځه وسقو نه کم په ونه کي لګيدلې چهوارې په اټکل سره د شوکيدلو چوارو په عوض خرڅې کړی يعنی په ونه کي د لګيدلو چوارو اندازه اوکړی چه دا د پنځه وسقو نه په دومره کم دی نو ددې په عوض شوکيدلې چوارې ددې په اندازه په وزن يا پيمانه سره ورکړی،نودا عريه ده.په دې حديث کي رسول اکرمﷺ د بيع مزابنه نه منع فرمائيلې ده اود عرايا اجازت ئې ورکړې دې.

## دزيد بن ثابت رضي الله عنه حالات

نوم زيد کنيه ابوسعيد ، ابوخارجه ، ابوعبدالرحمان لقب مقري ، فرضي. کاتب الوحي . حبرالامر
په خزرج قبيله کي دبنو نجار سره تعلق لري او دشپږو کالو عمر کي يي پلار وفات شوی و او ديولسو کالو په عمر کي دمصعب بن عمير په لاس مسلمان شوی وو کله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته راغی نو دی داولسو سورتونو حافظ وو دده عمر په ديارلسو کالو کي روان وو چي دبدرغزوه راغله دده دا خواهش وو چي دی هم پکي شرکت اوکړي مګر دعمر دکموالي په وجه واپس کړی شو او په غزوه خندق کي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يوځاي وو.
په جنګ يمامه کي هم شريك شوی وو او په دي جنګ کي په يو غشي هم لګيدلی وو ليکن جسم ته يي څه نقصان نه وو رسيدلی ، رسول الله صلي الله عليه وسلم دوحي دليکلو کار دډيرو صحابه کرامو نه اخستلی وو په دوئ کي زيد بن ثابت رضي الله عنه هم شامل وو
زيد يو عقلمند او انتهائي زکي انسان وو دهجرت په پنځم کال رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ماته دخلقو خطونه راځي چي په عبراني ژبه کي دي په يهوديانو مي اعتبار نشته نو په دي وجه زيد صرف په پنځلسو ورځو کي عبراني او سرياني ژبي زده کړي (مسند احمد)
زيد دفقه امام وو ګويا کي زيد دخلفاء راشده او معاويه رضي الله عنه په زمانه کي مفتي اعظم وو (اعلام المقعيم)
دهجرت په ۴۵کال د ۵۵يا ۵۲کالو په عمر کي وفات شو دده دوفات کيدو په مناسبت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل نن دعلم يوه خزانه ختمه شوه دده دمروياتو شمير ۹۲دی پنځه په دي کي متفق عليه دي.

****************

١٣٠١_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ مَوْلَى ابْنِ أَبِي أَحْمَدَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ"، أَوْ كَذَا. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم دپنځه وسقو نه په کم مال کي دبيعه عرايا اجازت ورکړي دي او که ددي پشان يي بل څه اوفرمائيل دراوي شك دي چه دحديث الفاظ همدا وو او که ددي پشان نور الفاظ وو. امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي.

******************

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ حُصَيْنٍ نَحْوَهُ، وَرُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ، عَنْ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْخَصَ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا فِي خَمْسَةِ أَوْسُقٍ، أَوْ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ". (2)

**ترجمه** .دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم دپنځه وسقو نه په کم کي دعرايا خرڅولو اجازت ورکړي دي او يا يي ددي مناسب نور الفاظ اوفرمائيل دراوي شك دي چه دحديث الفاظ همدادي او که ددي پشان نور الفاظ وو امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي

******************

١٣٠٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْخَصَ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا بِخَرْصِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْهُمْ: الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَالُوا: إِنَّ العَرَايَا مُسْتَثْنَاةٌ مِنْ جُمْلَةِ نَهْيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذْ نَهَى عَنِ المُحَاقَلَةِ، وَالمُزَابَنَةِ، وَاحْتَجُّوا"، بِحَدِيثِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَحَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَقَالُوا لَهُ: أَنْ يَشْتَرِيَ مَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ، وَمَعْنَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ

---

1 _ البخاري/البيوع ٨٣ (٢١٩٠) . والشرب والمساقاة ١٧ (٢٣٨٢) . صحيح مسلم/البيوع ١٣ (١٥٤١) سنن ابي داود/ البيوع ٢١ (٣٣٦٣) . سنن النسائي/البيوع ٣٥ (٤٥٤٥) . (تحفة الأشراف : ١٣٩٤٣) . و مسند احمد (٢/٢٣٧)

2 _ البخاري/البيوع ٨٣ (٢١٩٠) . والشرب والمساقاة ١٧ (٢٣٨٢) . صحيح مسلم/البيوع ١٣ (١٥٤١) . سنن ابي داود. البيوع ٢١ (٣٣٦٣) . سنن النسائي/البيوع ٣٥ (٤٥٤٥) . (تحفة الأشراف : ١٣٩٤٣) . و مسند احمد (٢/٢٣٧)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَادَ التَّوْسِعَةَ عَلَيْهِمْ فِي هَذَا لِأَنَّهُمْ شَكَوْا إِلَيْهِ، وَقَالُوا: لَا نَجِدُ مَا نَشْتَرِي مِنَ الثَّمَرِ، إِلَّا بِالتَّمْرِ. فَرَخَّصَ لَهُمْ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ، أَنْ يَشْتَرُوهَا، فَيَأْكُلُوهَا رُطَبًا. (1)

**ترجمه** . دزيد بن ثابت رضي الله عنه بيان دي چه رسول الله صلي الله عليه وسم داندازي لګولو نه پس دعرايا دخرڅولو اجازت ورکړي دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي په کومو کي چه امام شافعي اواحمد او اسحاق هم شامل دي دوئ وائي نبي کريم صلي الله عليه وسلم چه من جمله دکومو څيزونو نه منع فرمائيلي دد عرايا دهغي نه مستثني ده ځکه چه رسول الله دمحاقلي او مزابني نه منع فرمائيلي ده او دوئ دزيد بن ثابت او ابوهريره دحديث نه استدلال کړي دي او ددوئ په قول دپنځه وسقو نه کم اخستل جائز دي . دبعضي اهل علمو په نزد ددي مفهوم دادي چه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم پيش نظر په دي سلسله کي توسيع او ګنجائش ورکول دي ځکه چه عرايا والا رسول الله ته شکايت اوکړو او عرض يي اوکړو چه داوچو کجورو نه علاوه کوم بل څيز مونږ ته ميسر نه دي چه مونږ ورباندي تازه کجوري واخستلي شو نو رسول الله دوئ ته دپنځه وسقو نه په کمو اخستلو کي اجازت ورکړو تردي چه هغوئ تازه کجوري حاصلي کړي شي

***************

## ٦٤_ باب مِنْهُ

### دبيع عرايا متعلق يوبل باب

١٣٠٣_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الحُلْوَانِيُّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الوَلِيدِ بْنِ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا بُشَيْرُ بْنُ يَسَارٍ مَوْلَى بَنِي حَارِثَةَ، أَنَّ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ، وَسَهْلَ بْنَ أَبِي حَثْمَةَ حَدَّثَاهُ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ بَيْعِ المُزَابَنَةِ الثَّمَرِ بِالتَّمْرِ، إِلَّا لِأَصْحَابِ العَرَايَا، فَإِنَّهُ قَدْ أَذِنَ

---

1 _ البخاري/البيوع ٧٥ (٢١٧٢، ٢١٧٣) ، و٨٢ (٢١٨٣) ، و ٨٤ (٢١٩٢) ، والشرب والمساقاة ١٧ (٢٣٨٠) . مسلم/البيوع ١٤ (١٥٣٩) . سنن ابي داود/ البيوع ٢٠ (٣٣٦٢) . سنن النسائي/البيوع ٣٢ (٤٥٣٦، ٤٥٤٠) . و ٣٤ (٤٥٤٣، ٤٥٤٤) . ابن ماجه/التجارات٥٥ (٢٢٦٨، ٢٢٦٩) . (تحفة الأشراف : ٣٧٢٣) . وط/البيوع ٩ (١٣) . و مسند احمد (٥/١٨١، ١٨٢، ١٨٨، ١٩٢) ويأتي برقم ١٣٠٢

لَهُمْ، وَعَنْ بَيْعِ الْعِنَبِ بِالزَّبِيبِ، وَعَنْ كُلِّ ثَمَرٍ بِخَرْصِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** : د رافع بن خديج او سهل بن ابي حثمه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دبيع مزابنه نه منع فرمائيلي ده چي كهجوري په كهجورو وركول دي مگر عرايا والانه يي اجازت وركړی اود وچو انگورو د خرخولونه په تازه انگورو او اټكل سره دهري ميوي د خرخولو نه يي منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي دا حديث په همدي سند حسن صحيح غريب دی.

## سهل بن ابو حثمه انصاري رضي الله عنه حالات

نوم سهيل كنيه ابو محمد يا ابو يحيي دپلار نوم ابو حثمه عبدالله بن ساعده چه د هجرت په دريم كال پيداشوی وو اول په مدينه كي اوسيدو بيا كوفي ته منتقل شو درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات په وخت كي دده عمر اته كاله وو.

وفات: دمصعب بن زبير په زمانه كي په مدينه كي وفات شوی دی او دمروياتو شمير يي ۲۵دی چه بخاري او مسلم ورباندي اتفاق كړی دی

***************

## ٦٥ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ النَّجْشِ فِي الْبُيُوعِ

### دبيع نجش دحرمت بيان

١٣٠٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالاَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ قُتَيْبَةُ: يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ تَنَاجَشُوا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا النَّجْشَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالنَّجْشُ أَنْ يَأْتِيَ الرَّجُلُ الَّذِي يَفْصِلُ السِّلْعَةَ إِلَى صَاحِبِ السِّلْعَةِ، فَيَسْتَامُ بِأَكْثَرَ مِمَّا تَسْوَى وَذَلِكَ عِنْدَمَا يَحْضُرُهُ الْمُشْتَرِي، يُرِيدُ أَنْ يَغْتَرَّ الْمُشْتَرِي بِهِ، وَلَيْسَ مِنْ رَأْيِهِ الشِّرَاءُ، إِنَّمَا يُرِيدُ أَنْ

---

[1] ـ البخاری/البيوع ٨٣ (٢١٩١) . والشرب والمساقاة ١٧ (٢٣٨٣) . صحيح مسلم/البيوع ١٤ (١٥٤٠) . سنن ابي داود/ البيوع ٢٠ (٣٣٦٣) . سنن النسائي/البيوع ٣٥ (٤٥٤٦) . (تحفة الأشراف : ٣٥٥٢و٣٦٤٦) و مسند احمد (٢/٤)

يَخْدَعَ الْمُشْتَرِيَ بِمَا يَسْتَامُ، وَهَذَا ضَرْبٌ مِنَ الْخَدِيعَةِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَإِنْ نَجَشَ رَجُلٌ فَالنَّاجِشُ آثِمٌ فِيمَا يَصْنَعُ، وَالْبَيْعُ جَائِزٌ لِأَنَّ الْبَائِعَ غَيْرُ النَّاجِشِ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي نجش مه كوئ

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دابن عمر او انس رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او دبعضي اهل علمو عمل هم په دي باندي دي ددوئ په نزد نجش ناجائز دي نجش ديته وائي چه يو داسي څوك چه په ښه څيز او بد كي فرق كولي شي سامان والاته راشي او داصل قيمت زيات قيمت اولګوي او دا په داسي وخت كي وي كله چه خريدار دده سره موجود وي او مقصد صرف دا وي چه خريدار په دي باندي دهوكه شي او په حقيقت كي دده داخستلو نيت نه وي بلكه صرف دا غواړي چه دده دقيمت لګولو په وجه خريدار دهوكه شي دا هم د دهوكي يو قسم دي، امام شافعي وائي كه څوك نجش كوي نو دي به ددي خپل فعل په وجه ګنهګار وي او بيعه به يي جائز وي ځكه چه خرڅونكي خو نجش نه كوي.

**تشريح** : امام نووي د تناجش داسي تشريح كړي ده

(( النَّجْشُ )) : أَنْ يزيدَ في ثَمَنِ سلعَة يُنَادَى عَلَيْهَا في السُّوقِ وَنَحْوِه ، وَلاَ رَغْبَةَ لَهُ في شرَائهَا بَل يَقْصدُ أَنْ يَغُرَّ غَيْرَهُ ، وهَذَا حَرَامٌ .

يعني، نجش دى ته وائي چي په نيلام كي دڅيز قيمت اوخيژوي او خپله يي ورته دا يستو نيت نه وي، غرض يي دبل دوكه كول وي او دا كار حرام دى، تدابر، تدابر دى ته وائي چي بنده نه مخ واړولى شي او تعلقات ورسره پريښودى شي لكه شاته غورځولى څيز.

ولا تناجشوا، يعني په خريد او فروخت كي به بولي نه زياتوئ په داسي شان سره چي بائع يو كس پيدا كړي چي دخلقو په وړاندي قيمت زيات كړي ددي دپاره چي خلق په ګران قيمت ددي اخستلو ته مجبوره شي او هغه په اصل كي دوكه وركوي ددي دپاره چي قيمت زيات شي

****************

[1] ـــ : صحيح البخارى/البيوع ٥٨ (٢١٤٠) . و٦٤ (٢١٥٠) . و٧٠ (٢١٦٠) . والشروط ٨ (٢٧٢٣) . صحيح مسلم/النكاح ٦ (١٤١٣/٥٢) . سنن ابى داود/ البيوع ٤٦ (٣٤٣٨) . سنن النسائى/البيوع ١٦ (٤٥١٠) . سنن ابن ماجه/التجارات ١٣ (٢١٧٤) . (تحفة الأشراف : ١٣١٢٣) . و موطا امام مالک/البيوع ٤٥ (٩٦) . و مسند احمد (٢/٢٣٨، ٢٧٤، ٤٨٧) . وانظر ما تقدم بأرقام : ١١٣٤، ١١٩٠، ١٢٢٢)

## ٦٦_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّجْحَانِ فِي الْوَزْنِ
## د دروند تول كولو بيان

١٣٠٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ: جَلَبْتُ أَنَا وَمَخْرَفَةُ الْعَبْدِيُّ بَزًّا مِنْ هَجَرَ، فَجَاءَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاوَمَنَا بِسَرَاوِيلَ وَعِنْدِي وَزَّانٌ يَزِنُ بِالأَجْرِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِلْوَزَّانِ زِنْ وَأَرْجِحْ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سُوَيْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَهْلُ الْعِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ الرُّجْحَانَ فِي الْوَزْنِ، وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ سِمَاكٍ، فَقَالَ: عَنْ أَبِي صَفْوَانَ وَذَكَرَ الْحَدِيثَ. (١)

**ترجمه** . دسويد بن قيس رضي الله عنه بيان دي فرماني چه ما او مخرمه عبدي دهجر مقام نه يود كپړه راوړه او نبي كريم صلي الله عليه وسلم مونږ ته تشريف راوړو او مونږ سره يي ديو پرتوګ قيمت اوكړو او زما سره يو تول والا انسان هم وو چه په مزدورئ به يي تول كولو نونبي كريم صلي الله عليه وسلم تول والا ته اوفرمائيل دروند تول كوه امام ترمذي وائي دسويد حديث حسن صحيح دي او دروند تول داهل علمو په نزد مستحب دي، او په دي باب كي دجابر او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او شعبه هم دا حديث دسماك نه نقل كړي دي ليكن هغه دسويد بن قيس په خاي عن ابي صفوان ونيلي دي او بيا يي وړاندي دمخكني حديث پشان حديث ذكر كړو.

**تشريح** : جابررضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم څمانه يو اوښ واخستو دهغی قيمت يی راته په تول راكړو (دهغی په قيمت كي يی راته كجوري يا اوربشی په تول راكړی او تول يی دروند اوكړو) اودحق نه يی څه زيات راكړو

مستحب دادي چي كله څوك څه شی اخلي نو وركونكی دي دروند تول اوكړي او اخستونكي ته هم دا حكم دی چي دی دي هم څه اضافي څيز وركړي ددي عمل په وجه پخپل مينځ كي محبت زياتيږي په پورتني حديث كي درسول الله هم دا عمل خودلی شوی دی چي كله يي اوښ واخستو نو دمقرر قيمت نه يي زيات رقم وركړو.

په بل روايت كي راځي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو قيراط زياتي وركړی وو دبعضي

---

(١) _ ابي داود/ البيوع ٧ (٣٣٣٦) . سنن النسائي/البيوع ٥٣ (٤٥٩٦) . سنن ابن ماجه/ التجارات ٣٤ (٢٢٢٠) . واللباس ١٢ (٣٥٧٩) (تحفة الأشراف : ٤٨١٠) . ومسند احمد ٤/٣٥٢) . وسنن الدارمي/البيوع ٤٧ (٢٦٢٧)

محدثينو قول دی په پورتني ايت کي يوي واقعي ته اشاره ده واقعه داسي وه چي دجابر رضي الله عنه اوښ په يو سفر کي نه تلو رسول الله صلي الله عليه وسلم چي روان کړو نو هغه منډه کړل نو بيايي اوفرمائيل دا په ماباندي خرڅ کړه نو هغوئ ورباندي خرڅ کړو او مديني ته درسيدو پوري اجازت يي ورنه اوغوښتو او په مدينه کي يي ورکړو او ورسره يي هغه اوښ هم ورکړو (بخاري او مسلم).

"زن وارجح" تول کوه او دروند تول کوه، ددينه معلوميږي چي اخستونکي لره پکار دي چي دمقرر قيمت نه لږ زيات ورکړي ځکه چي دا مستحب دي او په دي کي احسان دی او ددي په وجه په معاشره کي ښه اثر مرتب کيږي او پخپل مينځ کي محبت هم زياتيږي.

**دابوصفوان سويد بن قيس رضي الله عنه حالات**

نوم سويد دپلار نوم قيس کنيه ابن صفوان په اخري زمانه کي کوفي ته منتقل شوی وو او څلور احاديث ورنه منقول دي.

***************

## ٦٧_ باب مَا جَاءَ فِي إِنْظَارِ الْمُعْسِرِ وَالرِّفْقِ بِهِ

**تنګدست قرضداري ته مهلت ورکول او د قرض په غوښتلو کي د نرمۍ کولو بيان**

١٣٠٦_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُلَيْمَانَ الرَّازِيُّ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَنْظَرَ مُعْسِرًا، أَوْ وَضَعَ لَهُ أَظَلَّهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تَحْتَ ظِلِّ عَرْشِهِ يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلُّهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي الْيَسَرِ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَحُذَيْفَةَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَعُبَادَةَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چه يو تنګدست مقروض ته مهلت ورکړي او يا ورته څه قرضه معاف کړي نو الله تعالي به ده ته دقيامت په ورځ دخپل عرش دسوري لاندي ځاي ورکړي او دا به داسي ورځ وي چه دعرش دسوري نه علاوه به بل چرته سوري نه وي.

[1] _ تفرد به المؤلف وانظر مسند احمد (٢/٣٥٩). (تحفة الأشراف: ١٢٣٢٢)

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي او په دي باب کي دابويسر (کعب بن عمرو) ابوقتاده، حذيفه، ابن مسعود، عباده، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

***************

١٣٠٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حُوسِبَ رَجُلٌ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ، فَلَمْ يُوجَدْ لَهُ مِنَ الخَيْرِ شَيْءٌ، إِلَّا أَنَّهُ كَانَ رَجُلًا مُوسِرًا، وَكَانَ يُخَالِطُ النَّاسَ، وَكَانَ يَأْمُرُ غِلْمَانَهُ، أَنْ يَتَجَاوَزُوا عَنِ المُعْسِرِ، فَقَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: نَحْنُ أَحَقُّ بِذَلِكَ مِنْهُ تَجَاوَزُوا عَنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو اليَسَرِ كَعْبُ بْنُ عَمْرٍو. [1]

**ترجمه** دابومسعود رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ستاسو نه په مخکي تيرشوو امتونو کي ديو کس سره محاسبه اوکړي شوه نو هيڅ نيکي ورسره نه وه علاوه ددينه چه دا يو مالدار انسان دي او دخلقو سره به يي لين دين کولو او خپلو خادمانو ته به يي حکم کولو چه د قرض غوښتلو وخت کي دتنګدسته خلقو سره نرمي کوئ او نادارو ته معافي کوئ نو الله تعالي فرشتو ته اوفرمائيل مونږ خو دده نه زيات ددي کار حقدار يو تاسو هم ده لره معاف کړئ.
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

**تشريح: دقيامت په ورځ نجات مقروض ته په مهلت ورکولو کي دي**

ابوقتاده رضي الله عنه نه روايت دى چي مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيل څوك چي په دى خوشحال وي چي الله تعالي يى دقيامت دسختيو نه خلاص کړي نو تنګ دست ته دى مهلت ورکړي يادى ورته څه قرض معاف کړي

أخرجه: مسلم كتاب البيوع باب فضل انظار المعسر والبيهقي.

"فليتنفس عن معسر" يعني تنګدست ته مهلت ورکړي يعني دقرض په ادا کولو کي دي ورته مزيد مهلت ورکړي، بعضي خلقو دا مطلب بيان کړى دى چي دتنګدست نه دي تکليف لري کړي يعني دخپل طرفه دي ورته پيسي ورکړي چي هغه ورباندي خپله قرضه ادا کړي او ددي په بدل کي به الله تعالي دقيامت په ورځ دده نه پريشاني لري کړي.

[1] _ مسلم/المساقاة٦ (البيوع ٢٧). (١٥٦١). (تحفة الأشراف: ٩٩٩٢)، ومسند احمد (٤/١٢٠)

## تنګدست سره د نرمۍ کولو په وجه الله معاف کول کوي

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي يوسړی وو خلقو ته به يی قرض ورکولو اوخپل کارنده ته يي وئيلي وو چي تنګدست قرضداري ته دپيسو اخستو پسي ورشي نو ورسره نرمي کوه څه مهلت ورکړه شايد چي الله تعالي مونږ سره نرمي وکړي (ګناهونه زاته معاف کړي) بياچي مرګ نه پس الله تعالی سره مخامخ شو الله تعالي ورته ګناهونه معاف کړل.

أخرجه : البخاري كتاب البيوع باب من انظر المعسر ومسلم كتاب البيوع باب فضل انظار المعسر واحمد والنسائي وابن حبان وابن ابي شيبه والبيهقي

په دري مقاماتو کي د فرض او واجب نه دمستحب اجر زيات دی.

فتجاوز عنه: تنګ دست ته به معافي کوئ علماء وائي په هر ځاي کي دنفلي اعمالو نه دفرض اعمالو فضيلت زيات وي ليکن دري مقامات داسي دي چرته چي دنفل اوسنت ثواب دفرض نه زيات دی

(۱) په دوئ کي يو دادی چي تنګ دست مفلس ته معافي اوکړي دا مستحب حکم دی او مهلت ورکول فرض دي نو دلته دمستحب ثواب يعني بالکل معاف کولو اجر دفرض نه زيات دی.

(۲) په سلام کي مخکي کيدل دسلام جواب ورکول واجب دي دلته هم دسنت ثواب دواجب نه زيات دی.

(۳) دوخت نه مخکي اودس کول مستحب دي ليکن چي کله مونځ شروع کولی شي نو فرض دي دلته هم دمستحب ثواب دفرض نه زيات دی.

## تنګدست ته دمعافۍ کولو په وجه الله هم معافي کوي

دابومسعود بدري رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو نه دوړاندينو کسانو نه ديو کس سره حساب کتاب اوکړی شو، نودهغه په عملنامه کي څه نيکي نه وه سواددی نه چي دی به خلقو سره تجارت کولو اوپه خپله باندی مالدارو، نوخپلو نوکرانو ته به يی وئيل چي تنګدست خلق معاف کوئ، صرف داکار يی وو په دی باندی الله تعالي اوفرمائيل چي زه ددی زيات حقداريم، فرشتو ته يی حکم اوکړو چي دی معاف کړئ.

أخرجه : مسلم كتاب البيوع باب فضل انظار المعسر واحمد والترمذي وابن حبان والحاكم في المستدرك والبيهقي.

"رجلا ممن كان قبلكم " يعني ستاسو نه مخکي په مخکنو خلقو کي يو سړی تير شوی دی چي الله تعالي ورته صرف په دي وجه مغفرت کړی وو چي تنګدسته خلقو ته به يي معافياني

كولي په دي کي ديته ترغيب دى كه څوك دالله تعالي نه معافي غوښتل غواړي نو هغه لره پكار دي چي دخلقو سره داسي معامله اوكړي.
علماء وائي دا واقعه اګر چي په پخوانو امتونو كي ديو كس ده ليكن ددي دا مثالي كردار درسول الله هم خوښ شوى دى او خپل امت ته يي ددي ترغيب وركړى دى. دا عمل الله تعالي ته ډير محبوب دي چي دقيامت په ورځ دچا په وجه يو كس ته مغفرت اوشي.

## الله دبنده نه زيات معافي كونكي دي

دحذيفه رضي الله عنه نه روايت دى چي دالله بندګانو نه يو بنده چي الله تعالي مال وركړى وو ، دالله تعالي په دربار كي حاضر كړى شوى وو، نو الله تعالي ورنه تپوس اوكړو تاپه دنيا كي څه كړي دي اوبه دى ورځ به څوك خبره پټولى نشي، هغه عرض اوكړو يا الله تا مال راكړى وو ، ماورباندى تجارت كولو، اونرمي څما عادت وو. مالدارو سره به مي نرمي كوله اوتنګدست ته به مي مهلت وركولو، الله تعالي اوفرمائيل زه ددى نرمئ كولو تانه زيات حقداريم . فرشتوته يى اوفرمائيل څما ددى بنده سره نرمي اوكړئ دا حديث شريف چي يى واوريدو نو عقبه رضي الله عنه او مسعود انصاري رضي الله عنه دواړو اووئيل مونږ هم دغه شان درسول الله صلي الله عليه وسلم دخولي مباركى نه اوريدلي دي.

أخرجه : مسلم كتاب البيوع باب فضل انظار المعسر واحمد وابن ماجه .

په دي روايت كي هم تنګدست ته دمعافئ كولو ترغيب دى څكه چي جزاء دجنس دعمل نه وي كومه معامله چي ده دنيا كي كوله هم هغه معامله به ورسره الله تعالي دقيامت په ورځ اوكړي.

## تنګدست ته دمهلت وركولو په وجه دالله دعرش په سوري كي ځاي ملاويږي

ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، چاچي تنګدست ته مهلت وركړو يايى ورته څه قرض معاف كړو الله تعالي به دقيامت په ورځ سورى وركړي دخپل دعرش دسوري لاندي په دغه ورځ به دده دعرش دسورى نه بل سورى نه وي.

أخرجه : الترمذي ابواب البيوع باب ماجاء في فضل انظار المعسر والرفق به واحمد.

په دي روايت كي هم تنګدست ته دمعافئ كولو ترغيب دى چي خلق به دقيامت په ورځ په خولو كي ډوب وي او نمر به انتهائي رانزدي شوى وي او په دغه ورځ به دعرش دسوري نه علاوه بل سورى نه وي او داسي كس به الله تعالي خپل عرش دسوري دلاندي كينوي ليكن نن سبا زمونږ په عرف كي معامله برعكس ده او هغه دادى چي مالدارو خلقو ته مهلت وركولى شي ليكن غريبانانو ته مهلت وركول څوك نه خوښوي او دا ګمان كوي كه غريب سړي ته مهلت وركړى شي نو بيابلكل قرضه نشي ادا كولى

## رسول الله دمقرر قيمت نه زيات وركړو

جابررضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم خمانه يو اوبښ واخستو دهغى قيمت يى راته په تول راكړو (دهغى په قيمت كي يى راته كجوري يا اوربشى په تول راكړى او تول يى دروند اوكړو) اودحق نه يى څه زيات راكړو.

أخرجه:البخاري كتاب البيوع باب شراء الدواب والحمير ومسلم كتاب البيوع باب من استلف شيئا فقضي خيرامنه.

مستحب دادي چي كله څوك څه شى اخلي نو وركونكى دي دروند تول اوكړي او اخستونكي ته هم دا حكم دى چي دى دي هم څه اضافي څيز وركړي ددي عمل په وجه پخپل مينځ كي محبت زياتيږي په پورتني حديث كي درسول الله هم دا عمل خودلى شوى دى چي كله يي اوبښ واخستو نو دمقرر قيمت نه يي زيات رقم وركړو

په بل روايت كي راځي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو قيراط زياتي وركړى وو دبعضي محدثينو قول دى په پورتني ايت كي يوي واقعي ته اشاره ده واقعه داسي وه چي دجابر رضي الله عنه اوبښ په يو سفر كي نه تلو رسول الله صلي الله عليه وسلم چي روان كړو نو هغه منډه كړل نو بيايي اوفرمائيل دا په ماباندي خرڅ كړه نو هغوئ ورباندي خرڅ كړو او مديني ته درسيدو پوري اجازت يي ورنه اوغوښتو او په مدينه كي يي وركړو او ورسره يي هغه اوبښ هم وركړو (بخاري او مسلم).

***************

## ٦٨ ـ باب مَا جَاءَ فِي مَطْلِ الْغَنِيِّ أَنَّهُ ظُلْمٌ

### دمالدارانسان دقرض په اداء كولو كي لم ليټ كول ظلم دي

١٣٠٨ ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ، وَإِذَا أُتْبِعَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيٍّ، فَلْيَتْبَعْ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَالشَّرِيدِ بْنِ سُوَيْدٍ الثَّقَفِيِّ. [1]

---

[1] ـ البخاري/الحوالة ٢ (٢٢٨٨)، والاستقراض ١٢ (٢٤٠٠). صحيح مسلم/المساقاة ٧ (البيوع ٢٨) (١٥٦٣). سنن أبي داود/البيوع ١٠ (٣٣٤٥). سنن النسائي/البيوع ١٠٠ (٤٦٩٢)، و ١٠١ (٤٦٩٥). سنن ابن ماجه/الصدقات ٨ (الأحكام ٤٨) (٢٤٠٣). (تحفة الأشراف: ١٣٦٦٢). وط/البيوع ٤٠ (٨٤). ومسند احمد (٢/٢٤٥، ٢٥٤، ٢٦٠، ٣١٥، ٣٧٧، ٣٨٠، ٤٦٣، ٤٦٥)، سنن الدارمي/البيوع ٤٨ (٢٦٢٨)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ديو مالدار انسان دقرض په اداء کولو کي لم ليټ اوتاخير کول ظلم دي او کله چه په تاسو کي څوك يو مالدار انسان ته اوسپارلي شي نو پکار ده چه ده ته دا سپارل قبول کړي
امام ترمذي وائي په دي باب کي دابن عمر او شريد بن سويد ثقفي رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**لغات** : ظلم ظلم او اظلم معني تياره کيدل ظلم دضرب نه معني دچا حق کمول

**تشريح** : "مطل الغني ظلم" يعني دمالدار لم او ليټ کول (په ادائيګۍ کي تاخير کول، ظلم دی، مطلب دادی که چا کوم شی واخستو او دهغي قيمت يي ادا نکړو او حال دادی چه ادا کولی يي شي او ددي باوجود نن سبا کوي نو داسي کس ظالم دی او دکبيره ګناه مرتکب دی بلکه دده ددي عمل په وجه به دده ګواهي هم قبوله نه وي او که په چا باندي قرض وي او هغه خپله قرضه ادا کولی نشي او کوم مالدار ته اووائي چه ته زما قرضه ادا کړه او مالدار يي اومني نو قرض غوښتونکی به دهغه څانه پيسي وصول کوي څاته چه ددي ادا کول سپارلی شوي دي.

***************

١٣٠٩_ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْهَرَوِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ، وَإِذَا أُحِلْتَ عَلَى مَلِيءٍ، فَاتْبَعْهُ، وَلَا تَبِعْ بَيْعَتَيْنِ فِي بَيْعَةٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَمَعْنَاهُ: إِذَا أُحِيلَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيٍّ فَلْيَتْبَعْ، فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا أُحِيلَ الرَّجُلُ عَلَى مَلِيءٍ، فَاحْتَالَهُ، فَقَدْ بَرِئَ الْمُحِيلُ وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَلَى الْمُحِيلِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا تَوِيَ مَالُ هَذَا بِإِفْلَاسِ الْمُحَالِ عَلَيْهِ فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَلَى الْأَوَّلِ، وَاحْتَجُّوا بِقَوْلِ عُثْمَانَ وَغَيْرِهِ، حِينَ قَالُوا: لَيْسَ عَلَى مَالِ مُسْلِمٍ تَوًى، قَالَ إِسْحَاق: مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ لَيْسَ عَلَى مَالِ مُسْلِمٍ تَوِيَ هَذَا إِذَا أُحِيلَ الرَّجُلُ عَلَى آخَرَ، وَهُوَ يَرَى أَنَّهُ مَلِيٌّ فَإِذَا هُوَ مُعْدِمٌ، فَلَيْسَ عَلَى مَالِ مُسْلِمٍ تَوًى.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ديو مالدار انسان دقرض په اداء کولو کي تاخير کول او بهاني جوړول ظلم دي

[1] _ ابن ماجه/الصدقات ٨ (الأحكام ٤٨) . (٢٤٠٤) . (تحفة الأشراف : ٨٥٢٥) . و مسند احمد (٢/٧١)

او كله چه تاسو كوم مالدار ته سپارلي كيږئ نو دا قبول كړئ او په يوه بيعه كي دوه بيعي مه كوئ

امام ترمذي وائي چه دابوهريره حديث حسن صحيح دي. او ددي مطلب دادي كله چه په تاسو كي څوك دقرض په اداء كولو كي كوم مالدار انسان ته اوسپارلي شي نو دي لره قبلول پكار دي بعضي اهل علم وائي كله چه يو سړي كوم مالدار انسان ته اوسپارلي شي او دي حواله قبول كړي نو حواله كونكي بري كيږي او دقرض غوښتونكي دپاره مناسب نه دي چه بيا حواله كونكي ته رجوع اوكړي، همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي. بعضي اهل علم وائي محتال عليه كوم سړي چه سپارلي شوي دي دمفلس كيدو په وجه كه دده دمال دډوبيدو خطره وي نو دقرض غوښتونكي دپاره به جائز وي چه هغه اولني طرف ته واپس شي دي علماؤ په دي خبره دعثمان رضي الله عنه دقول نه استدلال كړي دي چه دمسلمان مال نه ضايع كيږي ، اسحاق بن راهويه وائي ددي حديث مطلب دادي كله چه كوم قرض غوښتونكي چاته حواله كړي شي او ده لره مالدار ګڼړي ليكن په حقيقت كي هغه غريب وي نو په داسي صورت كي دمسلمان مال نه ضايع كيږي (يعني داصل قرضداري نه خپل مال طلب كولي شي)

***************

## ٦٩ـ باب مَا جَاءَ فِي الْمُلاَمَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ

### دبيع ملامسه او منابذه دمما نعت بيان

١٣١٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، قَالاَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْمُنَابَذَةِ، وَالْمُلاَمَسَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ أَنْ يَقُولَ: إِذَا نَبَذْتُ إِلَيْكَ الشَّيْءَ فَقَدْ وَجَبَ الْبَيْعُ بَيْنِي وَبَيْنَكَ. وَالْمُلاَمَسَةُ أَنْ يَقُولَ: إِذَا لَمَسْتَ الشَّيْءَ فَقَدْ وَجَبَ الْبَيْعُ. وَإِنْ كَانَ لاَ يَرَى مِنْهُ شَيْئًا مِثْلَ مَا يَكُونُ فِي الْجِرَابِ أَوْ غَيْرِ ذَلِكَ. وَإِنَّمَا كَانَ هَذَا مِنْ بُيُوعِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ، فَنَهَى عَنْ ذَلِكَ. [1]

---

[1] ـ البخارى/الصلاة ١٠ (٣٦٨) . ومواقيت الصلاة ٣٠ (٥٨٣) . والبيوع ٦٣ (٢١٣٦) . واللباس ٢٠ (٥٨١٩) . و٢١ (٥٨٢١) . صحيح مسلم/البيوع ١ (١٥١١) . سنن النسائى/البيوع ٢٢ (٣٥١٣) . و٢٦ (٣٥١٧ و ٣٥٢١) . سنن ابن ماجه/التجارات ١٢

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عيه وسلم دبيع منابذه او بيع ملامسه نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د ابوسعيد خدري، او عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي ددي حديث مطلب دادي کله چه يو کس اووائي کله چه تاته زه دا څيز دروغورځوم نو زما او ستا مينځ کي به بيع واجب شي (دا دمنابذي صورت دي) او ملامسه ديته وائي چه کله يو کس اووائي کله چه زه دي څيز ته لاس وروړم نو بيع به واجب شي اګر که دا سامان بالکل نوي وي مثلا په يو بوجۍ کي پروت وي ، دا دواړه بيوعات دجاهليت دزماني دمروجو بيوعاتو نه دي لهذا رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي دواړو نه منع اوفرمائيله

**تشريح** : بيع ملامست اوبيع منابذه ناجائز ده،بيع بالقاءالحجر داده چه د يوجنس څوځيزونه موجود وی اوبائع او مشتری دواړه د بيع په سلسله کي ګفتګو کوی،مثلاً يوڅو تانونه ئې ايخودلی وی، بائع د سامان ذکر اوکړلو اود ثمن ذکر ئې اوکړلو،مشتری په يو تان باندې کانړې اوغورزولو نو کوم تان به چه په کانړی اولګيدلو،د هغې بيع به پوره کيدله که ددې مالك به راضی وو، او که چرې ناراض وو اومشتری ته به هم د رجوع کولو اختيار نه وو.

بيع ملامست داده چه دوه سړی د څه سامان په باره کي نرخ اوکړی نو مشتری دغه سامان ته لاس يوسی،نودغه سامان به د مشتری کيدلو که ددې مالك به راضی وو، او که چرې ناراض وو.

اوبيع منابذه داده که دوه سړو به دڅه سامان په باره کي نرخ کولو اوما لك به د بيع لازم کولو دپاره دغه سامان مشتری طرف ته غورزولو،نودا بيع به لازم کيدله،دې نه پس به مشتری ته د واپس کولو اختيار نه وو که مشتری به رضامند وو اوکه راضی به نه وو،بهرحال د جاهليت په زمانه کي درې واړه قسمه د بيع رائج وو.

***************

## ٧٠_ باب مَا جَاءَ فِي السَّلَفِ فِي الطَّعَامِ وَالثَّمَرِ

### په غلي او کجورو کي دسلف (دقيمت مخکي اداء کولو) بيان

(٢١٦٩) (تحفة الأشراف : ١٣٦٦١) . وط/البيوع ٣٥ (٧٦) . واللباس ٨ (١٧) . و مسند احمد (٢/٣٧٩ . ٤١٩ . ٤٦٤) ٤٧٦ . ٤٨٠ (٤٩١ . ٤٩٦ . ٥٢١) . ٥٢٩)

١٣١١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ، وَهُمْ يُسْلِفُونَ فِي الثَّمَرِ، فَقَالَ: " مَنْ أَسْلَفَ، فَلْيُسْلِفْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ، وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَجَازُوا السَّلَفَ فِي الطَّعَامِ، وَالثِّيَابِ وَغَيْرِ ذَلِكَ، مِمَّا يُعْرَفُ حَدُّهُ، وَصِفَتُهُ، وَاخْتَلَفُوا فِي السَّلَمِ فِي الْحَيَوَانِ، فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. السَّلَمَ فِي الْحَيَوَانِ جَائِزًا، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَكَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، السَّلَمَ فِي الْحَيَوَانِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. أَبُو الْمِنْهَالِ اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مُطْعِمٍ. ([1]) 3/40

**ترجمه** . دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم چه مديني ته تشريف راوړو نو دمديني خلقو په ميوو كي سلف كولو يعني قيمت به يي مخكي اداء كولو، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څوك چه سلف كوي نو په معين ناپ تول او په معينه موده كي دي سلف اوكړي.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابن ابي اوفي او عبدالرحمن بن ابزي رضي الله عنهما نه هم روايات مروي دي په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي دوئ وائي دكېړي او دكومو ځيزونو حد او صفت چه معلوم وي ددي داخستلو دپاره مخكي قيمت وركول جائز دي او دځاروي اخستلو دپاره په مخكي قيمت وركولو كي اختلاف دي، بعضي اهل علم دځاروي اخستلو دپاره مخكي قيمت وركول جائز گنړي اوهمدا دامام شافعي او امام احمد او اسحاق قول هم دي مګر په صحابه كرامو او اهل علمو كي بعضي كسان دځاروي اخستلو دپاره مخكي قيمت وركول مكروه گنړي سفيان ثوري او اهل كوفه هم په دي باندي قول كړي دي

[1] ــ البخاري/السلم ١ (٢٢٣٩)، و٢ (٢٢٤٠)، و٧ (٢٢٥٣)، صحيح مسلم/المساقاة ٢٥ (١٦٠٤)، سنن ابي داود/ البيوع ٥٧ (٣٤٦٣)، سنن النسائي/البيوع ٦٣ (٤٦٢٠)، سنن ابن ماجه/التجارات ٥٩ (٢٢٨٠)، (تحفة الأشراف : ٥٨٢٠)، و مسند احمد (١/٢١٧، ٢٢٢، ٢٨٢، ٣٥٨)

**تشريح** : كه چري يوكس غلام په دې شرط باندې خرڅ كړلو چه دا غلام به يوه مياشت زما خدمت كوي، يا ئې كور په دې شرط باندې خرڅ كړلو چه بائع به يوه مياشت په دې كې اوسيږي، يا ئې په دې شرط باندې خرڅ كړلو چه بائع ته يو درهم قرض وركړي، يا ئې په دې شرط باندې خرڅ كړلو چه مشتري بائع ته څه هديه وركړي، په دې ټولو صورتونوكې بيع فاسد ده.

***************

## ٧١_ بَاب مَا جَاءَ فِي أَرْضِ الْمُشْتَرَكِ يُرِيدُ بَعْضُهُمْ بَيْعَ نَصِيبِهِ

**دهغه مشتركې زمكې بيان دكومې په حصه داروكې چه يو حصه دار خپله حصه خرڅول غواړي**

١٣١٢_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْيَشْكُرِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ كَانَ لَهُ شَرِيكٌ فِي حَائِطٍ، فَلَا يَبِيعُ نَصِيبَهُ مِنْ ذَلِكَ، حَتَّى يَعْرِضَهُ عَلَى شَرِيكِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِمُتَّصِلٍ، سَمِعْت مُحَمَّدًا يَقُولُ: سُلَيْمَانُ الْيَشْكُرِيُّ، يُقَالُ: إِنَّهُ مَاتَ فِي حَيَاةِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: وَلَمْ يَسْمَعْ مِنْهُ قَتَادَةُ، وَلَا أَبُو بِشْرٍ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَلَا نَعْرِفُ لِأَحَدٍ مِنْهُمْ سَمَاعًا مِنْ سُلَيْمَانَ الْيَشْكُرِيِّ، إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، فَلَعَلَّهُ سَمِعَ مِنْهُ فِي حَيَاةِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: وَإِنَّمَا يُحَدِّثُ قَتَادَةُ، عَنْ صَحِيفَةِ سُلَيْمَانَ الْيَشْكُرِيِّ، وَكَانَ لَهُ كِتَابٌ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْعَطَّارُ عَبْدُ الْقُدُّوسِ قَالَ: قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ، قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: قَالَ سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ: ذَهَبُوا بِصَحِيفَةِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ إِلَى الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ فَأَخَذَهَا، أَوْ قَالَ: فَرَوَاهَا، وَذَهَبُوا بِهَا إِلَى قَتَادَةَ، فَرَوَاهَا، وَأَتَوْنِي بِهَا، فَلَمْ أَرْوِهَا، يَقُولُ: رَدَدْتُهَا. [1]

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچا په باغ كي چه ديوكس سره بل څوك حصه دار وي نو دي خپله حصه دهغه وخته پوري نشي خرڅولي چه څو پوري بي دا حصه خپل شريك ته پيش كړي نه وي

[1] _ تفرد به مؤلف. وانظر مسند احمد (٣/٢٥٤) (صحيح لغيره) و صحيح مسلم/ المساقاة ٢٨ (البيوع ٤٩) . (١٦٠٨) . و سنن ابي داود/ البيوع ٧٥ (٣٥١٣) . سنن النسائي/البيوع ٨٠ (٤٦٥٠) . و ١٠٧ (٤٧٠٣، ٤٧٠٥) . (تحفة الأشراف : ٢٢٤٢) . و مسند احمد (٣/٣١٢، ٣١٦، ٣٩٧) . وسنن الدارمي/البيوع ٨٣

امام ترمذي وائي ددي حديث سند متصل نه دي مادامام بخاري نه اوريدلي دي دسليمان يشكري باره كي وئيلي كيږي دسليمان يشكري دجابر بن عبدالله رضي الله عنه په ژوندګئ كي وفات شوي دي راوي وائي چه دده نه دقتاده او ابوبشر سماع ثابت نه ده امام بخاري وائي په دي دواړو كي ديو كس سماع هم دسليمان يشكري نه ثابت نه ده مګر دعمرو بن دينار ثابت ده پس كيدي شي چه دهغه نه يي اوريدلي وي دجابر بن عبدالله په ژوندګئ كي امام بخاري وائي قتاده به ورته دسليمان يشكري دصحيفي نه احاديث بيانول او دده سره يو كتاب وو چه د جابر بن عبدالله احاديث يي پكي ليكلي وو. سليمان تيمي وائي خلقو دجابر بن عبدالله كتاب حسن بصري ته اوخودلو نو هغه دا واخستلو او يايي ورنه روايت اوكړو او چه قتاده ته خلقو اوخودلو نو هغه ورنه هم روايت اوكړو او چه ماته يي اوخودلو نو ما ورنه روايت اونكړو او رد مي كړ

*****************

## ٧٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُخَابَرَةِ وَالْمُعَاوَمَةِ

### دمخابره او معاومه بيع بيان

١٣١٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْمُحَاقَلَةِ، وَالْمُزَابَنَةِ، وَالْمُخَابَرَةِ، وَالْمُعَاوَمَةِ، وَرَخَّصَ فِي الْعَرَايَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه مروي دي چه نبي كريم صلي الله عليه وسلم دبيع محاقله، مزابنه، مخابره، او معاومه نه منع فرمائيلي ده او دعرايا اجازت يي وركړي دي ، امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

**تشريح** په مذكوره باب كي د يو څو بيوعاتو ممانعت مذكور دي:

(١) محاقله : ددي تعريف تير شوي دی.

(٢) مزابنه : ددي تعريف تير شوي دی.

(٣) مخابره : ددي تعريف تير شوي دی

---

[1] _ مسلم/البيوع ١٦ (١٥٣٦/٨٥) . سنن ابي داود/ البيوع ٣٤ (٣٤٠٤) . سنن النسائي/الأيمان والمزارعة ٤٥ (٣٩١٠) . والبيوع ٧٤ (٤٦٣٤) . سنن ابن ماجه/التجارات ٥٤ (٢٢٦٦) . (تحفة الأشراف : ٢٦٦٦) . و مسند احمد (٣/٣١٣، ٣٥٦، ٣٦٠، ٣٦٤، ٣٩١، ٣٩٢) وانظر ماتقدم برقم ١٢٩٠، وما عند صحيح البخاري/البيوع ٨٣ (٢٣٨١)

(۴) معاومه: مطلب دادي چي د يو باغ ميوه د يو کال نه د زياتي مودي دپاره خرڅه کړي ديته بيع السنين هم وايي دا ناجائز ده ځکه چي په دي مبيعه معدوم ده اود معدوم اشياؤ بيع ممنوع او جائز نه وي.

## ٧٣_ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْعِيرِ

### داشياؤ دقيمتونو مقررولو بيان

١٣١٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا الحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، وَثَابِتٌ، وَحُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: غَلَا السِّعْرُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، سَعِّرْ لَنَا، فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ هُوَ المُسَعِّرُ القَابِضُ البَاسِطُ الرَّزَّاقُ، وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَلْقَى رَبِّي، وَلَيْسَ أَحَدٌ مِنْكُمْ، يَطْلُبُنِي بِمَظْلِمَةٍ فِي دَمٍ، وَلَا مَالٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه بيان دي چه يو ځل درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي دغلي وغيره څيزونو نرخ زيات شو خلقو عرض اوکړو اي دالله رسوله تاسو زمونږ دپاره نرخ مقرر کړئ رسول الله اوفرمائيل نرخ مقررونکي خو الله تعالي دي او هم هغه درزق معامله کي تنګي راوستونکي او فراخي راوستونکي دي او الله تعالي بهتر روزي رسونکي دي زه غواړم چه دخپل رب سره په داسي حال کي مخامخ شم چه په تاسو کي هيڅيا دجان او مال په سلسله کي دظلم دبدلي مطالبه کونکي نه يم.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٧٤_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الغِشِّ فِي البُيُوعِ

### په کاروبار او تجارت کي ددهوکي کولو دحرمت بيان

١٣١٥_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ العَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى صُبْرَةٍ مِنْ طَعَامٍ، فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهَا، فَنَالَتْ أَصَابِعُهُ بَلَلًا، فَقَالَ: "يَا صَاحِبَ الطَّعَامِ مَا هَذَا"، قَالَ: أَصَابَتْهُ السَّمَاءُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "أَفَلَا جَعَلْتَهُ فَوْقَ الطَّعَامِ حَتَّى يَرَاهُ النَّاسُ"، ثُمَّ قَالَ: "مَنْ غَشَّ فَلَيْسَ مِنَّا". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنِ ابْنِ

[1] _ ابي داود/ البيوع ٥١ (٣٤٥١)، سنن ابن ماجه/التجارات ٢٧ (٢٢٠٠)، (تحفة الأشراف: ٣١٨ و ٦١٣ و ١١٥٨)، و مسند احمد (٣/٢٨٦)

عُمَرَ، وَأَبِي الحَمْرَاءِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَبُرَيْدَةَ، وَأَبِي بُرْدَةَ بْنِ نِيَارٍ، وَحُذَيْفَةَ بْنِ اليَمَانِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. كَرِهُوا الغِشَّ وَقَالُوا: الغِشُّ حَرَامٌ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چه رسول الله صلي الله عليه وسلم دغلي يو ډيري سره تيريدو لاس يي پکي ننويستو، په ګوتو مبارکو يى لوندوالى اولګيدو، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اى دغلى خاوند دا څه دي يعني دننه غله ولي لونده ده هغه عرض اوکړو يا رسول الله! دا باران وهلى ده رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا لونده غله دى دپاسه ولى نه اچوله چه خلقو ليدلى چاچه مونږ سره دهوکه اوکړه هغه زمونږ نه دى.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عمر، ابوحمراء، ابن عباس، بريده، ابوبرده بن دينار او حذيفه بن اليمان رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او په همدي داهل علمو عمل دي او هغوئ دهوکي دړکي نه خوښوي او حرام يي ګڼړي.

**تشريح** : "من غش فليس منا" يعني څوك چه مونږ ته دوكه راكوي هغه زمونږ نه نه دى د دوکي وړکولو يو څو صورتونه کيدى شي، اول لکه په سودا کي چه عيب وي او ددي د ظاهر کولو نه بغير خرڅه کړى شي ، دويم په غوره مال کي ردي مال ګډ کړى شي او په ښه قيمت خرڅ کړى شي، دريم په سودا کي کوم داسي څيز ګډ کړى شي چه دسودا وزن ورباندي زيات شي په دي حديث کي دا هم معلومه شوه چه دحاكمانو دپاره پكار دي چه دبازار نګراني پري نږدي او ملاوټ کونکو ته سزا ورکړي.

يعني دادمسلمانانو طريقه نه ده يعني دا ددوئ سره هم دردي نه ده بلكه دشمني ده په دي کي په دي خبره تنبيه ده چه مسلمانان به دهر قسم دوکي نه خان ساتي

****************

## ٧٥_ باب مَا جَاءَ فِي اسْتِقْرَاضِ البَعِيرِ أَوِ الشَّيْءِ مِنَ الحَيَوَانِ أَوِ السِّنِّ

### اوښ يا كوم بل څاروي په قرض اخستلو بيان

1 ـ البخاري/الإيمان ٤٣ (١٠٢). سنن ابي داود/ البيوع ٥٢ (٣٤٥٢). سنن ابن ماجه/ التجارات ٣٦ (٢٢٢٤). (تحفة الأشراف: ١٣٩٧٩). و مسند احمد (٢/٢٤٢)

١٣١٦_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: اسْتَقْرَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِنًّا، فَأَعْطَاهُ سِنًّا خَيْرًا مِنْ سِنِّهِ، وَقَالَ: " خِيَارُكُمْ أَحَاسِنُكُمْ قَضَاءً ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، وَسُفْيَانُ، عَنْ سَلَمَةَ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، لَمْ يَرَوْا بِاسْتِقْرَاضِ السِّنِّ بَأْسًا مِنَ الإِبِلِ، وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَكَرِهَ بَعْضُهُمْ ذَلِكَ. (١)

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو خوان اوبښ په قرض واخستلو او بيا يي دهغه اوبښ په قرض كي دهغه نه بهتر وركړو او ويي فرمائيل په تاسو كي بهتر هغه څوك دي څوك چه په قرض اداء كولو كي بهتر وي

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او دا شعبه او سفيان هم دسلمه نه نقل كړي دي، او په دي باب كي دابورافع رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي او دبعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي هغوئ دهر عمر والا اوبښ په قرضو اخستل مكروه گنړي او بعضي اهل علمو هم داكار مكروه گنړلي دي

**************

١٣١٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَجُلًا تَقَاضَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَغْلَظَ لَهُ فَهَمَّ بِهِ أَصْحَابُهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " دَعُوهُ فَإِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا ". ثُمَّ قَالَ: " اشْتَرُوا لَهُ بَعِيرًا، فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ، فَطَلَبُوهُ فَلَمْ يَجِدُوا إِلَّا سِنًّا أَفْضَلَ مِنْ سِنِّهِ ". فَقَالَ: " اشْتَرُوهُ، فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ، فَإِنَّ خَيْرَكُمْ أَحْسَنُكُمْ قَضَاءً ".(٢)

---

[1] _ البخاري/الوكالة ٥ (٢٣٠٥)، و٦ (٢٣٠٦)، والاستقراض ٤ (٢٣٩٠)، و٦ (٢٣٩٢)، و٧ (٢٣٩٣)، والهبة ٢٣ (٢٦٠٦)، و٢٥ (٢٦٠٩)، صحيح مسلم/المساقاة ٢٢ (البيوع ٤٣) (١٦٠١)، سنن النسائي/ البيوع ٦٤ (٤٦٢٢)، و١٠٣ (٤٦٩٧)، سنن ابن ماجه/الصدقات ١٦ (الأحكام ٥٦)، (٢٤٢٣)، (تحفة الأشراف ١٤٩٦٣)، و مسند احمد (٢/٣٧٤، ٣٩٣، ٤١٦، ٤٣١، ٤٥٦، ٤٧٦، ٥٠٩)

[2] _ البخاري/الوكالة ٥ (٢٣٠٥)، و٦ (٢٣٠٦)، والاستقراض ٤ (٢٣٩٠) و٦ (٢٣٩٢)، و٧ (٢٣٩٣)، والهبة ٢٣ (٢٦٠٦)، و٢٥ (٢٦٠٩)، صحيح مسلم/المساقاة ٢٢ (البيوع ٤٣) (١٦٠١)، سنن النسائي/البيوع ٦٤ (٤٦٢٢)، و١٠٣ (٤٦٩٧)، سنن ابن

**ترجمه** . ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چه يو سړی راغلو رسول الله صلي الله عليه وسلم باندی يی څه قرض وو، هغه يی غوښتو نوغوښتوکي يی سختي اوکړه درسول الله صلي الله عليه وسلم اصحابو ورته دسزا ورکولو اراده اوکړه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل پريدئ صاحب حق ته دخبرو کولو حق دی بيايی اوفرمائيل دده اوښ بچي چه څنګه وو، دهغی عمر هغه شان بچی ورکړئ اصحابو عرض اوکړو هغه شان بچی موجود نشته دهغی نه اعلي شته دی رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اعلي ورکړئ ځکه چه په تاسو کي بهتر هغه سړی دی چه قرض په بهتره طريقه ادا کړي.

**تشريح** : کوم کس چه نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته راغلی وو دا کس زيد بن شعبه کناني وو ځوك چه بيا وروسته مسلمان شوی دی.

"فاغلظ له" يعني سخته رويه يي اختيار کړه او رسول الله برداشت کړه خو دا برداشت کول داعلي اخلاقو يو نمونه ده چه دانبياؤ خاصه وي

" لصاحب الحق مقالا" يعني دحق مالك دخبرو کولو حق لري، علماء وائي چه دحق نه مراد قرض دی يعني ځوك چه دچا قرضداری وي او دده دقرض په ادا کولو کي تاخير اوشي نو قرض غوښتونکي ته دا اختيار حاصل دی چه په سختئ سره تقاضا اوکړي او دخفګان اظهار اوکړي دده ته دا حق دهغه وخته پوري حاصل دی ترڅو چه يي خپل قرضداری حاکم ته پيش کړی نه وي.

"فان خيركم احسنكم قضاء" يعني په تاسو کي بهتر هغه ځوك دی ځوك چه ښانسته ادا ګکي کوي ددينه معلومه شوه که مقروض دمقرر وخت نه مخکي قرضه ادا کړي نو بهتره ده او که دمال مالك دطرف نه دزياتي مطالبه وي نو دا به سود وي چه اخستل يي حرام دي او ورکول يي هم حرام دي.

*****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

---

ماجه/الصدقات ١٦ (الأحكام ٥٦) . (٢٣٢٢) . (مقتصراً على قوله المرفوع) (تحفة الأشراف : ١٣٩٦٣) . و مسند احمد (٢/٣٧٣، ٣٩٣، ٤١٦، ٤٣١) . (٤٥٦، ٤٧٦، ٥٠٩)

[1] ـ البخاری/الوكالة ٥ (٢٣٠٥) . و٦ (٢٣٠٦) . والاستقراض ٣ (٢٣٩٠) . و ٦ (٢٣٩٢) . و ٧ (٢٣٩٣) . والهبة ٢٣ (٢٦٠٦) . و ٢٥ (٢٦٠٩) . صحيح مسلم/المساقاة ٢٢ (البيوع ٤٣) (١٦٠١) . سنن النسائي/البيوع ٦٣ (٤٦٢٢) . و١٠٣ (٤٦٩٨) . سنن ابن

**ترجمه :** دسلمه بن کهيل نه هم دماقبل هم معنی روايت مروي دي او امام ترمذي واني داحديث حسن صحيح دي.

***************

۱۳۱۸_ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أبِي رَافِعٍ مَوْلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: اسْتَسْلَفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَكْرًا، فَجَاءَتْهُ إِبِلٌ مِنَ الصَّدَقَةِ، قَالَ أَبُو رَافِعٍ: "فَأَمَرَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقْضِيَ الرَّجُلَ بَكْرَهُ"، فَقُلْتُ: لَا أَجِدُ فِي الإِبِلِ إِلَّا جَمَلًا خِيَارًا رَبَاعِيًا، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعْطِهِ إِيَّاهُ فَإِنَّ خِيَارَ النَّاسِ أَحْسَنُهُمْ قَضَاءً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه :** دابورافع بيان دي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم يوخوان اوبن واخستلو بيا چه ورته كله دصدقي اوبنان راغلل نو ماته يي حكم اوكړو چه زه دهغه كس اوبن اداء كړم ما ورته عرض اوكړو اي دالله رسوله ما ديو څلورو غابنو والا ښكلي اوبن نه علاوه كوم بل اوبن اونه موندلو رسول الله اوفرمائيل همدا ورته وركړه ځكه چه په تاسو كي بهتر هغه څوك دي چه په قرض اداء كولو كي دهر چانه بهتر وي ، امام ترمذي واني داحديث حسن صحيح دي.

***************

۱۳۱۹_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُلَيْمَانَ الرَّازِيُّ، عَنْ مُغِيرَةَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ سَمْحَ البَيْعِ، سَمْحَ الشِّرَاءِ، سَمْحَ القَضَاءِ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ يُونُسَ، عَنْ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. (2)

---

ماجه/الصدقات ١٦ (الأحكام ٥٦) . (٢٣٢٢) . (تحفة الأشراف : ١٣٩٦٣) . و مسند احمد (٢/٢٤٣، ٢٩٣، ٣١٦، ٣٢١) . ٣٥٦، ٤٧٦، ٥٠٩)

[1] _ مسلم/المساقاة ٢٢ (البيوع ٤٣) (١٦٠٠) . سنن ابي داود/ البيوع ١١ (٣٣٤٦) . سنن النسائي/ البيوع ٦٢ (٤٦٢١) . سنن ابن ماجه/التجارات ٦٢ (٢٢٨٥) . (تحفة الأشراف : ١٢٠٢٥) وط/ البيوع ٤٣ (٨٩) . و مسند احمد (٦/٣٩٠) . وسنن الدارمي/البيوع ٣١ (٢٥٠٤)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٢٢٢٦)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي په اخستلو خرڅولو او دقرض په غوښتلو کي اساني کول خوښوي. امام ترمذي وائي داحديث غريب دي او بعضي راويانو داحديث په سند د يونس عن سعيد المقبري عن ابي هريره سره نقل کړي دي او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي.

***************

١٣٢٠_ حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الدُّورِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الوَهَّابِ بْنُ عَطَاءٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ المُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "غَفَرَ اللهُ لِرَجُلٍ، كَانَ قَبْلَكُمْ، كَانَ سَهْلًا إِذَا بَاعَ سَهْلًا، إِذَا اشْتَرَى سَهْلًا، إِذَا اقْتَضَى". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. (١)

**ترجمه** دجابررضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي يوکس ته مغفرت اوکړو کوم چه ستاسو نه مخکي تير شوي دي او په هغه کي دا خصوصيت وو چه په اخستلو کي به يي نرمي کوله او په خرڅولو کي به يي نرمي کوله او دقرض په غوښتلو کي به يي نرمي کوله، امام ترمذي وائي داحديث په دي سند صحيح حسن غريب دي.

***************

## ٧٦_ باب النَّهْيِ عَنِ البَيْعِ، فِي المَسْجِدِ

### په مسجد کي داخستلو خرڅولو دمما نعت بيان

١٣٢١_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَارِمٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ خُصَيْفَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَبِيعُ، أَوْ يَبْتَاعُ فِي المَسْجِدِ، فَقُولُوا: لَا أَرْبَحَ اللَّهُ تِجَارَتَكَ، وَإِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَنْشُدُ فِيهِ ضَالَّةً، فَقُولُوا: لَا رَدَّ اللهُ عَلَيْكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، كَرِهُوا البَيْعَ، وَالشِّرَاءَ فِي المَسْجِدِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَدْ رَخَّصَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي البَيْعِ وَالشِّرَاءِ فِي المَسْجِدِ. (٢)

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٠١٨) وهو عند صحيح البخاري/البيوع ١٦ (٢٠٧٦)، وق في التجارات ٢٨ (٢٢٠٣)، بسياق آخر ومسند احمد (٣/٣٤٠)

[2] _ النسائي/عمل اليوم والليلة ٦٨ (١٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٥٩١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي تاسو څوك په مسجد كي اخستل خرڅول كوي ورته اووائي خدايې پاك دی درته په دي منافع درنكړي ، او كله چي تاسو څوك په مسجد كي د ورك څيز دپاره اعلان كوي ورته اووائي خدايې پاك دی درته واپس درنه كړي كه چه جماتونه دی كار دپاره نه دي جوړ ،جماتونه خو دالله دذكر اوعبادت دپاره جوړ دي،.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن غريب دي او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او هغوئ په مسجد كي اخستل خرڅول ناجائز ګڼړي، امام احمد او اسحاق بن راهويه هم په دي باندي قول كړي دي، او بعضي اهل علمو په مسجد كي داخستلو خرڅولو اجازت وركړي دي.

**تشريح** : صاحب دسبل السلام ليكلي دي والحديث دليل علي تحريم السوال عن ضالة الحيوان، دپورتني حديث نه معلوميږي چه ورك شوی څيز په مسجد كي لټول يا ددي دپاره اعلان كول مكروه تحريمي دي.

مولانا محمد يوسف بنوري وائي واما انشاد الضالة فلها صورتان احدهما هي اقبح واشنع بأن يضل شئ خارج المسجد ثم ينشد في المسجد لاجتماع الناس فيه والثانية ان يضل في المسجد نفسه فينشده فيه وهذ يجوز اذا كان من غير لغط وشغب الخ.

يعني د ورك شوي څيز دوه صورتونه دي په دي دواړو كي زيات قبيح او مذموم صورت هغه دی چه يو شی دمسجد نه بهر ورك شوی وي او دخلقو دراټوليدو په وجه په مسجد كي دهغي دپاره اعلان اوكړی شي دويم صورت دادی چه څيز په مسجد كي دننه ورك شوی وي او بيا ددي دلټول دپاره اعلان په مسجد كي وكړی شي دا دويم صورت به جائز وي خو په دي شرط چه كله د مسجد احترام خيال اوساتي او شور او غوغا جوړه نكړي.

لا ردها الله عليك: الله دي درته پيدا نكړي علماء وائي چه اوريدونكي به دا جمله په تيزه وائي ددي دپاره چه دی وريلی شي او دده دپاره عبرت اوګرځي او دخپل نامناسبه كار سزا اوموممي او بيا څرته داسي حركت كولو جرئت اونكړي.

دمسجد ډير اداب دي يو يو ادب يي دمسجد سره محبت كول دي لكه چه په يو روايت كي راغلي دي.

ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اوه كسان داسي دي چه الله تالي به ورته دخپل رحمت سورى وركړي په كومه ورځ چه به دهغه درحمت دسوري نه سوا بل سوری نه وي.

(۱) عادل او انصاف دار بادشاه.

(۲) هغه ځوان چه په ځوانۍ کي دالله تعالي عبادت اوکړي.
(۳) هغه سړی چه زړه یې جوماتسره تړلی وي.
(۴) هغه دوه کسان چه صرف دالله تعالي درضا دپاره خپل مینځ کي محبت کوي، هم په دی یې یوځایی کیدل وي او هم په دی یې جدائي وي.
(۵) هغه سړی چه یوه مالداره او ښائسته ښځه ورته دګناه دعوت ورکړي او دی په جواب کي اووائي چه څه دالله تعالي نه ویریږم.
(۲) هغه کس چه دومره پټه صدقه ورکړي چه ګس لاس ته دا پنګه اونه لګي چه ښي لاس څه خرج کړل.
(۷) هغه کس چه تنهایۍ کي الله تعالي یاد کړي او دسترګو نه یې اوښکي اوبهیږي.

****************

## ویلیه کتاب الاحکام ان شاء الله تعالي

***************

الحَمْدُ للهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِي لَوْلاَ أَنْ هَدَانَا اللهُ . اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَي مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَرَسُولِكَ النَّبِيِّ الأُمِّيِّ ، وَعَلَي آلِ مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ ، كما صَلَّيْتَ عَلَي إِبْرَاهِيمَ وعلي آلِ إِبْرَاهِيمَ ، وَبَارِكْ عَلَي مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الأُمِّيِّ .